بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلنَّحْوُ فِي الْكَلَامِ كَالْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ

# دُرُوْسُ الْكَافِيَهْ

## مع اَلْعُيُوْنُ الصَّافِيَه شرح مُبْنِي الْكَافِيَه

پښتو




افادات

حضرت العلامہ مولانا حافظ محمد ابراھیم فانی مدظلہ العالی

مدرس دارالعلوم حقانیہ اکوڑہ ختک

مرتبین مولوی محمد سلیم سواتی

داحمد کتاب

النحو في الكلام كالملح في الطعام

# دروس الکافیه

پښتو شرح

## کافیه ابن حاجب

افادات

حضرت العلامه مولانا حافظ محمد ابراهیم فانی مدظله العالی

مدرس دار العلوم حقانیه اکوړه خټک

مرتب: مولوی محمد سلیم سواتی

مکتبه عمریه

بازار قندهار

................................

# الاشتهار قابل الاعتبار

زموږ يو كتاب جديد مكتبه رشيديه پشاور زموږ له اذن پرته چاپ كړى د فتوح الشام په نامه، نو موږ د معاقبة بالمثل په اساس د دوى دوه كتابونه چاپ كړل كه دوى تجاوز بند كړ نو موږ به يې هم بند كړو او كه يې وغځاوه نو موږ به يې هم وغځوو . .

د يادولو ده چې:

د فلان او فلان نامه ته نه بلكې خپرندويې اداري ته مسؤليت راجع دى.

................................

# رائے گرامی

دَ شیخ طریقت اَوْ شریعت جامع المنقول والمعقول مفتی اعظم وشیخ الحدیث دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک، حضرت العلامه مولانامفتی محمّد فرید صاحب، نقشبندی مدظله العالی۔

---

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

الحمد لله وسلام علیٰ عباده الذین اصطفیٰ، اَمّا بعد۔

پس دا تقریر دَ کافیې په پښتو کښے، چه تالیف دے۔ دَ مولانا محمّد ابراهیم فانی، ما یو څو ځایه اوکاتهٔ۔ پخه اَوْ نوی خبرے ئے په کښے جمع کړی دی۔ اَللّٰه تعالیٰ دِ دا تقریر قبول کړی اَوْ فائده مند دِ اوګرځوی۔ آمین۔

محمّد فرید عفی عنهٔ

۲۷ر شوال ۱۴۱۵ھ

---

# تقریظ

د شیخ الحدیث حضرت علامه مولانا سمیع الحق صاحب
مدظله العالی مهتمم دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک، مدیر اعلیٰ
میاشتنۍ "الحق" او اهم او معزز غړے د پاکستان د سنیټ۔

---

الحمد لحضرة الجلالة والصلوٰة والسّلام علیٰ خاتم الرّسالة۔

اما بعد! علم نحو په علوم آلیه کښې یو اهم او عظیم الشان علم دے، چه عموماً اساتذه یې خپلو شاګردانو ته د علم نحو ځې یو کتاب په ابتداء کښې ذکر کړی، دغه شان کافیه ابن حاجبؒ په علم نحو مشهور او مغلق ترین متن دے۔ د دے د اهمیت اندازه د دے خبرے نه بنکاره ده، چه د زمانو راهسے دا کتاب په درس نظامی کښې شامل راروان دے او په هر دور کښې د علم نحو ماهرانو استاذانو د دے شروح لیکلی دی، جامعه دارالعلوم حقانیه چه د ټولے جنوبی ایشیا یو عظیمه علمی اداره ده او خپل مضبوط علمی او جهادی کردار له کبله په شرق او غرب کښې مشهوره ده۔ دا کتاب په دغه اداره کښې شامل نصاب دے او مستفیدین دا کتاب ډیر په شوق سره او ذوق سره وائی۔

د نحو څو کالو راهسے کافیه ابن حاجبؒ ګران قدره فاضل مولانا حافظ محمد ابراهیم فانی زیر تدریس ده۔ دوی ډیر په محنت سره او مشقت سره دا کتاب درسوی په دغه وجه بانداکثر شاګردانو د دوی درسی افادات په احاطه د تحریر کښې راوستل او دوی په خپله هم د ځان سره خاص خاص نکات لیکل، چنانچه د دوی شاګرد مولوی محمد سلیم سواتی، هغه هم په باقاعدګۍ سره دا درسونه روزانه لیکل، چه کله پوره شول، بیا یې خپل استاذ فانی صاحب ته دا خواست اوکړو چه، دا افادات چاپ کول غواړی، ځکه چه د دے افاداتو نولو ستهتونه په ډیر زیات تعداد کښې خوریږی، لوکه چرته دیے له کتابی شکل ورکړے شی، نو د دے افاده به عامه شی۔ بیا فانی صاحب هغوی ته خپل لیکلی شوی نکات ورکړل، بیا مولوی محمد سلیم سواتی، هغه نکات، خپل لیکلی شوی درسونه او ورسره یې د نورو طالبانو چه د فانی صاحب درسونه

ایښی دی، هغه نقل یې راغونډ کړل اَؤ هغو له یې ترتیب ورکړو، دغه شان یو عظیم الشان شرح یې د طالبانو د پاره تیاره کړه، په دیے لوے اَؤ درونډ کار باندِ زۀ خپل کرلن اَؤ قابلِ احترام فاضل اَؤ شاګرد ته د زړهٔ د اِخلاصه مبارکبادی ورکوم زۀ د دیے شرح په لیدو د پوره یات خوشحاله شوم، ځکه چې په ځائے ځائے مِ د دیے مطالعه اوکړه، د خپلو تلګارتګو اَؤ مختلف النحو مصروفیاتو له کبله ما د دیے شرح تفصیلی مطالعه اونه کړے شوه خو چې سرسری نظر مِ ورباندِ واچولو نو یو مِ خوښه شوه اَؤ یو څو خصوصیات اَؤ مزایا مِ هم د دیے شرح معلوم کړل چې هغه څه په دا ډول دی:-

۱. دا شرح د پښتو ژبے په آسانه لهجه کښے ده، چې هر هغه طالب علم چې په پښتو ژبه قدرت لری، هغه ورباندِ پوهیږی، چونکه دلته په دارالعلوم حقانیه کښے زیات تعداد د پښتنو طالب عِلمانو دے - په دیے وجه د نالی صاحب دا درسونه په پښتو ژبه منضبط کړے شول -

۲. په دیے شرح کښے د کافیه د متن لۀ عبارت دا سے ترجمه کړے شوی ده، چې هغه د متن په ټولو محتویاتو باندِ شامله ده اَؤ په هغه ترجمه سره د تمامو هغو اعتراضاتو جواب موندلے شی، کوم چې په هغه متعلقه مسئله باندِ واردیږی -

۳. د موقع اَؤ د مقام په مناسبت سره نالی صاحب د خپل مزاج مطابق د مسئلے د وضاحت د پاره بهترین اشعار هم راوړی دی اَؤ د طالبانو د تنشیط د تعالو د پاره یې په کښے خوندور لطیفے هم ذکر کړی دی، نو ګویا دا کتاب د کافیے د شرح سره سره د خوږو اَشعارو اَؤ لطائفو او ظرائفو یو مزیدار ګلدسته هم ده -

۴. په دیے شرح کښے نالی صاحب بعض داسے ضوابط هم ذکر کړی دی، چې په هغے سره مغلق مقامات لۀ کوم اسے مسئلے حل کیږی، لکه ضابطه د عدل شو اَؤ دغه شان بعض نور ضابطے، اَؤ په بعض مقاماتو کښے یې وجوهات د حصر هم په منظم انداز سره ذکر کړی دی اَؤ دغه شان د بعضو مسائلو اَقسام یې د نقشو په مدد سره ښکاره کړی دی -

دا ټول هغه خصوصیات اَؤ مزایا دی، چې ما په سرسری نظر سره معلوم کړل، د دیے نه علاوه دا شرح په ډیرو فوائدو مشتمله ده، چې هغه پس د تفصیلی مطالعے نه معلومیږی -

په آخر کښے زۀ د خپل شاګرد عزیز المرتبت زیرک اَؤ قابل فاضل مولانا محمد ابراهیم نالی صاحب زید علمه وعم نفعه د پاره دُعا کوم چې، اَللّٰه د دوی عِلمی صلاحیتونه نور هم مخ په ترقی کړی، اَؤ د دوی عِلمی مستقبل دِ د دیے نه هم زیات روښانه کړی - آمین .

(حضرت مولانا) سمیع الحق (مدظلهٔ)

۲۷ر شوال المکرم ۱۴۱۵ھ

دارالعلوم حقانیه، اکوړه خټک

# تأثرات

## شیخ التفسیر و الحدیث حضرت العلامه مولانا قاضی فضل الله جان صاحب مدظله، مهتمم جامعة الامام ولی الله الدهلوی اؤ ممبر د قامی اسمبلئ پاکستان۔

محترم جناب مولانا محمد ابراهیم فانی د استاذ مکرم رئیس المتکلمین استاذ الحدیث والتفسیر حضرت الشیخ مولانا عبد الحلیم صاحب نور الله مرقدهٗ خلف الرشید اؤ په خپله هم یو صاحب طرز ادیب منهٔ لیکوال باذوقه شاعر، تجربه کار مدرس اؤ جید عالم دے، په حوالئ کښ یئ څو علمی و ادبی شاهکارونه منظر عام ته راغلی دی۔

حاضر کتاب د علم نحو مشهور کتاب کافیه ابن حاجب باندې د مولانا محمد ابراهیم فانی تقریر اؤ د اِمالی مجموعه ده۔ د مدرس په کتاب تقریر فی الحقیقة د طویلې مطالعې اؤ د تحقیق نچوړ وی، چه د مقام اکثر متعلقات یئ په کښې بحث کړې وی، چونکه حضرت مولانا صاحب د بې نښې ذوق مالک دے، لهذا په خپل هر درس اؤ کتاب کښې د بې ځایه اؤ تطویل نه اؤ د لفصالی اؤ مخل ایجاز اؤ اقتصار اؤ اختصار نه ځان بچ ساتی۔ حاضر کتاب کښې هم دا چاشنی یقیناً ظاهره ده۔

موجوده ابهتی دور په هر منهاج کښې د طویلو قاعدو اؤ مباحثو په ځائے د نبغ په نبغه زده کړې دور دے، چه ورته طریقه بلا واسطه (Direct Method) ملاؤ څو دغه طریقه سره علمی استحکام نهٔ پیدا کیږی اؤ یو فرد چه په کوم میدان کښې وی، باید چه هغه میدان یو تحقیقی فرد جوړ شی اؤ دا صلاحیت فن ته په مکمل ځان وقف کولو پیدا کیږی۔

مولانا محمد ابراهیم فانی کله هم دا شوق نه دے کړے، چه د تدریس د پاره ورته سترکتابونه حواله شی، څو چه کوم ورته ورکړے شی، مکمل انهماک سره د هغې تدریس شروع کړی اؤ دا خصوصیت خالص د الله په مهربانئ کیږی، ځکه چه نمانه نوله د علو غلو اؤ د تعلی په سیلاب لاهو ده۔

دَ اَللّٰه په دربار کښې لاس په دُعا یم چه اَللّٰه تعالیٰ دِ دَ حضرت مولانا صاحب په عِلم
اَو عمل کښې مزیده ترقیٔ نصیب کړی لَوَ دَ هغوی به په دِے کتاب اَوُ نورو کتابونو دَ اَللّٰه اُمّت ته اَوُ
خصُوصاً طالبانو ته ډیره فائده ورکړی، زمونږ اَوُ دَ هغوی ټولے ستړیے دِ دَ خپلے رضا ذریعه
اوګرځوی۔ آمین۔

قَاضِی فضَلُ اللّٰه
جامعة الامام ولی اللّٰه الدهلوی
لاهور ۔ صوابی
۲۶ مارچ ۱۹۹۵ء، دَ اِتوار ورځ

---

# تأثرات

دَ شیخ القرآن الدکتور السیّد مولانا شیر علی شاه المدنی دامت برکاتهم (الدکتوراه بمرتبة الشرف الاولی من الجامعة الاسلامیة بالمدینة المنوّرة و شیخ الحدیث بجامعة منبع العلم میران شاه، وزیرستان، پاکستان و سابق اُستاذ تفسیر و حدیث دار العلوم حقّانیّه، اکوړه خټک، نوښهره.

---

الحمد للّٰه وکفیٰ وسلامٌ علیٰ عباده الذین اصطفیٰ ، اَمَّا بعد -

عزیزم مولوی مُحمّد سَلیم سَوَاتی صاحب (سلّمه اللّٰه تعالیٰ) قابلِ صد تحسین و آفرین دے، چه هغه دَ یو ممتاز ماهر اُستاذ محترم حضرت مولانا مُحمّد ابراهیم صاحب فانی (بارک اللّٰه فی حیاته العالیة) دَ "کافیے" دَ درس په موقعه دَ تعلیقاتو ملغلرے په داسے کمال طریقه منضبط کړے چه دَ درس نورو ملګرو بهٔ دَ دهٔ نوشتونه نقل کولے، یا بهٔ ئے دَ هغے نه تصویرونه اخستل، دَ دریم ملګرو مسلسل اِصرار دا وو چه، دا نرَین تعلیقات اَو جوهری ارشادات چاپ شی، چه دَ کافیے دَ شتانونه پاره یو قیمتی مشعلِ راه اَوْ عِلمی سرمایه وی -

محترم مولوی مُحمّد سَلیم سَوَاتی صاحب دَ ملګرو په اِصرار داخپل قلمی تحریرات خپل مشفق اُستاذ ته دَ مناسب ترمیم و تکمیل دَ پاره وړاندِ کړل، محترم فانی صاحب دامت برکاتهم دَخپل ذهین و فطین، محنتی شاګرد دَ عِلمی قابلیّت، قدر شناسی اَوْ تشجیع اوکړه اَوْ په خپلو درسی تقاریرو ئے نظرِ ثانی اوکړه، ما دَ دے تقریراتو یو څو پاڼړے مطالعه کړے، دَ هغے په رنړا کښے زما دا تأثر دے، چه بے شکه دَ محترم مُحمّد سلیم سواتی صاحب دا مخلصانه عِلمی جدّ و جهد نه یواځے دَ عِلمِ نحو په سِلسِله کښے دَ یو عِلمی بیش کش اِضافه ده، بلکه دَخپل درِوند مشفق اُستاذ دَ پاره یو لویه صدقه جاریه ده اَوْ دَ قرآن پاک اَوْ دَ مبارکو حدیثونو دَ تعلیماتو په لړ کښے یو عظیم خدمت دے، ځکه چه دَ عِلمِ نحو اِیجاد هُم دَ دے غرض دَ پاره دے، چه دَ قرآن پاک دَ تلاوت په وخت

د نقد' په پوره خیال اوساتلے شی۔

حضرت حسن بصری رحمة الله علیه به فرمائیل چه :۔

تَعَلَّمُوْا وَتَكَلَّمُوْا اللّٰهُ !

اَلْعِلْمُ لِلْاَدْيَانِ،

وَالطِّبُّ لِلْاَبْدَانِ،

وَالنَّحْوُ لِتَقْوِيْمِ اللِّسَانِ۔

یقیناً د قرآن پاک اَوْ د مبارکو حدیثونو د ریده کولو د پاره د دی دوه علمونو زده کول ضروری دی، لیکن په تیر لو کښے د علم نحو زده کول ډیر ضروری دی۔

حسن بصری به ویئیل، من لحن فی القرآن فقد کذب علی الله لأن الله سبحانه وتعالیٰ قال : (لا یأتیه الباطل من بین یدیه ولا من خلفه تنزیل من حکیم حمید) واللحن اکبر من الباطل۔

الله تعالیٰ د دے تالیف ته قبولیت نصیبه کړی اَوْ د شاګرد اَوْ اُستاذ د پاره وباقیات الصالحات لوګرځی اَوْ د طالبانو د پاره د علمی استعداد د ازدیاد باعث اوګرځی۔

ولله الحمد اولاً وآخراً وهو المستعان وعلیه التکلان وصلی الله تعالیٰ علیٰ اشرف رسله وخاتم انبیائه وعلیٰ آله واصحابه اجمعین الطیبین الطاهرین۔

---

سید شیر علی شاه المدنی

خادم الحدیث واهله بجامعة منبع العلوم

میران شاه، وزیرستان [1]

---

[1] حالاً شیخ الحدیث ـ دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک۔

# تأثرات

د حضرت مولانا حافظ محمد انوار الحق صاحب،
ایم اے ابن استاذ العلماء شیخ الحدیث حضرت مولانا عبد الحق قدس
سرهٔ بانی دار العلوم حقانیه اکوړه خټک استاذ حدیث او نائب مهتمم دار العلوم
حقانیه اکوړه خټک، نوښهره۔

---

نیږ نظر سټږه د دار العلوم حقانیه د جید او قابل مدرس برادر مکرم مولانا محمد
ابراهیم فانی د دروسو د کافیې چې هغوئ د کافیې د درسونو په دوران کښې ورکړی دی، د هغې
مجموعه ده، چه ورته لږ په شوکاء د درس کښې یو هوښیار او عقل مند طالب علم مولوی محمد سلیم
سواتی په دوران د درس کښې دوړیه محنت سره تحریر کړل او اوس ئې درسونه د افادهٔ عامه د پاره
پیش کیږي۔

مولانا محمد ابراهیم فانی د دار العلوم حقانیه د سابق صدر المدرسین د محقق وقت حضرت مولانا
عبد العلیم صاحب نور الله مرقدهٔ د فرزندنه علاوه په خپله هم د بے پناه خوبیانو او د صلاحیتونو مالک
دے۔ د ډیرے زمانے راهسے په دار العلوم حقانیه کښې د اهمو کتابونو د تدریس سره بهترین ادیب،
شاعر لکه څنګه یو ښه لیکونکے دے د تصنیف او د تالیف ملکه هم حاصله ده، د تدریس د اوږدے
سلسلے ساتلو په وجه باندې سبقونه په اطمینان بخش طریقے سره لوستل او د طالب
عالمانو په تشفی کولو کښې ماهر دے۔

د نحو معرکة الآراء او جامع مانع کتاب د کافیې شروح او تعلیقات په بے حد
شمیر تعداد کښې لیکلی شوی دی۔ د کافیې د متن د هرے شرحے سره د علم نحو د ډیرے اهتما
کتاب نوی نوی نکتے ښکاره شوی دی او د هغه شان د هرے شرحے د اهمیت او افادیت نه انکار ناممکن
دی۔ د علامه ابن حاجبؒ د محققانه او په لامتناهی اسرار او نکات باندې مبنی تصنیف د کافیې چې څومره
هم تشریحات او توضیحات اوکړے شی بیا هم د دے مصرعے مصداق به وی، چه:-

حق تو یہ ہے کہ حق ادا نہ ہوا

دے کافیے کتاب ته الله تعالیٰ داشان قبولیت ورکړے دے، چه په عالم اسلام کښې اکثر د عربی شعبه زده کوونکی د دے کتاب نه صرف لفظونه شی کولے، بلکه په برصغیر پاک او هند کښې تقریباً په ټولو دینی مدارسو کښې د دے درس او تدریس ته خاص توجه ورکولے شی او بیا صوبه سرحد کښې پښتانه طالب علمان د دېره زمانے نه خوښوکاله دا کتاب مسلسل وائی او مکمل متن سره سره د دے شروح هم ضبط کوی۔ د پښتنو طالب علمانو د ذوق او شوق د خاطره د حافظ محمد ابراهیم فانی صاحب "د دروسو دا مجموعه به ډیره فائده منده ثابته شی۔ ما ته د څو صفحاتو د مطالعے نه معلومه شوه، چه دوی د نحوی مسائل ئے انتهائی عام فهم سلیس او د هر ذهن د طالب علم د پاره د مفید کېدلو په انداز کښې د اهمو اعتراضاتو او جوابونو سره بیان کړی دی، چه د هغے نه د کافیے طالب علمان او استاذان دواړه طبقے استفاده کولے شی۔

زه دعا کووم چه رب ذوالمنن دے د کران ورور مولانا محمد ابراهیم فانی صاحب دا علمی کاوشونه د قبولیت سره همکنار کړی او شائقین د علوم دینیه ته دے د دے تالیف نه کماحقه فائده ورکړی۔

حافظ محمد انوار الحق عفی عنه

خادم دار العلوم حقانیه

اکوړه خټک۔

---

# خوشخبري!

الحمدلله رب العالمين والصلوة والسلام على رسوله محمد واٰله واصحابه اجمعين ومن تبعهم الى يوم الدين ۔

> نه گلم نه برگ سبزم نه درخت سایه دارم
> متحیرم که دهقان بچه کار کشت مارا

ګرانو او مسلو قدرمنو لوستونکو! دا موجوده د پښتو د کافيې شرح چه ستاسو په لاس کښې ده، دا زما د هغه درسونو مجموعه ده، کوم چه زما شاګرد 'مولوی محمد سليم سواتی' د کافيې د درس په دوران کښې ليکلې دی، د هغوئ دا خواهش وو چه دا چاپ شی او زما نه يې هم څه تعليقات اوغوښتل، ولې زما زړه نه وو چه، ما دا چاپ شي، ځکه چه په دې کښې څه نوې خبره نشته، خو د هغوئ د اصرار په نتيجه کښې او هغه شان د نورو دوستانو د بار بار وينا په وجه زما انکار د شکر په بدل ثابت شو، او غاړه مې ورته کښېښوده، خو ماته دومره وخت ملاو نه شو چه ما ورباندې پوره نظر اچولې وې، په دې وجه که چرته څه غلطي وغيره وي، د هغې بخښنه غواړم۔

په آخر کښې د خپلې کم علمۍ او کم فهمۍ د اعتراف او ضمنې سره سره د قاريانو او کتونکو نه د دعا خواستګار يم۔

طالب کوونکے د دعا

خادم العلم والعلماء العبد الجاني

محمد ابراهيم فاني

(حالا نرولي)

مدرس، دارالعلوم حقانيه، اکوړه خټک، نوښهره

۱۲، اپريل سنه ۱۹۹۵ء

—————— * ——————

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ،

# فهرست

# سریزه

اَلحمدُ لِلّٰہِ رَبِّ العٰلمین ' وَالصّلوٰۃ وَالسّلام عَلٰی سیّد الانبیاء وَالمُرسلین وَعلٰی آلہٖ وَ اَصحابہٖ الطیّبین الطاھرین من یومنا ھذا الیٰ یوم الدِّین !

پس دَ حمد و ثنا نہ بندہٗ محمّد سلیم اِبن فیض الرحمٰن سواتی دَ دے شرحے دَ لوستونکو پہ خدمت کښے عرض کزار دے 'چہ دَ یو کمترین بندہٗ اَوُ دَ یو طالب العلم دَ لاسو نہ پہ مادی دور کښے دَ کافیے پہ شان مغلق اَوُ دَ سخت کتاب دَ شرحے دَ ترتیب ' دَ ضبط اَوُ دَ تصحیح غونډِ عظیم کار وجود تہ راتلل دا محض دَ اللّٰہ تعالیٰ فضل وکرم دے، "این سعادت بزور بازو نیست" زۀ ډیر شکر گزار یم ، ولے چہ دَ حضرت الاستاذ نور هم ډیر زیکونو شاګردان وو ، لیکن دَ هغوی دَ ډیرو اِعتماد وو 'چہ زما غونډِ دَ یو کم علمہ بندہٗ اِنتخاب ئے اوکړو ، شاعر صحیح ویلی دی :-

داد اورا قابلیت شرط نیست ۔۔۔ بلکہ شرط قابلیت داد اوست

بیا خاص کر پہ تمامو فنونو کښے دَ علم النحو اَهمیت ټولو طلبو تہ معلوم دے 'چہ پہ عجم کښے قرآن کریم اَوُ دَ احادیثو پہ مطلب اَوُ مقصد ځان پوهه کولو دَ پارہ دا علم یو زبردست معاون دے اَوُ پہ بنیادی اُصولو (Fundamentle principles) مشتمل دے اَوُ دغہ شان دَ کافیے اَهمیت هم طلبو تہ معلوم دے ، چہ دَ دے کِتاب عبارت مختصر دے اَوُ مقاصد ئے ډیر دی ، خو حقیقت نۀ پټیږی ، ځکہ چہ پہ کافیہ باندِ ډیرے زیاتے اَوُ غټے غټے شرحے لیکلے شوی دی ، خو اُستاذ صاحب 'چہ ما ته پہ کوم اَنداز درس کړے دے ، دَ هغې خوندیۀ پہ وخت دَ مطالعہ کښے لوستونکو تہ معلوم شی ۔

**دَ اُستاذ درس**

پہ سن ۱۹۹۲ ؁ کښے حضرت الاستاذ حافظ مُحمّد اِبراهیم فانی صاحب ، مونږ تہ دَ کافیے درس راکولو ، هغوئ پہ درس کښے داسے اَنداز اِختیار کړلو ، چہ یو طرف تہ دَ کافیے متن حل شو اَوُ بل طرف تہ داسے باریکے اَوُ ناآشنا نکتے ویلے ، چہ ټول شاګردان ئے خوشحاله کړل 'چہ کلہ بہ دَ مقام سرہ' مناسب شعر 'یا لطائف لګیدل ، نو هغوی بہ بیا نوَل اَوُ دَ طلبو ذهن نشین بہ ئے کړلہ ۔

**دَ اُستاذ اِشارات اَوُ زما تقریر**

حضرت الاستاذ هم اشارات لیکلی ود اَوُ ما هم تقریر لَوَد

دروس منضبط کړی وو اَوْ دَ دِے نه مخکښې نورو تلامذو هُم دا دروس منضبط کړی وو، چه هرکله ما خپل تقریر ولیکلو نو بیا مې حضرت الاستاذ ته دَ نظرثانۍ دَ پاره ورکړو، هغوی ورباندې نظر واچولو اَوْ دَ بنده دَ تسلۍ دَ پاره یې پرے تقریظ ولیکلو، چه هغه دا دے:-

"په نامه دَ لوے خُدائے"

الحمد لله رب العلمين والصلوٰة والسلام على رسوله محمد واله واصحابه اجمعين.

رضينا قسمة الجبار فينا لنا علمٌ وللجهال مال

اَمَّا بعد! عرض دا دے، چه بنده محمد ابراهیم فانی، دَ خپل محترم شاګرد محمد سلیم سوالی حفظه الله. دَ لاسولیکلے شوے تقریر ځائے په ځائے وکتلو. دا تقریر هغوی دَ بنده دَ کافیې دَ درسونو نه پس په محنت اَوْ کوشش سره تیار کړے دے، هغوی په ټولو درسونو کښې شرکت اوکړو، اَوْ دَ اَورېدو سره سره یې دَ قلم په قید کښې راوستل، دَ دِے په مطالعے سره به طالبانو اَوْ شائقینو ته دَ هغوی دَ شوق اندازه اولګی، بنده په خپله دَ طالبانو دَ استعداد اَوْ بیا دَ کتاب دَ اهمیت مطابق په درس کښې دا سے انداز اختیار کړو، چه لوستونکی طالبان دَ کافیې دَ متن په خوند پوهه شی اَوْ مزه تِرې واخلی محترم محمد سلیم سوالی دَ دِے په لیکلو لوړه وخت صرف کړے دے اَوْ دَ ظاهری حُسن اَوْ دَ دول سنګار یې هُم پوره پوره خیال ساتلے دے، چه لوستونکو ته به په وخت دَ مطالعه کښې معلوم شی. بناءً علے دَ پښتو دَ شعر لوجوت اَوْ پوخ ښه خوند ور ذوق هُم لری، نو په دے تقریر کښې یې ځائے په ځائے ښهٔ ښهٔ اشعار هُم لیکلی دی، چه هغه تشنه اذهانو کار ورکوی، په آخر کښې زهٔ دا دُعا کوم چه الله تعالیٰ دِ زمونږ ټولو ته، علم، عمل اَوْ استقامت نصیب کړی، اَوْ محترم شاګرد مولوی محمد سلیم سوالی چه کوم محنت کړے دے، دا دِ دَ ټولو شائقینو دَ پاره سامان دَ راحت اَوْ دَ نفع اوګرزوی. آمین - ورسره ورسره دَ کتونکو اَوْ مستفیدینو نه دا سوال اَوْ درخواست کوم چه بنده حقیر سره دَ خپلو ژوندو اَوْ مړو استاذانو په خپلو دُعاګانو کښې نهٔ هېروی. وَ السّلام.

خادم العلم والعلماء محمد ابراهیم فانی، دار العلوم حقانیه اکوړه خټک نوښار.
خاص مقام زروبی، ضلع صوابی. نومبر ۱۹۹۳ء

## زما مشوره اَوْ دَ استاذ صاحب دَ چاپ کولو نه انکار

هرکله چه زما دَ تقریر نه به سوالو نو لوستونکو اوویل اَوْ په

پښتنو طلباؤ کښے ډیر په تیزئ سره وچلیدو وجه دا ده چه حضرت الاستاذ تمام دروس په آسانه پښتو کښے وئیلی وو اَو دَ ماهُم په هغه طرز باندې دَ مات کوډ قلم په قید کښې راوستلی وو، نو ما اُستاذ صاحب ته دَ دې دروسو دَ چاپ کولو مشوره ورکړه، نو هغوی دَ چاپ کولو نه انکار اوکړو اَو وے فرمائیل چه دَ دې کتاب ډیرې شرحې موجود دے دی، زما دَ دې دروسو به څهٔ اَهمیت وی، ځکه چه زهٔ خو درویزه کوم اَو وے خندل چه زهٔ چرې یم، دَ مختلفو شرحونه رَم درویزه کوی کوی ده اَو بیا ئې دَ خپل والد صاحب متکلم عصر علامه عبد الحلیم صاحب (مرحوم) صدر المدرسین دار العلوم حقانیه چه په صدر صاحب سره مشهور وو، دَ هغوی واقعه ذکر کړه چه ما دَ خپل والد صاحب ته عرض اوکړو چه تاسو هُم څهٔ شرح اوکیکئ، نو هغوئ وُخندل اَو وے فرمائیل چه اسلافو اَو زمونږ اُستاذانو څهٔ پریښې دی چه زهٔ ئې اولیکم بلکه اوس خو خلق چاپ قلمی اَو قلمی چاپ کوی، نو یے څهٔ تحقیق نشته، نو ستٔ د صاحب وویئ چه زهٔ هُم دَ خپل والد صاحب دا خبره درته ذکر کړم. خوما ورباندې ډیر اصرار وکړو، وَهغوی دے ته غاړه کېښوده، اَو دا عُذر ئې هُم پیش کړو چه، په دې باندې ډیر خرچ راځی اَو دا زهٔ نهٔ شم ادا کولے. لیکن ما ورته لووے چه، خیر دے خرچ تاسو برداشت کوئ اَو نور لوازمات مثلاً ترتیب، تصحیح اَو حاشیے وغیره به زما په ذمه شی، نو حضرت الاستاذ څهٔ قدر مائله شو، آخر دا چه بنده دَ سن ۱۹۹۴ په آخر کښے په دې شرح کوتے پورئے کړے، اَو سن ۱۹۹۵ په اَول کښې دَ اَلله تعالٰی په فضل وکرم سره دا شرح دَ ترتیب په مراحلو کښې هُم په دې طریقه سرته ورسیده چه ما خپل تقریر اَو دَ اُستاذ صاحب اشارات دَ یو بل سره اَلوَل کړل اَو دا شرح ئې ترنه وجود ته راغله، لکه شاعر والی چه :-

ع مېږے وی بېل بېل چه شی ټول ولړ په اتفاق ... بالنګ پرے دَ خوبانو دَ عنوان بنړلے شی

خبره ښکاره ده چه دا یو فن اَو یو بوج دے اَو ممکنه هُم نهٔ وه چه، دَ اُستاذ محترم دَ خُلے مُبارکے تمام کلمات دِ دَ قلم په قید کښې بند کهلے شی، خو په دې سلسله کښې غټه خوبی دا وه چه محترم موصوف فانی صاحب دَ طالبانو استعداد لَو بیا دَ کتاب دَ اَهمیت مُطابق په درس کښې داسې انداز اختیار کړے چه لوستونکی ئې دَ کافیے دَ متن په حل اَو خوند پوهه کړل، هغوی به ټول دروس دَ فصاحت په تار کښې داسې پیړل چه مستفیدونه به په خپله معلوم شی.

## دَ اُستاذ صاحب قابلیت، خولې اَو لباس

محترم فانی صاحب ته اَلله پاک دَ هر قسمه ملکه ورکړې ده. یو خو دیوبندی معتقد، محقق اَو مدقق عالم دے اَو په عالمی سیاست کښې هُم پوجوت نظر دے بَل اَرخ

ته د خلورو پنځو ټلو د شعرو شاعرۍ په فن کښې د صدفه راوتلي یو تازه ګوهر ګڼلې شي او ډیر کتابونه یې لیکلي دي چه هغه منظر عام ته راغلي دي، خو په ټولو تصنیفاتو کښې د اوچتې پایې دا ضبط شوي افادات یوه ګلدسته ده، چه په نوم د "دروس کافیه" باندې شائع ده. دا حقیقت دې الله پاک د بدرنګ تاریخ د تیرونه محفوظ وساتي، ولې چه د دیني طبقې او د اسلامي منهج په استاذانو کښې به داسې څوک وي چه هغوي به د بناغلي نوم نه وي اوریدلې. نه پوهیږم چه د کومې د مدرسې بخت ویخ دے او که د بناغلي د قسمت ستورے اوچت دے، چه د دغه دیني اداره پیرے روښانه او شادابه ده. د بناغلي د سادګۍ او تقوی پښتنه د هغوي د کلام لباس او خولې نه کیدے شي ځکه چه الله پاک ورته یو قلندري هار په غاړه کړے دے لکه رحمان بابا وائي :-

قلندر که په ربښتیا وُ قلندري کړه ‖ خان سلطان او قلندر دے واړه یو دی

یا لکه بنلغني په خپل مشهور کتاب "ناله زار" (چه دا د هغوي د ابر دور د شاعرۍ اولنۍ مجموعه ده) کښې فقیرۍ جامه څه په دې ډول اغوستې ده :-

ہم کو دعویٰ خود ستائی کا نہیں فانی مگر ‖ ملتے ہیں دنیا میں ہم جیسے قلندر خال خال

**د شرحې اجمالي خصوصیات**

په کوم طرز چه حضرت الاستاذ د دې دروس اظہار کړے وو هغو په هغه طرز بند تمام دروسونه نمبروار مرتب کړي دي او په کومو ځایونو کښې چه بند څه اشکال محسوس کړے دے هلته مې د لوروشروحاتو نه حاشیې رانقل کړي دي او په کوم ځائے کښې چه شعر مناسب وو لو هلته مې شعر لیکلے دے او کله به استاذ محترم د مقام سره مناسب لطائف ذکر کول د هغې م هم پوره پوره خیال ساتلے دے، په کوم مقام کښې چه بعض ضوابط ذکر شوي دي، هلته د نقشو او شکلونو هم بنده انتخاب کړے دے. دغه شان د فهرست په جوړولو باندې بنده خپل کوشش صرف کړے دے. د باره د دې چه مستفدینو ته ټول مضامین د کافیې اجمالي طور سره معلوم شي.

**خوشخبري**

د دې شرحې په اردو او فارسۍ کښې ترجمه به ان شاء الله ډیر زر چاپ شي، اردو دان طبقه او فارسۍ باندې پوهیدونکي حضرات به ډیر زر مستفید شي.

**د عجز اظهار**

ما چه هر څومره محنت او کوشش کړے دے او یا م ځان ته په سر یزه کښې څه نسبتونه کړي دي، نو دا ټول د الله تعالیٰ د توفیق سپارنه ده :-

هر بلبل به دې ثنا کړي که نه کل شي ‖ د خپل ځان صفت په خپله پکار نه دے

چونکه زهٔ ډیر کمزوری اؤ نا اهله یم اؤ بیا دَ طالب علمئ په دوران کښې دا یو عظیمه ذریعه سَر ته رَسَول ډیر گران کار دے، لوزهٔ دا امید لرم چه لوستونکی به ماته بد رنګ نه کوي اؤ په آخر کښې زه دا دُعا غواړم چه دا کوشش دِ الله مقبول اوکړي اؤ دَ لوړو مدقالو پوره کولو لو توفیق راکړي اؤ تمامو لوستونکو ته دا منت اؤ زاري کوم چه بنده دِ سره دَ خپل مور اؤ پلار اؤ استاذ صاحب دِ سره دَ خپل اهل وعیاله په خپلو دُعاګانو کښې نهٔ هېره وي ـ والسلام

وقانا الله من شرّ الحاسدین. آمین یا ربّ العالمین ـ

محمّد سَلیم سواتی عفی عنه
دارالعلوم حقّانیه، اکوړه خټک (نوښار)
خاص مقام: سنګوټه (سوات)
۲۰ مارچ ۱۹۹۵ئه ـ

# درس ۱

# حَالات دَ مصنِّف دَ کافیۀ

# عَلّامَهٔ اِبنِ حَاجِبؒ

په اُووَمه صدی هجری کښې چه کوم اَشخاص په فقه مالکی لُغت اَوْ په تجوید کښې ډېر نوم اَوْ شُهرت پیدا کړے، په هغوی کښې یَو لویه هستی اِبن حَاجِبؒ هُم وه، دَ دهٔ اَصل نوم عُثمَان. لقب جمال الدّین "اَوْ کُنیت" اَبُو عَمرو دے، دَ پلار نوم یې عمر دے، پس پوره نوم یې جمال الدین اَبُو عَمرو عُثمان بن عُمَر شو. اسم محضه هغه نوم ته وائی، چه والدینو دَ پیدائش نه پس خپل بچی اَوْ مَاشوم له کېښودی۔

لقب هغے ته وائی، چه دَ یو صفت په وجه باندې یې خلق یادوی، لکه صدّیق اَوْ فاروق وغیره، اَوْ عُرف هغے ته وائی چه په عوامو کښې په خاص نوم سره مشهور شی اَوْ کُنیت هغه ته وائی چه مصدر کړے شی په اَب یا اِبن سره. لکه اَبُوبَکر، ابن عمر، اَبُوحنیفه وغیره، دے مشهور په اِبن حَاجِب سره وو، اِبن حَاجِب ورته ځکه وائی چه حاجب دربان ته وائی. یعنی خاص دَ بادشاه دربان اَوْ دَ دهٔ پلار دَ بادشاه وقت دربان وو، دَ دربان دا عهده دَ حضرت اَمیر معاویه په دور حکومت کښې شروع شوی وه. اِبن حَاجِبؒ دَ مِصر په یو کلی "اسنا" کښې په کال ۵۷۰ھ په آخری ورځو کښې پیدا شوے دے، دَ دهٔ تعلق دَ کرد قبیلے سره وو. شیخ عز الدّین عبد السّلامؒ دَ دهٔ شیخ وو اَوْ دَ والد صاحب یې دوست وو، چه کله دَ دهٔ اُستاذ په جیل کښې وو، دَ هغهٔ نه یې ډېره اِستفاده اوکړه اَوْ داخبره بعضو تذکره نګارو کړې ده، چه دَ دهٔ یو عجیب خصوصیت دا وو، چه مِصر کښې یو حافظ القرآن په خپل وخت کښې اِبن حَاجِبؒ وو، دَ اِبتدائی تعلیم دَ حاصلولو نه پس ابن حاجبؒ قاهرے ته لاړو اَوْ هلته یې دَ فقه مالکی، اَوْ دَ تجوید علوم حاصل کړل اَوْ دغه شان دَ قانون دَ عِلم حصول یې هم اوکړو،

دَ بُو منصور انباری نه یې دَ فقه اَوُ دَ قالون اَوُ دَ اِمام شاطبیؒ نه یې دَ قرأة اَوُ دَ تجوید علم حاصل کړو، دَ دې نه پس دَ تدریس دَ پاره 'دمشق' ته لاړو، چه هلته یې په جامع مسجد 'اموی' کښې په زاویه مالکی کښې دَ فقه مالکی تدریس کولو، وفات یې په ۲۶ رشوال ۶۴۶ھ په ورځ دَ زیارت 'باندې اُوشو- چه کله دے دمشق نه قاهرے ته لاړو اَوُ بیا دَ قاهرے نه سکندریے ته راغلو- دَ اِبن حاجبؒ دَ تصنیفاتو تعداد تقریباً نهه ۹ دے، هغه یو جامع العلوم عالم وو، لیکن شهرت یې دَ حیثیت دَ نحوی نه ډیر دے- ۱: کافیه، دا عظیم الشان متن دے چا ویلی دی 'چه کافیه کافی است. باقی درد سر'. دا دَ علامه جار الله زمخشری چه هغه دَ صرف، نحو، معانی اعجاز القرآن اَوُ دَ تفسیر لوے عالم وو، دَ کتاب چه نوم یې مفصل دے، دَ هغې تخلیص دے، دے چونکه دَ بیت الله شریف په کاؤنډ پاتے کیدو په دې وجه ورته جار الله وائی- په اِعجاز القرآن کښې یکتا وو. په دې وجه علامه انور شاه کشمیری فرمائی چه 'لا یعرف اِعجاز القرآن الا لا عرجان، احدهما فی الزمخشر و ثانیهما فی الجرجان یعنی دویم شیخ عبد القاهر جرجانی دے- ۲: شافیه ده- دا په صرف کښې علامه اِبن حاجبؒ لیکلی ده- دا دواړه ډیر مشهور متون دی. چا ویلی دی:-

~ کافیه باشافیه تلخیص کنز حسامی ~ این پنج یاد کن که شوی مولوی نظامی

۳: ایضاح، دا کافیے شرح ده- ۴: المقصد الجلیل فی علم الخلیل. دا یې په علم عروض کښې لیکلے دے، دَ دې کتاب پنځه شرحے لیکلی شوی دی- ۵: یوه رساله چه په هغې کښې یې اسمائے مؤنثه په نظم کښې خوندي کړی دی- ۶: اُصول فقه مالکی کښې یو اهم کتاب لیکلے دے- ۷: په فروعو دَ فقه مالکی کښې یو مختصر کتاب لیکلے دے- ۸: دَ عشر په باره کښې یوه رساله لیکلی ده- ۹: الامالی، دا په قرآن مجید اَوُ په متنبی باندې دَ مقالاتو مجموعه ده، خو په دې ټولو تصنیفاتو کښې شهرتِ دوام کافیے ته حاصل دے، په هر دور کښې علماؤ دَ دې کتاب قدر کړے دے اَوُ دې وجې نه علامه نظام الدین دا کتاب په درس نظامی کښې شامل کړے دے، دَ دې دَ عظمت انداز دَ دې نه لګولے شی، چه په ډیرو ژبو کښې دَ دې ډیرے زیاتے شرحے لیکلی شوی دی اَوُ لا لیکلے کیږی، په ټولو کښې زیاته اَوُ مشهوره شرح هغه دَ مولانا عبد الرحمن جامی رحمه الله شرح ده، چه په شرح جامی باندې مشهوره ده اَوُ دَ شرح جامی بیا دا خصوصیت دے، چه په دغه باندې بیا ډیرے زیاتے حاشیے لیکلی شوی دی-

**درس ۲:** نن به څلور خبرے ذکر کوؤ، موجد دَ علم نحو، چه علم نحو چا ایجاد

کړی ده، دویمه وجه تسمیه دَ عِلمِ نحو، دریمه وجه سبب دَ اِیجاد دَ عِلمِ نحو، څلورم معنیٰ لغوی اَوْ اِصطلاحی دَ عِلمِ نحو، علمِ نحو چا ایجاد کړی ده. په دې کښې درې[۳] اقوال دی اَوّلنے قول دا دے، چه دَ دې عِلم موجد حضرت علی کرم الله وجهه دے، دویم قول دا دے چه دَ دې عِلم موجد حضرت عمر رض دے اَوْ دریم قول دا دے چه موجد دَ دې عِلم ابوالاَسود دئلی دے وجه تسمیه دَ عِلمِ نحو دا ده، چه هرکله دَ حضرت علی رض اَوْ دَ حضرت ابوالاسود دئلی رح په کوششونو سره عِلمِ نحو ایجاد شو نو حضرت علی رض اُوفرمائیل "مَا اَحسن هٰذا النحو نحوت" یعنی څومره ډیر ښه دے. دا قصد په مَا یې اِراده کړې وه نو دَ هغه وخت نه دَ دې نوم نحو کېښودے شو. دَ عِلمِ نحو دَ اِیجاد سبب؟ دَ دې دَ اِیجاد دَ پاره مختلف اسباب ذکر شوی دی، تقریباً نهه[۹] اَسباب دی لیکن په هغې کښې دوه[۲] چه مشهور اَسباب دی هغه دا دی:- اَوّله واقعه دا ده چه، دَ حضرت عمر رض په دورِ خلافت کښې یو اعرابی راغے اَوْ هغه دَ یو اُستاذ نه قرآن زده کولو، پس دا آیت یې لوستلو چه "اِنَّ اللّٰهَ بَرِیْءٌ مِّنَ الْمُشْرِکِیْنَ وَرَسُوْلُهٗ" نو هغه دَ ورسولُه په ځائے بالله ورسولِه اُووے، معنیٰ یې دا شوه چه په تحقیق سره الله بېزار دے دَ مشرکانو نه اَوْ دَ خپل رسول نه (نعوذ بالله) نو اعرابی اُووے چه اَللّٰه دَ خپل رسول نه بېزار دے، نو زهٔ هم دَ هغه نه بېزار یم. حضرت عمر رض اعرابی را اوغوښتو اَوْ دا آیت یې ورته صحیح کړو چه آیت داسې دے "اِنَّ اللّٰهَ بَرِیْءٌ مِّنَ الْمُشْرِکِیْنَ وَرَسُوْلُهٗ" اَوْ بیا یې دا اِعلان اوکړو چه کوم سړے صحیح قرآن نهٔ شي لوستلے، نو هغه دِ قرآن بل چاته نهٔ ښائي اَوْ بیا یې حضرت ابوالاسود ته حکم اوکړو، چه تهٔ داسې حُکم جاری کړه چه په هغې سره خلق دَ قرآن دَ اعرابی غلطیو نه بچ شي. دا یو معنیٰ واقعه وه. دویمه واقعه دا ده چه، یوه ورځ حضرت علی رض ډیر پرېشان ناست وو، چا ترې تپوس اوکړو چه، تهٔ ولې پرېشان اَوْ زهیر یې؟ هغه فرمائیل چه، په دې وجه خفه یم، چه خلق قرآن وائي، لیکن په ویلو کښې غلطۍ کوی په دې وجه یې حضرت ابوالاسود دئلی را اُوغوښتو اَوْ ځینې خلقو ته یې دَ عِلمِ نحو قاعدې اوښودلې چه، کل فاعل مرفوع. کل مفعول منصوب او کل مضاف الیه مجرور، وزد فیه وتتبع. یعنی په دې کښې یې زیاتے اوکړو اَوْ تلاش یې جاري اوساته. څلورم بحث دَ عِلمِ نحو لغوی اَوْ اِصطلاحی تعریف.

**لغوی تحقیق:** دَ نحو لغوی معنے ډیرے دی، لیکن دلته به مونږ هغه ذکر کړو چه کومې مشهورے دی. ۱: په معنیٰ دَ قصد اَوْ اِرادے. ۲: په معنیٰ دَ طرف اَوْ دَ جانب. ۳: په معنیٰ دَ تبیلي. ۴: په معنیٰ دَ اَندازے. ۵: په معنیٰ دَ حذف اَوْ دَ ترک. ۶: په معنیٰ دَ قِسم. ۷: په معنیٰ دَ مثل. ۸: په معنیٰ دَ صیانت اَوْ دَ حفاظت. ۹: په معنیٰ دَ

طریق اَوْ دَلاری۔ ۱۰: په معنیٰ دَ تصریف۔ ۱۱: په معنیٰ دَ فصاحت۔ ۱۲: په معنیٰ دَ اِعراض. په دے کښے اَوّلنی اُوه (۷) معنیٰ په دے قطعه کښے راغلی دی۔ نحونا نحوك یاحبیبی ؛ نحونا نحوالف من رقیبی ؛ وجدنا هم مراضاً نحو قلبی ؛ تمنوا منك نحو من نبیب۔ ترجمه :- مونږ قصد اوکړو په جانب د قبیلے ستا اے حبیبه۔ مونږه برابر دل په اندازه دَ یو زر رقیبانو۔ دوی مونږه اوموندل مریضان په مثل دَ زړهٔ زما۔ چه دوی تمنا لرله دَ تا نه دَ یو قسم دَ کشمش اَوْ دَ کشکوټ. په دے قطعه کښے نحو په اُوه (۷) معنو سره مستعمله ده اَوْ نحو په معنیٰ دَ صیانت سره لکه، اذا جاء النحویون یوم القیٰمة فقال الله تعالیٰ فی حقهم الی الملئکة یا ملٰئکتی انحواهم عن النار فانهم نحوا کلامی عن الخطاءُ دلته کښے نحو په معنیٰ دَ صیانت راغلی ده، احسن نحوت فی الکلام دلته کښے په معنیٰ دَ دَ فصاحت راغلی ده، نحو مستوی. نیغه لاره. دلته په معنیٰ دَ لارے ده۔ نحوت النظر الیه دلته کښے په معنیٰ دَ صرف اوکرځولو ده، دغه شان په معنیٰ دَ اعراض نحو راځی، زمونږ اُستاذ حضرت شیخ القرآن شاه منصور بابا به فرمائیل چه، درصرف صرف کردی عمر عزیز یارا۔ درنحو نحو کشتی نه شناختی خدارا۔

**اِصطلاحی تحقیق** : دَ عِلم نحو اصطلاحی درے تعریفه دی. اَوّلنی تعریف په کښے ډیر مشهور دے. عِلم باصول یعرف بها احوال او اخر الکلم الثلث من حیث الاعراب والبناء وکیفیة ترکیب بعضها مع بعض۔ دویم تعریف عِلم باصول یعرف بها احوال الترکیب العربیه من الاعراب والبناء دریم تعریف عِلمٌ بالقوانین یعرف بها صحة الکلام وفساده۔ اَوّلنے تعریف چه کوم مشهور دے. دَ هغه تشریح دا ده :- چه په هر تعریف کښے لابدی وی دَ جنس اَوْ فصل نه۔ پس عِلم باصول دا جنس دے، تمام علوم به دے کښے داخل شی. یعرف بها احوال. دا اَوّلنے فصل دے، په دے سره تر نه خارج شو هغه علوم چه په هغے کښے دَ ذات اَوْ دَ معلن نه بحث کیږی، لکه علم صرف اَوْ منطق شو. اواخر الکلام الثلاث دویم فصل دے، په دے سره احتراز دَ هغه علومو نه راغے په په هغے کښے بحث کیږی. دَ اوائل اَوْ دَ اوساطونه، لکه عِلم لغت شو. یا دَ احوالو دَ مکلفین نه. لکه علم فقه شوه. من حیث الاعراب والبناء، دا دریم فصل دے. په دے سره تر نه اووتل هغه علوم چه هغے کښے دَ وزن اَوْ دَ قافیے نه بحث کیږی، لکه عِلم عروض اَوْ قوافی۔ وکیفیة ترکیب بعضها مع بعض دا څلورم فصل دے، په دے سره تر نه احتراز راغے، دَ هغه علومو نه چه په هغے کښے دَ کیفیة دَ ترکیب نه بحث نه کیږی، لکه مفردات شو چه علم هیئة علم ابجد وهندسه یا حساب دے۔

**درس ۳:** په تعریف د علم نحو یو عمومی اعتراض واردیږی، چه نه ده وائی چه یعرف بها احوال اواخر الکلم الثلاث من حیث الاعراب والبناء لنو پوهه کیدلے اوشی چه څانه قواعد کلیه د نحو یاد کړی لیکن بیا هم هغه په اعراب کښې خطاکیږی لو جواب دا دے چه دلته کښې مضاف مقدر دے چه یعرف باستحضارها الخ یعنی د دغو قواعد کلیه واستحضار سره بیا کوی د غلطئ نه۔

**موضوع:** د علم نحو موضوع ده کلمه او کلام لو په دے باندې سوال واردیږی چه کلمه او کلام دوه څیزونه دی، او تعدد د موضوع مستلزم دے تعدد د د علومو لره او دلته کښې علم نحو یو علم دے. جواب دا دے چه تعدد په دوه قسمه دے، یو تعدد لفظی او بل تعدد معنوی. تعدد لفظی دے ته وائی چه په ظاهر دوه لفظه وی او معنی ئے یو وی، نو په هغې کښې تعدد د علومو نه راځی لکه قاعد او جالس شو د دواړو معنی یو ده. او تعدد معنوی هغے ته وائی چه دوه لفظه وی او د دواړو معنے جدا جدا وی، لکه قائم او قاعد، په دے سره تعدد د علومو راځی، دلته په کلمه او کلام کښې تعدد د قسم اول د قبیلے نه دے، یعنی دا تعدد لفظی دے ځکه چه د دواړو مفهوم یو دے، دویم جواب دا دے چه کوم تعدد سره تعدد د علومو راځی، دا هغه تعدد دے چه هغې لره جهت مشترکه او جهت د وحدت نه وی. جهت مشترکه یا جهت د وحدت هغه دے، چه دا امور کثیره وغیره تعبیر په یو شی سره اوکړے شی لو دلته کښې د کلمه او کلام نه تعبیر په یو شی سره کیدے شی چه، هغه لفظ موضوع للمعنی دے او د دیے د پاره نظیر لکه د علم اصول فقه د پاره موضوع ادله اربعه دی، لو دلته کښې که شوک اووائی، سوال: چه دلته کښې هم تعدد د موضوع دے او دا مستلزم دے د تعدد د علومو لره لو جواب دا دے چه دلته ادله اربعة اگرچه امور متعدد دی لیکن جهة د وحدت ورله شته چه تعبیر تری کولے شی، په امر مثبتة للاحکام سره، بل سوال دا دے چه هر کله د علم نحو موضوع کلمه او کلام اوګرځیدل لو کلمه ئے ولی مقدم کړه، په کلام باندې سره د دیے نه چه کلام مفید دے او کلمه غیر مفید ده. جواب دا دے چه کلمه جزء دے، د کلام نه لفظا او معنی دواړه او جزء مقدم وی په کل باندې[1]۔

## غرض او غایه د علم نحو

اول خو فرق څه دے، په مابین د غرض او د غایه کښې۔ لو هر کله چه یو سړے تصور د یو فائدے اوکړی د یو کار او هغه فائده باعث اوګرځی په هغه فاعل باندې د پاره د صدور د هغه فعل هغې ته غرض وائی، غرض په لغت کښې هدف ته وائی او غایه دے ته وائی چه پس د صدور د فعل نه هغه فائده ............ متصوره فعلیة ته راځی، هغې ته غایه وائی، غایه انجام ته وائی۔

---

[1] یاد لرې چه کلمه په منزلی د مفرد ده او کلام مرکب دے او مفرد مقدم وی په مرکب باندې لو کلمه ځکه مقدمه ده په کلام. ۱۲ م. س.

**غرض أو غايه** دَ علم نحو داده چه صيانة الذهن عن الخطاء اللفظي في الكلام العرب لو په خطاء لفظي سره تړ نه غايه دَ علم منطق او وته چه هغه دَ خطاء لفظي نه صيانت نه راولي، بلکه دَ خطاء فکري نه صيانت راولي، دلته کښې سوال وارديږي، چه تلفظ خو ذهن نه کوي، بلکه لسان يې کوي، نو په کار ده چه دا يې ويلي وے، چه صيانة اللسان دَ دے نه دوه جوابه دي. يو جواب دا دے چه تکلم په اصل کښې ذهن کوي او لسان ترجمان دَ ذهن دے، لکه يو شاعر والي :- انما جعل اللسان على الفؤاد دليلاً. دويم جواب دا دے، چه دلته کښې تقدير دَ عبارت دے. هغه دا چه صيانة مبين الذهن. او مبين دَ ذهن هغه لسان دي.

# درس ۴: بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

دلته کښې څو مباحث دي. چه دَ هغې نه بحث ضروري دے. ۱: اول بحث دے په ايراد دَ بسم الله کښې چه بسم الله يې ولے راوړې ده. ۲: بحث دے په حرف باء کښې. چه باء يې په شروع کښې ولے راوړه. ۳: دريم بحث دے په معنیٰ دَ باء کښې چه دَ باء څه معنیٰ ده. ۴: څلورم بحث په بيان دَ کسرے دَ باء کښې دے، چه باء مکسوره ولے ده. ۵: او پنځم بحث دے په متعلق دَ باء کښې. چه دَ باء متعلق څه شے دے؟

"اوله بحث" بسم الله يې ولے راوړه. دَ دے وجوهات دا دي:-

۱: چه موافقت راشي دَ کتاب الله سره، ځکه چه قرآن پاک په ابتداء کښې هم بسم الله ليکلې شوې ده (راغلي ده) ۲: چه عمل راشي په حديث دَ نبي عليه السلام باندې. چه كل امر ذي بال لم يبدأ ببسم الله فهو اقطع يا ابتر. يعني هغه عمل بے برکته او مقطوع الخير وي. ۳: چه موافقت راشي، دَ کتابونو دَ سلف صالحينو سره. ځکه چه سلف صالحين خپلو کتابونه ليکلي دي، هغوي په ابتداء کښې بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ليکلي ده. نکته :- لو سَلَف دے په فتح دَ لام سره او بل سُلف دے په سکون دَ لام. سَلَف بفتح اللام نيک پيشوا او بنو مشرانو ته والي او سلف بسکون اللام بد او ناکاره مشرانو ته والي، همدغه رنګ خَلَف بفتح اللام نيک اولاد ته والي لو خَلف بسکون اللام ناکاره اولاد ته ويلې شي. ۴: چه موافقت راشي دَ مکتوباتو دَ انبياء عليهم السلام سره. ۵: چه موافقت راشي، دَ مکتوباتو دَ نبي عليه السلام سره. ۶: چه موافقت راشي، دَ مکتوب دَ سليمان عليه السلام سره چه هغه خط ليکلے وو ملکه بلقيس ته، لو ورته يې ليکلي وو چه، إِنَّهُ من سليمان وانه بسم الله الرحمن الرحيم.

۷: چه موافقت راشي دَ آدم عليه السلام دَ اولني وحي سره، ځکه چه په آدم عليه السلام اوله وحي نازله شوه لو هغه مصدر کړے شوې وه په بسم الله باندې. ۸: بسم الله ذکر کيږي، په اولګو دَ کتبو کښې دَ بلره دَ هغه فضائلو چه کوم دَ بسم الله په باره کښې راغلي دي، حديث شريف کښې نبي عليه السلام فرمائيلي، چه

بسم الله الرحمن الرحیم داویسې، نو دَ هغه لوَل صغیره گناهونه به معاف کړے شي اَوُ یوه ذره به هم په کښې باقي پاتې نه شي۔ ۹: دَ پاره دَ دفع دَ وسوسې دَ شیطان ځکه چه مقام دَ تصنیف محل دَ خطراتو دی اَوُ دا دَ لوَاب کار دے چه طلبو ته فائده ورکوي، نو شیطان دا کوشش کوي چه مصنف لره په زړه کښې مختلف وسوسې واچوي، چه دے دا تصنیف اَمنه کړے شي۔ ۱۰: دَ پاره دَ حصول دَ تیمن اَوُ دَ برکت، چه په تصنیف کښې برکت راشي۔ "دویم بحث" چه لفظ دَ با یې ولې مختار کړو۔ حرف باء یې مختار کړو په دې وجه باندې چه موافقت راشي دَ کتاب الله اَوُ دَ حدیث پاک سره۔ په قرآن پاک کښې راغلي دي، چه اقرأ باسم ربك الذي خلق"۔ اَوُ دغه شان په بل ځائے کښې راغلي دي چه "بسم الله مجريها ومرسها" اَوُ په حدیث شریف کښې راغلي دي "بسم الله ولجنا بسم الله خرجنا" نو موافقت راغے، دَ کتاب الله اَوُ دَ حدیث سره۔ "دریم بحث" چه دَ با دَ څه معنیٰ ده؟ ـ په معنیٰ دَ با کښې دَ جمهورو اَوُ صاحب کشاف اختلاف دے، جمهوروالي۔ چه په کار کښې شروع کوونکے محتاج وي استعانت ته، لهذا با دَ پاره دَ استعانت ده، نو تقدیر دَ عبارة به داسې شي چه "استعین یا مستعینا بسم الله الرحمن الرحیم"، اَوُ دَ صاحب کشاف علامه جار الله زمخشري په نیزد دا با دَ په معنیٰ دَ ملابست سره ده اَوُ مراد تر نه تبرک دے، نو تقدیر دَ عبارة به داسې شي چه "اتبرك یا متبرکا بسم الله الرحمن الرحیم"، نو په دې کښې دَ لحاظ ادب هم راغے اَوُ بل رد په کفارو هم راغے هغوی به "بسم اللات والعزی" ویل۔ یعني هغوی به تبرك نعوذ بالله، په نوم دَ لات اَوُ دَ عزی باندې حاصلولو۔ "څلورم بحث" چه دا با دلته کښې ولې مکسوره ده، تفصیل یې په شکل دَ سوال اَوُ جواب کښې دے۔ سوال دا پیدا کیږي چه با حرف مفرد دے اَوُ اصل په حروفو مفردو کښې فتحه ده لکه واو مفرد یا همزه وغیره اَوُ بله وجه دا ده چه "لان الفتحة اخت السکون في الخفة"، نو با مفتوح راوړل پکار وو۔ جواب دَ با دوه حیثیة دي، یو حیثیة یې دَ حرفیة دے اَوُ بل حیثیة یې دَ جریت دے، جریت یې دا تقاضا کوله چه کسره ورکړے شي، ځکه چه موافقت راشي په مابین دَ اثر اَوُ دَ موثر کښې، اَوُ بله وجه دا چه "الكسرة اخت السکون في المخرج"، اصل سکون دے اَوُ دا قاعده ده چه "الساکن اذا حرك حرك بالکسر"، نو دَ پاره دَ حصول دَ حرکت اَوُ دَ خفت با ته کسره ورکړے شوه۔

## درس ۵:

"پنځم بحث" دَ بسم الله په متعلق کښې دے۔ دَ بسم الله په متعلق کښې بحث دَ دوو جهتو نه دے، یو دَ دې جهت نه چه متعلق یې خاص دے اَوُ که عام اَوُ بل دَ دې جهت نه چه متعلق یې اسم دے اَوُ که فعل اَوُ که مقدم دے که موخر په متعلق دَ دې کښې چه خاص دے اَوُ که عام۔ دوه مذهبه دي۔ بعض والي چه متعلق دَ دې خاص دے چه ابتدائي یا ابتدأ دے،

لوٓ بعض والیٔ چه عامل دے یعنی هر هغه فعل یا شبه فعل چه په هغه کښے صلاحیت د دے خبرے وی چه هغه متعلق د دے واقعه شي. دویم جهت چه متعلق د دے اسم دے، که فعل مقدم دے که مؤخر، نو په دے کښے هم دوه مذهبه دی. یو د کوفیانو مذهب دے او بل د بصریانو. د کوفیانو په نزد باندے متعلق د دے اسم دے او مقدم دے، ځکه چه جار مجرور واقع بغیر وی، په محل د خبر کښے او اصل په خبر کښے افراد دے، یعنی خبر قسم دے، د مرفوعاتو نه او موفوعات قسم دے د اسم نه او اسم قسم دے د کلمے نه او د کلمے په مفهوم کښے افراد مأخوذ دے. پس اسم نه دے مگر مفرد او مقدم به په دے وجه وی چه هر متعلق عامل وی په خپل متعلق کښے او عامل مقدم وی په خپل معمول باندے. په دے وجه باندے د 'بسم الله' متعلق به مقدم وی، نو د هغوی په نزد تقدیر د عبارة به داسے شي چه ابتدائی کائنة بسم الله الرحمٰن الرحیم. دا جمله اسمیه ده او جمله اسمیه دلالت کوی په دوام او په ثبوت باندے. نو په دے کښے به هم دوام او ثبوت راشي.

د بصریانو په نزد باندے د 'بسم الله' متعلق فعل دے او مؤخر دے. فعل په دے وجه باندے د جار مجرور شدید احتیاج وی، خپل متعلق ته او چه د کوم یو شي بات احتیاج وی، نو د هغې د پاره د قوی شي ضرورت دے، نو په عواملو کښے قوی عامل فعل دے، په دے وجه د دے متعلق به فعل وی، او مؤخر به وی، ځکه چه څنګه تقدیر د ما حقه التاخیر فائده کوی - حصر او اختصاص لره[1]. لکه په 'ایاك نعبد و ایاك نستعین' کښے دا په اصل کښے 'نعبدك او نستعینك' وو، بیا چه هر کله مونږ ضمیر په فعل باندے مقدم کړه نو ضمیر منفصل جوړ راوړو، نو 'ایاك نعبد و ایاك نستعین' شو، نو اوس په کښے دا معنیٰ راووته چه خاص تا لره عبادت کوو او خاص تا نه امداد غواړو. نو دا به جمله فعلیه شي - تقدیر د عبارت به داسے شي چه 'بسم الله الرحمٰن الرحیم ابتدأ' دا جمله فعلیه ده او جمله فعلیه دلالت کوی په حدوث او تجدد باندے نحویانو په نزد باندے غوره او مختار مذهب د بصریانو دے[2]. دلته کښے سوال واردیږی چه په حدیث شریف کښے خو راغلی دی 'کل امر ذي بال لم یبدأ ببسم الله الخ' نو دلته دلته کښے خو بیا هم په نامه د الله شروع اوشوه، بلکه مخکښے تو نه با او اسم دی. جواب دا دے، چه با د پاره د استعانت یا د پاره د تبرك راغلے او اسم یے د دے د پاره ذکر کړو، څنګه چه د ذکر د الله نه تطهیر د لسان راشي، ځکه چه انسان په لسان باندے قسما قسم خبرے کوی، مثلاً غیبت او مزاح.

---

[1] ... هم رنګ تاخیر د ما حقه التقدیم هم فائده کوی، حصر او اختصاص لره. م.س

[2] لیکن مونږ به لحاظ د دواړو مسلکو یعنی په فقه کښے به د کوفیانو په مذهب عمل کوو ځکه چه امام ابوحنیفه د کوفے وو او په صرف و نحو کښے به د بصریانو په مذهب عمل کوو، دا خبره استاذ صاحب په درس په حالت کښے د خوش طبعه په شکل اوکړه. ۲۰ م.س

وغیره، نو د پاره د تطهیر د لسان یې د الله د ذکر نه مخکښې اسم ذکر کړو، لکه چه یو شاعر ویلی دی

ے هزار بار بشویم دهن بمشک و گلاب ... هنوز نام تو گفتن کمال بی ادبیست

دا توجیه تصوفانه توجیه ده او د علم نحو په اعتبار ئې ...... دا توجیه شي، چه اسم ئې د الله نه مخکښې راوړلو "یعنی" ذکر کړو" چه فرق حاصل شي. په مابین د یمین او تیمن کښې - **سوال** چه 'بسم الله' خو په خپله امر ذیبال دے، نو د دے د شروع نه مخکښې بیا 'بسم الله' ویل پکار دی، بیا د هغې د پاره ویل پکار دی، وهلم جراً - **جواب** دا دے چه په دے صورت کښې تسلسل لازمیږی، او تسلسل باطل دے - **معنوی تحقیق** د بسم الله، معنیٰ د 'بسم الله' دا ده چه په 'بسم الله' کښې لفظ د الله لغلی او دا اسم ذات دے - تعریف یې دا دے چه "اسم لذات الواجب الوجود المستجمع لجمیع لصفات الکمال المنزه عن صفات الزوال یعنی داهغه ذات دے، چه وجود یې واجب دے - پس د دے هغه نره کړو دا چه په اصطلاح د منطقیانو کښې شے په درے قسمه دے - یو واجب دے، بل ممکن دے او دریم ممتنع دے، واجب هغه ته والی چه وجود یې ضروری وی لکه وجود د باری تعالیٰ شو - ممتنع هغه ته والی چه عدم یې ضروری وی، لکه شریك الباری ممتنع او دریم ممکن هغه ته والی چه نه یې وجود ضروری وی او نه عدم، لکه دا سلسله د ممکناتو شوه، مثلاً انسان، حیوانات او دا عالم - لفظ د الله مشتق دے که جامد په دے کښې اختلاف دے بعض والی چه، مشتق دے، خو بیا په مشتق منه کښې اختلاف دے، چه د چانه مشتق دے او په نزد د سیبویه نحوی باندې جامد دے - هغه والی چه څنګه ذات د الله تعالیٰ "لم یلد ولم یولد" دے، نو دغه شان هغه اسم چه "دال" دے، په ذات د هغه باندې هغه هم د چانه مشتق نه دے - دلته کښې 'الله' ذات یې مقدم کړو، په 'رحمان' او په 'رحیم' باندې ځکه چه 'رحمان' او 'رحیم' صفات دی او ذات مقدم وی په صفاتو باندې نو دا **سوال** وارد نه شو چه ترقی د ادنیٰ کیږی اعلیٰ وته او دلته کښې ذات مقدم شو په صفاتو باندې، نو **جواب** مونږ اوکړو، چه دلته کښې لحاظ د تقدم ذاتی کړے شوے دے - ذات او د صفاتو دا مسئله د متعلقاتو د علم کلام نه ده - 'الرحمن الرحیم' دا دواړه صیغې د صفت مشبه دی او مأخوذ دی، د رحمة نه رحمت والی - رقة القلب ته، بیا په دے باندې **سوال** واردیږی، بیا خو د دے اطلاق په الله تعالیٰ نه دے صحیح جواب دا دے چه، دلته تجرید شوے دے، یعنی رحمة صرف درقة سره اغستے شوے دے - "رحمن" یعنی مهربانه دے، په دُنیا کښې په مومن او په کافر دواړو باندې او "رحیم" یعنی مهربانه دے په آخرت کښې صرف په مومنانو په کفارو، چونکه په 'رحمان' کښې عموم دو او زیادة د حروفو - په دے وجه یې مقدم کړو په 'رحیم' باندې - په 'الرحمن الرحیم' باندې درے واړه اعرابات صحیح کیږی، که مرفوع شی، نو مبتدا به وړله محذوفه مقدره شی، چه 'هُوَ' دے، او که منصوب شی اعنی فعل فاعل به ورله مقدر شی او

کهٔ مجرد شی، نو دا به صفتین اوګرځی، د پاره د الله او هغه خو مجرد دے، نو دا به هم مجرد وی شی۔

## درس ۶: وجوه عدم بدء الرسالة بتصدير الحمد!

عموماً مصنفین پس د ذکر د 'بسم الله' نه 'الحمد لله' ذکرکوی او دلته کښې معؒ۔ پس د ذکر د تسمیه نه تحمید ذکر نه کړو، نو دا سوال راځی چه مصنفؒ ولے مصدرہ نه کړو. رساله خپله په تحمید سره لهٰذا دهٔ مخالفت اوکړو. د کتاب الله، سُنّت رسولؐ او د کتب د سلف صالحینو، نو د دے سوال ډیر جوابونه دی. "اوّل جواب" دا دے چه 'کل امر ذی بال الحدیث' دا متکلم فیه دے، یعنی بعض وائی چه صحیح دے او بعض محدثین وائی چه ضعیف دے۔ "دویم جواب" دا دے چه دا یو لس استحبابی دے، یعنی حمد ذکر کول څهٔ لازمی او وجوبی امر نه دے۔ "دریم جواب" دا دے چه مراد په حمد سره ذکر د صفت الله د الله دے او هغه حاصل شو په ذکر د 'بسم الله' سره۔ "څلورم جواب" دا دے چه مصنفؒ دوه کتابه لیکلی دی، یو په علم الاعراب کښې دے او بل په علم الالفاظ کښې دے، دا په حقیقت کښې د یو کتاب دوه حصے دی، نو د علم الالفاظ په سر کښې یې تحمید راوړے دے، نو دهٔ اکتفاء په هغې باندې کړی دهٔ، په دے وجه یې 'الحمد لله' دوباره ذکر نه کړو۔ "پنځم جواب" دا دے چه کافیه متن دے، او بناء د متونو په اختصار وی۔ "شپږم جواب" دا دے چه د قرآن پاک دوه ترتیبه دی۔ یو ترتیب نزولی او بل ترتیب جمعی۔ په اعتبار د ترتیب نزولی سره د قرآن پاک شروع د اقرا نه دهٔ، په هغې کښې حمد نشته او په ترتیب جمعی کښې په ابتداء کښې حمد دے، نو مصنفؒ د ترتیب جمعی لحاظ نه دے کړے، بلکه د ترتیب نزولی خیال یې ساتلے دے۔ "اووم جواب" دا دے چه مصنفؒ مصدرہ نه کړه، رساله خپله په حمد سره هضماً للنفسه، یعنی د کسر نفسیٰ د وجے نه۔ سوال څهٔ وجه ده چه مصنفؒ کسر نفسی اختیار کړه۔ جواب دا دے چه معؒ خیال وکړو چه نه دے زما کتاب په شان د کتابونو د سلف صالحینو چه هغوی کتابونه مصدر کړی دی، په حمد سره، نو که زهٔ یې هم مصدر کړم په حمد سره، نو بیا به مساوات راشی، زما د کتاب د هغوی د کتابونو سره او حالانکه زما کتاب د هغوی د کتابونو په شان نه دے۔ سوال چه ذکر د حمد خو عبادت دے او کسر نفسی په کولو د عبادت سره راځی نو په ترک سره۔ جواب دا دے چه یو عدم تصدیر دے، مطلقاً او بل عدم تصدیر دے، په دے شان سره چه حمد جز د کتاب نه اوګرځی، نو حمد اګر که مصنفؒ جز د کتاب نه نه دے ګرځولے، لیکن زبانی خو به یې ویلے وی، ځکه چه عالِم او فاضل دے۔ سوال 'کل امر ذی بال لم یبداء بحمد لله فهو اقطع'، په دے حدیث خو عمل رانغے، بلکه د دے نه مخالفت راغے۔ جواب شروع په حمد باندې عامه دهٔ، کتابةً وی او که قولاً وی، نو دلته کښې مصنفؒ که کتابةً نه دے ذکر کړے، لیکن قولاً به یې ذکر کړے وی۔ سوال چه تاته څهٔ پته ده چه مصنفؒ حمد کتابةً نه دے ذکر کړے، نو

قولاً به یئ ذکر کړے وی ـ **جواب** په حدیث شریف کښې راغلی دی ـ 'ظنوا المؤمنین خیرا' نو مطلق مومن په باره کښې دَ خیر دَ گمان خبره راغلی ده' نو دے خو عالِم او مصنف وو ـ **سوال**. چه حمد یې قولاً ذکر کړو' نو 'بسم الله' به یې هم قولاً ذکر کړی وه ـ **جواب** نکته تا ولړه وی' قاریو ته معلومه وی' 'بسم الله' خو عموماً دَ کتابونو په سر کښې ذکر کیږی' که چرته نه یئ وه ذکر کړی' نو دے له به معلومه نکته او وجوهات لټول او دَ 'بسم الله' په باره کښې خو مستقل حدیث هم منقول دے ـ الا من کتب منکم کتابا فلیکتب فی ابتدائه بسم الله الرحمٰن الرحیم ۔

## درس ۷: الـکلمۃ!

**سوال**: اشتغال دَ مصنف په تعریف دَ کلمے باندې دا اشتغال بمالا یعنی دے، ځکه چه دَ عِلم نحو موضوع کلمه او کلام دے او په عِلم کښې بحث کیږی' دَ هغه عِلم دَ موضوع دَ عوارضو ذاتیو نه' نو مصنف له پکار داوه چه دَ کلمے په عوارض باندې یې بحث شروع کړے وے' لیکن دهٔ دَ کلمے په ذات او په تعریف شروع وکړه. **جواب**. اشتغال دَ مصنف بمالا یعنی نهٔ دے' بلکه بما یعنی دے په تعریف دَ کلمے باندې، ځکه چه دَ یو شی احوال موقوف وی' دَ هغه شی په معرفت باندې اولاً ـ نو اولاً یې تعریف دَ کلمے شروع کړو' ځکه چه دا موقوف علیه دے او موقوف علیه مقدم وی په موقوف باندې ـ **سوال**. چه هر کله موضوع دَ عِلم نحو کلمه او کلام او گرځیدل' نو څهٔ وجه ده چه کلمه یې مقدم کړه په کلام باندې' سره د دے نه چه کلمه غیر مفید ده او کلام مفید دے ـ **جواب**. کلمه جزء دے دَ کلام کل دے او جز مقدم وی په کل باندې طبعاً' نو کلمه یې مقدم کړه په کلام باندې وضعاً' دَ پاره دَ دے چه موافقت راشی' په مابین دَ وضع او دَ طبعه کښې ـ **سوال**. کلمه څنګه جزء دے دَ کلام نه ؟ ـ **جواب**. یاد دے چه مفهوم اجمالی دَ کلمے دا جزء دے' دَ مفهوم تفصیلی دَ کلام نه، دَ کلمے دَ تقدیم دریمه وجه دا ده چه' کلمه مفرد ده او کلام مرکب دے' مفرد مقدم دے په مرکب باندې ـ طبعاً' نو په دے وجه یې مقدم کړه په کلام باندې. دَ پاره دَ دے چه موافقت راشی دَ وضع او دَ طبع په مابین کښې.

**تقسیم دَ تعریف** | تعریف په ۴ دَ ـ قسمه دے. یو تعریف حدی، بل تعریف رسمی او دریم تعریف لفظی ـ "تعریف حدی" دے ته وائی چه' تعریف دَ یو شی او شی' په تمامو ذاتیاتو سره. لکه تعریف دَ اِنسان اوشی په حیوان ناطق سره ـ "تعریف رسمی" چه تعریف دَ شی په عرضیاتو او په رسمیاتو سره اوشی' لکه دَ اِنسان تعریف اوشی په ' مستقیم القامۃ. بادی البشرۃ عریض الاظفار ضاحك بالطبع' سره ـ "تعریف لفظی" چه دَ یو غیر مشهور لفظ تعریف اوشی په مشهور لفظ سره' لکه تعریف دَ غضنفر اوشی په اَسد سره ـ دلته کښې مونږ دَ کلمه نحویه تعریف کوو ـ دا نحویه قید مو په دے وجه باندې کیښودو' ځکه چه کلمه په ځلور قسمه ده ـ یو کلمه شرعیه

لله ' لا اله الا الله محمد رسول الله '۔ دریم کلمه شرعیه ' لکه عرب وائي ' كلمة الشاعر اے قصيدة الشاعر '۔ دریم کلمه عرفیه ' دا مطلق لفظ ته وائي چه موضوع وی لو که مهمل ۔ څلورمه کلمه نحویه ' چه د دے تعریف اوس دلته کښے ذکر کیږی ۔ اوس دلته کښے بحث دے ' په کلمه او کلام کښ د حیثیت د اشتقاق او د عدم اشتقاق نه ' نو په دے کښے اختلاف دے ' په مابین د جمهورو نحاتو او د بعض نحاتو کښے ۔ جمهور نحاة وائي چه ' هما اسمان موضوعان براسهما ' ځکه چه بنا د اشتقاق په تکلفاتو بعیده باندے ده ' او بعض نحاة وائي چه کلمه او کلام دا مشتق دی او ' اسمين براسهما ' نه دی ' ځکه چه بنا د اشتقاق په رعایت د تناسب سره ده په مابین د مشتق او مشتق منه کښے او دوئ مشتق دی د ' کَلْمٌ ' بسکون اللام نه ۔ **سوال** . چه بنا د اشتقاق په تناسب ده ' په مابین د مشتق او مشتق منه کښے ' نو مناسبت خو په دوه قسمه دے ' یو مناسبت لفظي او بل مناسبت معنوی ' نو دلته د کلم او د کلمے او کلام په مابین مناسبت لفظي شته ' چه د دیتو ماده یو ده ' خو د دوی په مابین کښے مناسبت معنوی نشته ۔ ځکه چه کَلْمٌ خو جَرح ته وائي او کلمه لفظ وضع لمعنى مفرد ته وائي او کلام ماتضمن کلمتين بالاسناد ته وائي ' نو د دوی په مابین کښے مناسبت معنوی رانغی ۔ **جواب** . مناسبت معنوی په درے قسمه دے ' یو هغه دے چه مناسبت وی په معنیٰ مطابقی کښے او بل هغه دے چه مناسبت وی ' په معنیٰ تضمنی کښے او دریم هغه دے چه مناسبت وی په معنیٰ التزامی کښے ' نو دلته اګرچه په دے مقام کښے مناسبت نشته په معنیٰ مطابقی او تضمنی کښے ' لیکن په معنیٰ التزامي کښے مطابقت شته لو هغه دا چه څنګه جرح لره اثر دے ' په مجروح کښے ' نو دغه شان لبعض د کلماتو نه هم لره اثر دے په نفوسو کښے ' لکه کلمات د غم او د حزن یا کتخل وغیره ' دغه شان حزنیه اشعار لکه چه حضرت علي رضي الله عنه فرمائي چه : جراحات السنان لها التيام ژ ولا يلتام ملجرح اللسان '۔ یعنی د نیزو زخمونو لره جوړیدل او یو ځائے کیدل شته خو د ژبے زخمونو لره رغیدل نشته ۔ عرب وائي : ' جرح الكلام اشدّ من جرح السهام ' یعنی د خبرو زخم ډیر سخت دے د نیزو د زخم نه یا لکه زما دا شعر چه :-

۱ د زخمونو د نیزو علاج به اوشی    خو د ژبے د پرهرخه دوا نشته (فانی)

**سوال** دا مناسبت خو په کلام کښے متصور کیدے شی ' خو په کلمه کښے نه شی کیدے ' ځکه چه کلام مفید د فائدے تامی دے او کلمه نه ده ۔ **جواب** . چه کلام کښے متصور کیږی ' نو په کلمه کښے به هم

---

۱ . زمونږ استاذ محترم حافظ محمد ابراهیم فاني صاحب ته د پرے ملکے حلول دی ' که ادیب یے ګڼړے ' نو دا یے ادیب دے په څلورو ژبو کښے یے د خپلو لفظی ملغلرو نظمونه غزلیات او مرثیات پیرلی دی او دا شعر هم د یو غزل ټکړه ده ۔ ۱۲ ( م . س ) .

منصوب کیږی، ځکه چه کلمه جزء دے د کلام نه ـ بیا سوال واردیږی چه په ټولو کلماتو کښې خو دا تاثیر نشته، بلکه بعض کلماتو کښې دے، نو په ټولو باندې څنګه اطلاق کیدے شی ـ جواب دادے چه د مشتق او مشتق منه په مابین کښې معمولی مناسبت هم کافی دے ـ

**درس ۸**: زده کړه داخبره چه په الکلمة کښې لام دے، بحث د امو ثلاثه وو نه ـ الف لام کلِمَۃٌ په کسرې د لام سره او حروف یاء، چونکه کلم معروض دے او الف لام ورته عارض دے ـ معروض په منزله د ذات دے او عارض په منزله د صفت دے او ذات متقدم وی په صفت باندې ـ په دے وجه باندې مونږ به د ټولو نه مخکښې بحث د کلم کوو، چه موافقت راشی په مابین د وضع او د طبع کښې، نو په کلم کښې اختلاف دے د حیثیت د جنسیت او د جمعیة نه، په مابین د جمهورو نحاتو کښې او په مابین د بعضو نحاتو کښې ـ جمهور نحاة وائی چه، دا جنس دے او بعض نحاة وائی چه، دا جمعه ده ـ سوال چه اشتغال په بحث د کلم کښې دا اشتغال بمالایعنی دے، بحث د کلمة نه په کار وو ـ جواب دادے چه کلم اسم جنس دے او کلمة ورله فرد جنس دے، لکه تَمْرٌ اسم جنس او تمرة فرد جنس ـ پس اشتغال په اسم جنس کښې دا اشتغال دے په فرد جنس کښې ـ د جمهورو نحاتو د پاره څلور دلائل دی "اوّل دلیل" دا دے چه، په قرآن پاک کښې راغلی دی: "الیه یصعد الکلم الطیب" ـ نو دلته کښې د دلیل موافقت د مدعی سره دا دے چه، "الطَّیِّبُ" صفت واقع شوے دے، د پاره د کلم ـ الکلم موصوف دے او قاعده داده چه په مابین د موصوف او د صفت کښې مطابقة ضروری دے، نو چه هرکله د الکلم د پاره صفت مفرد واقع شو، نو دے نه معلومه شوه، چه الکلم مفرد دے، نو ځکه چه که چرے جمع وے، نو بیا خو صفت الطیبات پکار وو. "فائده": ـ د جنس اطلاق په مفرد تثنیه جمع باندې علی السویه دے ـ "دویم دلیل" دادے چه دا تمیز د عدد اوسط واقع کیږی او عدد اوسط نه وی، مګر مفرد لکه "احدعشر کلما" ـ "دریم دلیل" دا دے چه کلم جمع نهٔ ده، ځکه چه په اوزان د جمع کښې دا وزن نشته ـ "څلورم دلیل" دا دے چه د دے تصغیر بنفسه راځی چه کلیم دے ـ که چرے دا جمع وے، نو اوّل به مفرد ته نقل شوے وو او پس د هغے نه به د دے تصغیر راتلو، ځکه چه د جمع بالذات تصغیر نه راځی، د بعض نحاتو د پاره صرف یو دلیل دے او هغه دا دے چه په عرف او استعمال کښې اطلاق د دے په ثلاثه او په مافوق د ثلاثه باندې کیږی او دا دلیل دے د پاره د جمعیت د کلم ـ اوس بعض نحاة د جمهورو نحاتو دلائلو نه جوابونه ورکوی ـ د اوّل دلیل جواب دادے چه دلته کښې د "الطَّیِّبُ" د پاره موصوف محذوف دے چه هغه بعض دے، یعنی الیه یصعد بعض الکلم الطیب، بیا په هغوی دا سوال واردشو چه تاسی په آیات کښې تاویل ولے کوئ؟ ـ جواب یے داورکړو چه مونږ تاویل د وجے د ضرورت نه کوو، ځکه چه ټول کلمات خو اَللّٰه تعالیٰ ته

نهٔ خېژي، بلکه بعض کلمات چې هغه صالح کلمات دي، هغه خېژي اَوْ تاویل خوروا دے، لکه چې په دے آیت کښې ، چې ”ان رحمة الله قریب من المحسنین“ ای احسان الله“، دَ جمهورو نحاتو دَ دوئِم دلیل نه جواب دا کوي، چې تاسو وایئ چې، کله تمیز واقع کېږي، دَ عدد اوسط اَوْ تمیز دَ عدد اوسط نهٔ وي، مګر مزد وي، نو موفق والوجه دلته کښې تا مقدره ده، په اصل کښې دے ”احد عشر کلمة“. دَ درېم دلیل نه یې جواب نهٔ دے کړے اَوْ دَ څلورم دلیل نه دا جواب ورکوي چې تصغیر دَ کلمٔ کلیم نهٔ دے، بلکه کلیمةٌ دے. په دے جواب کښې ورته جمهور والے چې، تاسو تاویل کړے دے، په آیت کښې اَوْ تاویل ځي، صحف (..... اوّل) دَ معنیٰ دَ لفظ دَ ظاهر نه غیر ظاهر ته، نو صیرورة دَ معنیٰ دَ لفظ دَ ظاهر نه غیر ظاهر ته دا په وخت دَ ضرورت شدیده کښې کېږي، ”ولا ضرورة هٰهنا“. دَ دوئِم اَوْ دَ څلورم جواب نه ورته جواب ورکوي چې ”احد عشر کلمةٌ“ اَوْ تصغیر دَ دے ”کلیمةٌ“ دے. دا الحصر تحکم دے، یعنی دا دعویٰ بلا دلیله ده اَوْ جمهور نحاة دَ هغوی دَ اصل دلیل نه دا جواب ورکوي چې ”هغوی وئیلي وو چې اطلاق دَ دے په ثلاثةٌ یا ما فوق دَ ثلاثه باندې کېږي“، چې دا اطلاق په اعتبار دَ استعمال سره دے اَوْ خبره زمونږ په اصل وضع کښې ده، په اصل وضع کښې دَ دے اطلاق په یو لږ په ثلاثه و باندې برابر دے، نو معلومه شوه چې کلم جنس دے، جمع نهٔ ده.

## درس نمبر ۹:-

هر کله چې مونږ نابغ شو دَ بیان دَ معروض نه، نو اوس به شروع کوو، په عارض کښې چې الف لام دي، الف لام په لغت کښې مطلق دَ الف لام ته وائي اَوْ بعضے علماء وائي، چې الف لام په لغت کښې تحسین ته وائي اَوْ په اِصطلاح کښې ”کلمة تحلی بها کلمة اخریٰ“. یعنی دا هغه کلمه ده چې په دے باندې بله کلمه ښائسته کېږي، بیا الف لام په دوه قسمه[1] دے، یو اسمی دے اَوْ بل حرفي الف لام اسمی هغه ته وائي، چې داخلیږي په اِسم فاعل اَوْ اِسم مفعول باندې بالاتفاق اَوْ په صفت مشبه باندې په سیبلے دَ اختلاف یعنی په دے کښې اختلاف دے، چې په صفت مشبه باندې کوم الف لام داخل دے، دَ اسمی دے اَوْ که حرفي، په اِسم فاعل اَوْ اِسم مفعول باندې چې کوم الف لام داخل وي، نو دا اِسمی دي، ځکه چې دا په معنیٰ دَ الذی اَوْ اللتی موصول سره دي اَوْ موصولات قسم دے، دَ اِسم نه په دے وجه دا اِسمی دي اَوْ الف لام[2] حرفي بیا په دوه قسمه دي، یو زائد اَوْ بل غیر زائد. زائد هغه ته وائي، چې په اسقاط دَ هغے سره نقصان په اصل معنیٰ دَ کلمے کښې نهٔ راځي اَوْ غیر زائد هغه ته وائي، چې په اسقاط دَ هغے سره نقصان په اصل معنیٰ دَ کلمے کښې راځي.

---

[1]. پس دَ تعریف نه لازم شو، په مونږ باندې تقسیم دَ الف لام، ځکه اُستاذ صاحب اووئیل، چې الف لام په دوه قسمه دي، یعنی الف لام په دوه قسمه الف لام حرفي په خلاف دَ اِسمی نه دي، دا بیا په کور خپل کښې په دوه قسمه دي ۲-۲ (...).

د زائد مثال دا دے لکه دا قول د حضرت علی رضی الله عنه: "ولقد امرّ علی اللئیم یسبّنی"[۱]۔ دلته کښے اللئیم موصوف او یسبّنی صفت ده، اللئیم کښے الف لام زائد دی، تعریفی نه دی، ځکه که چرے دا تعریفی شی نو اللئیم به معرفه شی او جمله صفت د معرفے نه واقع کیږی، ځکه چه جمله نکره وی او نکره صفت د معرفے نه شی راتلے، ځکه چه مابین د موصوف او صفت کښے مطابقت ضروری دے۔ پس د دے الف لام زائد په دوه قسمه دے، یو لازم بل غیر لازم، بیا هر واحد د دے نه په دوه دوه قسمه دے، یو عوضی بل غیر عوضی، نو دا ټول څلور قسمه شو۔ مثال د الف لام حرفی زائد لازم عوضی، لکه لفظ د "الله" شو، په دے کښے الف لام زائد دی، ځکه تعریف حاصل شوے دے، په علمیة سره او لازم دی د وجه د احاطے د علمیة نه په دوی بانذی او عوضی دی، ځکه په عوض د همزه نه راغلے دے، ځکه چه په اصل کښے "الٰه" وو او دویم مثال د الف لام حرفی زائد لازم غیر عوضی، لکه "النجم"، "السعوق"، "الثریّا" چه دلته الف لام حرفی دی، زائد دی او لازم دی، د وجه د احاطے د علمیت نه په دوی بانذی او غیر عوضی دی، ځکه چه دا د چا عوض کښے نه دی راغلی او مثال د الف لام حرفی زائد غیر لازم عوضی، لکه "یا ایها الناس" شو۔ دلته کښے الف لام حرفی دی، ځکه چه په اسم فاعل یا اسم مفعول نه دی داخل او زائد دی، ځکه چه تعریف حاصل شوے دے په حرف ندا سره او غیر لازم دی، د وجه د عدم احاطے د علمیت نه په دے بانذی او عوضی دی، ځکه چه دا عوض راغلے د همزه نه چه اناس دے۔ مثال د الف لام حرفی زائد غیر عوضی، لکه دا قول شو چه "فیا الغلامان الذان فرّا" په یاالغلامان کښے الف لام حرفی دی، ځکه چه په اسم فاعل یا اسم مفعول نه دے داخل شوی او زائد دی، چه تعریف حاصل شوے دے په حرف ندا سره او غیر لازم دی د وجه د عدم احاطے د علمیت نه او غیر عوضی دی، ځکه چه د چا نه عوض نه دی راغلی۔

**درس نمبر ۱۰ :-** الف لام حرفی غیر زائد په څلور[۲] قسمه دی، جنسی[۱]، استغراقی[۲]، عهد خارجی[۳]، عهد ذهنی۔ الف لام جنسی چه اشاره کیږی په دے سره ماهیت د یو شی ته قطع نظر د افرادو نه، لکه "الرجل خیر من المرأة"۔ دلته الف لام په الرجل کښے جنسی دی، په دے سره اشاره شوی ده ماهیت د رجل ته چه هغه "نوع مذکر من بنی آدم یتجاوز من حد الصغر الی حد الکبر"۔ الف لام استغراقی تعریف یے دا دے چه استغراقی د استغراق نه وتے دے او استغراق وائی احاطے ته، دا هغه الف دے، چه په دے سره اشاره کیږی ماهیت د شی ته۔ په ضمن د تحقق د جمیع افرادو کښے، قول د الله تعالیٰ "إنّ الانسان لفی خسر"۔ الف لام عهد خارجی دے ته وائی، چه په دے سره کیږی، ماهیت د شی ته۔ په ضمن د تحقق د فرد واحد کښے چه هغه فرد به معهود وی، په

---

[۱] یعنی کوښتے داده: "فمضیت ثم قلت لایعنینی"۔ لیکن مقصد زمونږ په اوله کښے دے۔ ۲۰۔ س۔

[۲] چه مونږ فارغ شو د تفصیل د الف لام حرفی زائد نه پس شروع مو کړه په تقسیم د الف لام حرفی غیر زائد کښے۔ ۲۰۱۲۔ س۔

ذهن د متکلم اؤ مخاطب دواړو کښې لکه "نعصی فرعون الرسول" اؤ الف لام عهد ذهنی یعنې هغه دی چې په دې سره اشاره کیږی ماهیت د شی ته په ضمن د تحقق د فرد واحد کښې چې هغه به معهود فی ذهن المتکلم وی لکه "لئ خاف ان یاکله الذئب" په الذئب کښې الف لام عهدی دی، ځکه چې په دې سره ماهیت د ذئب ته اشاره شوې ده په ضمن د تحقق د یو فرد کښې اؤ هغه فرد معلوم دے په ذهن د متکلم. فقط چې هغه حضرت یعقوب علیه السلام دے - پس د تطبیق نه په هر واحد د اقسامو باندې پورې اعتراض واردیږی۔
سوال. چې الرجل خیر من المرأة کښې الف لام استغراقی، عهد خارجی، عهد ذهنی ولے نه صحیح کیږی۔
جواب. استغراقی ځکه نه صحیح کیږی چې هغه کښې لحاظ د جمیع افراد کړے شوے وی اؤ ټول افراد د رجل خوښ نه دی، د افرادو د مرئے نه ځکه چې په ښځو کښې ډیرے داسے دی چې بهترے دی د سړو نه، لکه "بی بی فاطمه" ، "حضرت عائشه" ، حضرت رابعه بصری ، وغیره۔ الف لام عهد خارجی هم نه دی صحیح، ځکه چې هغه سبق معهود غواړی لو دلته کښې معهود نشته اؤ الف لام عهد ذهنی هم نه صحیح کیږی، ځکه چې هغه قوة د نکرے کښې دی اؤ الرجل مبتداء دے اؤ مبتداء معرفه وی. کهٔ چیرے په دے کښې دا الف لام عهد ذهنی شی، نو لازمیږی نکارت د مبتداء[1]. سوال. په "ان الانسان لفی خسر" کښې جنسی، عهد خارجی، عهد ذهنی ولے نه صحیح کیږی. جواب. چې په جنسی کښې اشاره کیږی ماهیت د شی ته، قطع د نظره د لحاظ د افرادو نه، نو دلته کښې نسبت د خسران به ماهیت د انسان ته اوشی، حالانکه د خسران نسبت افرادو ته کیږی، ماهیت ته نه کیږی اؤ الف لام عهد خارجی هم نه صحیح کیږی، ځکه چې هغه سبق معهود غواړی اؤ دلته کښې معهود نشته اؤ دویم وجه دا ده چې دلته کښې استثناء راغلی ده اؤ استثناء د متعدد نه کیږی لو چې په الف لام عهد خارجی سره اشاره کیږی واحد ته اؤ د واحد نه استثناء نه راځی اؤ الف لام عهد ذهنی هم نه صحیح کیږی، ځکه چې الانسان اسم د "انّ" دے اؤ اسم حقیقتاً مبتداء وی اؤ الف لام عهد ذهنی په قوة د نکره کښې دی، نو لازمیږی نکارت د مبتداء اؤ دا باطل دے۔ سوال. په "فعصیٰ فرعون الرسول" کښې دا الف لام جنسی اؤ استغراقی یا عهد ذهنی ولے نه صحیح کیږی۔ جواب. کهٔ چیرے جنسی شی نو معنیٰ به دا شی چې فرعون د معنیٰ[1] د ماهیت نه انکار کړے وو اؤ نافرمانی یې کړې وه[2]، اؤ کهٔ استغراقی شی، نو معنیٰ به دا شی چې فرعون د ټولو افرادو د پیغمبرانو نه انکار اؤ نافرمانی کړې وه، حالانکه د هغهٔ زمانه خو مختصره زمانه وه ټول پیغمبران[3] د هغهٔ په زمانه کښې نه وو راغلی، نو دلته کښې

---

[1]. اؤ نکارت د مبتداء بغیر تخصیصه باطل دے۔ (م۔س)۔

[2]. نافرمانی د ماهیت نه غیر متصوره ده، بلکه د افرادو نه کیږی۔۱۲۔ (م۔س)۔

دَ الرسول نه هغه معهود رسول مُراد دے، چه په ذهن دَ متکلم اَوْ دَ مخاطب کښې دے چه هغه موسیٰ علیه السلام دے، نو دا الف لام عهد خارجي دی اَوْ الف لام عهد ذهني هُم نهٔ جوړیږی....
.... ځکه چه په هغه کښې خو معهود فی ذهن المتکلم وی، **فقط**.[1]

**درس ۱۱:** په څلورم مثال چه "اخاف ان یاکله الذئب" دے، باند **سوال** واردیږی چه دلته کښې الف لام جنسی استغراقی اَوْ عهد خارجي ولے نهٔ صحیح کیږی. **جواب** داد ے چه جنسی شی نو بیانیهٔ لازم شی، صدور د اُکل دَ جنس ماهیت دَ ذئب نه اَوْ صدور د اُکل دَ افرادو نه کیږی. نهٔ دَ ماهیت نه اَوْ استغراقی هُم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه په هغه صورت کښې به لازم شی، صدور د اُکل په لحم دَ حضرت یوسف علیه السلام دَ جمیع افرادو دَ شرمخانو نه، اَوْ عقلاً دا خبره محاله ده چه جمیع شی تمام افراد دَ شرمخانو په لحم دَ حضرت یوسف علیه السلام باندِ اَوْ الف لام عهد خارجي هُم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه هغه سبق معهود غواړی اَوْ دلته کښې لرے یو معهود نشته، چه هغه دَ یو پیغمبر غوښه اوخوری، ځکه چه نشته دے قدرت دَ لو شی لره، دَ اشیاوو دَ دُنیا نه په اُکل دَ پیغمبر باندِ به خارج کښې۔ **دریم تحقیق**: په تا رکښې دے۔ تا په مختلفو معنو باندِ راځی۔ ۱: تانیث دَ پاره لکه قائمة۔ ۲: دَ تذکیر دَ پاره لکه ثلثة۔ ۳: دَ نقل دَ وصفیت نه علمیت دَ پاره لکه کافیة۔ ۴: دَ مبالغې دَ پاره لکه علامةٌ۔ ۵: تاءِ عوضی، لکه عدة، (دا بدل دَ واؤ نه راغلی ده)۔ ۶: دَ پاره دَ فرق په مابین دَ جنس اَوْ فردِ جنس کښې، لکه تمرٌ اَوْ تمرةٌ۔ ۷: دَ پاره دَ وحدت لکه تمرة خیر من جرادة۔ ۸: دَ پاره دَ غائب لکه ضربت۔ ۹: دَ پاره دَ مخاطب لکه ضربتَ۔ ۱۰: دَ پاره دَ متکلم، لکه ضربتُ۔ **سوال**: چه په الکلمة کښې دا الف لام کوم قسم دے؟ اِسمی هُم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه الف لام اسمی په اِسم فاعل اَوْ اِسم مفعول باندِ داخلیږی اَوْ کلمه خو نهٔ دَ اِسم فاعل صیغه ده اَوْ نهٔ دَ اِسم مفعول۔ اَوْ که الف لام حرفی زائد واخلے، نو دا هم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه لازمیږی نکارة دَ مبتدا اَوْ که غیر زائد کښې الف لام جنسی واخلے، نو هُم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه په آخر دا الکلمة کښې "ة" دَ پاره دَ وحدت راغلی ده اَوْ په مابین دَ جنس اَوْ دَ وحدت کښې منافات دے اَوْ الف لام استغراقی هُم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه لازمیږی تعریف دَ افرادو حالانکه تعریف دَ ماهیت کیږی نهٔ دَ افرادو اَوْ الف لام عهد خارجي هم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه هغه غواړی سبق معهود اَوْ الف لام عهد ذهني هم نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه لازمیږی په دغه وخت کښې نکارت دَ مبتدا، ځکه چه الف لام عهد ذهني په قوت دَ نکرې کښې دے؟۔ **جواب** دا دے چه په

---

[1] اَوْ دا خو متکلم اَوْ مخاطب دواړو ته معلوم دے، دَ متکلم نه مراد "اَللّٰه تعالیٰ" دے اَوْ دَ مخاطب نه مراد نبي دے۔ ۲۱۲م. س.

الکلمة کښې الف لام غیر زائد جنسي دے، کهٔ ته وائے چه د الکلمة په آخر کښې تا راغلې ده او دا د پاره د وحدة ده او منافاة دے، په مابین د جنسیت او د وحدت کښې، نو موږ وايو چه نشته دے منافات په مابین د جنسیت او د وحدت کښې ځکه چه وحدت په څلور قسمه دے[1] وحدت جنسي، وحدت نوعي، وحدت صنفي او وحدت فردي او دلته کښې منافات په مابین د وحدت نوعي، وحدت صنفي او وحدت فردي کښې دے او نه په مابین د وحدت جنسي او جنس کښې۔ او دلته کښې دا تا راغلې ده د پاره د وحدت جنسي د تیم **اِحتمال**[2] دا دے چه دلته په الکلمة کښې الف لام عهد خارجي دی کهٔ ته وائے چه سبق معهود نهٔ او دلته کښې معهود نشته، نو **جواب** دا دے چه دلته کښې معهود شته دے او هغه هغه کلمه ده چه جاري ده په السنة ود نحاتو باندې۔ **سوال** په دغه صورت کښې خو لازمیږي۔ تعریف د فرد او تعریف خو د ماهیت کیږي نه د فرد۔ **جواب** دا دے چه الکلمة اګر کهٔ په اعتبار د معنیٰ لغوي سره یو فرد دے لیکن په اعتبار د معنیٰ اصطلاحي سره دا جنس دے او د دے لاندې مختلف انواع دی چه اسم دے، فعل دے او حرف دے۔




---

[1] وحدة جنسي یې ته وائي چه دے شامل وي تمام افرادو د جنس لره لکه مثال یې حیوان دے په (نور په بل رکع)۔
[2] مهیم جواب۔ م۔س۔

# درس ۱۲

**لفظ** هر کله چه مونږ فارغ شو د بیان د کلمې او د متعلقاتو د هغې نه نو اوس به مونږ بحث کوو، د لفظ[1] نه - لو پس زده کړه دا خبره چه لفظ په **لغت** کښې مطلق رمی ته وائي. برابره خبره ده چه د فم نه وی که د غیر فم نه وی. لفظ وی او که غیر لفظ وی. مثال د هغې چه د فم نه وی او لفظ وی لکه زید قائم، ای قلت هذا القول. مثال د هغې چه د فم نه وی او غیر لفظ لکه اکلت التمرة ولفظت النواة. مثال د هغې چه د غیر فم نه وی او لفظ نه وی لکه لفظت الرحی الدقیق، او چه د غیر فم نه وی او لفظ وی، دا محال دے. د دے د پاره څه مثال نشته. **سوال** چه الکلمة مبتداء ده او لفظ ورله خبر دے، نو دلته کښې حمل د مصرف وصف راغے په ذات او دا ناجائز دے.

**جواب** دا دے چه لفظ یا ابتداءً په معنیٰ د مایتلفظ به الانسان سره دے او یا پس د جعل د دے نه په معنیٰ د ملفوظ سره دے او که مجرۃ کښې ابتداء وی، نو بیا په مابین د دوی[2] کښې علاقه د سببیت او مسببیت شی او که مجرۃ په معنیٰ د ملفوظ شی، نو بیا به د دوی په مابین کښې علاقه د خاص او عام شی.

## اِصطلاحی تحقیق د لفظ

د لفظ دوه اِصطلاحی تعریفه دی. یو عام دے، او بل خاص دے. عام تعریف خو ئې دا دے چه مایتلفظ به الانسان دے او خاص تعریف ئې دا دے چه صوت یخرج من فم الانسان معتمداً علی المخارج. یعنی دا لو آواز دے چه او ځی د خلې د انسان نه او اعتماد ئې کړے وی په مخارجو باندې دا تعریف شامل دے صرف الفاظو د انسان لره، او د نورو حیواناتو الفاظ او اصوات ترے نه خارج شو. **سوال** ستا دا تعریف مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې "لسان" ژبه" ځکه چه په هغې باندې هم تلفظ کیږی. **جواب** په مایتلفظ به الانسان کښې باء د استعانت د پاره نه ده، بلکه دا باء یا د پاره د تعدیت ده او یا زائده ده. تقدیر د عبارت به داسے شی "مایتلفظ الانسان". یا باء په معنیٰ د علیٰ سره ده او تقدیر د عبارت به داسے شی چه "مایتلفظ علیه الانسان". **سوال** ستا دا تعریف مستلزم دے دور لره او دور ولې. توقف د شی وته په نفس خپل باندې - د جهة ولحده[3] نه یا دلته کښې لازمیږی.

---

(هلته د بل رنګ نه) .. نسبت سره. انسان، بقر، فرس، ونه - وحدت نوعی ورته وائي، چه دے د یو نوع تمام افرادو ته شامل دی، لکه انسان په نسبت سره زید، عمر، بکر وته. وحدت صنفی ورته وائي چه یو علاقه افرادو ته شامل وی، لکه افراد الانسانیه د یو ښار. وحدت نوعی ورته وائي چه یو خاص فرد ته شامل وی. م. س.

[1] یعنی په مابین د ابتداء او خبر کښې به علاقه د سببیت او مسببیت راشی بناء په احتمال اول سره او هم چه (نور په بل رنګ) ...

[2] لکه آمو توقف دے په باء او باء موقوف دے په آء. پس آء موقوف دے په آء باندې - ۱۲ - م. س.

اخذ دَ محدود په حد کښې، آو دا باطل دے دور یا اخذ دَ محدود په حد کښې په دِے طریقې سره چه په تعریف دَ لفظ کښې، تا اُوویل چه ما یتلفظ به الانسان، نو په تعریف کښې یتلفظ راغلې دے او دَ یتلفظ ماده لفظ دے نو معلومه شوه چه اللفظ لفظ لَو دا نه دے مکرر دور جواب دور به هله لازمیده، چه جهة واحدة او دلته کښې خو جهت واحدنه دے، بلکه مختلف جهتونه دی چه په جانب دَ معرف کښې کوم لفظ دے هغه نه مُراد لفظ لغوی دے او په تعریف کښې کوم لفظ راغلې دے، دَ هغه نه مراد لفظ اصطلاحی دے، نو جهتین مختلف شو، پس دور لازم نه شو، دویم جواب دا دے چه یتلفظ په معنیٰ دَ ینطق سره دے او س دَ لفظ په تعریف کښې څو قیودات لګوو دَ پاره دَ دفع دَ اعتراضاتو ما یتلفظ به الانسان عام دے حقیقی وی که حکمی، موضوع وی که مهمل، مفرد وی که مرکب، په جمیع احیان کښې وی که په بعض احیان کښې وی، بنوعه وی که بشخصیه وی۔ **فوائد** دَ قیودو دا دی چه دَ حقیقی وی که حکمی قید منویه دِے وجه ولګوو چه **سوال** وارد بدو، چه ستا تعریف جامع نه شو افراد ولره او خارج شو ترِے نه الفاظ منویه، یعنی هغه الفاظ چه په نیت کښې مراد وی لکه زید ضرب، زید مبتدا، ضرب فعل ضمیر په کښې مستتر دے چه "هُوَ" دے، هغه دَ دِے فاعل، نو په زید او ضرب باندې خو تلفظ اوشو، ولې په "هُوَ" نه دے شوے **جواب** مونږ دوهم قید ولګوو چه ما یتلفظ به الانسان عام دے، حقیقتاً وی او که حکماً، نو په هُوَ باندې تلفظ حکماً راغلې دے، بیا بیا بیرے **سوال** راځی چه: دا حکمی ولے دے؟ **جواب** دا دے چه دا دَ قبیلې دَ حرف او صوت نه نه دے، نو بیا بیرے **سوال** راځی چه هرکله دا دَ قبیلې دَ حرف او صوت نه نه شو، نو دے ته ولے معنیٰ نه وائے؟ **جواب** دا دے چه دَ معنیٰ دَ پاره لفظ وی او دَ دِے لفظ نشته، په دِے جواب **اعتراض** راځی چه دَ دِے دَ پاره ولے لفظ نشته؟ دا هُوَ چه دے؟ **جواب** دا دے چه دا استعمال دَ منفصل راغلې ده، دَ پاره دَ متصل۔

**درس ۱۳:** **سوال** چه منوی هرکله دَ قبیلې دَ حرف او صوت نه نه شو، نو څه دلیل دے، په دِے باندې، چه دا لفظ حکمی دے۔ **جواب** دلیل په دِے باندې استعمال کو فالو دے، هغه په دِے طور سره چه نحاتو جاری کړی دی، په دُه احکام دَ لفظ حقیقی چه دا مسند الیه واقع کیږی، مبدل منه واقع کیږی، حال دَ ده نه راځی، تاکید یې راځی، لکه اسکن انت وزوجك الجنة وغیره۔ **سوال** ستا دا تعریف جامع نه شو، افرادو لره او خارج شو ترِے نه الفاظ مهمله، ځکه چه ظاهر متبادر دَ الفاظو نه الفاظ موضوعه دی؟ **جواب** مونږ به تعریف کښې قید لګولے وو، چه موضوعه که مهمله! **سوال** ظاهر متبادر دَ الفاظو نه

---

(باقی دَ بل مخ نه)... احتمال ثلاث دے، یعنی پس دَ جعل نه په معنیٰ دَ ملفوظ نو په دِے صورت کښې به په ما بین دَ مبتدا چه الکلمة ده او په ما بین دَ خبر چه لفظ دے کښې علاقه دَ خاص او عام شی۔ ۱۲ (محمد سلیم سواتی)

الفاظ مرکبه دی، ځکه چه دا مفید دی، د پاره د فائدے، نو مفرد ترې هسه خارج شو. جواب. الفاظ عام دی، مفرد وی که مرکب سوال چه په "مایتلفظ به الانسان" سره تر کلمات الله لکه قرآن مجید شو، د هغے الفاظ خارج شو او دغه شان کلمات الملئکة، لکه دا قول د حضرت جبرئیل علیه السلام:-

ان فی الجنة نهر من لبن لعلی وحسین و حسن

لکه دا قول د یو جنی شو:-

وقبر حرب بمکان قفر ولیس قرب قبر حرب قبر

یا دا قول د جنات "تکأکأتم افرنقعوا". جواب. مونږ په تعریف کښے وئیلی دی چه په جمیع احیانو کښے وی که په بعض احیانو کښے، که بالفعل وی که یا بالقوة[1] سوال. د تعریف د لفظ نه هغه الفاظ او وتل چه محذوف وی، چه په حذف جوازی سره، نو مونږ جواب کوو چه په جمیع احیانو کښے وی که په بعض احیانو کښے وی، نو په دوی باندے اگر که په جمیع احیانو کښے تلفظ نه کیږی، لیکن په بعض احیانو کښے وباندے تلفظ کیږی. سوال چه ستا د تعریف نه هغه محذوفات خارج شول چه حذف ئے واجب، په حذف وجوبی سره. جواب. مونږ په تعریف کښے دا قید لګولے وو، چه بنوعه وی که بشخصه وی، نو محذوفات په حذف وجوبی سره، په دوی باندے اگر که تلفظ نه کیږی بشخصه، لیکن بنوعه وباندے کیږی، ځکه چه دوئ خود نوع د الفاظو نه دی. سوال. دلته په مصنف باندے دا سوال واردیږی، چه د ده د پاره مناسب وه، دا خبره چه په تعریف د لفظ کښے ئے یو قید زیات راوړے وے د پاره د دے چه هغے سره دوال اربعه د تعریف د لفظ نه خارج شوی وے، چه هغه خطوط، عقود، نصب او اشارات دی. د دے اعتراض جواب. ملا جامی ورکړے، هغه فرمائی چه اخراج د شی سبق دخول غواړی، چه یو شے داخل نه وی، نو هغه به څنګه خارجیږی، نو دلته هم دوال اربعه په تعریف د لفظ کښے داخل نه دی، نو څنګه به ئے خارجوے. سوال. کافیه خو ماخوذه د مفصل[2] نه او صاحب د مفصل تعریف د لفظ دا سے کړے دے چه، "الکلمة لفظة" او ابن حاجب[3] په ځائے د لفظة کښے لفظ راوړے دے، نو ده ولے د صاحب د مفصل نه مخالفت او کړو. جواب. صاحب مفصل د وحدة قصد کړے دے په کلمه کښے. او ابن حاجب د وحدة قصد نه دے کړے، نو فائده د اختلاف به دا شی چه عبدالله په حین د علمیت کښے مرکب دے، په نزد د صاحب مفصل او مفرد دے، په نزد د ابن حاجب باندے. بیا پرے سوال واردیږی چه لفظة د ولے ونه وے، چه موافقت راغلے وے، د

---

[1] یا جواب دا دے چه تلفظ په دے "ابتداءً" شوی وی یا ثانیاً پس کلام الله وغیره به تول ملفل شو په کښے ۱۲۰ (م.س)

[2] مفصل د علامه زمخشری تصنیف ده ۵۳۸ م.س)

صاحب دَ منفصل سره اَو بل دا چه موافقت به نشي په مابين دَ مبتدا اَو خبر کښې. **جواب** په مبتدا اَو خبر کښې مطابقت مشروط دے په خو شرائطو سره. اَوّل دا چه خبر به مشتق وي جامد به نه وي. دَوَيم دا چه مبتدا اَو خبر به دواړه اِسمين ظاهرين وي. دَرَيم دا چه په خبر کښې به ضمير وي چه راجع وي مبتدا ته. ۴: خبر به صفت خاصه دَ مؤنث نه وي. ۵: خبر به داسې نه وي چه مذکر اَو مؤنث په کښې برابر وي. ۶: خبر به اسم تفضيل مستعمل په من سره نه وي. ۷: دا چه خبر به وزن دَ فعيل[۱] په معنیٰ دَ مفعول سره نه وي اَو اَتم[۸] دا چه خبر به وزن دَ فعول[۲] په معنیٰ دَ فاعل سره نه وي، لهٰذا کښې په الكلمة لفظ کښې اوله شرط منتفي دے، لهٰذا حُکم لفظ ته اوړو. **سوال** دا پورته ذکر شوي شرطونه خو دَ باره دَ وجوب دَ مطابقت دي، لهٰذا کښې وجوباً کوم مطابقت دَ انتفاء دَ شرط دَ وجے نه نشته، لیکن احسن اَو بهتر خو دا ده چه الكلمة لفظية رتيلے وے. **جواب** بناء دَ متن په اختصار ده. دَوَيم جواب دا چه خير الكلام ما قل ودلّ.

## درس ـ ۱۴

**وُضِعَ** دا صيغه دَ فعل ماضي مجهول ده اَو قاعده دا ده چه هر کله دَ يو مشتق وضاحت اَو تشريح مطلوب وي، نو اَوّل دَ هغې دَ مشتق منه اَو دَ مصدر تحقيق اوکړي، دَ باره دَ دے چه معرفت تفصيلي حاصل شي، نو په هغې سره بيا دَ مشتق وضاحت اوشي، لهٰذا کښې دَ وضع دَ باره مشتق منه الوضع ده، نو مونږ به دَ دے نه بحث شروع کړو، پس نه کړو دا خبره چه وضع په **لغت** کښې نهادن اَو کښېښودو ته وائي اَو عربي تعريف يې دا دے جعل الشئ في حيز الشئ يعنې کښېښودل دَ يو شي په مکان دَ هغه شي کښې. **اِصطلاحي** تعريف يې دا دے چه تخصيص شئٍ بشئٍ بحيث متىٰ اطلق او احس الشئ الاول فهم منه الشئ الثاني بعد العلم بالوضع بفهم جديد لا بفهم سابق. تخصيص دَ يو شي دے په بل شي پورے په دے شان سره چه کله اطلاق وشي په شي اَوّل باندې اطلاق صحيحه يا احساس وشي دَ شي اَوّل نو فهم کيږي به دَ دے نه شي ثاني، پس دَ علم نه په وضعه باندې بے دَ فهم سابقه نه. **سوال** تخصيص شئٍ بشئٍ به خالي نه وي يا به دَ شي اَوّل نه مراد لفظ شي اَو دَ دوَيم شي نه به مراد معنیٰ شي، نو مطلب به دا شي چه تخصيص دَ لفظ په معنیٰ پورے بيا خو تِرِ نه مشترکات خارج شي ځکه چه مشترک تخصيص دَ لفظ په يو معنیٰ پورے نه وي راغلے، بلکه دَ يو لفظ دَ باره ډير معنے وي، لکه لفظ دَ عين مشو چه دَ عين کثيري معنے دي، يا به دَ شي اَوّل نه مراد معنیٰ

---

۱. نه جريح په معنیٰ دَ مجروح سره. (م.س) ۲. لکه صبور په معنیٰ دَ صابر سره. (م.س)

شی اَؤ دَ شی ثالی نه مراد لفظ شی، نو مطلب به دا شی چه تخصیص دَ معنیٰ په لفظ پورے، نو بیا خو تِرِنه مرادفات خارج شو، ځکه چه مرادف خو دِے ته وائی چه دَ ډیرو الفاظو دَ پاره یو معنیٰ راغلی وی، لکه قعود او جلوس ۔ **جواب** تخصیص په معنیٰ دَ جعل سره دے اَؤ یا په معنیٰ دَ وجود سره دے، نو اوس سوال نه پیداکیږی ۔ **سوال** اطلاق دَ ولے مقید کړو په قید صحیحه سره **جواب** دا دَ پاره دَ دفع دَ **سوال** چه ستا دا تعریف جامع نه شو، خپلو افرادو له اَؤ خارج شو ترِنه حروف ۔ ځکه چه په حروفو کله اطلاق وشی، نو بغیر دَ ضم دَ ضمیمے نه معنیٰ په فهم کښے نه راځی، نو موږ **جواب** اوکړو چه مراد دَ اطلاق نه اِطلاق صحیحه دے اَؤ دَ حرف اطلاق بغیر دَ ضم دَ ضمیمے نه صحیح نه دے اَؤ یا دا چه مراد په اطلاق سره هغه اطلاق دے چه په محاوراتو کښے استعمالیږی او په محاوراتو کښے استعمال دَ حرف بغیر دَ ضم دَ ضمیمے نه نه کیږی ۔ **سوال** په تعریف دَ وضع کښے دَ قید دَ بعد العلم بالوضع، ولے اولګولو؟ **جواب** دا دَ پاره دَ دفعے دَ سوال ۔ **سوال** هغه دا چه ډیر ځله اطلاق په یو شی باندِ اوشی او نو فهم دَ شی ثالی، چه معنیٰ ده هغه راته شی. مثلاً یو جاهل باللغة ته چه څوک خبرہ اوکړے شی، نو هغه ته خالی هیئت اَؤ صوت دَ لفظ حِس شی، لیکن معنیٰ به نه فهم کیږی؟ نو معنیٰ **جواب** اوکړو چه مراد په فهم سره پس دَ علم نه دے په وضع باندِ ۔ **سوال** په تعریف دَ وضع کښے دِ قید دَ بے دَ فهم سابقه ولے کښېښودو ۔ **جواب** دا دے چه دا دَ پاره دَ دفع دَ سوال ۔ **سوال** دا وارد یږی چه ستا دَ تعریف نه اطلاق ثالی خارج شو، ځکه چه فهم دَ معنیٰ خو په اطلاق اَوّل سره راغلے وی، لکه ته اووائے جاءنی زیدٌ زیدٌ، نو دلته کښے زید ثالی ترِنه خارج شو ۔ **جواب** دا دے چه بے دَ فهم سابقه نه مراد فهم جدید دے په اوځت باندِ ۔ **سوال** وارد یږی چه اَوْ دَ پاره دَ تشکیک راځی اَؤ دا خو مقام دَ تعریف دے اَؤ مقام دَ تعریف محل دَ تشکیک نه وی، بلکه تعریف یقین پیدا کوی اَؤ دا منافی دے دَ شک سره ۔ **جواب** اَوْ په دوه قسمه دے ۔ یو راځی دَ پاره دَ تنویع اَؤ بل راځی دَ پاره دَ تشکیک دلته کښے ترِنه اَوّل مراد دے ۔

## درس ۱۵ :

دَ دے نه پس [illegible] دا خبره چه وضع په دوه قسمه ده، یو وضع نوعی بله وضع شخصی ۔ وضع نوعی هغه ده، چه په جانب دَ لفظ کښے لحاظ دَ مفهوم کلی کړے شوے وی، اَؤ وضع شخصی هغه ته وائی چه په جانب دَ لفظ کښے لحاظ دَ مفهوم کلی نه وی ۔ وضع نوعی په دوه قسمه ده، یو وضع نوعی ده، په حقائقو کښے او بله وضع نوعی ده، په مجازاتو کښے ۔ وضع شخصی هم په دوه قسمه ده، یو عامه ده، بله خاصه ده ۔ عامه هغه ده چه په جانب دَ معنیٰ کښے لحاظ دَ مفهوم کلی وی اَؤ خاصه هغه ته وائی چه په جانب دَ معنیٰ کښے لحاظ دَ مفهوم کلی نه وی ۔ دغه شان موضوع لهٗ هم په

دوه قسمه دي. يو عام دي او بل خاص دي. موضوع لهٔ عام هغه دي چه دلالت کوي په کثير بما هو کثير باندې او موضوع له خاص هغه دي، چه کثير بما هو واحد او يا واحد بما هو واحد باندې دلالت کوي، پس دَ دې نه مجموعه څلور اقسام حاصل شول، يو وضع عامه موضوع له عام هغه دي چه وضع دَ لفظ شوې وي دَ پاره دَ کثير بما هو کثير په لحاظ دَ مفهوم کلي سره، لکه جموع دَ ضمائرو او دَ اسمائے اشاراتو او وضع عامه موضوع له خاص. چه وضع دَ لفظ شوې وي دَ پاره دَ کثير بما هو واحد په لحاظ دَ مفهوم کلي سره، لکه مفردات دَ ضمائرو او دَ اسمائے اشاراتو او وضع خاصه موضوع له خاص چه وضع دَ لفظ شوې وي دَ پاره دَ واحد بما هو واحد بے دَ لحاظ دَ مفهوم کلي نه، لکه لفظ دَ زيد شو، يعنې دلالت په ذات دَ زيد شو دَ زيد. دلته کښې وضع هم خاصه ده او موضوع له هم خاص دے او وضعه خاصه موضوع له عام چه وضع دَ لفظ شوې وي دَ پاره دَ کثير بما هو کثير بے دَ لحاظ دَ مفهوم کلي نه. دلته وضع خاصه ده، ځکه چه لحاظ دَ مفهوم نهٔ دے راغلے او موضوع له عام دے ځکه چه کثير بما هو کثير دے او دا قسم مجرد احتمال عقلي دے، مثال ورله نشته.[ك]

## درس ۱٦

**لِمَعْنًى** معنىٰ دَ عنى يعنى نه وتے دے په معنى دَ قصد سره راځي **او په اصطلاح** کښې ما يتعلق به القصد عن الغير يا ما يقصد بالشيئ ته وائي، يعنې چه په شي دَ څه نه قصد شي. **سوال** چه معنىٰ به يا مصدر ميمي وائے او يا به صيغه دَ ظرف وائے که صيغه دَ مصدر ميمي شي، نو معنىٰ به دا شي چه کلمه دا يو لفظ دے، چه وضع شوې دے دَ پاره دَ قصد کولو او که چرته صيغه دَ ظرف شي، نو معنىٰ به دا شي چه کلمه دا يو لفظ دے چه وضع شوې دے دَ پاره دَ ځائے يا دَ زمانے دَ قصد او دا دواړه معنے غير صحيح دي. **جواب** دا صيغه دَ ظرف ده او په معنىٰ دَ مفعول باندې ده، بيا ور باندې **سوال** وارديږي چه په مابين دَ ظرف او دَ مفعول کښې څه علاقه ده؟ **جواب** دا دے چه دا دواړه دَ متعلقاتو دَ فعل نه دي او

---

ك.



دویم احتمال دا دے چه دا صیغه دَ مصدر ده اَوْ په معنیٰ دَ مفعول باندِ ده. بیا هم باندِ **سوال** راځی چه دَ دوی په مابین کښے څهٔ علاقه ده؟ **جواب** دا دے چه دَ دوی په مابین کښے دوه علاقے دی. یو دَ مشتق مشتق منه دے ځکه دَ کلیت اَوْ دَ جزئیت دریم احتمال دا دے، چه خودَ معنی صیغه دَ اسم مفعول ده، ځکه چه دا په اصل کښے معنوی په وزن دَ مفعول وه، په معنوی کښے واؤ اَوْ یا جمع شو. واؤ معنوی په یاء باندِ بدل کړو. اَوْ یاء په یاء کښے مدغم شوه، بیا دا ضمه دَ نون دَ یاء دَ مناسبت نه په کسره بدله شوه، نو معنیٌ شو، نو بیا دا کسره خلاف القیاس په فتح باندِ بدله کړے شوه، بیا دا یوه یاء دَ پاره دَ تخفیف خلاف القیاس حذف کړے شوه، نو معنیٰ شوه. **سوال** ذکر دَ معنے پس دَ وضع نه مستدرک (یعنی بے فائدے دے) ځکه چه دَ وضع په مفهوم کښے معنیٰ موجود ده.

**جواب** په وضع کښے تجرید کړے شوے دے اَوْ تجرید خالی کول دَ لفظ دے، دَ دخیل بعض معنیٰ نه، مثلاً په دے آیت شریف کښے "سبحان الذی اسری بعبده لیلاً من المسجد الحرام" اسریٰ السیر فی اللیل" یعنی دَ شپے سفر ته وائی، نو په دے کښے دَ ذکر دَ شپے راغلے دے، لیکن چه هر کله ورسره روستو ذکر دَ لیلاً راغے، نو په دے کښے تجرید اوکړے شو، چه اوس اسریٰ صرف په معنیٰ دَ تللو اَوْ دَ سیر کولو سره دے. بیا **سوال** واردیږی چه دَ لفظ راوړلو ته هم ضرورت نشته، ځکه چه دَ وضع په مفهوم کښے لفظ موجود دے. په تخصیص شئ بشئ کښے دَ یو شی نه لفظ مراد دے اَوْ دَ بل نه معنیٰ، نو چه څنګه په تجرید سره تا معنیٰ دَ وضع نه خارجه کړه، نو دغه رنګه لفظ هم خارج کړه. **جواب** دا دے چه په وضع کښے تجرید ثانیاً شوے دے، چه لفظ هم ترے خارج شو.

**سوال** بیا دَ لفظ ذکر کولو ته څهٔ ضرورت دے؟ **جواب** په تعریف کښے لابدی وی دَ جنس اَوْ دَ فصل نه، نو لفظ[1] ئے ذکر کړو، دا په منزله دَ جنس دے، تمام الفاظ په دے کښے داخل شو، په وضع فصل سره ترِ نه الفاظ مهمله خارج شو، په لمعنیٌ فصل سره ترِ حروف هجاء خارج شو، چه هغه وضع شوی دی دَ پاره دَ ترکیب. **سوال** چه هر کله وضع دَ حروف هجاء دَ پاره دَ ترکیب راغلی ده، نو دا دَ دے معنیٰ شو، ځکه دَ دے نه قصد هم دغه ترکیب دے. **جواب** دا ترِ نه خارج شو، ځکه چه موږ ویلی وو چه کله په دے اطلاق اوشی، نو معنیٰ به ترِ نه فهم کیږی اَوْ په حروف هجاء باندِ چه کله اطلاق اوشی، نو دا معنیٰ ترِ نه فهم کیږی، چه وضع دَ دوی دَ پاره دَ ترکیب راغلی ده. **سوال** ستا دا تعریف دَ معنیٰ جامع نهٔ شو افرادو خپلو له، اَوْ خارج شو ترِ نه هغه الفاظ چه وضع شوی وی، دَ پاره دَ الفاظو، لکه اسم. مثلاً وضع دے دَ پاره دَ زیدٌ اَوْ فعل، مثلاً وضع.

---

[1] ... دَ قاعدے مطابق واؤ په یا بدل شو - م.س.

دي د ېزه د ضرب او حرف وضع دے د پاره د مِنْ۔ **جواب** دلته د معنٰی نه مراد مایتعلق به القصد عن الغیر یا مایقصد به الشئ دے، نو په دے کښې قصد عام دے چې لفظ وي او که معنٰی۔

**درس نمبر ۱۰:- سوال** تعریف د کلمې جامع نه شو، خپلو افرادو لره، ځکه چه واحد چه کلمه هغه لفظ دے چه وضع شوې وي د پاره د معنٰی مفرد، نو د دے نه هغه الفاظ خارج شو چه وي مفرد لیکن په معنٰی مرکب باندې دلالت کوي، لکه جمله او کلام شو۔ **جواب** مثلاً لکه زیدٌ قائمٌ دا جمله یا کلام دے، نو دے لره دوه اعتباره دي. یو اعتبار د نسبت د دے دے خپل نفس ته او دویم اعتبار د نسبت د دے دے هغه لفظ ته چه دال دے په دے باندې نو که چرته لعتبار د دے خپل نفس ته واخلې بیا خو مرکب دے او چه اعتبار ئې هغه لفظ ته واخلو چه دال دے، په دے باندې، نو بیا مفرد دے۔ دویم **جواب** د اصل سوال دا دے، چه دا خبره مونږه نه منو، چه بعض الفاظ وضع شوي دي په مقابله د الفاظو کښې، برابره خبره ده چه مفرد وي او که مرکب، بلکه دا وضع شوي دي د پاره د مفهوم کلي۔ په دے جواب باندې **سوال** واردیږي چه ستا دا قاعده منقوضه شوه، په ضمائرو باندې او اسمائے اشارالو باندې، ځکه چه دوئ وضع شوي نه دي، د پاره د مفهوم کلي، بلکه دوئ دلالت کوي په جزئیاتو متعددو متعینه باندې۔ **جواب** په ضمائرو او په اسمائے اِشارالو کښې دوه مذهبه دي. یو د متقدمینو او بل د متأخرینو--------

د متقدمینو مذهب دا دے چه ضمائر او اسمائے اِشارات وضع شوي دي د پاره د مفهوم کلي، لیکن په شرط د استعمال، د دے په جزئیاتو کښې او د متأخرینو په نزد باندې وضع د دوئ د پاره د جزئیاتو متعدده وده، لیکن سره د لحاظ د مفهوم کلي نه، نو دلته کښې جواب د مصنف بنا دے په منصب د متقدمینو باندې، ځکه چه دا راجح او قوي دے۔ **مفردٌ** مفرد به **لغت** کښې فرد او تنها ته وئیلې شي او دا په درې معنو باندې استعمالیږي، یو په معنٰی د هغه راځي، چه راغلې دي، په مقابله د تثنیه او د جمع کښې او بل په مقابله د مضاف او د شبهه مضاف کښې راځي۔ دریم په مقابله د جمله کښې راځي او خلورم په معنٰی د هغه باندې چه جزء د لفظ دلالت نه کوي، په جزء د معنٰی باندې، لیکن دلته دا خلورمه معنٰی مراد ده [1]۔

---

[1]. لسناد صیب چه دا خلورم قسم د مفرد ذکر کړو، په دے کښې اشاره ده. دے خبرے ته چه دا قسم مفرد مقابل د مرکب دے او مرکب هغه ته وائي چه قصد کړے شي په جزء د لفظ د ده سره دلالت په جزء د معنٰی مقصود باندې، پس لابدي شوه، په مرکب کښې د معرفت د امور خمسه ته - [1]، چه لفظ لره جزء وي۔ [2]، چه معنٰی لره هم جزء وي۔ [3]، جزء د لفظ دِ دال وي په جزء د معنٰی باندې۔ [4]: جزء د معنٰی دِ جزء د معنٰی (...) ...

په **مُفرد** کښې په اعتبار دَ اعراب سره درې وجې دي اَو هغه ټولې صحیح دي۔ مرفوع هُم صحیح دے، منصوب اَؤ مجرور هُم صحیح دي، که چرته مفردٌ مرفوع شي، نو دا به دَ لفظ دَ پاره صفت شي اَو که چرې مفردٍ مجرور شي، نو دا به دَ معنیٰ دَ پاره صفت شي، ځکه چه هغه هُم مجرور دے، نو دے به هُم مجرور شي۔------ **سوال** په مابین دَ معروف اَو صفت کښې مطابقت ضروري دے اَو دلته کښې مطابقت نشته، په مابین دَ معنیً اَو دَ مفرد کښې، ځکه چه معنیً مجرور نه دے۔ **جواب** دا دے، چه معنیً تقدیراً مجرور دے اَو لفظاً مجرور نه دے اَو که چرے دا منصوب شي، یعنی مفرداً، نو بیا به حال واقع شي، دَ وضع دَ ضمیر نه اَو یا به منصوب شي، بنا بر مفعولیت اَو اعني فعل به دے له مقدر راوړ باسو۔

**درس نمبر ۱۸:۔** اوس په دے برخه وايد اعرابالترکیب تفصیل دا مقام دا دے چه مفردٌ مرفوع شي بنا بر صفت دَ پاره دَ لفظٌ اَو عبارت داسے شي چه الکلمة لفظٌ مفردٌ۔

**سوال** څهٔ نکته ده په دے خبره کښې چه وضع لمعنیٰ صفت اَوّل دے دَ پاره دَ لفظٌ دا یې ولے مقدم کړې په مفرد باندِ اَو بیا څهٔ نکته ده په دے کښې چه بې صفت یې جُمله راوړلو اَو بل مفرد **جواب** مصنف رح وضع لمعنیٰ صفت مقدم کړو په مفردٌ باندِ، دَ پاره دَ اشارت۔ دے خبرے ته چه وضع مقدم وي په افراد اَو ترکیب باندِ طبعاً، نو وضع لمعنیٰ یې مقدم کړو په مفرد، چه

(باقي دَ بل مخ نه)...

مقصود دے وي۔ ۵: دلالت دَ جزء دَ لفظ وي په دغه جزءِ دَ معنیٰ مقصود دے باندِ هُم مقصود وي، لکه رامي الحجارة شپهٔ دَ رامي معنیٰ ذات من له الرمي، ده اَو دَ الحجارة معنیٰ ده ذات من له الصعوبة ده، پس هرکله چه یو په اورخسے وکښې منتهي شي، دا به نه وي یکه مفرد۔ مفرد دے ته وائي چه نه شي قصد کولے په جزء دَ لفظ دَ هغه سره دلالت په جزء دَ معنیٰ مقصود باندِ۔

فائده:۔ معلومه دِ شي تاته دا خبره چه په انتقاد دَ یو دَ اور پنځو مذکورو سره به مفرد کښې پنځهٔ صورتونه جوړیږي، یو دا چه لفظ لره جزء نه وي، اصلاً، لکه همزه دَ استفهام۔ دویم دا چه لفظ لره جزء وي، لیکن معنیٰ لره جزء نه وي، لکه لفظ دَ نقطے شوے۔ دریم دا چه لفظ لره جزء وي اَو معنیٰ لره هُم جزء وي، لیکن جزء دَ لفظ یې دال نه وي په جزء دَ معنیٰ باندِ، لکه لفظ دَ زید شوے چه 'ز' په حیوان دلالت نه کوي 'ی' په ناطق دلالت نه کوي اَو 'د' په تشخص دلالت نه کوي۔ څلورم دا چه لفظ لره هُم جزء وي اَو معنیٰ لره یې هُم جزء وي اَو جزء دَ لفظ یې دال وي، په جزء دَ معنیٰ باندِ لیکن دغه جزء دَ معنیٰ جزء دَ معنیٰ مقصود دے نه وي، لکه عبدالله علماً شوے۔ پنځم دا چه لفظ لره جزء وي اَو معنیٰ لره هُم جزء وي اَو جزء دَ لفظ یې دال وي، په جزء دَ معنیٰ باندِ اَو دغه جزء دَ معنیٰ مقصود دے وي، لیکن دلالت پرے مقصود نه وي، لکه حیوان ناطق علماً شوے دَ پاره دَ یو شخص انساني۔۱۲۔(محمد سلیم حقاني)

موافقت دَ وضعِ دَ طبع سره راشی اَوْ وضع لمعنیً ئې جُمله راوړله په په دې کښې اشارت دے. دِې خبرے ته چه وضع متقدمه په طبع بانډې په دې وجه ئې صیغه دَ ماضی راوړله.[1]

**سوال** چه هَر کله مفردٌ صفت شی دَ پاره دَ لفظ، نو په دغه وخت کښې فصل راځي، په اجنبي سره په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښې. **جواب** وضع لمعنیً فصل په اجنبي سره نهٔ دے، ځکه چه داد متعلقاتو دَ شی نهٔ دے اَوْ دَ مفردٌ دَ رفع دَ پاره بله وجه دا ده، چه دا خبر دے دَ پاره دَ مبتداً محذوف، چه هغه هُوَ دے، ای هُوَ مفردٌ اَوْ کله چرے دا موږ منصوب اووایو نو دا به حال واقع شی دَ معنے نه بیا. **سوال** وارد یږی چه منصوب وئیل ئې نهٔ دی صحیح، ځکه چه دا مخالف دے دَ رسم الخط نه، ځکه چه دَ دے په آخر کښې الف نهٔ دے راغلے اَوْ حالانکه دلته کښې دَ منصوب په صورت کښې لیکل په کار وو، لکه ضربت زیداً کښې دَ زید په آخر کښې الف راغلے دے، نو چه هر کله دَ دے په آخر کښې الف را نغے، دَ دے نه پته اولګیده، چه دا منصوب نه دے۔

**جواب** دا دے چه مخالفت ئې دَ رسم الخط نه هله راتلو چه دلته کښې نصب یقیني وے، دلته کښې نصب احتمالی دے۔ دوئیمه وجه دا ده چه الف دَ لیکلو دَ پاره څو شروط دی:-

اَوَّل دا چه دا نصب دِ یقیني اَوْ متعین وی۔ دوئیم دا چه هغه کلمه دِ مضاف نهٔ وی۔ ۳: معرف باللام دِ نهٔ وی۔ ۴: تاءِ تانیث دِ په کښې نهٔ وی۔ ۵: هغه الف دِ بدل دَ باء نه نهٔ وی، لکه رضیً ——— دلته کښې شرط اَوَّل منتفی دے، په دې وجه ئې الف نهٔ دے لیکلے۔ **سوال** چه مفرداً حال دَ لمعنیً نه نهٔ شی واقع کیدے، ځکه چه حال وئیلے کیږی۔ مایبیّن هیئة الفاعل او المفعول بهٖ او کلیهما ته. یعنی ذوالحال یا فاعل وی اَوْ یا مفعول وی او لمعنیً نه فاعل دے اَوْ نه مفعول۔ **جواب**. مفعول په دوه قسمه دے، یو مفعول بالذات اَوْ بل مفعول بالواسطة، نو لمعنی الحرکة مفعول بالذات نهٔ دے، لیکن مفعول بالواسطه دے ځکه چه دا جار مجرور دے اَوْ جار مجرور بالواسطه مفعول وی۔ بیا وړ باندې **سوال** وارد یږی چه دلته کښې دَ حال مقدم کول په کار وو، په ذوالحال باندې، ځکه چه ذوالحال نکره ده اَوْ چه کله ذوالحال نکره وی، نو واجب دے تقدیم دَ حال په ذوالحال باندې۔ **جواب** تقدیم دَ حال په ذوالحال باندې په هغه وخت کښې واجب دے، چه ذوالحال مجرور نه وی اَوْ کله چرته ذوالحال مجرور وی، نو بیا لازم نهٔ دے ځکه چه په هغه وخت کښې بیا تقدیم دَ مجرور راځي په جار باندې اَوْ دا ناجائز دے اَوْ یا مفرداً بنا بر نصب حال دے دَ مفعول نه چه په وضع کښې دے ـــ

---

[1] - یعنی ماضی هُم مقدمه وی۔ ۱۲. م.س.

**سوال** په مابین دَحال اَوْ دَ ذوالحال کښې مقارنت ضروری دے اَوْ دلته کښې مقارنت نشته دے ځکه چه وضع مقدمه ده په افراد اَوْ په ترکیب باندې۔ **جواب** مقارنت په دوه قسمه دے، یو مقارنت ذاتی، بل مقارنت زمانی، دلته اګرکه مقارنت ذاتی نشته دے لیکن مقارنت زمانی خو شته اَو هم دومره مقارنت کافی دے دَ پاره دَ صحت دَ حالیه۔ دَ مثال په طور لکه دَ لاس حرکت مقدم وی، دَ قلم په حرکت باندې۔ لیکن چه کله لاس حرکت اوکړی، نو قلم هم ورسره یو ځائے حرکت اوکړی۔ **تنبیه** وجه دا ده چه مفرد مجرور شی، دا به صفت واقع شی دَ پاره دَ معنی، هغه مجرور دے دا به هم مجرور شی۔ **سوال** معنی خو مجرور نه دے، بلکه منصوب دے۔ **جواب**. دا اګرکه ظاهراً مجرور نه دے، لیکن تقدیراً مجرور دے۔ **سوال** مفرد صفت دَ پاره دَ معنی نه صحیح کیږی ځکه چه په دغه وخت کښې به دا توهم پیدا شی، چه ګنی افراد اَوْ ترکیب دا مقدم دی په وضع باندې اَوْ هغه دا چه اتصاف دَ یو موصوف په یو صفت باندې یا مقید کول دَ یو شی په یو قید سره چه دَ هغې تعلق دَ معنی مصدری سره وی، نو دَ هغې نه دا معلومیږی چه هغه قید یا هغه صفت به مقدم وی په معنی مصدری باندې، لکه جائنی زیدٌ راکباً. یا مررت برجل عالم، نو دلته کښې زید مقید دے، په قید دَ رکوب سره، یا رجل متصف دے په قید دَ علم سره، نو رکوب په اولنی مثال کښې اَوْ علم په دویم مثال کښې دا مقدم دے، په مجیئت اَوْ په مرور باندې، نو دغه شان دلته کښې هم بنا په دې قاعدے باندې افراد اَوْ ترکیب به مقدم اوګرځی، په وضع باندې اَوْ حالانکه وضع مقدم ده۔ **جواب** دا بنا دے په اعتبار دَ ما یوول الیه باندې یعنی په اعتبار دَ مآل اَوْ دَ انجام باندې، لکه په حدیث شریف کښې راغلی دی، مَنْ قَتَلَ قَتِيلاً فَلَهُ سَلَبُهُ.[ل]

**درس نمبر ۱۹:- سوال** تعریف دَ کلمې جامع نه شو، افرادو خپلو له اَوْ خارج شو تری نه بعض اسماء. چه اَلرَّجُلُ. بصریٌ اَوْ قائمةٌ دی ځکه چه جزء دَ لفظ دلالت کوی، په جزء دَ معنی باندې اَوْ مفرد دے په دې دلیل سره، چه تعریف یے راغلی دے، په اعراب واحده سره۔ **جواب** دَ دوی په خروج کښې څه ضرر نشته دے، ځکه چه دَ دوی معنی مفرد نه ده اَوْ هم چه دا خبره چه تعریف دَ دوی راغلی دے په اعراب واحده باندې، نو دا دَ یو کلمې دَ بلې کلمې سره دَ وجه دَ شدة امتزاج نه، یعنی دَ دوی په مابین کښې شدة اتصال اَوْ امتزاج دے اَوْ دلته کښې جزء دَ لفظ دلالت کوی په جزء دَ معنی باندې، په دې شان سره چه

---

ل۔ لسکنصاحب په دې مقام کښې بالکل مثال طلباؤ ته وئیلې وو هغه دا چه دَ افراد تعلق دَ وضع سره دے نو دا په لحاظ مآل سره مقدم دے په وضع باندې لکه مثال یے دا دے چه یو طالب مولانا صاحب وئیل دا په اعتبار دَ ما یوول الیه باندې۔ (م۔س)

الرجل کښې الف لام ځان له کلمه ده، او رجل ځان له کلمه ده دواړه ځان ځان له په معنیٰ باندې دلالت کوي او په قائمةٌ کښې قائم ځان له کلمه ده مستقله او "ة" ځان له په خپله معنیٰ دلالت کوي او په بصريٌ کښې بصرٌ ځان له کلمه ده چه مشهور ښار دے او "ي" نسبتيه په کښې راغلې ده چه په خپله معنیٰ باندې دلالت کوي، نو داخارج شو د تعريف نه. **سوال** تعریف د کلمې مانع نه شو، د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې عبدالله په حین د علمیت کښې ځکه چه دا خو په حین د علمیت کښې مفرد دے ځکه چه جزء د لفظ دلالت نه کوي په جزء د معنیٰ مقصود باندې لیکن تعریف ئې راغلے دے په اعرابین سره او دا دلیل د ترکیب دے. **جواب** دا دے که څه هم دا په تعریف د کلمې کښې داخل شو، نو څه ضرر نشته دے ځکه چه دا کلمه واحده ده په حین د علمیت کښې او هم چه دے تعریف د دے په اعرابین سره، نو معتبر په اعلام منقوله کښې اوضاع سابقه دي، چه هر کله الرجل او امثال د دۀ د تعریف نه خارج کړے شو او عبدالله په حین د علمیت کښې داخل کړے شو په تعریف د کلمې کښې، نو اوس **سوال** وارد شو چه مناسب دا وو چه الرجل ئې داخل کړے وے په تعریف د کلمې کښې او عبدالله ئې خارج کړے وے د تعریف د کلمې نه، ځکه چه نحویان د الفاظو نه بحث کوي او په اعتبار د لفظ سره الرجل وغیره مفرد دي او په اعتبار د لفظ سره عبدالله مرکب دے. **جواب** دا دے چه نحویان بحث کوي د الفاظو نه، لیکن سره د لحاظ د معنیٰ نه، یعنی د افراد او د ترکیب د معنیٰ لحاظ به هم ساتي، نو چه هر کله ئې په تعریف د کلمې کښې د افراد اعتبار اوکړو او عبدالله په حین د علمیت کښې په اعتبار د معنیٰ سره مفرد وو نو په دې وجه ئې دے داخل کړو په تعریف کښې او هم چه الرجل او امثال د دې، نو دا مرکب وو په اعتبار د معنیٰ سره، نو ځکه ئې خارج کړل. **سوال** کافیه مأخوذ ده د مفصل نه او په مفصل کښې صاحب د مفصل وائي چه "الکلمة هي اللفظة الدالة" یعنې هغه په تعریف د کلمې کښې دلالت معتبر کړے دے، نو ابن حاجبؒ ولې په تعریف د کلمې کښې دلالت رانۀ وړو؟.

**جواب** دا دے چه مصنفؒ دلته په تعریف د کلمې کښې وضع ذکر کړې ده او وضع مستلزم ده دلالت سره، نو ذکر د دلالت ته، بس د وضع نه هیڅ ضرورت نشته. **سوال** صاحب د مفصل چه کله دلالت ذکر کړو، نو د وضع ذکر کولو ته هم ضرورت نۀ وو، ځکه چه څنګه وضع مستلزم ده دلالت لره، نو د غه شان دلالت هم مستلزم دے وضع لره. **جواب** وضع خو مستلزم ده دلالت لره لیکن دلالت نه دے مستلزم وضع لره، لکه په صورة د دلالت طبعي او عقلي کښې چه دلالت خو شته، لیکن وضع په کښې نشته. اوس په تعریف د کلمې باندې یو عمومي **اعتراض** وارد یږي، هغه دا چه کلمه به خالي نۀ وي یا به معلومه وي یا به مجهوله وي، که څرے داوه

وي، نو تعریف نه یې ضرورت نشته، ځکه چې لازمیږي، تحصیل دَ حاصل اَوْ دا محال دے۔ که چرې دالي چه مجهوله ده، نو بیا لازمیږي طلب اَوْ تعریف دَ مجهول مطلق اَوْ دا هُم محال دے۔ **جواب** دا دے چه کلمه نهٔ من کل الوجوه معلومه ده اَوْ نهٔ من کل الوجوه مجهوله ده، بلکه من جمله معلومه ده، چه من جمله معلومه شوه، نو طلب دَ مجهول مطلق رالغلو اَوْ من جمله مجهوله ده چه من جمله مجهوله شوه نو په تعریف سره یې تحصیل دَ حاصل رالنغ۔ اوس ره کوو داخبره چه چه هر یو تعریف کښې لابدی وي دَ جنس اَوْ دَ فصل نه، نو په تعریف دَ کلمے کښې لفظٌ جنس دے، تمام الفاظ ته شامل دے، چه مفرد دے کهٔ مرکب دے، موضوع دے کهٔ مهمل دے ومعنیٰ لَوْ وضع ورلره اول فصل دے چه په دے سره ترنه مهملات اووتل، اَوْ دَرِیم فصل لمعنیٰ چه خارج شو تري هغه نه په دے سره حُرُوف هجاء، اَوْ دَرِیم فصل مفرد چه خارج شو په دے سره مرکبات۔

## درس نمبر ۲۰

## تركيب الكلمة لفظ وضع لمعنى مفرد!

على الوجوه الثلاثه. التركيب على تقدير مفردٌ. الكلمة مبتدا، لفظ موصوف وضع صيغه دَ فعل ماضي مجهول ضمير په کښې مستتر هغه یې نائب فاعل چه راجع دے لفظ وته، لام جار معنیٰ مجرور، جار سره دَ خپل مجرور نه دا متعلق شو په وضع پورے فعل سره دَ نائب فاعل اَوْ دَ متعلق نه دا شبه جمله صفت اول شو دَ پاره دَ لفظ اَوْ مفردٌ۔ دا صفت ثاني موصوف سره دَ صفتين نه دا خبر شو دَ پاره دَ مبتدا مبتدا سره دَ خبر نه جمله اسميه اَوْ یا دَ الكلمة مبتدا وضع لمعنىٰ حسب سابق. صفت اوّل مفردٌ دا خبر شو دَ مبتدا محذوف چه دَ هُوَ دے، هُوَ مبتدا لفظ خبر مبتدا سره دَ خبر نه جمله اِسميه صفت ثالي شو دَ پاره دَ لفظ مبتدا سره دَ خبر نه جمله اِسميه شوه۔ **التركيب على تقدير مفردًا.** الكلمة مبتدا لفظٌ موصوف وضع فعل ماضي مجهول ضمير په کښې مستتر چه هغه یې نائب فاعل، لام جار معنیٰ ذوالحال، اَوْ مفردًا یې حال۔ ذوالحال سره دَ حال نه دا مجرور شو دَ جار، جار سره مجرور نه متعلق شو په وضع پورے۔ فعل سره دَ نائب فاعل اَوْ متعلق نه دا صفت شو دَ پاره دَ لفظ موصوف سره دَ صفت نه دا خبر شو دَ الكلمة دَ پاره۔ مبتدا سره دَ خبر نه جُملهِ اِسميه اَوْ یا دا چه الكلمة مبتدا لفظ موصوف وضع فعل ماضي مجهول ضمير په کښې مستتر هغه ذوالحال اَوْ مفردًا ورلره حال ذوالحال سره دَ حال نه دا نائب فاعل شو اَوْ لام جار معنیٰ مجرور۔ جار سره دَ مجرور نه متعلق شو په وضع پورے۔ فعل سره دَ نائب فاعل اَوْ متعلق نه دا شبه جُمله صفت شو دَ پاره دَ لفظ موصوف سره دَ صفت نه دا خبر شو، دَ مبتدا۔ مبتدا سره دَ خبر نه جُمله اِسـ...

اَوْ یا دا چه مفرداً دا مفعول دے دَ پاره دَ فعل محذوفه چه اعنی دے۔ فعل سره دَ فاعل اَوْ مفعول
بِهٖ نه دا صفت ثانی شو دَ پاره دَ لفظ۔ موصوف سره دَ صفتونو نه دا خبر شو دَ مبتداء۔ **التركيب**
على تقدير مفرد۔ الكلمة مبتداء لفظٌ موصوف وضع فعل ماضی مجهول ضمیر په کښې مستتر هغه
یٔ نائب فاعل لام جار معنٰی موصوف اَوْ مفرد صفت، موصوف سره دَ صفت نه مجرور دَ جار
جار سره دَ مجرور نه متعلق شو په وضع پورے، باقی ترکیب حسب مامرٌ۔

## درس نمبر ۲۱

**وهى إسمٌ وفعلٌ وحرفٌ** ۔ ترجمه۔ اَوْ دا کلمه په اعتبار دَ مفهوم خپل
سره منقسمه ده اقسام ثلثه ته چه هغه اسم فعل اَوْ حرف دے۔ په دے مقام کښې دَ څو الفاظو
پېژندل ضروری دی چه هغه تقسیم، مقسم، قسم اَوْ قسیم دی، نو تقسیم په لغت کښې احداث
الكثرة فى الوحدة ته وائی اَوْ په اصطلاح کښې ضم دَ قیودو مختلفو دے یو امر مشترک ته دَ
پاره دَ دے چه حاصل شی په ضم کولو دَ هر قید سره قسم علٰحدة، یعنی قسم آخر ——
قسم او قسیم شی لمبر مشترک ته سره دَ قید نه —— قسیم و بیلے شی امر مشترک ته سره دَ قید نه
په نسبت سره بل ته —— مقسم امر مشترک ته وائی، مثال بهٔ یٔ داسے شی، چه کلمه دا
یو امر مشترک دے، چه ضم دَ قید دَ عدم استقلال ورسره راشی، نو یو قسم ترے نه پیدا شو، چه هغه
حرف دے، چه قید دَ استقلال اَوْ دَ اقتران ورسره ضم کړے شی، بل قسم ترے پیدا شو، چه هغه فعل
دے اَوْ بیا چه قید دَ استقلال اَوْ دَ عدم اقتران ضم کړے شی، نو دریم قسم ترے پیدا شو چه هغه
اسم دے، نسبت په مابین دَ قسم اَوْ مقسم کښې دَ عموم خصوص مطلق دے، ځکه چه مقسم په
خپلو ټولو اقسامو باندې حمل کیږی، په کلی طور سره۔ داسے مونږ ویلے شو، چه الاسم کلمةٌ۔ الفعل
كلمةٌ۔ الحرف كلمةٌ یا ورسره کل اوګورو، چه کل اسم کلمة۔ الخ، نو خلاصه دا شوه چه قسم خاص مطلق
اَوْ مقسم عام مطلق دے اَوْ نسبت په مابین دَ قسیمونو کښې دَ تباین دے، یعنی دواړه په یو بل
باندې نهٔ حمل کیږی، لکه حرف په فعل باندې نهٔ حمل کیږی، اسم په فعل نهٔ حمل کیږی، اسم
په حرف اَوْ حرف په اسم نه حمل کیږی۔ **سوال** ضمیر چه کله راګرځی په مابین دَ مرجع اَوْ دَ
خبر کښې، نو رعایت دَ خبر اولٰی وی، نو په کار ده چه داسے یٔ ویلے وے چه وهو اسم وفعل وحرف
**جواب**۔ هی مبتداء ده لَوْ دَ دے دَ پاره خبر محذوف دے۔ چه هغه منقسمٌ دے۔ اے
وهى منقسمة الى ثلاثة اقسام منحصرة فيها۔ **سوال**۔ هر کله چه خبر دَ هی منقسمة شوه،
نو دا اسمٌ وفعلٌ وحرفٌ ولے مرفوع دی۔ **جواب** هر واحد دَ اسم فعل اَوْ حرف نه
خبر دے اَوْ مبتداء دَ هر واحد محذوف ده، اے احدها اسم وثانيها فعل وثالثها حرفٌ۔

**سوال**. دا هی ضمیر به خالی نه وی یا به یې راجع کوی لفظ د کلمې ته اَو یا مفهوم د کلمې ته، که لفظ ته یې راجع کوے، نو مطابقت خو به راشی، په مابین د راجع اَو د مرجع کښې[1]. لکن تقسیم به درے وارو اقسامو ته نه صحیح کیږی[2]. اَو صرف د اِسم حمل به لفظاً صحیح شی اَو که راجع کوے یې مفهوم د کلمې ته، نو تقسیم خو به صحیح شی، خو مطابقت نه راځی، په مابین د راجع اَو د مرجع کښې، ځکه چه مفهوم مذکر دے اَو هی ضمیر د مؤنث دے. **جواب**. دا هی ضمیر لفظ د کلمې ته راجع دے اَو تقسیم په اعتبار د مفهوم سره دے. **سوال**. وهی اسم وفعل وحرف کښې به یا ربط مقدم کوے، په عطف باندې اَو یا به عطف مقدم کوے په ربط. که چرته کښې ربط مقدم کوے په عطف باندې نو حمل د خاص راځی په عام باندې اَو دا ناجائز دے اَو بله دا چه حصر د کلمې راځی، فقط په یو قسم کښې یعنی الکلمة اسم. اَو که چرته عطف مقدم کوے په ربط باندې، نو دوه نقصانه لازمیږی، یو خو حمل د امور متباینه و راځی په شی واحد باندې. بل دا چه دا مجموعه اِسم فعل اَو حرف به خو واحد شی. **جواب**. دلته عطف مقدم دے په ربط باندې اَو که ته وائې چه دوه نقصانه لازمیږی، نو **جواب** دا دے چه یو تقسیم د کل دے خپلو اجزاو ته اَو بل تقسیم د کلی دے، خپلو جزئیاتو اَو افرادو ته. مثال تقسیم د کل خپلو اجزاؤ ته، لکه السکنجبین خلٌ وماءٌ وعسل. یا مثال د چائے واخله چه د دے اجزاء اوبه، پئ، پانړے اَو چینی دی اَو مثال د تقسیم د کلی خپلو جزئیاتو ته، لکه اِنسان چه د ده جزئیات اَو افراد زید عمر اَو بکر وغیره هُم دی اَو دلته کښې نو مونږ مراد تقسیم د کلی دے خپلو جزئیاتو ته، نو اوس هغه استحالات لازم نه شو، نو دلته کښې عطف د انواعو راغے، په انواعو باندې نه د اجزاء په اجزاء باندې، نو مونږ د اقسام د پاره یو حُکم وکړو[3] چه هغه اِسم اَو فعل اَو حرف دی. **سوال**. مصنف[رح] ولې مخالفت وکړو د اِستعمال مشهور نه. هغه دا چه په اِستعمال مشهور

---

[1]. ځکه چه هی ضمیر د مؤنث دے اَو کلمه هُم مؤنثه ده. ۱۲. (م.س)

[2]. تقسیم یې ځکه نه صحیح کیږی، چه تقسیم په اعتبار د مفهوم سره کیږی نه په اعتبار د لفظ سره. ۱۲ (م.س).

[3]. دلته زمونږ اُستاذ محترم فانی صاحب د طلباؤ د خوش طبعی په طور یو لطیفه ویلی وه، هغه دا چه د خلقو دا خیال دے چه د لیلة القدر په شپه باندې الله تعالیٰ خامخا یو سوال قبلوی. نو یو شخص معچه د هغه مدعا د شپے بهوالونه وو، یو دا چه د هغه په سر به همیشه درد وو، بل دا چه د پلار به یې په خپله درد وو لوئ دیم دا چه د مور یې کوسر وو، چه کله لیلة القدر شپه راغله، نو هغه دا درے واړه سوالونه په یو حُکم سره ضم کړل اَو دا یې اَووئیل چه اِے خدایا! زما دا د سر درد اَو زما پلار د خپه مړ دا اَو زما د مور دا کوسر لرے کړے. یعنی عطف یې مقدم کړو په ربط باندې. (م.س):

کښې دَ تقسیم په متفرکیدو دَ وادَ په ځائے او استعمالیږی، نو په کار وه چه دا یے داسے ویلې وه وهی اسم او فعل او حرف۔ **جواب**[۱]. په کوم ځائے کښې چه تقسیم بنا وی په مجرد احتمال باندې، نو هلته راوړل د شی او دلته په دے متفرکیدو تقسیم بنا نه دے په مجرد احتمال باندې بلکه بنا دے په یقین باندې چه دَ کلمې درے اقسام دی۔

## درس نمبر ۲۲

## لانها اما ان تدل على معنى في نفسها[۲]:

ترجمه:- ځکه دَ کلمه موضوعه داله على المعنى یا به دَ بعض صفاتو دَ دے نه دلالت وی په معنی باندې، هغه معنی چه معتبره فی نفسه وی او محتاجه نه وی په معنی خپله کښې ضم دَ ضمیمې وته۔ **سوال**. په لانها سره مصنف اشاره کړی دلیل ته او دلیل راځی دَ پاره دَ مدعی او دلته کښې دَ مدعی ذکر نه دے۔

**جواب**. مدعی عامه ده ملفوظه وی که مقدره، دلته کښې مدعی اگرکه ملفوظه نه ده، لیکن مقدره ده او هغه دا دے وهی منحصرة فی ثلاثة اقسام۔ **سوال**. منحصرة دے ولے مدعی مقدره را اویسته؟ **جواب**. مصنف اول دَ کلمې تعریف اوکړو او بیا یے تقسیم اوکړو، نو بیا ورله پکار وه دا خبره چه دا حصر دَ کلمې په درے اقسامو کښې ولے دے، لیکن چه هرکله ده سکوت اختیارکړو او دا محل دَ بیان وو، نو سکوت په محل دَ بیان کښې بیان دے[۳]. **سوال**. غرض ستا انحصار دَ کلمے دے په اقسام ثلاثه وُ کښې او ستا دلیل دَ مدعی سره مطابق نه دے ځکه چه په وجه دَ حصر کښې تا دلالت ذکرکړو او په تعریف دَ کلمې کښې دِ دلالت نه دے ذکر کړے؟

**جواب**. په تعریف دَ کلمې کښې وضع راغلی ده او وضع مستلزم ده دلالت لره۔

**سوال** په اعتبار دَ ترکیب سره چه لانها کښې ها ضمیر راجع دے کلمې ته چه هغه اسم دے، دَ پاره دَ اِنّ او ان تدل په تاویل[۴] دَ مصدر سره دا خبر دے دَ پاره دَ اِنّ او قاعده دا ده چه خبر دَ اِنّ دا محمول وی په اسم دَ اِنّ باندې او دلته کښې دا حمل نه صحیح کیږی ځکه

---

۱. یعنی تقسیم په دوه قسمه دے، یو تقسیم احتمالی دے بل تقسیم یقینی دے، په اول قسم کښې لفظ دَ او مستعملیږی نه په ثانی کښې او دلته کښې دا دَ قبیلې دَ قسم ثانی نه دے۔ (م.س).

۲. ربط:- هرکله چه مصنف فارغ شو دَ تعریف دَ کلمې نه او بیا یے منقسمه کړه اقسامو ثلاثه ته، نو اوس درته وجه دَ حصر ذکر کوی، نو هغه دلیل چه لانها الخ. (م.س).

۳. لکه دَ مثال په طور چاته اووئیلے شی چه چائے اوخښه او هغه سکوت اختیار کړی، نو سکوت دلالت په بیان دَ څښلو باندې کوی۔ (م.س).

۴. او مصدر چه لا په نظر دا خیال ځکه په تاویل دَ مصدر سره کړے وی نو اسم دَ اِنّ چه کلمه ده ذات دے او خبر دَ اِنّ مصدر مرف وصف دے۔

چه حمل دَ صرف وصف راځي په ذات باندِ اَوْ حمل دَ صرف وصف په ذات ناجائز دے ۔ **جواب.** دَ دے سوال دوه جوابه دی ۔ يو ضعيف دے اَوْ بل قوی دے ، جواب ضعيف چه مونږ تقدير را اُوباسو ، په جانب دَ اسم کښې هغه به دا شي چه لان من صفتها اما ان تدل ، نو حمل دَ وصف راغے په وصف باندِ . ليکن دا جواب ضعيف دے ، ځکه چه نقصان په جانب دَ خبر کښې دے اَوْ تقدير په جانب کښې دَ اسم را لويا شے ، دا خو په منزله دَ نزع دَ سراويل شوه ، ځکه چې دَ رويت دَ اولو نه ۔ دوئيم **جواب** دا دے چه تقدير دَ عبارت دا دے ، لانها اما من صفتها ان تدل ۔ **سوال** من صفتها دَ ولے مقدم کړو؟ **جواب** ځکه چه انحصار دَ دليل راته شي په دلالت اَوْ په عدمِ دلالت کښې ۔

## درس نمبر ۲۳ :- 

في نفسها کښې هاء ضمير راجع دے کلمے ته ، نو سوال وارديږي چه في راځي دَ پاره دَ ظرفية اَوْ مدخول دَ في ظرف وی ، لکه الماء في الکوز ، نو الکوز دا ظرف دے ، ځکه چه دا مدخول دَ في دے اَوْ ظرف په دوه قسمه دے ، يو ظرف زمان اَوْ بل ظرف مکان اَوْ دَ کلمے ته ظرفية دَ کلمے نه صحيح کيږي ، ځکه چه دا نه ظرف مکان دے نه زمان . **جواب** ظرف په دوه قسمه دے يو ظرف حقيقي اَوْ بل ظرف مجازي ، نو کلمه اگر که ظرف حقيقي نه دے ليکن ظرف مجازي دے اَوْ هغه په دے شان لکه چه څنګه ظرف احاطه کړے وی ، په خپل مظروف باندِ لَوْ په دے احاطه کښې دے ، محتاج نه وی بل شي آخر ته ، نو دغه شان دا کلمه هم محتاجه نه ده ، په دلالت خپل کښې ضم دَ ضميمے ته اَوْ دوئيم **جواب** دا دے چه دلته دا في دَ پاره دَ ظرفية نه ده ، بلکه اعتبار ده لکه په دے قول دَ عربو کښې في اعتباريه راغلې ده ۔ الدار في نفسها حکمها کذا . اى الدار باعتبار نفسها . في نفسها جار مجرور دے اَوْ دَ جار مجرور دَ پاره لابدی وی دَ متعلق نه اَوْ متعلق مستقر کولے شي په کلام دَ عربو کښې ۔ په ظرف سره اَوْ ظرف په دوه قسمه دے ، يو ظرف لَغْوْ دے ، بل ظرف مستقر دے ۔ ظرف لَغْوْ ورته وائي چه متعلق ئے په کلام ذکر وی اَوْ ورته لغو په دے وجه باندِ وئيلے شي ، ځکه چه دے جزء نه واقع کيږي دَ کلام نه اَوْ که جزء واقع دے ، نو هغه متعلق دَ ده واقع کيږي ئے **سوال** که في نفسها دَ ان تدل سره متعلق کوو ، نو معنی نه صحيح کيږي ، ځکه چه دَ ان تدل دَ پاره صله بار راځي نه في اَوْ که چرے په معنیٰ پورے ئے متعلق کوو ، نو هم نه صحيح کيږي ، ځکه چه مراد دَ معنے نه معنیٰ اِصطلاحی ده اَوْ هغه جامد ده اَوْ دَ جامد سره

---

ے . اَوْ ظرف مستقر ورته وائي چه متعلق ئے په کلام کښې ذکر نه وی ، بلکه مقدّر وی ۔ اوس که چرے في نفسها ظرف لغو شي نو دا به متعلق وی په ان تدل پورے اَوْ يا به متعلق وی په معنیٰ پورے ، نو سوال پورے وارديږي کما ذکرنا استاذنا . رم ۔ ،

تعلق دَ جار مجرور نه راځي، لکه زیدٌ سره چه ځنګه تعلق دَ جار مجرور نه دے صحیح۔
**جواب** متعلق دَ فی نفسها هغه ظرف مستقردے، چه هغه ثابتٌ یا حاصلٌ دے او هغه بهٔ دَ معنٰی دَ پاره صفت اوګرزولے شی۔ ای علی معنیً کائنٍ فی نفسها یا حاصلٌ فی نفسها۔

**اولا** یا بهٔ دَ بعض مقالتو دَ کلمے نه عدم دلالت وی په معنیٰ خپله باندې۔
**سوال**۔ 'لا' په دوهٔ قسمه دے، یو لا یدل مطلقاً او دَ بل لا یدل علی معنیً فی نفسها بَلْ یدل علی معنیً فی غیرها۔ کهٔ چرے دما تهٔ تمهین دلته کښے مراد شی، نو مهمل به کښے داخلیږی، ځکه چه هغه هُم په خپله معنیٰ باندې دلالت نه کوی، لکه دَ یز وغیره۔ **جواب**۔ دلته دداره معنٰی نه دی معتبره، بلکه دویمه معنیٰ معتبره ده، چه هغه بل یدل علی معنیً فی غیرها ده۔

**الثانی الحرف** دویم حرف دے۔ **سوال** الثانی صفت دے او دَ هر یو صفت دَ پاره لا بدی وی دَ موصوف نه، نو دَ الثانی دَ پاره چه معنٰی موصوف الکلمة او وی، نو بیا مطابقت نشته، په مابین دَ موصوف او دَ صفت کښے او دوئ کښے مطابقت ضروری دے، په اِعتبار دَ تذکیر او تانیث سره۔ **جواب** دَ دے دَ پاره موصوف القسم دے او هغه مذکر دے۔ پس مطابقت راغے په مابین دَ موصوف او دَ صفت کښے۔ ای القسم الثانی۔ په الحروف کښے الف لام عهد خارجی دی او دَ دے دَ پاره معهود هغه حرف دے چه مخکښے په تقسیم کښے ذکر شوے دے۔ حرف په **لغت** کښے طرف ته وائی، لکه دَ عربو مقوله ده۔ جلست حرف الوادی۔ ای طرف الوادی۔ دَ پښتو یو شعر دے، شاعر وائی چه:۔

لکه حرف یو په طرف کښے واقع شوے بیلتانهٔ رانه اوړلے استقلال دے

**سوال**۔ ته وائے حرف په لغت کښے طرف ته وائی او دے په طرف واقع کیږی، ځکه ورته حرف وائی، حالانکه ډیر حروف موږه وینو چه هغه په وسط یا په اول کښے واقع کیږی، لکه سرت من البصرة الی الکوفة۔ مِنْ او الی په وسط کښے راغلی دی۔ سره دَ دے نه چه حروف دی۔
**جواب**۔ مراد دَ وقوع نه په طرف کښے دا دے، چه دوئ واقع کیږی، په مقابله دَ استقلال کښے۔
**سوال**۔ حرف خو غیر مستقل دے، نو غیر مستقل ځنګه واقع کیږی په مقابله دَ مستقل کښے۔
**جواب**۔ مراد دَ غیر مستقل واقع کیدل په مقابله دَ مستقل کښے دا دے چه غیر مستقل په کلام کښے غیر عمده واقع کیږی او مستقل عمده واقع کیږی، لکه اسم او فعل شو۔ **سوال**۔ څهٔ وجه ده، چه مصنفؒ په مقام دَ تقسیم کښے حرف مؤخر کړو او په مقام دَ حصر کښے ئے مقدم راوړو۔
**جواب**۔ په مقام دَ تقسیم کښے مصنفؒ لحاظ دَ وجود کړے دے او په مقام دَ حصر کښے ئے لحاظ دَ عدم وجود کړے دے، په دے شان سره چه په اِسم او فعل کښے استقلال موجود دے او په

حرف کښې استقلال نشته دے، نو اسم او فعل یې مقدم کړل په حرف باندې، حکه چه وجود اشرف دے د عدم نه لو په مقابله حصر کښې لحاظ د عدم په دے شان سره اوکړو چه عدم مقدم وي په ممکناتو کښې په وجود باندې۔

## درس نمبر ۲۴

### والاول اما ان یقترن باحد الازمنة الثلاثة

ترجمه :- اول قسم د قسمونو د کلمې نه چه دلالت کوي په معنیٰ باندې هغه معنیٰ چه کائنه في نفسه وي، یا به د بعضو صناعو د هغې نه اقتران د معنیٰ تضمني وي، وضعاً په فهم کښې د لفظ داله نه په یو ازمنه ثلثه د مخصوصه پورے او نه وي معنیٰ د هغه عین زمانه او اقتران یې لفظي وي په یو د ازمنه ثلاثه پورے چه هغه مخصوصه وي۔ **سوال**. الاول صفت دے او د هر یو صفت د پاره لابدي ده، د موصوف نه۔ که د دے د پاره موصوف الکلمة راوباسو نو بیا مطابقت نه راځي، په مابین د موصوف او صفت کښې۔ **جواب**. د دے د پاره موصوف القسم دے یعني القسم الاول۔

**سوال**. ضمیر د یقترن به یا راجع کړے، اول ته او یا معنیٰ ته۔ که چرے اول ته یې راجع کړے، نو دا صحیح نه دے، ځکه چه اقتران صفت د ے، د پاره د معنیٰ او اول نه مراد کلمه ده او کلمه لفظ دے او اقتران د لفظ صفت نه شي کیدے او که چرے معنیٰ ته یې راجع کړے، نو لازمیږي اضمار قبل الذکر او دا مستکو دے په ترڅ د هر یو باندې۔ **جواب**. ضمیر راجع دے معنیٰ ته او که ته دا وائے چه اضمار قبل الذکر لازمیږي، نو زه وایم چه نه لازمیږي ځکه چه ذکر په دوه قسمه دے، یو حقیقتاً دے او بل حکماً، نو دلته کښې معنیٰ اګر چه حقیقتاً ذکر نه ده، لیکن حکماً ذکر ده، ځکه چه د اول نه مراد مدلول د اول دے او مدلول د اول نه دے مګر معنیٰ۔ زده کړه دا خبره چه دلته کښې به هم تقدیري د عبارة جوړه وي، ځکه هغه اعتراض دے، چه کوم به لانها اما ان تدل الخ. وارد یږي، نو په دے ځائے کښې هم وارد یږي چه اما ان یقترن کښې حمل د صرف وصف په ذات راځي او دا باطل دے، نو تقدیر به دا شي، اما من صفتها ان یقترن الخ۔ **سوال**. دلته اقتران د زمانے په زمانے پورے راغے، ځکه چه فعل په خپله هم دلالت په زمانه کوي۔ **جواب**. دا دے چه مراد په معنیٰ نو تضمني ده، چه هغه حدوث دے، نو مطلب به دا شي ...... شي چه اقتران د معنیٰ حدثي د دے فعل لفظي وي په زمانے پورے۔ **سوال**. ستا دا تعریف جامع نه شو، خپلو افرادو لره او مانع نه شو د دخول د غیرو نه۔ هغه چه عدم جامعیت دے، هغه دا چه افعال منسلخه عن الزمان، پرته خارج شو او هغه چه علاً

---

ل.: شومو قیودات چه ذکر په استاذ محترم اعلی ګول تحقیق په شوے مقابل کښې ذکر شوي چه په هغه سره به اعتراضات دفع کیږي۔ مرتب ح.

مانع دے، هغه دا چه اسمائے افعال به کښې داخل شي۔ **جواب**. هلته به معنیٰ کښې موږ دا قید لګولې وو چه وضعاً به فهم کیږي لیوا افعال منسلخه عن الزمان تر ینه خارج نه شو، ځکه چه اِعتبار اصل وضع لره، او هر چه افعال منسلخه عن الزمان دي به استعمال کښې د دوئ انسلاخ د زمانے نه راغلے دے، نه به اصل وضع کښې او اسمائے افعال تر ینه خارج شو، ځکه چه دوئ به اصل وضع کښې د زمانے سره مقترن نه دي۔ **سوال**. تعریف ستا مانع نه شو، د دخول د غیر نه. ځکه چه داخل شو به دے کښې مصادر، ځکه چه به دوئ کښې هم اقتران شته، د زمانے سره وجوداً۔ **جواب**. موږ وضعاً قید لګولے دے، چه وضعاً به فهم کیږي او به مصادرو کښې اقتران به وجود کښې شته، خو وضعاً به فهم کښې نشته۔ **سوال**. تعریف دِ بیا مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو به کښې ضاربٌ به دے ترکیب چه چه زیدٌ ضاربٌ امس. چه ضاربٌ دا صیغه د اسم فاعل ده، اقتران ئے د زمانے سره راغلے دے۔ **جواب**. موږ به معنیٰ کښې دا قید لګولے وو، چه د لفظ داله نه او دلته کښې دلالت د ضاربٌ به زمانه باندِ دا د وجه د اَمرِ خارجي نه راغلے دے، چه امس دے۔ **سوال**. ستا دا تعریف مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو به کښې لفظ د ماضي، ځکه چه د دے اقتران هم به زمانے پورے راغلے دے، حالانکے دا خو اسم دے۔ **جواب**. موږ به معنیٰ کښې دا قید لګولے وو، چه نه وي معنیٰ د دے عین زمانه۔ **سوال**. ستا دا تعریف مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو به کښې صبوحٌ او غبوقٌ. صبوحٌ د سحر به وخت کښې شراب څښلو ته وائي او غبوقٌ به ماښام کښې شراب څښلو ته وائي، لیوا اسماء دي او د دوئ اقتران به زمانے پورے راغلے دے۔ **جواب**. موږ وئیلي وو چه اقتران ئے راغلے وي به یو د ازمنهٔ ثلاثه پورے، چه مخصوصه وي او دلته به مطلق زمانه پورے اقتران راغلے دے۔ دویم **جواب**. دا دے چه فعل هغه دے، چه هغه دلالت کوي، به اِعتبار د ما دے او د هیئت سره به زمانه باندِ ځکه ضَرَبَ دا به زمانه ماضي باندِ دلالت کوي او چه کله دِ ورله هیئت بدل کړو او یَضْرِبُ دِ ترینه جوړ کړو، نو دا د ماضي نه مضارع شوه، لیوا اوس به دا به مضارع باندِ دلالت کوي، لیوا چه هر کله فعل دِے نه وائي چه به اعتبار د ما دے او د هیئت سره به دلالت کوي به زمانه باندِ، لیوا صبوحٌ غبوقٌ به کښې داخل نه شو۔ **سوال**. ستا دا تعریف جامع نه شو، خپلو افرادو لره او خارج شو ترینه فعل مضارع، ځکه چه مضارع به دوؤ زمانو دلالت کوي، چه حال او استقبال دے او تا خو وئیلي دي، چه اما ان یقترن باحد الازمنة الثلثة۔ **جواب**. د یو زمانے سره اقتران دا ادنیٰ مرتبه ده او د زیاتو لره څه حد نشته دے۔ **سوال**. الازمنة الثلاثة کښې الثلاثة اسم عدد دے ..... معروف د اسمائے عدد به حقیقت کښې تمیز وي او به عدد اول کښې قاعده دا ده چه هغه خلاف

القیاس وی (یعنی مذکر دَ پاره مؤنث اَوْ مؤنث دَ پاره مذکر) نو بکار داوه چه وئیلے وے، الا زمن الثلٰثة "بغیر دَ تاء نه"۔ **جواب**۔ تذکیر دَ تمیز یا تانیث دلته په اعتبار دَ مفهوم سره دے اَو مفهوم دلته کښے زمان دے چه هغه مذکر دے۔ دویم **جواب** دا دے چه دا دَ تمیز اَوْ ممیز نه خارج شوی دی، بلکه دا دَ قبیلے دَ صفت اَوْ دَ موصوف نه کوځیدلے دے اَوْ چونکه په صفت اَوْ موصوف کښے مطابقت ضروری دے، په دے وجه بانديے الازمنة الثلاثة ذکر کړو۔

# درس نمبر ۲۵

## الثانی الاسم

قسم ثانی دَ کلمے نه چه دلالت کوی په معنیٰ فی نفسها باندِ اَوْ مقترن نه وی په یو دَ ازمنه ثلثه پورے (مخصوصه) نو هغه اسم دے.

الثانی صفت دے، دَ دے دَ پاره لابُدی ده دَ موصوف نه اَوْ موصوف دَ دے دَ پاره القسم دے، اَوْ کلمه نه ده، ځکه چه بیا مطابقت نه راځی په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښے. کما مرّ فی الاول،

دلته په اسم کښے درے تحقیقات دی. اولے تحقیق هغه اختلاف دے، دَ دے په ماده کښے ــــ دویم تحقیق تعین دَ مذهب راجح ــــ دریم تحقیق وجه دَ مناسبت په مابین دَ معنیٰ لغوی اَوْ اصطلاحی کښے۔ پوهه تحقیق اختلاف دے په ماده دَ اسم کښے، په مابین دَ کوفیینو اَوْ دَ بصریینو کښے، دَ کوفیانو په نزد اسم په حقیقت کښے دَ وسمٌ نه مشتق دے اَوْ دا مثال واوی دے۔ دَ دے معنیٰ دَ علامه، تعلیل په کښے داسے کوی چه په وسم کښے واؤ حذف کړے شو اَوْ دَ هغے په بدل کښے همزه راوړے شوه، اسم شو اَوْ دَ بصریانو په نزد باندِ اصل دَ اسم سِموٌ دے، ناقص واوی دے دا په معنیٰ دَ علُو باندِ راځی، ومنه السماء ــــ دویم تحقیق چه په دے دواړو مذهبونو کښے کوم یو مذهب راجح دے، نو تعین دَ مذهب راجح دا دے چه دَ بصریانو مذهب راجح دے، ځکه چه قاعده دا ده چه دَ کوم یو څیز اصل معلوموَے (یعنی دَ یو صیغے اصل معلوموَے) نو بیا به دَ هغے تصغیر راوړے اَوْ یا جمع، نو تاسو تصغیر سمیٌّ راځی، ځکه چه دا په اصل کښے سمیوٌ دے، واؤ اَوْ یاء یو ځائے راغلل، واؤ موبدَّ په یاء باندِ بدل کړو، دَ دے حرفه دَ یو جنس نه راغلهٔ، یاء په یاء کښے مدغم شوه، نو سمیٌّ شو اَوْ دَ اسم جمع اسماء راځی، که دَ کوفیانو دَ مذهب مطابق اسم په اصل کښے وسمٌ شی، نو بکار دا ده چه دَ دے تصغیر وُسَیمٌ شی اَوْ جمع دِ اوسام راشی. حالانکه داسے نه ده، نو مذهب دَ بصریینو راجح شو ــــ دریم تحقیق په بیان دَ مناسبت کښے دے، په ملبهن دَ معنیٰ لغوی اَوْ دَ معنیٰ اصطلاحی کښے. هغه دا دے چه سموٌ په معنیٰ دَ علو اَوْ دَ اوچت ځائے سره راځی اَوْ اسم ته اسم په دے وجه وئیلے شی چه دا هم عالی اَوْ اوچت دے په نسبت دَ خپلو نورو ملګرو باندِ چه هغه فعل اَوْ حرف دی اَوْ اسم عالی په دے وجه باندِ دے چه دَ نوع دَ اسم

کلام جوړیږي. یعنې اِسم هُم مسند واقع کیږي اَوْ هُم مسند الیه اَوْ دَ فعل اَوْ دَ حرف دَ نوع کلام نهٔ جوړیږي۔

**الاول الفعل** اَوْ قسم اوّل دَ کلمې نه چه دلالت کوي په معنیٰ فی نفسها باندِ اَوْ مقترن وي په یو دَ ازمنهٔ ثلاثهٔ مخصوصه لوړے هغه فعل دے. فعل په **لُغت** کښے حدث ته وائي اَوْ فعل **اِصطلاحي** مشتمل دے په اجزاء ثلاثه باندِ، چه یو جزء تِرِ نه حدث دے، په دِے وجه باندِ دَ فعل نوم اَوْ تسمیه په فعل سره راغله، دا تسمیه دَ کل شوه په اِسم دَ جزء سره یا تسمیه دَ دال شوه په اِسم دَ مدلول سره اَوْ یا تسمیه مشتِل ده په اِسم دَ مشتمَل سره۔

**وقد علم بذالك حد كل واحدٍ منها** اَوْ په تحقیق سره معلوم شو په دِے دلیل دَ حصر سره تعریف دَ هَر واحد دَ دِے اقسامو ثلثه. په دِے مقام کښے درے تحقیقه دي. یو په واؤ کښے، بل په ذالك کښے اَوْ دریم په حد کښے. پس اَوّل تحقیق په واؤ کښے دا دے. **سوال**. دا واؤ بهٔ خالی نهٔ وِلے یا بهٔ یې عاطفه وِلے یا حالیه اَوْ یا مستانفه اَوْ درے واړه صحیح نهٔ دي، کهٔ واو عاطفه شي، نو معطوف علیه ورله نشته کهٔ حالیه شي نو ذوالحال نشته اَوْ کهٔ مستانفه شي نو مخکښے ذکر دَ سوال نشته چه دا ورله جواب اوګرځي. **جواب**. دلته درے واړه صحیح دي کهٔ واو عاطفه نو دَ دِے دَ پاره بهٔ معطوف علیه مقدر شي، چه ' قدتبین بوجه الحصر انحصار الکلمة في الاقسام الثلاثة وقد علم بذالك حد كل واحدٍ منها ' اَوْ واؤ حالیه هُم صحیح دے اَوْ ذوالحال بهٔ ورله مقدر شي، هغه دا دے چه افاد وجه الحصر انحصار الکلمة في الاقسام الثلثة وقد علم بذالك حد كل واحدٍ منها. اَوْ واؤ مستانفه هُم صحیح دے. دَ هغې دَ پاره بهٔ سوال مقدر شي، اَوْ دا بهٔ دَ، هغه سوالِ مقدر جواب شي. هغه دا دے چه علم بوجه الحصر انحصار الکلمة في الاقسام الثلاثة فهل علم بذالك حد كل واحد منها ' نو جواب یې دا دے چه وقد علم بذالك الخ اَوْ پس په دِے عبارت سره مصنف اشاره کړې ده، ذهن متوسط ته، ځکه چه ذهن په درے قسمه دے. یو ذهن ذکی، دویم ذهن متوسط اَوْ دریم ذهن غبی. پس په وجه دَ حصر سره مصنف اشاره اوکړه تعریفاتو دَ دِے اقسامو دَ پاره دَ اذهانو ذکیه. اَوْ په قد علم سره تنبیهه ورکړه اذهانو متوسطه وته په تعریفاتو دَ اقسامو ثلاثه باندِ اَوْ په تفصیل سره یې تصریح اوکړه په تعریفاتو دَ اقسام ثلاثه دَ پاره دَ اذهانو غبیه، نو مصنف دَ طالبعلمانو خیال اوساتلو یعنې ذهن ذکی ته اشاره کافی ده اَوْ دَ ذهن متوسط دَ پاره تنبیهه کافی ده اَوْ ذهن غبی دَ پا۔ ·

تسریح ضروري وه، ځکه چه په اِشاره یا تنبیه باندې ذهن غبی نه پوهیږي۔

**درس نمبر ۲۶:** دوېم بحث دا دے چه ذالك کښې اِسم اِشاره دۀ او دَ دے دَ پاره مشارٌ اِلیه لانهما اما ان تدل الخ دے۔ **سوال** ۰ چه هر کله ذالك اِسم اشاره دۀ او دَ دے دَ پاره مشارٌ اِلیه لانهما اما ان تدل دے، نو په مابین دَ مشارٌ اِلیه او دَ اِسم اِشاره کښې مطابقت نۀ راځي ځکه چه ذالك دَ مذکر دَ پاره راځي او لانهما اما ان تدل دا جمله ده او جمله مؤنث وي۔ **جواب** ۰ مشار اِلیه دلته دلیل دَ حصر دے، چه هغه اګر که دلته لفظاً ذکر نه دے، لیکن دَ وجه دَ حصر نه مستفاد دے او دلیل مذکر دے، نو مطابقت صحیح شو۔ **سوال** ۰ په ذالك سره اِشاره کیږي محسوس مشاهد بالبصر ته او دلیل دَ حصر خو یو معقول شي دے، او معقول ته څنګه په ذالك سره اشاره کیږي؟ **جواب** ۰ دلته تنزیل دَ معقول راغلے دے، په منزله دَ محسوس باندې۔ پس اِشاره ورته صحیح اوګرځیده۔ **سوال** ۰ ذالك راځي دَ پاره دَ مشارٌ اِلیه بعید او دلته کښې خو دلیل دَ حصر قریب دے۔ **جواب** ۰ په ذالك سره اشاره دلته قریب ته دَ وجه دَ عظمت او اِحترام نه شوې ده، لکه ذالك الكتاب، قرآن پاک خو اِنسان ته ډیر قریب دے خو دَ عظمت او دَ اِحترام دَ وجه نه ورته په ذالك سره اشاره راغلې ده۔ دریم تحقیق دا دے چه حد کښې، حد په لُغت کښې منع ته وائي او په اِصطلاح دَ منطقیانو کښې تعریف الشئ بالذاتیات ته وائي[1]۔ اوس دلته سوال پیدا کیږي، چه ذاتیات دَ شي مجهول دي او دلته کښې په تعریف دَ اِسم کښې عدم اقتران راغلے دے او په تعریف دَ حرف کښې عدم اقتران او عدم استقلال دواړه راغلي دي، نو یو عدمي شے به دَ یو شي دَ پاره څنګه ذاتي وګرځي؟ **جواب** ۰ دلته ذکر دَ خاص دے، مراد ترے نه عام دے، چه هغه تعریف دے او تعریف حد او رسم دواړو ته شامل دے، نو تقدیر به داسې شي، وقد علم بذالك تعریف كل واحد منها، او یا دا چه دلته کښې دَ حد نه مراد مطلق تعریف جامعه مانعه دے۔

## درس نمبر ۲۷

**الكلام ما تضمن الكلمتين بالاسناد**

په دے عبارت سره مصنف رح دَ علم نحوه موضوع دریم جز بیانوي، یعنې جزیه کلمه وه چه هر کله مصنف رح دَ هغې دَ تعریف اقسامو او دَ وجه دَ حصر نه فارغ شو نو عطف ورتیل چه الكلام الخ۔ کلام په لُغت کښې مایتكلم به ته وائي او په اِصطلاح کښې دَ نحویانو کښې ما تضمن كلمتين بالاسناد ته وائي۔ معنیٰ دَ دے تعریف دا ده چه کلام دا هغه لفظ دے چه متضمن وي، په اعتبار دَ عروض دَ هیئت اجتماعي سره، هر واحد دَ کلمتین لره کلمتین عام دي، حقیقتاً وي، که حکماً لفظاً وي، که تقدیراً،

---

[1] لکه دَ اِنسان تعریف چه حیوان ناطق سره وشي، ځکه دا ذاتیات دَ اِنسان دي۔ د م س

هغه تضمن چه حاصل وی په سبب د اسناد سره اؤ اسناد نسبت د مدلول د کلمے دے کلمے آخری وته په دے شان سره چه ورکوی مخاطب ته فائده تامه۔ **سوال**. کلمه اؤ کلام دواړه جزئین د موضوع د علم نحو دی، نو چه هر کله د کلمے نه فارغ شو، نو کلام به ئے په عطف سره ذکر کړے وو، اؤ داسے به ئے وئیلی ووچه والکلام۔ **جواب**. حرف عطف ئے ځکه ذکر نه کړوچه په دے کښے اشاره ده استقلال د کلام ته اؤ که چرے حرف عطف ئے ذکر کړے وے، نو بیا به کلام معطوف اؤ کلمه معطوف علیه وه اؤ معطوف تابع وی د معطوف علیه، نو بیا به دا وهم پیدا کیدو، چه کلمه اصل ده اؤ کلام فرع ده، حالانکه کلام اصل دے۔ **سوال**. دلته دا "ما"، ځکه نه عبارة دے، که د اسم نه ئے عبارة اخلی، نو اسم مفرد دے اؤ کلام خو مرکب دے اؤ بل دا چه حمل د عام راځی په خاص باندے۔ که چرے "ما" عبارت شی د لفظ نه، نو په دے صورت کښے "نعم" داخلیږی په تعریف کښے، په دے ترکیب کښے چه څوک سوال اوکړی "اقام زیدٌ"، اؤ ته په جواب کښے اووائے چه "نعم!" نو دلته کښے په "نعم" باندے تعریف د کلام صادقیږی اؤ حال دا دے چه "نعم" خو کلام نه دے اؤ که چرے "ما" عبارة اخلے د کلمے نه نو حمل د خاص راځی په عام باندے اؤ بل دا چه کلمه به متضمنه وکرځی د پاره د کلمتینو اؤ که چرے "ما" عبارة شی د کلام نه، نو لازمیږی اخذ د محدود په حد کښے اؤ که "ما" عبارة شی د شئ نه، نو داخلیږی په کښے زیدٌ قائمٌ چه منقوش علے الجدار یا مکتوب فی القرطاس وی۔ **جواب**. دلته "ما" عبارة دے د لفظ نه اؤ که ته وائے چه "نعم" په کښے داخلیږی، په تفصیل د "ما" سبق سره، نو مونږ وایو چه نه داخلیږی، ځکه چه "نعم" متضمن کلمتین لره نه دے، بلکه قائم مقام دے کلمتین لره۔ اؤس لفظ عام دے، مفرد وی که مرکب، موضوع وی که مهمل، مرکب کلامی وی که غیر کلامی وی۔

## درس نمبر ۲۸:-

مونږ په تعریف د کلام کښے عروض د هیئت اجتماعی قید لګولے وو، په دے سره دفع د سوال کوو۔ **سوال**. په دے وارد یږی، چه ته خو وائے چه کلام هغه ته وائی چه متضمن وی کلمتین لره، نو مثلاً زیدٌ قائمٌ کلام دے، نو د دے د پاره متضمن څه شے دے اؤ که ته دا وائے چه په خپله تضمن دے، نو په دے صورت کښے لازمیږی، اتحاد په مابین د متضمِن اؤ د متضمَن کښے۔ **جواب**. مونږ په معنٰی کښے دا قید لګولے وو چه متضمن وی په اعتبار د عروض د هیئت اجتماعی سره، نو زیدٌ قائمٌ متضمِن دے اؤ هر واحد د کلمتین نه متضمَن دے۔ د مثال په طور لکه کټ[1] شو، یعنی سریره په اعتبار د عروض د هیئت اجتماعی سره متضمِن دے اؤ رسئ یعنی پړے، لینے، بازوګان دا متضمَن دی۔ **سوال**. تعریف د کلام جامع نه شو، ځکه افراد لره اؤ خارج شو ترینه دا تراکیب چه، "زیدٌ قام ابوه"، "زیدٌ قائمٌ ابوه" اؤ "زیدٌ ابوه قائمٌ"، ځکه چه

متضمن کلمتین لره نه دی، بلکه کلماتو لره دی۔ **جواب.** مونږ ه په معنیٰ کښې دا قید لګولے وو چه کلمتین عام دی، حقیقتاً وی اؤ که حکماً، نو دلته کښې اګرکه حقیقتاً تضمن د کلمتین نه دے، لیکن حکماً کلمتین دی، په اعتبار د تاویل سره، نو تقدیر به ئې داسې شی، چه: زیدٌ قائم الاب۔
**سوال.** داخو بیا د ضمے کلمے اوګرځېدے؟ **جواب** دا دے چه الاب، مضاف الیه دے اؤ مضاف الیه خارج وی، د مضاف نه اؤ قید وی د پاره د مضاف لره۔ **سوال.** تعریف ستا جامع نه شو، خپلو افرادو لره اؤ خارج شو ترینه دا ترکیبین جسق مهمل اؤ دیز مقلوب زیدٌ۔ ځکه چه دا د الفاظو موضوعه نه مرکب نه دے، بلکه بعض په دے کښې مهمل دی، لکه جسق لفظ مهمل دے اؤ په دیز مقلوب زیدٌ کښې دیز لفظ مهمل دے۔ **جواب.** کلمتین عام دی، حقیقتاً وی که حکماً، نو دا ترکیبین حکماً مؤل دی په تاویل سره، چه په جسق مهمل کښې مونږ تعبیر په هذا اللفظ مهمل سره اؤ په دیز مقلوب زیدٌ کښې په هذا اللفظ مقلوبُ زیدٍ سره کوؤ۔
**سوال.** تعریف د کلام ستا جامع نه شو، خپلو افرادو لره اؤ خارج شو ترینه دا ترکیب "ان جاءنی زیدٌ فاکرمته"، ځکه چه دا کلمتین نه دی، بلکه جملتین دی۔ **جواب.** کلمتین عام دی، حقیقتاً وی که حکماً، نو دلته کښې اګرکه حقیقتاً کلمتین نه دی، لیکن حکماً دی، په دے طور سره چه کلام در حقیقت دلته جزا ده اؤ شرط قید دے د پاره د جزا، نو تقدیر به داسې شی چه اکرمته لمجیئه۔ **سوال.** تعریف دے جامع نه شو، خپلو افرادو لره اؤ خارج شو ترینه دا قسم ترکیبین، چه اضرب، لاتضرب۔ ځکه چه دلته کښې تضمن د کلمتین نشته، بلکه کلمه واحده ده۔ **جواب.** مونږ په کلمتین کښې دوئم تعمیم کړے وو چه کلمتین عام دی، لفظاً وی که تقدیراً، نو دلته کښې اګرکه لفظاً کلمتین نه دی، لیکن تقدیراً کلمتین دی، ځکه چه په دے کښې ضمیر د انت مستتر دے۔

## د بالاسناد لفظی تحقیق

بالاسناد جار مجرور دی اؤ د جار مجرور د پاره اعراب محلی وی، نو د بالاسناد اعرابِ محلی نصب دے، بنا بر مفعول مطلق۔ **سوال.** ته وائې چه د بالاسناد اعراب محلی نصب دے، بنا بر مفعول مطلق، نو دا نه دے صحیح، ځکه چه مفعول مطلق خو دے ته وائی چه فعل په هغه باندے مشتمل وی۔ د قبیلے د اشتمال د کل نه په جز باندے، لکه ضربت ضرباً، نو په ضرباً باندے ضربت مشتمل دے، چه ما ئې فعل دے اؤ دلته داسې شی، چه هغه مشتمل وګرځی، با لاسنا

---

ط۔ نو دلته الاب مضاف الیه دے چه داخارج دے د مضاف نه اؤ قید دے د پاره د مضاف، اؤ لوس دا کلمات دشو بلکه کلمتین وګرځېدل۔ ۱۲

و د قبیلې د اشتمال د کل نه په جز باندې۔ **جواب**۔ دا بالاسناد په حقیقت کښې صفت واقع شوې دے د پاره د تضمنا او هغه چونکه منصوب دے، نو دا هم منصوب شو۔ **سوال**۔ دا وارد یږي چه بالاسناد جار مجرور دے او د جار مجرور د پاره لابدي وي د متعلق نه، نو د دے پاره متعلق به یا تضمن واخلئ او یا التضمنا۔ که تضمینا سره یې متعلق کوے، نو په دغه صورت کښې تقدیم د صفت راځي په موصوف باندې او دا ناجائز دے، ځکه چه صفت تابع وي او موصوف متبوع او متبوع دا مقدم وي په تابع باندې او که د تضمنا سره یې متعلق کوے، نو اتحاد راځي په مابین د موصوف او د صفت کښې لفظاً او په مابین د موصوف او د صفت کښې تغایر پکار وي۔

**جواب**۔ دا نه متعلق دے په التضمن پورے او نه په تضمنا پورے حتی چه تقدیم د صفت راشي په موصوف باندې او یا اتحاد راشي په مابین د موصوف او صفت کښې، بلکه دا ظرف مستقر دے، او متعلق د دے مقدر دے چه حاصلا دے، نو عبارت به دا شي، چه ما تضمن کلمتین تضمنا حاصلا بالاسناد او دا باء به سببیه اوګرځي۔ **سوال**۔ مصنف کلمه او کلام ذکر کړل او جمله یې ذکر نه کړه، حالانکه پکار وو چه په دے مقام کښې یې جمله هم ذکر کړے وے۔ **جواب**۔ جمله یې ذکر نه کړه بنا په مذهب محقق باندې، ځکه چه په نزد محققین باندې جمله او کلام دواړه مترادفین دي، نو چه کله د کلام تحقیق اوشو، نو ګویا د جملے تحقیق هم اوشو او د بعض مذهب دا دے چه په جمله او په کلام کښې فرق دے، یعنی جمله عامه ده او کلام خاص دے، حقوي د جملے تعریف داسې کوي چه ما تضمن الاسناد الاصلی او برابره خبره ده که هغه اسناد (نسبت) مقصود لذاته وي او که نه وي او کلام ما تضمن الاسناد الاصلی ته وائي، خو دا اسناد به مقصود لذاته وي، نو په دے وجه باندې د کلام او د جملے په مابین کښې نسبت د عموم خصوص مطلق شو، پس کل کلام جملة ولا ینعکس۔ مصنف تعریف د کلام اوکړو او په هر تعریف کښې لابدي وي د جنس او فصل نه او په تعریف د کلام کښې "ما" عبارت دے د لفظ نه۔ دا جنس دے تمام الفاظ په کښې داخل شو، مفردات، مرکبات، موضوعات، مهملات۔ تضمن کلمتین فصل اول دے۔ په دے سره ترے نه مفردات او مهملات وغیره خارج شو او په بالاسناد سره چه دا فصل ثاني دے۔ ماسوا د کلام نه نور ټول غیر ونه خارج (یعنی په دے سره ترے نه مرکبات غیر کلامیه خارج شول)۔

## درس نمبر ۲۹

## ولا یتأتی ذالك الا فی اسمین او اسم وفعل

ترجمه: او نه حاصلیږي دا کلام چه عام دے مفهوماً، مګر په ضمن د دوو اسمونو کښې په دے شان سره، چه یو به مسند الیه وي او بل

په مسند وي يا په ضمن دَ اِسم اَوْ فعل کښې په دې شان سره چه اِسم مسند اليه واقع شي اَوْ فعل مسند، ځکه چه په کلام کښې لابدي ده دَ اسناد نه اَوْ په اسناد کښې لابدي ده دَ مسند اَوْ مسند اليه نه اَوْ دا نه حاصليږي مګر په دَوه اِسمونو کښې اَوْ يا په اِسم اَوْ فعل کښې اَوْ دلته کښې ظرفيت راغلې دې، دَ خاص دَ پاره دَ عام اَوْ دا جائز دې لکه څنګه چه ظرفيت دَ عام دَ پاره دَ خاص روا دې۔ **سوال**. تا اُوئيل چه ولايتاتی، لو نسبت دَ اتيان دِ اَوْکړو، کلام ته اَوْ دا نسبت ستا نه دې صحيح، ځکه چه نسبت دَ اتيان ذوی الروح ته کيږي اَوْ کلام دَ ذوی الروح نه ندې۔ **جواب**. ولايتاتی دا په معنیٰ دَ لا يحصل سره دې۔

**سوال**. ذالك اِسم اشاره دَه اَوْ دَ دې دَ پاره لابدي ده، دَ مشار اليه نه، لو دَ دې مشار اليه اسناد دې اَوْ که تضمن؟ **جواب**. دَ ذالك دَ پاره مشار اليه کلام دې اَوْ دا ثابت دې په دَوه قرينو سره، يوه قرينه دا ده چه ذالك راځي، دَ پاره دَ مشار اليه بعيد اَوْ کلام هم په نسبت سره، په دې عبارت کښې دَ اسناد اَوْ تضمن نه بعيد دې۔ دَوئمه قرينه دا ده چه طريقه دَ مصنفينو دا ده چه اَوَّل تعريف دَ شي اوکړي اَوْ بيا يې تقسيم اوکړي، لو دلته هم مصنف تعريف دَ کلام اوکړو اَوْ بس يې تقسيم کوي، لو دَ دې نه معلومه شوه چه مشار اليه دَ ذالك کلام دې۔

**سوال**. څه وجه ده چه مصنف په تقسيم دَ کلام کښې اداة دَ حصر ذکر کړو چه اِلّا دې اَوْ په تقسيم دَ کلمه کښې يې ذکر نه کړو۔ **جواب**. په تقسيم دَ کلمه کښې احتمالات عقليه نه وو اَوْ په کلام کښې احتمالات عقليه موجود وو، لو په اِلّا سره يې هغه احتمالات چه کوم صحيح وو، هغه ته اشاره اوکړه ځکه چه احتمالات په تقسيم دَ کلام کښې شپږ دي، درې احتماله متوافقين اَوْ درې متخالفين، لکه په دې قول دَ شاعر په شعر کښې:-

اسم و اسم، فعل و فعل، حرف و حرف — متوافقين
اسم و فعل، اسم و حرف، فعل و حرف — متخالفين

په دې کښې اِسم و اِسم اَوْ اِسم و فعل صحيح دي اَوْ باقي لور احتمالات غير صحيح دي ځکه چه اِسم و اِسم اَوْ اِسم و فعل مسند اليه اَوْ مسند واقع کيږي[1]. چه دَ دوئ نه کلام جوړيږي، اَوْ دا لور نه صحيح کيږي، ځکه فعل اګر که مسند واقع کيږي، خو مسند اليه نه واقع کيږي اَوْ حرف خو نه مسند واقع کيږي اَوْ نه مسند اليه۔ **سوال**. فی راځي دَ پاره دَ ظرفيت، لو دلته کښې لازميږي

---

[1] وجه يې دا ده چه کلام اسناد تاماً غواړي اَوْ اسناد حاصليږي، دَ مسند اَوْ مسند اليه نه۔ پس اِسم مسند اَوْ مسند اليه دواړه واقع کيږي اَوْ فعل فقط مسند واقع کيږي، اګر چه صلاحيت په کښې دَ وقوع دَ مسند اليه شته لکن واضع اللغة فعل دَ دې دَ پاره وضع کړې دې، چه دې به کلام کښې مسند وي فقط اَوْ حرف نه مسند واقع کيږي (فقديه بل رُخ)...

ظرفیة دَ شي دَ پاره دَ خپل نفس، ځکه چه کلام ښېږنه دے، مګر یا دَ دوه اسمونو اوْ یا یو اسم اوْ یو فعل
اَتَل جواب. دلته لې په معنیٰ دَ من سره دے، نو عبارت به داسے شي "ولا یتاتی ذالك الامن او
اسم و فعل اوْ په دیے دوېم جواب سره به دا اعتراض هم دفعه شي چه فی راځي دَ پاره دَ ظرفیة
اوْ دلته کښے خو اسمین یا اسم و فعل ظرف نه صحیح کیږي، ځکه چه ظرف به دوه قسمه دے، یو
ظرفِ زمان دے اوْ دوېم ظرف مکان دے، نو اسمین یا اسم وفعل نه ظرفِ زمان دے اوْ نه
ظرفِ مکان دے. جواب دا دے چه دلته کښے ظرفیة دَ خاص راغلے دے، دَ پاره دَ عام اوْ دا
جائز دے، لکه څنګه چه ظرفیة دَ عام دَ پاره دَ خاص جائز دے، ظرفیة دَ عام دَ پاره دَ خاص لکه
الانسان فی حیوان. دلته کښے ظرفیة دَ عام راغلے دے، دَ پاره دَ خاص، یعنی حیوان ظرف دے، دَ
پاره دَ انسان، حیوان عام دے اوْ انسان خاص دے اوْ دا به په هغه صورت کښے وي چه خاص
دَ عام دَ افرادو اوْ جزئیاتو نه وي، نو انسان دَ حیوان دَ افرادو اوْ جزئیاتو نه دے اوْ چه ظرفیة
دَ خاص راغلے وي، دَ پاره دَ عام، لکه "الحیوان فی الانسان" دلته کښے ظرفیة دَ خاص راغلے دے
دَ پاره دَ عام، خاص انسان دے اوْ عام حیوان دے اوْ دا به په هغه صورت کښے چه دَ عام ذاتي وي
دَ پاره دَ خاص، اوْ حیوان چه عام دے دَ ذاتي، دیے دَ پاره دَ خاص، چه انسان دے، ځکه چه تعریف
دَ انسان دا دے. "حیوان ناطق" نو حیوان دَ انسان ذاتي دے. پس دلته اګر که ظرف حقیقي
نه دے، لیکن دا ظرف مجازي دے، په دیے شان سره، لکه څنګه چه ظروف مشتمل وي په خپل مظروف
باندې، نو دغه رنګ دا کلام چه عام دے، مفهوماً مشتمل دے په خاص باندې چه اسمین دي اوْ یا اسم
اوْ فعل دي. سوال. ته خو وایے چه کلام هغه دے چه مرکب وي، دَ دوه اسمونو نه به درته
اوښایم، چه دوه اسمه به وي، لیکن کلام به نه وي، لکه "غلام زید" دا دوه اسمه دي اوْ هم کلام
نه دے. جواب. مونږ دا خبره کړې ده چه په کلام کښے لابدي ده، دَ اسناد نه اوْ په غلام
زید کښے اسناد نشته. سوال. ته وایے چه کلام به یا مرکب وي دَ اسم او فعل نه. زه به
درته اوښایم چه اسم اوْ فعل به وي اوْ بیا به هم کلام نه وي، لکه ضربك، ضرب فعل دے اوْ
"ك" ضمیر اسم دے، بیا هم دیے ته کلام نه ویلے کیږي، لیکن دا په هغه وخت کښے چه په ضرب
کښے ضمیر دَ فاعل مستتر اُونه وایے. جواب. په کلام کښے لابدي ده، دَ اسناد نه اوْ دَ اسناد دَ پاره
لابدي ده، دَ مسند او مسند الیه نه. دلته کښے اګر که فعل مسند دے، لیکن (كَ) مسند الیه نه دے ځکه
چه دا مفعول دے (اوْ مفعول فضله دي). سوال. ته خو وایے چه کلام مرکب وي دَ دوه اسمونو اوْ یا دَ

---

(پاتے دَ بل مخ نه)... اوْ هم مسند الیه، نو دغه دوه احتمالات په کښے معتبر شول. ۱۲ (م.س).

اِسم او فعل نه، نو ځکه به دېته اومبنا یم چه کلام به وي او مرکب به وي د حرف او اسم نه لکه یازید.

**جواب**. یا حرف نداء قائم مقام د اَدْعُوْ دے او اَدعو فعل دے، نو ترکیب د کلام د حرف او اسم نه منځ ته رانغلے بلکه د اِسم او د فعل نه راغے. **سوال**. یا حرف نداء ده او حرف خو غیر مستقل دے نو غیر مستقل د مستقل قائم مقام څنګه شو؟ **جواب**. د دغه شان سماع د عربو نه راغلی ده او قیاس لره په دے کښې دخل نشته ر.

# درس نمبر ۳۰

## الاسم مادل علیٰ معنی فی نفسه غیر مقترن باحد الازمنة الثلثة

ترجمه:- قسم اوّل د اقسامو د کلمے نه چه هغه اسم دے دا هغه کلمه ده چه دلالت کوي، په معنیٰ بانډې، هسې معنیٰ چه حاصله او ثابته وي، په ذات د دې کلمے کښې او دا معنیٰ منظور الیه بالذات وي او هسې معنیٰ چه متعلقه نه وي، په دلالت خپل کښې ضم د کلمے اُخریٰ وته او هسې معنیٰ چه مقترنه نه وي، په یو د ازمنه وثلاثه و مخصوصه پورے په اعتبار د اصل وضع سره (یا هسې معنیٰ چه معتبره وي، په اعتبار د نفس خپل سره) رابطه یٔ د ماقبل سره دا ده، هرکله چه مصنف[ح] فارغ شو د بیان د تعریف او تقسیم او د وجه د حصر د کلمے نه او د بیان د تعریف او تقسیم د کلام نه نو شروع یٔ وکړه په بیان د تعریفاتو د اقسامو د کلمے کښې او د اقسامو د انواعو په تعریف او متعلقاتو کښې[۲]. الاسم کښې الف لام عهد خارجي دی او د دے د پاره معهود هغه اِسم دے، چه نکره ده، ځکه چه د نحاتو قاعده دا ده چه یو شے ذکر شي نکره او بیا ذکر شي معرفه، نو ثاني عین اُولیٰ وي. **سوال**. مصنف[ح] بحث د اقسامو د کلمے نه شروع کړو او د کلام د اقسامو نه یٔ بحث شروع نه کړو. **جواب**. اقسام د کلمے، د اقسامو د کلام نه زیات دي او په دے سره احکام هم ډیر زیات متعلق دي، په خلاف د کلام نه چه د دے خو اوّل اقسام نشته، او که شته دے نو هغه پورے بیا تعلق د احکام کثیر نشته. په دے وجه یٔ د کلمے په اقسامو باندې شروع اوکړه، دویمه وجه دا ده چه کلمه مفرده ده او کلام مرکب دے نو ظهور او خفا په مفرد کښې دا مستلزم ده، ظهور او خفا د مرکب لره، تحقیق په حرف 'ما' کښې. حرف 'ما' په دوه قسمه دے. یو حرفي دے او بل اِسمي. حرفي

---

ر. یعني یا حرف نداء قائم مقام د اَدعو، نو د دے تعلق د سماع سره دے، حتیٰ چه ستا اعتراض وارد شي. (م. س).

۲. یا یٔ رابطه داسې کړې ده. هرکله چه مصنف[ح] فارغ شو د بیان د جزء ثاني د موضوع نه چه کلام وو، پس شروع یٔ وکړه په بیان د تعریفاتو د اقسامو د کلمے او د اقسامو د انواعو کښې او د دے په متعلقاتو کښې. (م. س).

بیا په دریے قسمه دے، ما نافیه، ما زائده او ما مصدریه۔ او که چرته په دے مقام کښے ما نافیه مراد شی، لازمیږی فساد په کښے۔ مطلب به دا شی، چه اِسم دا هغه دے، چه دلالت نهٔ کوی او که ما زائده مراد شی، نو په هر تعریف کښے لابدی ده، د جنس او د فصل نه۔ بیا به دا ما په منزله د جنس و نهٔ کوځی، نو لازم به شی، تعریف به غیر د جنس نه او که چرے دا ما مصدریه مراد شی، نو دا هم نهٔ ده صحیح، ځکه چه دا ما خپل مدخول له کوځوی (چه هغه فعل دے) په تاویل د مصدر سره، نو په دے صورت کښے به حمل د صرف وصف راشی، په ذات باندے او دا ناجائز دے۔ بیا ما اِسمی په څلور قسمه دے، ما اِستفهامیه، ما شرطیه، ما موصوله او ما موصوفه۔ ما استفهامیه که چرته دلته مراد شی، نو دا نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه دا مقام د تعریف دے او مقام د تعریف دا محل د اِستفهام نه دے، ځکه چه اِستفهام هغه ته وائی چه د متکلم په هغه ځائے کښے شک وی او تعریف فائده کوی او شک د یقین سره منافی دے، نو ما اِستفهامیه صحیح نهٔ شو او ما اِستفهامیه شرطیه هم درست نهٔ دے، ځکه چه شرط جزاء غواړی او دلته کښے جزاء نشته۔ باقی پاتے شو ما موصوله او ما موصوفه، نو دا دواړه صحیح کیږی، که ما موصوله شی، نو بیا الاسم به معرّف شی او ما دل علیٰ معنیً به معرّف شی، ځکه چه اصل په معرِف کښے تعریف دے او ما موصوله هم معرفه ده او که چرته کښے ما موصوفه شی، نو الاسم به مبتدا شی او ما دل به ورله خبر شی، ځکه چه اصل په خبر کښے تنکیر دے او ما موصوفه هم نکره ده۔ په دے سره مونږ ته لوخاص فائده هم حاصله شوه، هغه دا چه شارح ملاجامیؒ کله وائی چه دا ما موصوله ده او کله وائی چه دا موصوفه ده، نو چه کله مونږ دا تحقیق اوکړو او فرق موبیان کړو، چه کله ما موصوله شی، نو لحاظ د معرف مو وکړو او کله چه موصوفه شی، نو لحاظ د خبر مو وکړو، اوس به د طالب په ذهن کښے شبهه نه راځی او نهٔ به ئے ذهن مشوش کیږی[1].

**سوال** ۔ دا ما به یا عبارت وائی د شی نه یا به ئے عبارت وائے د لفظ نه او یا د اِسم نه او یا د کلمے نه، والکل باطل۔ که چرے ما عبارة شی د شی نه، نو تعریف د اِسم مانع نهٔ کوځی، د دخول د غیر

---

[1] دلته د حرف ما تقسیم ته اِشاره وشوه۔ پس مناسب ده دا خبره په شکل حوړه شی۔ ۱۲ (م۔ش)۔



نہ اوځ داخلیږی په کښې دوال اربعه، ځکه چه هغه هُم په دے معنیٰ دَ اِسم دلالت کوی اَوکهٔ عبارت شی دَ لفظ نہ، نو بیا هُم تعریف مانع کرځی، دَ دخول دَ غیرونه اَوْ داخلیږی په کښې مرکبات اَوْ کهٔ ما عبارت آخلی دَ اِسم نہ، نو اَخذ دَ محدود راځی په حد کښې اَوْ دا ناجائز دے اَوْ کهٔ عبارت یئے دَ کلمے نه آخلی، نو مطابقت نه راځی په مابین دَ راجع اَوْ مَرجع کښې، ځکه چه کلمة مؤنث دهٔ اَوْ (ه) ضمیر دَ مذکر دے اَوْ مطابقت ضروری دے په مابین دَ راجع اَوْ دَ مرجع کښې۔ **جواب**۔ دا ما عبارت دے دَ کلمے نه اَوْ کهٔ ته وائیے چه مطابقت الخ، په مابین دَ راجع اَوْ دَ مرجع کښې، نو مونږ وایو چه تذکیر دَ ضمیر په اعتبار دَ تعبیر سره دے، یعنی په اِعتبار دَ موصول سره دے، چه هغه مَا دے، اَوس هر کلمه چه مَا عبارت وګرځیدو دَ کلمے نه، نو دَلّ بهٔ په معنیٰ دَ دلت سره شی چه الاسم کلمة دلت۔

## درس نمبر ۳۱ :-

فی نفسه جار مجرور دے اَوْ په جار مجرور کښې لا بدی وی دَ متعلق نه، نو دَ دے متعلق بهٔ یا ظرفِ لغو وی، نو هغه دلّ دے، بیا په دے کښې دوه احتماله دی، یا بهٔ دا فی په معنیٰ دَ با سره آخلو یا بهٔ یئے په معنیٰ خپله باندِ آخلو اَوْ کهٔ متعلق یئے ظرف مستقر شی چه هغه کائن دے، په دے کښې هُم دوه اِحتماله دی. یا بهٔ کائن حال واقع شی دَ معنے نه اَوْ یا بهٔ دا صفت واقع شی دَ پاره دَ معنے، نو کل څلور احتماله شو، په دے څلورو احتمالو کښې په دے کښې دریئے اِحتماله نهٔ دی صحیح اَوْ یو اِحتمال صحیح دے چه هر کله فی نفسه دَ ظرفِ لغو سره متعلق شی، نو په دے کښې یو دے اِحتمال چه فی په معنیٰ دَ با شی، دا ځکه نهٔ دے صحیح چه دا مجاز دے اَوْ صیرورة مجاز ته بے دَ ضرورت داعیه نه ناروا دے۔ بیا دَ دے دریئے واړو احتمالاتو دَ عدم صحت عمومی وجه دا ده، هر چه دے ظرف لغو، نو جار مجرور دَ خپل متعلق دَ پاره قید وی، نو دا بهٔ قید ګرځی، دَ پاره دَ دلّ اَوْ هر چه دے ظرف مستقر چه کائن حال واقع شی دَ معنے نه، نو قاعده دا ده چه حال قید وی، دَ پاره دَ عامل دَ ذو الحال اَوْ عامل دلته کښې دلّ دے، لنو

---

۱. عمومی وجه دَ عدم صحت دَ دے واړو احتمالاتو دا ده چه په صورت دَ ظرف لغو کښې برابره خبره ده که فی په معنیٰ دَ با سره وی، اَوْ کهٔ په خپله معنیٰ ثابته وی، نو دا بهٔ متعلق شی په دلّ پورے اَوْ قاعده دا ده چه هر متعلق بهٔ قید وی دَ پاره دَ خپل متعلق، نو پس دا فی بهٔ قید ګرځی، دَ پاره دَ دلّ چونکه دلّ خو مقید نه دے، نو متوهم بهٔ دا توهم کوی، چه دلالت مقید په اِسم کښې قوی دے په خلاف دَ فعل اَوْ حرف نه۔ حالانکه نفس دلالت په دریئے واړو کښې مساوی دے اَوْ هر چه احتمال ثالث دے، یعنی ظرف مستقر په هغه صورت کښې چه کائن حال واقع شی، دَ پاره دَ معنے اَوْ قاعده دا ده چه حال قید وی، دَ پاره دَ عامل دَ ذو الحال، نو ذو الحال دلته معنیٰ ده اَوْ عامل دَ ذو الحال دلّ دے، نو متوهم دا توهم کوی چه دلالت دَ اسم قوی دے په نسبت دَ فعل اَوْ حرف وته، حالانکه دا سے نه ده۔ پس معلومه شوه چه فی نفسه متعلق دے په کائن مقدر پورے اَوْ کائن صفت دے دَ پاره دَ معنے۔ ۱۲.

متوهم به دا وهم کوی چه دلالت د اِسم دا قوی دے، د دلالت د فعل او د حرف نه، حالانکه په نفس دلالت کښې ټول برابر دی. **سوال.** په نفسه کښې دا "ه" ضمیر به یا راجع کوے اسم ته یا کلمے ته یا معنیٰ ته هر واحد د دے نه نه صحیح کیږی، که اِسم ته یې راجع کوے، نو معنیٰ به دا اوګرځی، چه الاسم مادل علی معنیٰ فی نفس الاسم، نو په دے سره خلوف نقصانات لازمیږی. اوّل دا چه اخذ د محدود راشی په حد کښې. دوئیم دا چه ظرفیة د اِسم راشی د پاره د خپل نفس. دریم دا چه مخالفت راشی د تصریح د مصنف نه چه هغه په خپل کتاب الیضاح کښې کړی ده، چه ضمیر یې راجع کیږے دے معنیٰ ته. څلورم دا چه، لازمیږی فساد په معنیٰ د حرف کښې او که چرته کلمے ته یې راجع کړو، نو د ټے نقصانه لازمیږی، اوّل دا چه په مابین د راجع او مرجع کښې مطابقت نه راځی. دوئیم دا چه مخالفت راځی د تصریح د مصنف نه چه هغه ضمیر راجع کړے دے معنیٰ ته. دریم دا چه ظرفیة د کلمے لازمیږی او که دا ضمیر مونث راجع کړو معنیٰ ته، نو ظرفیة د شی لازمیږی د پاره د خپل نفس. **جواب.** دا دے چه "ه" ضمیر راجع دے کلمے ته. که ته وائے چه په مابین د راجع او مرجع کښې مطابقت نشته، نو زه وایم چه تذکیر د ضمیر په اِعتبار د تعبیر سره دے، چه هغه ما موصول دے. باقی که ته وائے چه مخالفت لازمیږی د تصریح د مصنف نه، نو مونږ وایو چه مخالفت نه راځی، ځکه چه کینونت د کلمے په معنیٰ یا د معنیٰ په معنیٰ کښې د دواړو مطلب او مال یو دے، چه هغه اِستقلال بالمفهومیة دے او که وائے سه ظرفیة د کلمے لازمیږی، نو زه وایم چه ظرف په دوه قسمه دے. یو ظرف حقیقی، بل ظرف مجازی تشبیهی. ظرف حقیقی، ظرف زمان یا ظرف مکان ته وائی. نو دلته کښې اګر که کلمه ظرف حقیقی نه ده، لیکن ظرف تشبیهی ده، په دے شان سره چه څنګه ظرف اِحاطه کړے وی، په خپل مظروف باندِ او په دے اِحاطه کښې دے محتاج نه وی، نو دغه شان کلمے د اِسم هم اِحاطه کړی ده، په خپله معنیٰ باندِ او په دلالت کښې چاته محتاجه نه ده، نو دا تشبیهاً ظرف شو او که ضمیر راجع شی معنیٰ ته، نو دا هم صحیح کیږی، که ته وائے چه ظرفیة د شی لازمیږی خپل نفس ته، نو مونږ وایو چه دا نه لازمیږی، ځکه چه دا فی اِعتباریه ده، ظرفیة نه ده، که څوک اووائی چه د فی اِعتباریه د پاره دلیل نشته، که هسے تحکم دے، یعنی دعوه بلا دلیله ده، نو جواب دا دے چه دلیل وړلو ما قول د عربو دے چه "الدار فی نفسها حکمها کذا" یعنی "الدار باعتبار نفسها". دلته کښې فی اِعتباریه ده. **سوال.** حرف خو هم دغه شان دلالت کوی، په خپله معنیٰ باندِ. **جواب.** مونږ په معنیٰ کښې د قید لګولو دو چه دغه معنیٰ منظور الیه بالذات وی، نو دا یو معنیٰ منظور الیه بالذات ده او بله منظور نه. بالواسطه

---

ز ظرف مجازی تشبیهی هغه ته وائی چه د تشبیه د علاقے په وجه ظرفیة د یو شی راثابته ... ی، د پاره د شی آخر. ۱۲۔

. . دلته کښې زمونږه مراد هغه معنیٰ ده، چه منظور الیه بالذات وي اَوْ حرف چه دلالت کوي په خپله معنیٰ باندې، لوړا منظور الیه بالواسطه ده. لکه چه ځنګه ممکناتِ موجوده فی الخارج په دوه قسمه دي - یو قائم بالذات چه هغې ته جوهر وائي اَوْ بل قائم بالغیر چه هغې ته عرض وائي، لو دغه شان معنیٰ هُم په دوه قسمه ده، یو معنیٰ قائم بالذات اَوْ بل معنیٰ قائم بالغیر. معنیٰ قائم بالذات، معنیٰ اِسمی شوه اَوْ معنیٰ قائم بالغیر، معنیٰ حرفي شوه. په غیر مقترنٌ کښې درې واړه اعرابات صحیح دي، چه غیرُ مرفوع شي، لوړا به خبر شي د پاره د مبتدا محذوف، چه هُوَ دے، اَيْ هو غیر مقترن اَوْ که غیرَ منصوب شي، لوړا به حال واقع شي د معنی د پاره اَوْ که غیرِ مجرور شي، لو دا به صفت شي د پاره د معنیٰ (صفت ثاني) په اِعتبار د اَصل وضع قید دوسره په دې وجه کېښود، چه دفع د څو اعتراضاتو ولشي.

**سوال**. ستاد تعریف جامع اَوْ مانع نهٔ دے، خپلو افرادو لره. داخل شو به کښې افعال منسلخه عن الزمان، ځکه چه دوئ په زمانه دلالت نهٔ کوي، یعنې مقترن نهٔ دي ورسره اَوْ دغه رنګ خارج شو ترینه اسماءُ افعال، ځکه چه دوئ مقترن دي د زمانے سره. **جواب**. مُراد په اِقتران سره اِقتران دے، په اَصل وضع کښې، لو به افعال منسلخه کښې په اعتبار د اَصلِ وضع سره اِقتران دے د زمانے سره اَوْ په اِسماءُ افعال کښې په اصل وضع کښې اِقتران نشته دے، د زمانے سره اَوْ اِعتبار اَصل وضع لره دے، نهٔ اِستعمال لره! **سوال**. ستاد تعریف مانع نهٔ شو، د دخول د غیر نه اَوْ داخله شوه، په کښې مضارع، ځکه چه دا په دوؤ زمانو پورے مقترن نه ده. **جواب**. مُراد په زمانے سره مطلق اقتران دے، په زمانے پورے برابره خبره ده چه یوه زمانه وي که زیاتے وي.

**سوال**. ستادا تعریف جامع نهٔ شو، خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترینه اِسم فاعل اَوْ اِسم مفعول، ځکه چه د دوئ هُم اقتران په زمانے پورے شته. **جواب**. مراد په اقتران سره اقتران دے، په اَصل وضع کښې اَوْ په اَصل وضع کښې دوئ مقترن نهٔ دي! **سوال**. ته وائے چه په اِسم کښې احتیاج نشته دے. نهٔ به دلته اَومنایم چه اِسم به دي اَوْ احتیاج به په کښې وي، لکه ظروف لازم الاضافت چه قبلُ اَوْ بعدُ وغیره دي، چه دوئ محتاج دي مضاف الیه ته. **جواب**. په دوئ کښې په اَصل وضع کښې احتیاج نشته، بلکه په اِستعمال کښې دے اَوْ خبره زمونږ په اَصل وضع کښې ده، نهٔ په استعمال کښې!

## درس نمبر ۳۲:

په تعریف د اِسم باندې یو عمومي **سوال** وارديږي چه تا تعریف د اِسم ولے مقدم کړو؟ په فعل اَوْ په حرف باندې، دا خو ترجیح بلا مرجح ده. اَوَّل **جواب** تعریف د اِسم ئې مقدم کړو، په فعل اَوْ په حرف باندې، د پاره د دې چه موافقت راشي په مابین د اجمال اَوْ د تفصیل کښې، ځکه چه په اجمال کښې ئې اِسم مقدم کړے وو، لو په تفصیل کښې ئې هُم مقدم کړو! دویم **جواب** اِسم ئې مقدم کړو، د وجې د شرافت اَوْ اَصالت نه، ځکه چه اِسم اشرف دے. ...

نسبت سره فعل اَوْ حرف ته، ځکه چه اِسم په ترکیب دَ کلام کښې محتاج نهٔ دے فعل ته اَوْ حرف خو دَ سره جز نه واقع کیږی دَ کلام نه (یعنی نهٔ مسند اَوْ نهٔ مسندالیه) اَوْ فعل خو مسند راځی لیکن مسند الیه نه راځی اَوْ غیر محتاج اَشرف وی په نسبت سره محتاج ته اَوْ وجه دَ اصالت یٔ دا دهٔ، چه اَصل په الفاظو کښې اعراب دے اَوْ اَصل په اسماء کښې هُم اعراب دے. نو ده کښې دا خبره چه په هَر تعریف کښې لابُدی دهٔ، دَ جنس اَوْ دَ فصل نه، دلته کښې ما جنس دے، تمام کلمات په کښې داخل شو. دلّ علیٰ معنیً فی نفسه، دا فصل اَوَّل شو په دے سره تری نه حرف خارج شو اَوْ غیر مقترن الخ. دا فصل ثانی شو په دے سره تری نه فعل خارج شو! **سوال**. مراد بهٔ دَ معنیٰ نه یا معنیٰ مطابقی اَخلے اَوْ یا معنیٰ تضمنی، کهٔ معنیٰ مطابقی اخلے لو معنیٰ مطابقی دَ فعل غیر مستقله دهٔ، نو په دلّ علیٰ معنیٰ فی نفسه سره چه څنګه حرف خارج شو، دارنګے فعل هُم خارج شو، نو بیا په غیر مقترن سره اخراج دَ فعل دا خو نه دے، مګر اخراج دَ مخرج دے اَوْ دا باطل دے اَوْ کهٔ دَ معنیٰ نه معنیٰ تضمنی مُراد اَخلے، نو بیا تری نه بعض اَفراد دَ اِسم خارجیږی، هغه اَفراد دَ اِسم چه هغه بسیط دی اَوْ دَ هغوی دَ پاره جز نهٔ وی، چه معنیٰ تضمنی په کښې متحققه شی، لکه مصدر شو. **جواب**. مراد دَ معنیٰ نه، مطلق معنیٰ دهٔ. برابره خبره دهٔ چه هغه معنیٰ مطابقی وی اَوْ کهٔ تضمنی وی.

## ومن خواصه دخول اللام

ترجمه:- اَوْ بعض دَ هغه امورو نه چه موجودیږی، په اِسم کښې نهٔ، په غیر کښې. هغه امور چه کتو دی، په نفس الامر کښې. هغه بعض چه معظم اَوْ مکبر دی، یو دَ هغې نه دخول دَ لام تعریفی دے، په اَوَّل دَ اِسم کښې. په دے عبارت دَ مصنفؒ باندې دا **سوال** واردیږی چه مقصود دَ علم نحو نه معرفت دے، دَ اَحوالو دَ کلمے اَوْ دَ کلام دَ حیثیت دَ اعراب اَوْ دَ بنا نه، نو اشتغال دَ مصنفؒ په تعریف دَ کلمے اَوْ دَ کلام باندې خو اشتغال بمالایعنی نه دے، ځکه چه دا موقوف علیه دی، دَ پاره دَ مقصود، لیکن اشتغال دَ مصنفؒ په خواصو دَ اِسم باندې، دا بمالایعنی اَوْ بے مقصد دے، ځکه چه خواص دَ اِسم دا نه په خپله مقصود بالذات دی، دَ علم نحو نه اَوْ نه موقوف علیه دی، دَ پاره دَ مقصود. **جواب**. دَ اِسم دَ پاره دوه وجود دی، یو وجود ذهنی دے اَوْ دویم وجود خارجی. وجود ذهنی خو حاصل شو، په تعریف سره اَوْ هرچه دے وجود خارجی، نو هغې ته یٔ اِشاره اوکړه، په ذکر دَ خواصو سره، دَ پاره دَ مزید وضاحت اَوْ زیادت وضاحت. دا مستلزم دے، زیادتِ بصیرت لره. لو په دے وجه باندې مصنفؒ اووئیل چه بعض دَ خواصو دَ اِسم نه (و من خواصه) دا ما سیاتی امور دی. نو کوم دا خبره چه مصنفؒ دلته کښې پنځهٔ خواص ذکر کړی دی اَوْ وجه دَ حصر په پنځو کښې دا ده، چه دا خواص به خالی نهٔ وی، یا به اَمر لفظی وی اَوْ یا به

امرِ معنوی وی که امر لفظی وی، نو بیا به خالی نهٔ وی، یا به په اوّل دَ کلمې کښې وی یا یا به په آخر دَ کلمې کښې وی، که چرې په اوّل دَ کلمې کښې وی، نو دا شته الف لام او که چرې په آخر دَ کلمې کښې وی، نو بیا به خالی نهٔ وی یا به نفسِ حرکت وی او یا به تابع دَ حرکت وی، که نفس حرکت وی، نو دا جر شو او که تابع دَ حرکت وی، نو دا تنوین شو او که چرې امرِ معنوی وی، نو بیا به خالی نهٔ وی یا به په ضم دَ مرکب تام سره وی، او یا به نهٔ وی، که چرې وی ضم دَ مرکب تام سره وی، نو دا اسناد شو او که چرې په ضم دَ مرکب سره نهٔ وی، نو دا اضافت شو. **سوال** دا راځي چه مصنف رحمه الله کښې پنځه خواص ذکر کړه او صیغه یې دَ جمع کثرة راوړه، چه دَ هغې اطلاق په عشره یا مافوق دَ عشره باندې کیږی، نو دا دلیل دَ مصنف رحمه الله صیغه دَ جمع مکسر یا جمع کثرت لره صحیح نهٔ شو. **جواب**. مصنف رحمه الله اتیان کړے دے په جمع مکسر سره په دې کښې اشاره ده دې خبرے ته، چه خواص دَ اسم په نفس الامر کښې کثیر دی.

**سوال**. بنا دَ متونو په اختصار باندې ده، نو بیکار وو چه مصنف رحمه الله وخواصه ویلي دي نو دَ من راوړلو ته حاجت نهٔ وو. **جواب**. مصنف رحمه الله من ذکر کړو دَ پاره دَ فائدے او هغه دا چه دا من تبعیضیه دے، په دې سره یې بعض خواصو دَ اسم ته اشاره اوکړه! **سوال**. دا پنځه خواص یې ولې په خصوصیت سره ذکر کړه؟ **جواب**. دا پنځه وارهٔ په دې کثیرو خواصو کښې معظم او مکبر وو، نو ځکه مصنف رحمه الله په خصوصیت سره ذکر کړل.

## درس نمبر ۳۳:

زده کړه دا خبره چه خواص جمع دَ خاصة ده او خاصه دې ته وائي چه مالا یوجد فیه ولا یوجد فی غیره یا ما یختص بحقیقة واحدة، لکه ضحك شو دَ پاره دَ انسان. **سوال**. بعض دَ اسماء نه داسې دی، چه په هغوی باندې الف لام نهٔ داخلیږی، اسماء اشارات شو یا ضمائر او خواصه خو دې ته وائي چه مالا یوجد فیه ولا یوجد فی غیره. **جواب**. دا دے چه خاصه په دوه قسمه ده، یو خاصه شامله ده او دویمه غیر شامله ده. خاصه شامله هغه ته وائي چه پیدا دَ ذی الخاصه په تمام افرادو کښې په کلي یقینت کښې موجود وی، لکه کتابت بالقوه شو دَ پاره دَ انسان. غیر شامله هغه ته وائي چه خاصه دَ ذی الخاصه په تمام افرادو کښې نهٔ وی موجود، لکه کتابت بالفعل شو دَ پاره دَ انسان، نو دلته کښې مراد دَ خاصے نه خاصه غیر شامله ده، چه دا شامله نهٔ ده دَ ذی الخاصه تمامو افرادو لره، چه هغه اِسم دے، بلکه بعضو افرادو لره شامله ده، یا مُراد دَ خاصے نه دلته کښې مطلق خاصه ده، چه شامله وی او که غیر شامله. غیر شامله لکه الف لام شو او شامله لکه تنوین وغیره شو.

**سوال**. نهٔ خو ولې چه دَ خواصو دَ اِسم نه دخول دَ لام دے، یعنی لام سوا دَ اِسم نه په بل چا نهٔ داخلیږی، نهٔ به دوه دلته اِیجابیه چه للامرنه په فعل داخل شوی وی، لکه امر شو یا لام تاکید.

**جواب**. مُراد په لام سره، لام تعریفي دے. **سوال**. مصنف رحمه الله ولے د خول الالف واللام للتعریف

اَوَنۂ وئیل۔ **جواب**. په الے دَ تعریف کښې اِختلاف دے په نزد دَ سیبویه باندِ اله دَ تعریف صرف لام دے اَوْ اضافه ورسره دَ همزې وصلی اوشوه دَ پاره دَ دے چه ابتداء بالساکن رانۂشی ځکه چه دا لام سکن دے اَوْ ابتداء بالساکن محاله ده اَوْ دے په اَوّل دَ کلمے کښې راځی اَوْ اله دَ تعریف صرف لام ځکه دے چه تعریف ضد دے دَ تنکیر اَوْ دَ تنکیر دَ پاره تنوین راځی چه هغه درحقیقت نون ساکنه دے بل مذهب دَ خلیل دے دَ هغه په نزد باندِ الف اَوْ لام دواړه اله دَ تعریف دے لکه چه څنګه هل راځی دَ پاره دَ استفهام چه دا دوه حرفه دی نو اله دَ تعریف هم دا دوه حرفه شو بیا په مذهب دَ خلیل باندِ دا اِعتراض راځی چه هرکله اله دَ تعریف دا دواړه شو نو بیا دا همزه په درج دَ کلام کښې ولے ساقطیږی؟ نو دَ هغه دَ طرفه جواب دا دے چه په دغه صورت کښې لام قائم مقام دَ دے اوګرځیږی اَوْ په نزد دَ مبرد باندِ اله دَ تعریف همزه ده فقط لکه چه څنګه دَ استفهام دَ پاره همزه راځی نو دغه شان دَ تعریف دَ پاره هم راځی اَوْ زیات کړے شو دَ دے سره لام ساکن دَ پاره دَ دے چه فرق راشی په مابین دَ همزے دَ اِستفهام اَوْ همزے دَ تعریف کښې چونکه دلته په نزد دَ مصنف مختار مذهب دَ سیبویه دے نو ځکه ئې دخول اللام اووے نو په دے سره اِختلاف اَوْ مذهب مختار دواړو ته اشاره راغله۔ **سوال**. چه څنګه لام دَ پاره دَ تعریف راځی، نو دغه شان میم هم دَ پاره دَ تعریف راځی لکه په دے قول کښې "الیس من مبرٍ امصیام فی مسفر" یعنی "الیس من البرّ الصیام فی السفر". نو تاولے میم ذکر نۂ کړو؟ **جواب**. میم ئې ذکر نه کړو یا دَ عدم شهرت نه یا دا چه ما نادر لغت دے اَوْ یا دا چه داخل دے په لام کښې یعنی بدل راغلے دے دَ لام نه!۔ **سوال**. الف لام تعریفی ولے دَ خواصو دَ اسم نه اوګرځېدل؟ **جواب**. الف لام وضع شوی دی دَ پاره دَ تعین دَ معنٰی مستقلے چه په هغې باندِ لفظ دلالت کوی مطابقةً۔ پس هرچه دے حرف۔ هغه خو په معنٰی مستقل بالمفهومیة باندِ دلالت نۂ کوی، یعنی په حرف کښې اِستقلال نشته، په دے وجه په حرف الف لام نۂ داخلیږی اَوْ هر چه دے فعل، نو په فعل کښې اګرچه اِستقلال شته، یعنی دلالت کوی، په معنٰی مستقل بالمفهومیة باندِ اَوْ الف لام هم وضع شوی دی، دَ پاره دَ معنٰی مستقل بالمفهومیة، خو معنٰی مطابقی دَ فعل غیرمستقل ده اَوْ معنٰی تضمنی ئې مستقل ده۔ ولے چه دلته کښې اِستقلال دے، په معنٰی مطابقی کښې چه هغه دَ فعل په معنٰی مطابقی کښې نشته په دے وجه الف لام تعریفی دَ خواصو دَ اِسم نه اوګرځېدل۔ دویمه داده، چه الف لام تعریفی وضع شوی دی دَ پاره دَ تعین دَ ذات اَوْ فعل اَوْ حرف دا ذات نۂ دی، یعنی دوی دواړه په ذات دلالت نۂ کوی۔ پس متعین شو دخول دَ دوی په اِسم باندِ۔

# درس نمبر ۳۴

**والجرُّ**

ترجمه:- اَوْ بعضے دَ خواصو معظمو مکبّرو دَاِسم نه جر دے۔ لفظاً وی که تقدیراً اَوْ یا دا معنیٰ چه بعضے دَ خواصو معظمهٔ مکبّرو دَ اِسم نه کېدل دَاِسم دی مجرور۔ دلته کښې والجرُّ مجرور هُم وئیلے شی اَوْ په دغه صورت کښې به دے عطف اوکرځېږی، په اللام باندې اَوْ هغه مجرور دے، حُکم چه مضاف الیه دے اَوْ مضاف الیه مجرور وی، نو دا به هم مجرور شی اَوْ په دغه وخت کښې به بیا ترینه معنیٰ اصطلاحی مُرادوی اَوْ چه کلمه دَ الجرُّ مرفوع اُووایو، نو په دغه صورت کښې به دا عطف اوکرځېږی، په دخول باندې اَوْ هغه مرفوع دے، نو دے به هُم مرفوع شی، نو په دغه صورت کښې به معنیٰ مصدری ترې مرادشی۔ **سوال**. جر دَ اِسم سره ولے خاص کړو؟ **جواب**. جر اَثر دَ حرفِ جر دے اَوْ حرفِ جر خاص دے په اِسم پورے، نو جر هُم خاص کړو دَ اِسم پورے، دَ پاره دَ دے چه مخالفت رانه شی په مابین دَ اَثر اَوْ مؤثر کښې! **سوال**. حرفِ جر ولے خاص کړو په اِسم پورے؟ **جواب**. حرفِ جر وضع شوے دے دَ پاره دَ افضاء معنیٰ دَ فعل یا دَ شبهه فعل خپل مدخول ته اَوْ حرف نه مفضی واقع کېږی اَوْ نه مفضی الیه لوُ هُم چه دے فعل، هغه خو مفضی واقع کېږی، خو مفضی الیه نه واقع کېږی!

**سوال**---- دا قاعده ستا منقوضه شوه په غلام زید سره، چه دلته کښې مجرور دے، سره دے نه دلته حرفِ جر نشته۔ **جواب**. موږ وئیلی دی چه حرفِ جر عام دے۔ لفظاً وی که تقدیراً نو په غلام زید کښې لام جاره مقدر دے، چه دا په اَصل کښې غلام لزید دے۔

**سوال**. دا قاعده ستا منقوضه شوه په اضافت لفظی سره، په نزد دَ هغه دَ چا چه معنوی والی، چه په اضافت لفظی کښې حرفِ جار نشته، نه لفظاً، نه تقدیراً۔ موږ والیو به **جواب** کښې چه اضافت معنوی اَصل دے اَوْ اضافت لفظی فرعه ده، نو چه کله په اَصل کښې موږ حرفِ جر اومنو، په فرعه کښې خو به هُم منل غواړی۔ کنے بیا به مخالفت واقع شی، په اَصل اَوْ فرع کښې اَوْ دا ناجائز دے۔

**والتنوينُ**

ترجمه:- اَوْ بعض خواصو معظمو مکبرو دَاِسم نه هغه لحوق دَ تنوینات اَربعه دے، سِوا دَ تنوین ترنم نه په آخِر دَ اِسم پورے اَوْ یا دا چه بعضے دَ خواصو معظمه مکبره دَ اِسم نه هغه منوّنُ کېدل دَ اِسم دی۔ تنوین په لغت کښې مأخوذ دے، دَ دے قول دَ عربو نه چه نَوَّنْتُهُ اے ادخلت علیه النون۔ په فارسی کښې نُون کردن ته والی اَوْ په **اِصطلاح** کښې دا هغه نون ساکن دے چه ملحق کېږی

په آخر دَ کلمې پورې اَوْ دے تابع وی، دَ حرکت دَ آخر دَ کلمې۔ التنوین مجرور هُم وئیلې شی اَوْ التنوین مرفوع هُم وئیلې شی، لکه څنګه چې په الجرّ کښې ټوه احتمالات وو، که التنوینِ مجرور یې اوولیو نو دے به عطف شی په اللام باندې اَوْ په دغه وخت کښې به یې معنیٰ اصطلاحی مُراد شی اَوْ که مرفوع یې اُوولیو نو دا به عطف شی په دخول باندې، په دغه صورت کښې به معنیٰ مصدری مراد شی، چې هغه منون دے۔ **سوال**. په التنوین کښې به الف لام یا جنسی والې اَوْ یا استغراقی یا عهد خارجی، والکل باطل، ځکه که چرې جنسی وائې نو معنیٰ به دا شی چې جنس تنوین دا خاصه دَ اِسم ده اَوْ حال دا یې نه دے، ځکه چې تنوین ترنّم څنګه په اِسم داخلیږی، نو دغه رنګې په فعل اَوْ حرف هُم داخلیږی، ځکه چې دا راځی، دَ پاره دَ تحسین، دَ صوت اَوْ تحسین دَ صوت، لکه څنګه چې په اِسم کښې راځی، نو دغه رنګې په فعل کښې اَوْ حرف کښې هُم راځی۔ مثال دَ تنوین ترنّم چې په فعل کښې راغلې وی، لکه په دے مصرعه کښې :-

ع و قولی ان اصبت لقد اصابن ۔ نو دلته کښې په اصابَ فعل باندې تنوین راغلې دے، اَوْ مثال دَ تنوین چې داخل شوے وی په حرف باندې، لکه "وکان قدن"، نو دلته کښې قد حرف دے اَوْ تنوین ورباندې داخل شوے دے اَوْ الف لام استغراقی هُم نه صحیح کیږی، ځکه چې بیا به معنیٰ دا شی، چې هر یو فرد دَ افرادو د تنوین نه دا خاص دے په اِسم پورې، حالانکه دا یې نه ده ځکه چې بعض دَ افرادو دَ تنوین نه تنوین ترنّم دے اَوْ دا خاص نه دے په اِسم پورې، دے چې څنګه په اِسم کښې راځی، نو دغه رنګې په فعل اَوْ حرف کښې هُم راځی، لکه چې مثالونه یې تیر شول اَوْ که نه یې الف لام عهد خارجی شی، نو هُم نه صحیح کیږی، ځکه چې هغه سبق معهود غواړی، اَوْ دلته کښې معهود نشته۔ **جواب**. دلته دَ الف لام نه الف لام عهد خارجی مراد دی اَوْ که ته وائې چې، دا سبق معهود غواړی اَوْ دلته کښې معهود نشته، نو جواب دا دے، چې معهود دلته کښې په الف لام سره هغه تنوینات اربعه دی، سیوا دَ تنوین ترنّم نه۔ هغه تنوینات اربعه دا دی:- تنوین تمکن، تنوین تنکیر، تنوین عوضی او تنوین مقابله. **سوال**. دا تنوینات اربعه ولې خاص دی په اِسم پورې؟ **جواب**. هرچه دے تنوین تمکن نو دا راځی دَ پاره دَ انصراف، انصراف اَوْ عدم انصراف دا په اِسم کښې راځی، په فعل اَوْ حرف کښې نه راځی اَوْ هرچه دے تنوین تنکیر

---

لے لکه په دے قول کښې شاعر په خپل شعر کښې وائی چې:-

سه تنوین پنج قسم شد اے یار من بگیر　　اول تمکن است و عوض ثالثش تنکیر

دیگر سر مقابله اوست ترنم برادرم　　این پنج یاد کن که شوی شاه بینظیر

نو دا راځي د بیاره د نکارت اَوْ نکارت اَوْ عدم نکارت په اِسم کښې راځي، په بل څه کښې نه راځي، بَلْ هَمْ چه دے تنوینِ عوضی، دا ځکه خاص دے په دے چه دا راځي عوض د مضاف الیه نه اَوْ اضافتِ خو د خواصو معظمه مکبّره و د اِسم نه دے اَوْ هَرچه دے تنوین مقابله دا ځکه خاص دے په اِسم پورے چه دا راځي په مقابله د نون د جمع سالم مذکر کښې، لکه جمع مذکر مسلمون کښې د نون مقابله مسلماتٌ کښې تنوین دے اَوْ تثنیه اَوْ جمع، تذکیر اَوْ تانیث په اِسم کښې راځي په وجه دا خاص شو په اِسم پورے. **سوال**. تثنیت اَوْ جمعیت، خو په اَفعالو کښې هَم راځي، لکه ضربا چه صیغه د تثنیه ده اَوْ ضربوا صیغه د جمع ده یا لکه یضربان یا یضربون شو اَوْ اضربا یا اضربوا شو. **جواب**. دا تثنیه اَوْ جمع د فعل نه ده، بلکه دا فاعل تثنیه اَوْ جمع شوے دے اَوْ فاعل خو نه دے، مګر اِسم دے.

## درس نمبر ۳۵

**والاضافة والاسناد الیه**

ترجمه:- اَوْ بعض د خواصو معظمه وَ مکبرهٔ اِسم اِسم نه هغه کېدل د اِسم دی، مضاف اَوْ مضاف الیه په تقدیر د حرف جر سره اَوْ بعض د خواصو معظمه مکبرهٔ د اِسم نه کېدل د اِسم دی، مسند الیه.

**سوال**. ظاهر متبادر د کلام نه دا خبره ده چه والاضافة والاسناد الیه دا عطف دے په مدخول د دخول باندې چه اللام دے، نه په نفس دخول باندې، ځکه کهٔ چرے دا عطف شي، په نفس دخول باندې، نو لازم به شي فصل په اَجنبي سره، په مابین د معطوف علیه اَوْ د معطوف کښې دا صحیح نه دے. **جواب**. والاضافة والاسناد الیه دا دواړه عطف دی په نفس دخول باندې نه، په مدخول د دخول باندې اَوْ دا دواړه مرفوع دی، ځکه کهٔ چرے دا عطف شي په مدخول د دخول باندې، عبارت بهٔ داسے شي چه 'ومن خواصه دخول اللام ودخول الاضافة ودخول الاسناد الیه' اَوْ ظاهره دَ چه، په دغه صورت کښې لازمیږي فساد په معنیٰ کښې، ځکه چه ظاهر متبادر معنیٰ د دخول یا ایراد د شي دے، په اَوّل د کلمے کښې یا لحوق د شي دے، په آخِر د کلمے پورے اَوْ هَرچه دے اضافت، نو دا یو اَمر معنوی دے اَوْ دے قابل نه دے د دخول یا د لحوق په کلمے پورے اَوْ دغه رنګ اسناد قس علیٰ هٰذا، ځکه چه اضافت دا نسبت دے په مابین د مضاف الیه اَوْ د مضاف کښې اَوْ اسناد دا نسبت دے په مابین د مسند اَوْ مسند الیه کښې. اَوْ س کهٔ نه وایُو چه په دغه صورت کښې فصل راځي ا... اَجنبي سره، په مابین د معطوف علیه اَوْ معطوف کښې یعني څهٔ وخت چه د دهٔ عطف راشي په نفس دخول باندې نو مونږ وایو چه فصل نه راځي په اَجنبي سره، په مابین د معطوف علیه

اَوْ معطوف کښې، ځکه چه مضاف اليه دا دَ متمماتو اَوْ متعلقاتو دَ مضاف نهٔ دے اَوْ فصل په متمماتو اَوْ متعلقاتو دَ شي سره دا فصل په اَجنبي سره نهٔ دے. **سوال**. مضاف ولے دَ خواصو دَ اِسم نه اوګرځېدو؟ **جواب**. چونکه لازم دَ مضاف چه هغه تخفيف، تخصيص اَوْ تعريف دے، دا خاص په اِسم پورے، نو مضاف هُم دَ خواصو دَ اِسم نه اوګرځېدو، ځکه چه فائده دَ اضافت، دا په دوه قسمه ده، يو لفظي اَوْ بل معنوي ده. هرچه ده لفظي، نو هغه سقوط دَ تنوين اَوْ قائم مقام دَ تنوين دے، دَ جانبه دَ مضاف اَوْ هرچه ده فائده معنوي، نو هغه تخصيص دَ مضاف دے، چه مضاف اليه نکره وي اَوْ تعريف دَ مضاف دے، چه مضاف اليه معرفه وي اَوْ دا ټول خاص دي په اِسم پورے، نو مضاف ځکه خاصه دَ اِسم وګرځېدله.

**سوال**. مضاف اليه ولے دَ خواصو دَ اِسم نه اوګرځېدو؟ **جواب**. مضاف اليه دا مدخول دَ حرفِ جر دے. اَوْ حرفِ جر داخلېږي په اِسم باندِ، نو په دے وجه باندِ مضاف اليه دَ خواصو دَ اِسم نه دے. **سوال**. ستا دا قاعده منقوضه شو په دے قول دَ باري تعالیٰ سره چه يَوْمَ يَنفَعُ الصادقين صدقهم، په دے شان سره چه تهٔ ئې ګورې، چه دَ مضاف اليه واقع کيدل، دا دَ خواصو دَ اِسم نه دے، نو دلته کښې يوم مضاف دے اَوْ مضاف اليه فعل دے، چه ينفع دے. **جواب**. دا مؤول دے، په تاويل دَ اِسم سره، چه هغه نفع دے، يعني يوم نفع الصادقين دے. **سوال**. ستا دا قاعده منقوضه شو په دے قول سره چه مررت بزيدٍ، په دے شان سره چه مررت فعل دے اَوْ مضاف واقع شوے دے اَوْ تهٔ ئې ګورې، چه مضاف دَ خواصو دَ اِسم نه دے. **جواب**. مونږ په ترجمه کښې دا خبره کړې ده، چه په تقدير دَ حرفِ جر سره اَوْ دلته کښې تقدير دَ حرفِ جر نهٔ دے را غلے، بلکه لفظاً موجود دے چه با ده.

**سوال**. خواص خو عوارض دي اَوْ مضاف اليه ذات دے، نو شمول دَ مضاف اليه دَ خواصو دَ اِسم نه نهٔ صحيح کيږي. **جواب**. مراد په مضاف اليه سره کونُ المضاف اليه من خواص الاسم، نو په دغه معنیٰ مضاف اليه ذات نهٔ شو.

## والاسناد اليه

ترجمه دَ عبارت مخکښې ذکر شوې ده اَوْ کوم سوال دَ عطف وارد بېدو په والاضافه باندِ، هغه په دے هُم راځي چه مخکښې ذکر شۀ اَوْ چه کوم جواب مونږ هلته کښې کړے وو، هغه جواب دلته کښې هُم دے.

---

[۱]. اي کون الاسم. يعنی کيدل دَ اِسم دي، مضاف اَوْ مضاف اليه په تقدير دَ حرفِ جر سره، نو په دے معنیٰ باندِ مصدر وګرځېد اَوْ مصدر ظرف وصف دے ـ (م ۳۰).

**سوال.** مسند الیه ولې د خواصو اسم نه دے؟ **جواب.** په مسند الیه کښې لابدي ده د استقلال نه او هر کله چه دا کښې لابدي شوه د استقلال نه، نو په حرف کښې خو اصلاً استقلال نشته او هرچه دے فعل، نو په دا کښې اګرچه استقلال شته او په معنیٰ مستقله دلالت کوي، خو دا واضع وضع کړے دے د پاره د مسند ابداً، نو که چرته موږ او س مسند الیه واقع کړو، نو مخالفت به راشي د وضع نه۔ **سوال.** اسناد نسبت دے په مابین د مسند او مسند الیه کښې، نو پکار دا ده چه څنګه مسند الیه د خواصو د اسم نه دے، نو مسند دې هم د خواصو د اسم نه اوګرځي، حالانکه مسند چه اسم راځي، نو دغه رنګ فعل هم راځي۔ **جواب.** مراد په والاسناد الیه سره کون الاسم مسنداً الیه دے فقط **سوال.** دا قاعده ستا منقوضه شوه، په دې قول باري تعالیٰ سره چه ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا﴾ په دې شان سره چه ته منې وائے چه مسند الیه د خواصو د اسم نه دے او دلته کښې خو آمنوا فعل دے او مسند الیه واقع شوے دے۔ **جواب.** دا مؤول دے، په تاویل د لفظ سره او لفظ اسم دے۔ **سوال.** دا قاعده ستا منقوضه شوه، په دې ترکیب سره چه مِن حرف جر، په دې شان چه دلته من حرف دے او سره د دې نه مسند الیه واقع شوے دے او ته خو وائے چه مسند الیه واقع کېدل د خواصو اسم نه دي۔ **جواب.** دا مؤول دے په تاویل د لفظ سره، نو تقدیر د عبارت به دا شي، چه لفظ مِنْ حرفٌ جرٍّ۔ **سوال.** ته وائے چه حرف مسند الیه نه واقع کیږي، نو بیا دلته او بنا یو چه معنیٰ د حرف به وي لا مسند الیه به راغلے وي، لکه وائي معنیٰ مِنْ الابتداءُ۔ **جواب** دا دے چه مراد په معنیٰ سره هغه معنیٰ حرف په هغه باندې دلالت کوي او دلته کښې من په الابتداءُ باندې دلالت نه کوي۔

**سوال.** خواص عوارض دي او مسند الیه ذات دے، نو ستا مسند الیه له د خواصو د اسم نه ګرځول صحیح نه دے۔ **جواب.** دا دے چه مراد په الاسناد الیه سره کون الاسم مسنداً الیه او دا معنیٰ مصدریه ده او مصدر ذات نه دے۔

## درس نمبر ۳۶

**وَهُوَ مُعْرَبٌ وَمَبْنِيٌّ** | ترجمه:- او دا اسم په اعتبار د مفهوم خپل سره منقسم دے منقسمین ته، چه یو معرب دے او بل مبني دے او یا دا چه دا اسم په اعتبار د مفهوم خپل سره معرب او مبني دے، چه عطف مقدم شي په ربط باندې او دا به د قبیلې د انواعو نه شي، په انواعو باندې نه د قبیلې د عطف د اجزاؤ نه په اجزاؤ باندې۔ ربط بیا دا دے، هر کله چه مصنف فارغ شو، د بیان د تعریف د اسم او د خواصو د اسم نه، نو شروع

ئے اوکړو، په بیان دَ تقسیم دَ اِسم کښې اَوْ دے ویلې چه وهو معربٌ ومبنیٌ. نحه کړو داخبره چه په دې مقام کښې لابدی ده، دَ معرفة، دَ امُوره ثلاثه نه. اوّلُ اُمروجه دَ تسمیې چه معرب ته معرب اَوْ مبنی ته مبنی ویلے والیٰ؟ دوَیم اُمروجه دَ حصر اَوْ دریم امروجه دَ تقدیم دَ معرب په مبنی باندې. اوّل امروجه دَ تسمیې دَ معرب دا ده، چه اعرب الرجل عن حجتهٖ. ای اظهرها، نو معرب داصیغه دَ ظرف شوه. معنیٰ ئې ما شو چه محل دَ اظهار اَوْ دے معرب مصطلح ته په دې وجه والیٰ چه دا محل دَ اظهار دَ معانئ متقضیه و دَ اعراب دے، چه هغه فاعلیة مفعولية اَوْ اضافة دے...... اَوْ یا دا معرب دَ عَرُب نه وُتے دے اَوْ عرب په معنیٰ دَ فساد باندې راځي، چه کله باب انعال ته منتقل شو نو همزه په کښې دَ پاره دَ سلب دَ مأخذ اوګرځېده، اِعراب شه، نو معنیٰ دا اوګرځېده، سلب دَ فساد اَوْ دے معرب ته په دې معنیٰ معرب ځکه والیٰ، چه دے مزیل دَ فساد دے، چه هغه اِلتباس دَ بعض معانیو دے سره دَ بعضو نه اَوْ هرچه ده وجه دَ تسمیې دَ مبنی په مبنی سره هغه دا چه مبنی مأخوذ دے، دَ بناٴنه اَوْ بناء بُنیاد ته والیٰ اَوْ دے مبنی مصطلح ته مبنی په دې معنې سره ځکه والیٰ چه څنګه بُنیاد برقرار وی، په خپل ځائے کښې، نو دغه رنګ مبنی هم دے اَوْ یا دا چه بناء په معنیٰ دامن سره ده، نو دې مبنی ته مبنی په دې معنې سره والیٰ، ځکه چه دا په اَمن کښې وی، دَ تغیر نه ـــــ دوَیم امروجه دَ حصر دَ دیے اِسم په معرب اَوْ په مبنی کښې دا ده چه دا اِسم به خالی نهٔ وی یا به مرکب وی سره دَ غیر نه اَوْ یا به نه وی، که چرے نهٔ وی، نو دا مبنی لکه اِسمائے معدوده، لکه زید عمر اَوْ بکر وغیره اَوْ که چرے مرکب وی سره دَ غیر نه، نو بیا به خالی نهٔ وی، یا به سره دَ عامله وی اَوْ یا به سره دَ عامله نهٔ وی، که چرے سره دَ عامله نهٔ وی، نو بیا مبنی اَوْ که سره دَ عامله وی، نو بیا به خالی نهٔ وی یا به ئې مشابهت راغلی وی، دَ مبنی اَوْ که نهٔ وی، نو دا یو قسم معرب وګرځېد ـــــ دریَم امروجه دَ تقدیم دَ معرب په مبنی باندې دا ده، چه معرب اَصل دے، په نسبت سره مبنی وته، ځکه چه اَصل په اسماء کښې اعراب دے اَوْ اعراب اَصل په اسماوو کښې ځکه دے، چه وضع دَ الفاظو دَ پاره دَ اظهار دَ مافی الضمیر ده اَوْ دا معنیٰ موجود ده په معرب کښې، نو معرب اَصل شو اَوْ اَصل مقدم وی. سوال. هو معربٌ ومبنیٌ کښې به یا ربط...... مقدم وائے، په عطف باندې اَوْ یا به عطف مقدم وائے، په ربط باندې. که چرے...... ربط مقدم وائے په عطف باندې، نو محل دَ

---

۱. که عبدالرحمٰن بلاّ ویلی دی چه ۔

۲. که ونه مستقیم په خپل مقام ئیم که خزان راباندې راغی که بهار

خاص راځي په عام باندې او کله چې عطف مقدم وايي په ربط باندې، نو حمل د امور متعدده متباینه لازمیږي، په شي واحد باندې۔ **جواب**. دلته نه عطف مقدم دے په ربط او نه ربط مقدم دے په عطف باندې، بلکه هو مبتداء ده او معرب او مبني ورله خبر دي۔ او س که څوک دا اووايي چې دلته خو بیا حمل د امورو متعدده راغے په شي واحد باندې، نو جواب دا دے چې دلته هو مبتداء ده او خبر یې محذوف دے، چې قسمان دے، نو عبارت به دا سے اوګرځي: وهو قسمان او د معرب د پاره به مبتداء محذوفه شي، چې هغه احدهما ده او د مبني د پاره به هم مبتداء محذوفه شي، چې هغه ثانیهما ده۔ **سوال**. هو قسمان مبتداء او خبر دی، او په مابین د مبتداء او خبر کښې مطابقت ضروري دے او دلته کښې خو مبتداء مفرده ده، چې هو دے او خبر تثنیه ده چې قسمان دے، نو مطابقت رانغلو په مابین د مبتداء او خبر کې۔ **جواب**. دا مؤول دے، په تاویل د قسمٌ قسمٌ سره، یا دا چې هو معرب ومبني کښې عطف مقدم دے، په ربط باندې او معنیٰ به دا سے شي چې د اِسم په اعتبار د مفهوم خپل سره معرب او مبني دے۔ کله نه وايي چې حمل د امور متعدده متباینه لازمیږي، نو زه وایم په جواب کښې، چې حمل د امورو متعدده متباینه په شي واحد باندې نه لازمیږي، ځکه چې دلته کښې عطف د انواعو راغلے دے، لکه وايي منطقیان چې الحیوان اِنسانٌ وفرسٌ، ولیکن دا عطف راغلے په انواعو باندې۔ نه د اجزاء په اجزاء باندې او یا دا چې هو معربٌ و مبني کښې دا واؤ په معنیٰ د او سره دے، نو معنیٰ به دا سے شي، چې هو معرب او مبني۔ یعنی دا اِسم په اعتبار د مفهوم خپل سره معرب دے او یا مبني دے، نو په دغه صورت کښې به تقدیم د ربط راشي په عطف باندې۔

## درس نمبر ۳۷

| | |
|---|---|
| **فالمعرب المرکب الذی لم یشبه مبنیّ الاصل.** | دلته دا فا تفسیریه راغلی ده او په دیے سره مصنفؒ تفسیر د معرب بیانوی۔ ترجمه د دیے عبارت دا ده، چې اِسم معرب دا هغه اِسم دے چې |

دے مرکب وی سره د غیر نه برابره خبره ده، چې که غیر په هغه کښې عامل وی یا مرکب وی، په دا سے ترکیب سره چې دے سبب وی، د پاره د تحقق د عامل هے اِسم چې دیے مشابهه نه وی، د مبني اَصل سره "هغه مبني چې اَصل وی په بناء کښې" په هغه مشابهت سره چې مؤثر وی په منع د اعراب کښې زده کړه دا خبره چې دلته کښې لا بدی ده، د معرفت د څو امورونه چې هغه امور خمسه دی۔ مشابهت، مبائنت، مماثلت، مشاکلت او مناسبت او دا ځکه چې دلته کښې

مصنف رح لفظ دَ لمو یشبه راوړے دے لو مناسب دی چه دے سره کومو قریب المعنی الفاظ دی، هغه هُم ذکر شی. پس مشابهت وئیلے شی، اشتراک دَ شئیونو ته په وصف خاصه کښے، لکه اِشتراک دَ رجل شجاع شو دَ اَسد سره، په وصف دَ شجاع کښے اَو مجانست وئیلے شی، اشتراک دَ شیئینو ته په جنس کښے، لکه اِشتراک دَ اِنسان اَو دَ فرس شو په حیوانیت کښے، ځکه چه حیوان دَ دواړو دَ پاره جنس دے اَو مماثلت وئیلے شی اِشتراک دَ شئیونو ته په نوع کښے، لکه اِشتراک دَ زید اَو عمرو شو په اِنسانیت کښے، ځکه چه اِنسان دَ دواړو دَ پاره نوع ده اَو مشاکلت وئیلے شی، اِشتراک دَ شئیونو ته په شکل کښے، لکه اِشتراک دَ هغه اَحمد چه منقوش وی، په جدار یا په قرطاس دَ هغه هیکل مخصوصه سره اَو مناسبت عام دے. برابره خبره ده، چه اِشتراک دَ شئیونو وی په وصف کښے، یا په جنس کښے، یا په نوع کښے، یا په شکل کښے. **سوال.** معرب دلته صفت دے اَو دَ هر صفت دَ پاره لابدی ده، دَ موصوف نه، لو دَ دے دَ پاره موصوف څه شے دے؟ **جواب.** چونکه دا بحث دَ اِسم دے، لو دَ دے دَ پاره موصوف هُم اِسم دے، فلا یرد ما یرد. **سوال.** تقسیم دَ اِسم معرب ته نه صحیح کیږی، ځکه چه قسم خاص وی اَو دلته معرب چه، قسم واقع شوے دے، لو دا عام دے، ولے چه معرب څنګه اِسم واقع کیږی، لو دغسے فعل هُم واقع کیږی، چه هغه فعل مضارع ده.

**جواب.** دلته کښے مُراد دَ معرب نه اِسم معرب دے، نه مطلق معرب اَو الف لام په المعرب کښے عهدی دی اَو معهود په دے سره اِسم[1] دے. **سوال.** ستا دا تعریف دَ معرب مانع اَونه ګرځید، دَ دخول دَ غیرنه اَو داخل شو په کښے ضرب، په دے ترکیب کښے چه ضرب زیدٌ په دے شان سره، چه دَ ضرب ترکیب سره دَ غیرنه راغلے دے، چه زیدٌ دے اَو مشابهه هُم نه دے، دَ مبنی اصل سره، بلکه په خپله مبنی دے. **جواب.** دلته دَ المرکب دَ پاره موصوف محذوف دے چه هغه الاسم دے، لو تقدیر دَ عبارت به داسے شی چه "فالاسم المعرب الاسم المرکب"، اَو شک نشته چه ضرب فعل دے اَو اِسم نه دے، لو دے داخل نه شو په تعریف دَ معرب کښے. **سوال.** راوړل ستا مرکب لره په تعریف دَ معرب کښے نه دی صحیح، ځکه چه معرب قسم دے، دَ اِسم نه اَو اِسم قسم دے، دَ کلمے نه اَو دَ کلمے په مفهوم کښے افراد ملحوظ دے اَو افراد منافی دے، دَ ترکیب سره.

**جواب.** مرکب په دوه[2] معنیو سره راځی، یو په معنیٰ دَ مجموع المضمومین اَو بل په معنیٰ

---

[1] اَو معرب قسم دے، دَ اِسم نه، لو دا خاص وګرځید، په خلاف دَ مطلق معرب. ۱۲ (م- س).

دَ مضموم مع الغیر لَوْ مُراد دلته کښې معنیٰ ثالث دَهٔ، چه هغه مضموم مع الغیر دَهٔ، نه معنیٰ اوله۔ په دے جواب بانديِ **سوال** وارد یږي چه، دا خو اخذ دَ مشترک دے، په تعریف کښې او اخذ دَ مشترک په تعریفاتو کښې ناروا دے۔ **جواب**. اخذ دَ مشترک په تعریفاتو کښې په هغه وخت کښې ناروا دے، چه چرته کښې قرینه صارفه داله په تعین دَ معنیٰ مُراد بانديِ نهٔ وی، او دلته قرینه داله بشته، هغه دا چه کله تعدیه دَ مرکب په علیٰ سره راشی (یعني صله چه کله علیٰ راشی) نو په دغه وخت کښې بهٔ ترې نه معنیٰ ثالث مضموم مع الغیر مراد وی، او چه کله صله دَ مرکب مِنْ راشی، نو په دغه وخت کښې ترې معنیٰ اوله مجموع المضمومین مُراد وی لَوْ دلته علیٰ راغلے دے یا جواب دا دے، چه قرینه دلته کښې حالیه دَه، په تعین دَ معنٰی مُراد بانديِ، چه هغه بحث دَ اِسم دے۔ **سوال**. غلام په غلام زید کښې مرکب دے، سره دَ غیر نه او سره دَ دے نه دا معرب نه دے، بلکه مبنی دے۔ **جواب**. مکتفیٰ مونږ په معنٰی کښې وئیلی وو، چه مرکب وی، سره دَ غیر نه او دا غیر په دے کښې عامل وی او دلته خو غلام مرکب دے، سره دَ غیر نه، خو دا غیر په کښې عامل نهٔ دے۔ [1]

## درس نمبر ۳۸:- **سوال**.

تعریف دَ معرب ستا جامع نهٔ شو، خپلو افرادو له، او خارج شو ترې نه مبتداء او خبر، ځکه چه ظاهر متبادر مراد دَ ترکیب نه ترکیب دے، سره دَ عامل لفظی نه او په مبتدأ او په خبر کښې عامل معنوی دے او جمع دَ عامل لفظی سره دَ عامل معنوی نه دا محاله دَه۔ **جواب**. دا دے چه مونږ په معنٰی کښې دا وئیلی چه ترکیب ئې راغلے وی دَ غیر نه۔ برابره خبره دَه چه دا غیر به دهٔ کښې عامل وی یا سبب وی دَ پارهٔ دَ تحقق دَ عامل، نو دلته مبتداء او خبر دا مسند الیه او مسند دی او دا مشتمل دی په اسناد بانديِ او اسناد سبب دے، دَ پارهٔ دَ تحقق دَ عامل۔ **سوال**. ستا دا تعریف مانع او نهٔ گرځیدو، دَ دخول دَ غیر نه او داخل شو په کښې مبنیات چه هغه زید دے یا هیهات زید کښې او دَ اسمائے اشاراتو، مضمراتو او موصولاتو نه علاوه چه کوم مبنیات دی، هغه په کښې هم داخل شول، ځکه چه دَ معنوی مشابهت دَ مبنی اَصل سره نشته، البته مناسب ورسره دی **جواب**. مراد په عدم مشابهت سره عدم مناسبت دے، په دے جواب بانديِ **سوال** وارد یږي چه دا خو اخذ دَ مجاز راغے په تعریف

---

[1] په دے مقام کښې نعمتی استاذ دَ لطیفه په طور یو صنعت بیان کړے دے، هغه دا چه استاذ صاحب وفرمائیل چه زما والد مرحوم یو ورځ زما نه تپوس اوکړو، چه هیه هدایة النحو مرفوع ده که منصوبه دَه، که مجرور دَه، نو ما دلته په جواب کښې او وے چه هیه فی الحال خو صحیح نه دا، ځکه چه عامل ورسره نشته۔ ۲ (م.س).

کیږي ځکه چه لم يشبه تا په معنیٰ دَ لم يناسب سره واخستو اَوْ اخذ دَ مجاز په تعريفاتو کښې ناروا دے۔ **جواب**. اخذ دَ مجاز په تعريف کښې ناروا دے۔ په هغه وخت کښې ناروا دے چه چرته يوه قرينه نهٔ وي اَوْ دلته کښې قرينه موجوده ده، ځکه چه په تعريف دَ مبني کښې مصنف قيد دَ مناسبت معتبر کړے دے اَوْ معرب اَوْ مبني دواړه متقابلين دي اَوْ قاعده دا ده چه اعتبار دَ يو قيد وجوداً په يو دَ متقابلينو کښې دا مستلزم دے، اعتبار دَ هغه قيد لره عدماً په متقابل آخر کښې، نو چه هر کله اعتبار دَ قيد مناسبت اوشو په مبني کښې، نو دَ عدم مناسبت به اُوشي په معرب کښې۔ **سوال**. ستا دا تعريف جامع نهٔ شو خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترې نه غير منصرف، ځکه چه دَ دهٔ[1] مشابهت راغلے دے، دَ مبني اصل سره په وجود دَ فرعيتونو کښې په دے شان سره، لکه چه ځنګه فعل ماضي محتاجه ده، دوو څيزونو ته[2] چه هغه فاعل اَوْ مشتق منه دے، نو دغه شان غير منصرف هم محتاج دے سببونو ته، نو چه هر کله يې مشابهت راغلو دَ مبني اصل سره، نو پکار دا ده چه دے مبني اوګرځي اَوْ سره دَ دے نه چه دا معرب دے۔
**جواب**. مراد په مشابهت سره هغه مشابهت دے، چه مؤثر وي په منع دَ اعراب کښې اَوْ دلته کښې مشابهت دَ غير منصرف دَ ماضي سره دا ضعيف دے اَوْ دا مؤثر نهٔ دے، په منع دَ اعراب کښې بلکه په دے سره صرف دومره کار اُوشو، چه جر اَوْ تنوين يې منع کړل۔ **سوال**. ستا دا تعريف جامع نه شو خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترې نه اِسم فاعل چه، دے مشابه دے دَ مضارع سره چه اصل يې بناء ده چه هغه ماضي ده[1]۔ **جواب**. دَ مبني الاصل دوه معنے دي، يو هغه چه اصل يې بناء وي، بل هغه چه اصل وي په بناء کښې اَوْ دلته کښې دا دويمه معنیٰ مراد ده، چه اَصل وي په بناء کښې۔ لکه دَ مثال په طور چه يو ناوې په خپله ښائسته وي اَوْ بله هغه ناوې وي چه پخپله ښائسته نهٔ وي اَوْ مور اَوْ نيا يې ښائسته وي، نو معتبر خپل حُسن دَ ناوې دے، نه دَ مور اَوْ يا دَ نيا، لکه چه وئيلي دي رحمان بابا؟:

— هغه ناوې چه په خپله ښائسته نه وي  ‌ ‌ ‌ څوک به يې څهٔ کاندي ښائست دَ مور اَوْ نيا

نو دغه رنګ دلته کښې هم خپل بناء والے معتبر دے، نه دا چه اصل يې بناء وي۔

## درس نمبر ۳۹ :-

هر کله چه دَ مبني الاصل دَ پاره دوه معنے دي، يو هغه چه اصل وي په بناء کښې اَوْ يو هغه چه اصل يې بناء وي اَوْ مراد دلته کښې اوله معنیٰ ده۔ پس **سوال** وارد شو چه دلته کښې اضافت دَ شئ راغلے خپل نفس ته اَوْ اضافت دَ شئ خپل نفس ته

---

[1] يعني دَ فعل مضارع اصل بناء ده چه هغه ماضي ده۔ ۱۲ - (م-س)۔

دا باطل دے، ځکه چه لابدی دہ په اضافت کښې دَمغایرت نه اَوْ دلته په اضافت دَ شی کښې خپل نفس ته، په دے کښې تغایر نشته - **جواب**. دا اضافت بیانی دے اَوْ اضافت بیانیه دے ته وائی چه مضاف الیه بیان وی دَ پاره دَ مضاف، نو معنیٰ به دا اوګرځی چه لم یشبه مبنی الاصل اے مبنیا هو اصل البناء - زده کړه دا خبره چه دلته کښې په مابین دَ مبنی اَوْ دَ اصل کښې نسبت دَ عموم خصوص من وجه دے اَوْ مونږه په منطق کښې دا خبره کړی وه چه نسبتونه[1] په مابین دَ دوؤ کلمتینو کښې څلور دی - تساوی[1]، تباین[2]، عموم خصوص مطلق[3]، عموم خصوص من وجه[4].

دلته کښې دَ دوئ په مابین کښې نسبت دَ عموم خصوص من وجه دے اَوْ دا په نزد دَ منطقیانو باندې - یو ماده دَ اجتماع غواړی اَوْ دوه[2] مادے دَ افتراق لکه په حیوان اَوْ ابیض کښې چه کوم نسبت دے) ماده دَ اجتماع دا ده، لکه مثلاً سپین چرګ حیوان هم دے ابیض هم دے، یو ماده دَ افتراق چه حیوان وی اَوْ ابیض نه وی، لکه تور چرګ - حیوان دے اَوْ ابیض نه دے اَوْ بله معنیٰ دَ افتراق، چه ابیض وی حیوان نه وی، لکه سپینه ګټه ابیض دے اَوْ دا حیوان نه دے، نو همدغه شان په مبنی اصل کښې ماده دَ اجتماع، لکه فعل ماضی امر حاضر اَوْ جمله حروف چه دا مبنی هم دی اَوْ اَصل هم دی اَوْ په نزد صاحب دَ مفصل جمله من حیث هی دا هم مبنی اَصل ده، خو په نزد دَ جمهورو دا مبنی اصل نه ده اَوْ ماده دَ افتراق په جانب دَ مبنی کښې چه مبنی وی اَوْ اَصل نه وی، لکه اسمائے معدوده اَوْ دویمه ماده دَ افتراق په جانب دَ اصل کښې چه اصل وی اَوْ مبنی نه وی، لکه مضارع - اوس نو نه کړه دا خبره، چه په هر یو تعریف کښې لابدی وی دَ جنس اَوْ دَ فصل نه، نو

---

[1] نسبت دَ تساوی دے ته وائی، چه هر واحد دَ کلیین نه صادقیږی په کل افرادو دَ آخر باندې، لکه انسان اَوْ ناطق، اَوْ علامه دَ متساوییو صدق دَ موجبتینو کلیتینو دے، دَ جانبینو نه، لکه کل انسان ناطق وکل ناطق انسان[2] نسبت دَ تباین وے ته وائی چه نه صادقیږی، هر واحد دَ دوئ نه په یو فرد آخر باندې، لکه انسان اَوْ حجر، نو علامه دَ متباینو صدق دَ سالبتینو کلیتینو دے، دَ جانبینو نه، لکه لاشئ من الانسان بحجر، ولاشئ من الحجر بانسان - نسبت دَ عموم خصوص مطلق هغه دے چه احدهما صادقیږی، په کل افرادو دَ آخر باندې اَوْ آخر نه صادقیږی په کل افرادو دَ دهٔ باندې، بلکه په بعضو صادقیږی اَوْ په بعض نه صادقیږی، لکه حیوان اَوْ انسان نو چه دا دوه مادے غواړی، یو اجتماعی، اَوْ بله افتراقی، لکه تهٔ لوګوے چه هر انسان حیوان دے، نو ماده دَ اجتماع شوه یا تهٔ اووئے چه بعض دَ حیوان نه انسان نه دے، دا ماده افتراقی شوه نو نسبت[4] دَ عموم خصوص من وجه دے ته وائی چه هر واحد دَ دوئ صادقیږی په بعض افرادو دَ آخر باندې اَوْ په بعض نه صادقیږی لکه حیوان اَوْ ابیض شو چه تفصیل ئے استاذ صاحب کړے دے - (م . س).

په تعریف د معرب کښې جنس او فصل هغه دا دی، چه الف لام په المرکب کښې په منزله د جنس دے، داخل شو په کښې هغه اسمائے معدوده مفرده او مرکبه (چه سره د خبر نه وی) یعنی اسمائے معدوده مضافه او هغه اسماء، چه مشابهت ئې راغلے وی، د مبنی اصل سره او یا ئې مناسبت راغلے وی، مناسبالتو سره، په نزد صاحب مفصل باندې د مبنی اصل سره. پس مرکب په کښې فصل اول شو، په دے سره ترنه اسمائے معدوده خارج شو چه مفرد وی، لو چه هر کله مونږ د ترکیب دا معنیٰ اوکړله، چه مرکب وی سره د غیرنه او دا غیر په دهٔ کښې عامل یا سبب وی د پاره د تحقق د عمل، لو خارج شو ترنه په دے سره هغه اسمائے معدوده چه مضافه وی او هر کله چه ئې اولم یشبه مبنی الاصل او ویئیل، لو په دے سره ترنه خارج شو هغه اسماء چه مشابهه وی، د مبنی الاصل سره یا هغه اسماء چه متحقق وی، سره د دے نه عامل او مناسب وی د مبنی الاصل سره په یو د مناسبالتو سنته سره. **سوال**. کافیه ماخوذ دهٔ د مفصل نه او صاحب مفصل په تعریف د معرب کښې ترکیب نه دے ذکر کړے، لو تا ولے په تعریف کښې ترکیب ذکر کړو؟ دا خو مخالفت د اصل نه راغے. **جواب**. په نزد صاحب مفصل باندې په معرب کښې ترکیب نه دے معتبر او په نزد صاحب د کافیه باندې په معرب کښې اعتبار د ترکیب شته دے.

## درس نمبر ۲۰:

مصنف رح ولے عدول اوکړو د تعریف د جمهورو مخالفتونه چه هغوی وائی چه، "المعرب ما یختلف آخره باختلاف العوامل"، لو هغوی چه کوم تعریف د معرب اوکړو، مصنف رح هغه حکم اوګرځولو. **جواب**. مصنف رح عدول اوکړو، د تعریف د معرب د جمهورو مخالفتونه په دے وجه چه تعریف د هغوی مستلزم دے دور لره او دور باطل دے، ځکه چه دور وائی توقف د شی ته، په خپل نفس باندې، لکه ته اووائے چه آ موقوف دے، په ب باندې او ب موقوف دے په آ باندې، لو آ موقوف شو په آ باندې، لو دا توقف د شی شو په خپل نفس باندې، په دے ځائے کښې دور په دے طریقه سره راځی، چه معرفت د اختلاف د آخر دا موقوف دے په معرب باندې که چرے معرب مونږ موقوف کړو په اختلاف د آخر باندې لو لازمیږی دور، خو بعض وائی چه دا تعریف چه کوم جمهورو کړے دے، دا جائز دے، ځکه چه دا تعریف بالاثر دے او تعریف بالاثر جائز دے. پس حقه په جواب کښې دا نمبره دهٔ، چه مصنف رح عدول اوکړو، د تعریف د جمهورو مخالفتونه، ځکه چه مقصود په تعریف د معرب سره کېدل د دهٔ دی، وسیله ګرځوته او تعریف د جمهورو دا مستلزم دے، تقدم د شی لره په خپل نفس باندې، لکه چه ته اووائے زید فی قام زید معرب ای یختلف آخره باختلاف العوامل. لانه مما یختلف آخره باختلاف العوامل. وکل ما یختلف آخره باختلاف العوامل فهو معرب. فزید

في قلم نبيدٌ معرب۔ دلته كښې صغرىٰ عين نتيجه ده اؤ حال دا دے چه صغرىٰ مقدمه وى په نتيجه باندې، نو تقدم د شى راغے، په خپل نفس باندې اؤ تقدم د شى په خپل نفس باندې جائز نه دے[1] نو ځکه مونږ دا خبره، چه دلته کښې لابدى ده، د معرفت د امورِ خمسه نه۔ تعريف د معرب، حکم د معرب، تعريف د اعراب، انواع اؤ اقسام د اعراب، عامل د اعراب[2]۔ پس تعريف د معرب خو مخکښې ذکر کړو، اوس دلته حکم د معرب ـــ ذکر کوى، لو وَے ويل چه:۔

## وحكمه ان يختلف آخره باختلاف العوامل چه دا عين تعريف د جمهورو دے۔

ترجمه:۔ بعض د جمله احکامو د معرب نه اؤ اثر ثابت[2] نه په معرب باندې چه ناشى وى د عمل نه اؤ ثابتوى په معرب کښې هغه دا دے چه، مختلف کيږى به آخر د معرب د دے حيثيت نه چه دا آخر د معرب دے په سبب د دخول د جنس عواملو مختلفو سره په ده باندې، بالذات هسے اختلاف چه هغه ثابت وى، په عمل کښې په دے شان، چه عمل د بعضو مخالف وى، د بعضو نه۔

**سوال**. اضافت د حکم معرب ته (يعنى هغه ضمير چه راجع دے معرب ته) نه صحيح کيږى، ځکه چه ظاهر د اضافت نه مراد، اضافت استغراقى دے، نو چه کله اضافت استغراقى شو نو معنىٰ به دا اوګرځى چه هر يو فرد د افرادو د احکامو د معرب نه هغه به ان يختلف آخره الخ وى، حالانکه داسے نه ده، ځکه چه معرب د دے نه علاوه نور هم احکام لرى۔ **جواب**. دلته کښې اضافت استغراقى نه دے، بلکه اضافت عهدى مراد دے اؤ معهود په دے سره بعض احکام د معرب دى، نو عبارت به داسے شى چه من جملة احكام المعرب۔ من به تبعيضيه شى اؤ چونکه من تبعيضيه داخليږى، په جمع باندې، نو په دے وجه باندې حکم مونث په معنىٰ د جمع واخستو اؤ جمله احکامو اوويل۔ **سوال**. اضافت ستا د حکم معرب ته نه دے صحيح، ځکه چه حکم په اِصطلاح د منطقيانو کښې اسناد امر الى آخر ايجابا او سلبا، ته وائى اؤ نيل په معنىٰ د اهل شرع کښې خطاب الله تعالىٰ الى المكلفين ته وائى۔ پس که چرے دلته اوله معنىٰ د منطقيانو واخلو، دا نه ده صحيح، ځکه چه اسناد راځى په مرکب کښې اؤ معرب قسم دے د اسم نه اؤ اسم قسم دے، د کلمے نه اؤ کلمه مفرد ده اؤ که چرته د حکم نه معنىٰ د اهل شرع واخلو، چه هغه خطاب الله تعالىٰ الخ دے، نو په دے معنىٰ سره، هم اضافت د حکم معرب ته نه دے صحيح، ځکه چه د خطاب د الله تعالىٰ اهل

---

[1]. دا وراندې مقدمه بنا ده، په قياس اقترانى شکل اول باندې چه هر کله امر دفرسنگ شو اؤ حد اوسط ترے اوغورځولے شو نو صغرىٰ عين نتيجه شو اؤ دا مقدمه وى، په نتيجه باندې، نو معلومه شوه، چه تعريف د جمهور مستلزم دے، د دور لره، نو مصنف ځکه اختيار نه کړو۔

[2]. يعنى د اثر مرتبه نه په معرب باندې۔ ۲۰ (م۔س)۔

انسان اَوْ ذوی العقول دی اَوْ معرب خو دَ ذوی العقول نه نهٔ دے۔ **جواب**۔ دلته کښې دَ حکم نه معنیٰ نهٔ دَ منطقیانو مراد دهٔ، چه اسناد امرِ الخ دهٔ اَوْ نهٔ دَ اَهل شرع چه خطاب الله دهٔ، بلکه دلته کښې دَ حکم نه معنیٰ لغوی مراد دهٔ، چه هغه اثر مرتبه کیدے دے[1]۔ **سوال**۔ اضافت دَ حُکم ستا معرب ته نهٔ دے صحیح، ځکه چه اضافت دَ حُکم مؤثر ته کیږی اَوْ مؤثر خو عامل دے اَوْ معرب اثر دے۔ **جواب**۔ دلته په عبارت کښې تقدیر دے، په دوؤ طریقو سره چه هغه والحکم فیه یا والحکم له ان یختلف آخره دے۔

## درس نمبر ۱۴:- **سوال**۔ تا اُووئے چه حکم دَ معرب دا دے چه مختلف کیږی، آخر دَ دهٔ، نو ستا دا خبره منقوضه شوه، په فاعل اَوْ په مفعول باندِ، ځکه چه دوئ سره دَ دے نه چه معرب دی اَوْ آخر ئے نهٔ بدلیږی، بلکه فاعل همیشه مرفوع وی اَوْ مفعول همیشه منصوب وی۔ **جواب**۔ ـ ـ ـ ـ ـ ـ دلته کښې قید دَ حیث معتبر دے، یعنی معرب دَ دے حیثیت نه چه معرب دے اَوْ فاعل اَوْ مفعول دا دَ حیثیت دَ فاعلیت اَوْ مفعولیت نه مرفوع اَوْ منصوب دی همیشه۔ **سوال**۔ حُکم دَ معرب ستا منقوض شو په مثل دَ حرکت دَ غلامیَ سره، ځکه چه دا اختلاف په آخر دَ معرب کښې دے اَوْ حُکم نهٔ دے۔ **جواب**۔ دلته کښې هم قید دَ حیث معتبر دے، چه مراد په حکم سره حکم دَ آخر دَ معرب دے، په دے حیثیت سره، چه دا آخر دَ معرب دے، اَوْ دلته په غلامیَ کښې دَ حیثیت دَ آخر دَ معرب نه نهٔ دے، بلکه دَ دے حیثیت نهٔ دے چه ماقبل دے، دَ یا دَ متکلم نه۔ **سوال**۔ ظاهر متبادر دَ اِختلاف نه مُراد اختلاف ذاتی دے، اَوْ دا اِختلاف ذاتی موجود یږی په معرب بالحروف کښې، نو معرب بالحرکة خارج شو، دَ تعریف دَ معرب نه۔ **جواب**۔ اِختلاف عام دے، که ذاتاً وی اَوْ که وصفاً یا صفةً وی، نو په معرب بالحرکة کښې، الحرکة اختلاف ذاتاً نشته، لیکن صفةً شته، نو اِختلاف ذاتی مثال، لکه معرب بالحروف شو چه په هغه کښې یو حرف بدل شوے وی، په بل حرف سره اَوْ دَ اختلاف وصفی مثال، لکه معرب بالحرکة شو چه یو حرکت بدل شوے وی په بل حرکت سره۔ **سوال**۔ هر کله چه تا تعمیم اوکړو په اِختلاف کښې اَوْ تا اُووئیل چه اِختلاف عام دے، ذاتاً وی که وصفاً نو دَ اختلاف ذاتی دا حکم ستا منقوض شو، په تثنیه اَوْ په جمع سره، په حالت نصبی اَوْ جری کښې، ځکه چه دا دواړه معرب بالحرف دی اَوْ سره دَ دے نه په دوئ کښې اِختلاف نهٔ دے راغلے ذاتاً، لکه ته وائے رأیتُ مسلمین حالت نصبی دَ تثنیهٔ مررتُ بمسلمین حالت جری دَ تثنیهٔ، نو په

---

[1] لکه موږ په معنیٰ کښې وئیلی دی، چه بعض دَ احکامو دَ معرب نه اوڅه دَ اثر مرتبه نه په معرب باندِ۔ (م۔س)۔

حالت نصبی اُو جری دواړو کښې یار راغلې دے، یا لکه رأیت مسلمین حالت نصبی دَ جمع مررتُ بمسلمین حالت جری دَجمع په دواړو کښې باران راغلې دے۔ **جواب**. اختلاف ذاتی عام دے حقیقتاً وی اَوْ که حُکماً، نو دلته کښې اگر که اختلاف ذاتی حقیقتاً نشته، لیکن حکماً شته، ځکه چه یا په سبب دَ داخلیدو دَ عامل ناصبه سره علامه دَ نصب او گرځیده حکماً۔

**سوال**. تا په اختلاف کښې تعمیم اوکړو اَوْ اُوویل چه اختلاف عام دے، ذاتاً وی که وصفاً، نو دَ اِختلاف وصفی دا حُکم ستا منتقض شو په دې ترکیبو سره چه جاء نی زیدٌ رأیتُ زیداً مررتُ بزیدٍ۔ په دې شکلو چه تاسو خو والئ اِختلاف وصفی هغه ته وائی چه یو حرکت په بل سره بدل شوے وی (یعنی معرب بالحرکة وی) نو په دې ترکیبو کښې اِختلاف وصفی دے اَوْ آخر دَ دې چه لوْن دے نه دے مختلف شوے، آخر دَ دې په اختلاف دَ عواملو سره۔
**جواب**. دلته په دې ترکیبو کښې آخر دَ کلمې هغه لوْن نهٔ دے، بلکه هغه دال دے اَوْ بے شکه دَ هغه حرکت بدل شوے دے۔ **سوال**. ستا دا حُکم دَ اِختلاف وصفی منتقض شی په غیر منصرف سره، ځکه چه په حالت نصبی جری کښې هغه مفتوح (منصوب) وی، حالانکه دا خو معرب بالحرکة دے، نو په کار دا ده چه اِختلاف وصفی په کښې راغلې وی، لکه په دې ترکیب کښې چه رأیتُ احمدَ اَوْ مررتُ باحمدَ، نو احمد په دواړو صورتونو کښې منصوب دے۔ **جواب**. اختلاف وصفی عام دے، حقیقتاً وی که حُکماً، دلته کښې اختلاف وصفی اگر که حقیقتاً نشته، لیکن حُکماً شته، ځکه چه فتحه په سبب دَ داخلیدو دَ عامل جاره سره دا علامه دَ جر مُکو ګرځیده حکماً۔

**العوامل** دلته عوامل جمع دَ عامل ده، نو سوال پیدا کیدی شی **سوال**. چه هر کله مصنف صیغه دَ جمع راوړه، نو دَ دې نه دا معلومیږی چه آخر دَ معرب به مختلف کیږی په سبب دَ دخول دَ عوامل مختلفه و کثیره و سره۔ که چرته یو عامل یا دوه عامله ورباندې راشی، نو آخر دَ معرب به نهٔ مختلف کیږی، ځکه چه عوامل جمع ده اَوْ دَ جمع اطلاق په ثلاثه یا ما فوق دَ ثلاثه باندې کیږی، والامر لیس کذالك۔
**جواب**. عوامل جمع ده، لیکن داخل شوی دَه په دې باندې الف لام جنسی اَوْ هر کله چه په جمع باندې الف لام جنسی داخل شی، نو باطل شی جمعیت اَوْ ..... مراد شی ترې نه جنس، نو معنیٰ دا شوه چه، جنس عوامل اَوْ دَ جنس اطلاق په مفرد اَوْ په جمع علی السویه دے، که څوک اووائی چه بالعکس ولې نهٔ کیږی، یعنی جمعیت دے، جنسیت باطل کړی۔
**جواب**. دا دے چه اِعتبار لاحق لره دے نهٔ سابق لره۔

**درس نمبر ۲۴:-** **سوال** . په اعتبار د حُکم سره معرب مالغ اونه گرځېدو دخول د عوامو آو داخل شو په کښې مبنی؛ چه هغه من حرف استفهام دے، په دے ترکیب کښې 'جاءنی زیدٌ منْ رأیتُ زیداً مناً ، مررتُ بزیدٍ منِی'. لو دلته کښې من حرف استفهام دے او آخر د دهٔ مختلف شوے دے، په سبب د دخول د عواملو مختلفو سره. **جواب** . مراد په اختلاف سره هغه اختلاف دے چه حاصل شوے وی، په سبب د دخول د عواملو مختلفو سره، په دهٔ باندې بالذات او دلته کښې عوامل داخل شوی دی بالذات په زید باندې مستفهم عنه دے، نهٔ په استفهام باندې چه مَنْ دے او د مَنْ آخر چه مختلف شوے دے، نو دا په تبع د زیدٌ کښې دے. **سوال** . په اعتبار د حُکم د معرب سره معرب جامع اونه گرځېدو ونیلو افرادو لره او خارج شو ترینه زیداً په دے ترکیبو کښې چه إنّی ضاربٌ زیداً و إلی ضربتُ زیداً ، انّ زیداً مضروبٌ په دے شان سره چه عوامل مختلفه په دهٔ باندې راغلی دی او آخر د دهٔ مختلف شوے نه دے، بلکه په ټولو ترکیبو کښې منصوب واقع شوے دے. **جواب** . مراد په اختلاف سره اختلاف دے، په جملیه کښې نهٔ په اسمیت فعلیت او حرفیت کښې په دے شان سره چه عمل د بعضو مختلف وی، د بعضونه او دلته کښې د ټولو عمل یو دے، لو په دے وجه باندې زیداً په دے دواړو ترکیبونو کښې منصوب واقع شوے دے.

**لفظاً او تقدیراً** دا اختلاف عام دے، ذاتی وی که صفتی وی، لفظی وی که تقدیری وی، حقیقی وی که حُکمی وی، د حیثیت د ترکیب نه.

**سوال** . وارد یږی، په لفظاً او تقدیراً باندې، چه دا لفظاً او تقدیراً به یا منصوب وائی بنا په تمیز بانو او یا به دا منصوب وائی، بنا په مفعول مطلق باندې او دا دواړه نهٔ دی صحیح. هرچه اوّل دے لو تمیز د نسبت نه یا فاعل وی او یا مفعول وی او دلته کښې فاعل د فعل چه مختلف دے هغه آخره دے او هرچه دویم دے، لو مفعول مطلق هغه ته وائی چه مشتمل وی نحل په هغه باندې د قبیلے د اشتمال د کل نه په جزء باندې او دلته کښې لفظاً او تقدیراً باندې نعل چه مختلف دے مشتمل نهٔ دے د قبیلے د اشتمال د کل نه په جزء باندې، لو دا دواړه صورتونه نهٔ صحیح کیږی.

**جواب** . دا دواړه صورتونه صحیح دی. لفظاً او تقدیراً دا تمیز واقع شوی دی، که نهٔ دا وائی چه تمیز د نسبت نه دا یا فعل وی او یا مفعول او دلته کښې خو فاعل د فعل آخره دے، لو نهٔ وائی چه بناء په رد کولو د عبارت اصل نه دا فعل واقع شوے دے، لو اصل عبارت به دا سے شی؟ ان یختلف لفظ آخره او تقدیر آخره او که چرے مفعول مطلق شی، لو هم صحیح دے. که نهٔ وائی چه په مفعول مطلق کښې لازمی ده. دا خبره چه نعل دے مشتمل وی په دهٔ باندې د قبیلے د اشتمال د کل نه په جزء باندې، لکه ضربتُ ضرباً کښې ضرباً مفعول مطلق دے او نه

چه هرڅه چه حیثیتُ هغه مشتمل وي، په دې بانديٰ؛ د قبیلې د اشتمال د کل نه په جزء باندې اَوْ دلته کښې لفظاً اَوْ تقدیراً۔ که څه هم چه معنی مفعول مطلق او کوځي، نو یختلف چه فعل دے، هغه مشتمل نه دے، په دې باندې؛ نو جواب دا دے چه، ملته د لفظاً اَوْ تقدیراً د پاره مضاف مقدر دے چه هغه مفعول مطلق دے اَوْ دا لفظاً اَوْ تقدیراً د هغې قائم مقام دی۔ اَصل عبارت به داسې شي چه ان یختلف آخره اختلاف لفظٍ اَوْ اختلاف تقدیرٍ۔ **سوال**۔ چه هر کله لفظٍ اَوْ تقدیرٍ مضاف الیه دی، نو دوی ولې منصوب ولے دی؟ **جواب**۔ هر کله چه دوی قائم مقام د مفعول اَمکو ځکه اَوْ قائم مقام لره حکم د اصل وي[1]، نو په دې وجه یې دا منصوب اَوْ ویل۔ اختلاف ذاتي[2]، لکه په معرب بالحرف کښې اَوْ اِختلاف صفتي[3]، لکه په معرب بالحرکة کښې، اختلاف لفظي چه ملفوظ وي اَوْ اختلاف تقدیري چه غیر ملفوظ وي، اختلاف حقیقي چه بعض احوال تابع د بعضو نه وي۔ اختلاف حکمي چه بعض احوال تابع د بعضو وي۔




---

مثال[1]. د ذاتي لفظي حقیقي، لکه اسماء ستة مکبره شو، په دوی کښې اعراب بالحروف دے، جاءني ابوك، رأیت اباك، مررت بابیك۔ مثال[2] د ذاتي لفظي حکمي، لکه تثنیه اَوْ جمع شو له، په حالت نصبي او جري کښې۔ رأیت المسلمین، مررت بمسلمین۔ مثال[3] د ذاتي تقدیري حقیقي، لکه اسماء ستة مکبره مضافه، لکه جاءني ابو القوم، رأیت ابا القوم، مررت بابي القوم۔ مثال[4] د ذاتي تقدیري حکمي، لکه جاءني مسلمي القوم، رأیت مسلمي القوم، مررت بمسلمي القوم۔ مثال د صفتي

---

[1]. بعض چه کوم حکم د اصل وي، نو هغه به د قائم مقام وي، نو دا د خیله دا صله شته۔ ۲ (م۔س)۔

[2]. اختلاف ذاتي هغه شي دی چه په ذات د کلمې کښې اختلاف راغلی وي۔ ۲۔ (م۔س)۔

[3]. اختلاف صفتي هغه دی چه په وصف د کلمې کښې اختلاف راغلی وي، مثالونه یې استاد صاحب ذکر کړي دی۔ (م۔س)۔

لفظي حقيقي، لکه جاءني زيدٌ، رأيت زيداً او مررت بزيدٍ۔ مثال[۶] د صفتي لفظي حکمي، لکه د غير منصرف اعراب شو، چه جاءني احمد، رأيتُ احمد، مررت باحمَدَ۔ مثال[۷] د صفتي تقديري حقيقي، لکه اِسم مقصور، جاءني فتیٰ، رأيت فتیٰ، مررت بفتیٰ۔ مثال[۸] د صفتي تقديري حکمي، لکه جاءني موسیٰ، رأيت موسیٰ، او مررت بموسیٰ۔

# درس نمبر ۴۳

**الاعراب ما اختلف آخره به ليدل علی المعاني المعتورة عليه !!!**

ترجمه:- اعراب (د اِسم) دا هغه حرف او حرکت يا هغه شے چه مختلف کيږي آخر د معرب په سبب قريبه د دے حرکت

او يا د دے شي سره، د پاره د دے چه دا اختلاف د اعراب او يا وضع د اعراب دلالت اوکړي په معانيو باندِ۔ هغه معاني چه واردیږي پے درپے (يعني پرله پسے) په طريقے د بدليت سره په دے معرب باندِ، چه هغه معاني فاعليت او مفعوليت او اضافت دی، تړلی ئي دا دے هر کله چه مصنف[رح] فارغ شو، د امورونه په امور خمسه کښے، چه هغه تعريف د معرب او حکم د معرب دے، نو شروع ئي اوکړه په امر ثالث کښے چه هغه تعريف د اعراب دے (امور خمسه مونږ د تيرشوو وو، چه هغه تعريف د معرب، حکم د معرب، تعريف د اعراب، انواع د اعراب او تعريف د عامل)، نو وئے فرمائيل چه "الاعراب ما اختلف آخره به ليدل علی المعاني المعتورة عليه"۔ په الاعراب کښے الف لام عهدی دی۔ مراد ترِ نه اعراب د اِسم دے او ما موصوله مصحح کيږي او موصوف هُم، اوس دلته **سوال** واردیږي چه "ما" د څه نه عبارت دے، يا به د حرف نه وائي يا د حرکت نه، يا د دواړو نه، يا د شي نه او دا قول نه صحيح کيږي، ځکه چه که چرے عبارت اوګرځي د حرف نه، نو خارج شو ترِ نه اعراب بالحرکت او که عبارت شي د حرکت، نو خارج شو ترِ نه اعراب بالحرف او که عبارت شي د دواړو نه، نو داخليږي په کښے حروف عامله او که چرے عبارت شي د شي نه، نو بيا به کښے داخليږي حروف عامله او معنیٰ مقتضي د اعراب ځکه په هغے سره هُم آخر د معرب مختلف کيږي۔ **جواب**۔ دلته "ما" عبارت دے، د دواړو نه، که ته وائے چه حروف عامله په کښے داخليږي، نو دا په کښے نه داخليږي ځکه چه ورو ستو په "به" کښے با سببيه ده او مراد د دے نه سبب قريبه دے او حروف عامله دا سبب قريبه نه دے، بلکه سبب بعيد دے يا به جواب کښے دا ئيلو چه دلته کښے "ما" عبارت دے د شي نه او که ته وائے چه بيا به کښے حروف عامله او معنیٰ مقتضي د اعراب به کښے د داړه داخليږي، ځکه چه په دوئ سره خو هُم آخر د معرب مختلف کيږي، نو ته وائيم چه ورستو په "به" کښے با سببيه ده او مراد په سبب سره سبب قريبه

دے، نه بعید°، لکه جاءنی زیدٌ کښې جاء سبب بعیده دے او مقتضی د اعراب چه هغه فاعلیت دے، هغه سبب متوسطه دے او اعراب دا سبب قریبه دے۔ **سوال**۔ غرض او مقصود د تعریف د شی نه هغه جمعیة او منعیة وی، نو دلته په تعریف د اعراب کښې په ما اختلف آخره جمعیة او منعیة وی ۔ پس لیدلّ ته ضرورت او حاجت پاتے نه شو۔ **جواب**۔ په جزئیت د لیدل کښې د تعریف نه اختلاف دے، په مابین د فاضل هندی او د شارح جامی کښې په دے شان سره، چه فاضل هندی والی، چه لیدل دا جزء د تعریف نه نه دے۔ شارح جامی والی چه دا جزء دے د تعریف نه، دلائل د فاضل هندی° باره په عدم جزئیت باندِ دوه دی، یو دلیل عقلی دے او بل دلیل نقلی دے۔ دلیل عقلی دا دے۔ په مقصد او غرض د تعریف نه هغه جمعیة او منعیة دے، نو دلته په تعریف د اعراب کښې هغه حاصل شوے دے، په "ما اختلف آخره به" سره، نو دا وجه د لیدلّ ضرورت پاتے نه شو — دلیل نقلی دا دے چه مصنفؒ په خپله په شرح د کافیے کښې وئیلی دی، چه "وهٰذا لیس من تمام الحد بل الحد تمّ قبله۔ **سوال**۔ چه هر کله دا د تعریف نه جزء نه شو، نو مصنفؒ ولے دا په تعریف کښې راوړے دے؟ **جواب**۔ دا جمله مستانفه°، گویا دا په جواب د سوال کښې واقع°، چه "لِم وضع الاعراب"، نو په جواب کښې دا جمله واقع چه "انما وضع الاعراب، لیدل علی المعانی المعتورة"، او شارح جامی والی، چه لیدل جزء دے، د تعریف نه او فاضل هندی ته د هغه د دلیل عقلی نه جواب ورکوی، چه دا نه منم، چه قیودات په تعریفاتو کښې راځی، د باره د جمعیة او د منعیة، بلکه بعض قیودات د نورو فوائدو د پاره هم راځی، چه مقصود ترینه مزید وضاحت وی، لکه صاحب زنجانی والی چه "التصریف فی اللغة، التغییر، وفی اصطلاح تحویل الاصل الواحد الی امثلة متعددة لِمعانٍ مقصودة"، نو دلته کښې لمعانٍ مقصودة دے په لوی دخل نشته، په جمعیة منعیة کښې، بلکه دا مزید وضاحت له راغلی دے، نو هم دغه شان لیدلّ د مزید وضاحت د پاره راغلی دے او د دلیل نقلی نه دلته جواب ورکوی چه دا تصحیح دے چه "وهٰذا لیس من تمام الحد یعنی دا (عبارت د لیدل) د حد نه دے، یعنی د لوی دخل نشته دے، په جمعیة یا منعیة د تعریف کښې، بلکه دا داخل دے په تعریف کښې د پاره د مزید وضاحت۔ **سوال**۔ لیدل جار او مجرور دی، دے د پاره متعلق څه شی دے؟ **جواب**۔ د دے په متعلق کښې هم اختلاف دے، په مابین د فاضل هندی او د شارح

---

ل: دا اعتراض په فاضل هندی باندِ وارد دے او هغه ترینه جواب کړے دے۔ (م۔ س)

کښې، چونکه دَ فاضل هندی په نزد دا داخل نۀ دے، په تعریف کښې، نو دَ دے دَ پاره بے متعلق ظرف مستقر را اوباسو، چه هغه وضع دے اوّ دا معلومیږی، دَ نحوی اوّ دَ سیاق اوّ دَ سباق دَ کلام نه اوّ په نزد دَ شارح جامی، دا چونکه داخل دے، په تعریف کښې، نو دَ دے دَ پاره به متعلق ظرف لغو وی، چه هغه اختلف دے اوّ هغه والی چه هرکله دَ ظرف لغو اوّ دَ ظرف مستقر په مابین کښې مقابله راشی، نو ترجیح ورکولے کیږی، ظرف لغو ته ځکه چه دا مذکور وی، بنا په دے اختلاف موږ په ترجمه کښې هم دَ دے دواړو متعلقینو خیال اوساتۀ اوّ دا موا رویتیل چه دا اختلاف دَ اعراب یا وضع دَ اعراب دلالت اوکړی الخ.

**فائده :-** دلته کښې موږ اووئیل چه لیدل جار مجرور دی اوّ دَ دے دَ پاره متعلق پکار دے کۀ څوک لووالی چه یدل داخو فعل دے اوّ په فعل حرف جر نه واقع کیږی، نو جواب دا دے چه دا لام په معنیٰ دَ کے سره دے اوّ دَ دے نه پس ان مقدره دے اوّ دا ان مصدریه دے چه په فعل راشی، نو په تاویل دَ مصدر سره یې کړځوی اوّ مصدر اسم دے۔

## درس نمبر ۲۴

**المَعَانِی**[۱] المعانی[۲] جمع دَ معنیٰ ده اوّ دَ معنیٰ دَ پاره درے[۳] معنے دی، یو په معنیٰ دَ ترجیے سره راځی، بل په معنیٰ دَ صفت قائم بالشی سره راځی اوّ دریم په معنیٰ دَ سبب سره راځی په نزد دَ فقهاء باندې، نو دلته ترے نه دا دریمه معنیٰ مراد ده، نو مطلب دَ معانی نه هغه معانی دی، چه مقتضی دَ اعراب دی، چه هغه فاعلیت اوّ مفعولیت اوّ اضافت دے په المعتورة علیه باندې **سوال** . وارد یږی، هغه دا چه معتورة دَ اعتوار نه ماخوذ دے اوّ اعتوار فعل متعدی دے۔ دے خپل مفعول ته متعدی کیږی، بنفسه بے دَ واسطے دَ حرف جر نه نو راوړل دَ علی په علیه کښې زائد شو۔ **جواب** . دلته کښې اعتوار متضمن دے، معنیٰ دَ ورود لره اوّ ورود فعل لازمی دے چه، دے مفعول ته بنفسه نه متعدی کیږی، بلکه مفعول ته متعدی کیږی، په واسطے دَ حرف جر سره۔ دلته په دے مقام کښې لابدی ده، دَ معرفت دَ امور اربعه نه چه هغه تضمین، متضمِن، متضمَن اوّ قرینه دَ تضمین دی. پس تضمین په **لغت** کښې چیزے دربغل گرفتن ته والی[۱] اوّ په **اِصطلاح** کښې لحاظ اوّ اعتبار دَ یو فعل یا شبهه فعل دے،

---

[۱]. چیزے دربغل گرفتن یعنی څۀ شی په ترخ کښې نیولو ته والی. پس دَ دے معنیٰ سره دَ فارسی لوخوخوندور اشعار مناسب دی، هغه دا دی، لکه دَ جان محمد قدسی دا شعر:-

[۲]. روز محشر هرکسی در دست گیرد نامهٔ      من نیز حاضر میشوم تصویر جانان دربغل (خندہ پہ بل رخ)...

په فعل یا شبهِ فعل آخر کښې، متضمِن په کسره دَ ضاد سره هغه ته وائي، چې په چا کښې اِعتبارِ دَ فعل یا شبهِ فعل آخر شوی وی اَوْ متضمَّن په صیغې دَ اِسمِ مفعول سره، دا ویلې شی، هغه فعل یا شبهِ فعل ته چې دَ هغه اعتبار په بل کښې شوے وی اَوْ قرینه دَ تضمین هغه علامې والے ته وائي چې دلالت کوی، په دغه اِعتبار اَوْ لحاظ باندِ دَ مثال په طور لکه اِعتوار متضمِن دے اَوْ وروِد متضمَّن دے اَوْ عِلّا په علیه قرینه دَ تضمین ده، او قرینه دَ تضمین عموماً صله وی، او س تحقیق په دے مقام کښې دا دے، چې المعتورة ما صیغه دَ اِسمِ فاعل ده، که دَ اِسمِ مفعول ده. لو په دے کښې اختلاف دے، په مابین دَ فاضل هندی اَوْ دَ شارحِ جامی کښې. فاضل هندی وائي چې دا صیغه دَ اِسمِ مفعول ده اَوْ دَ هغه دَ پاره دوه دلائل دی، یو دلیل دا دے چې اعتوار په معنیٰ دَ اخذ سره دے. پس هر کله چې معتورة صیغه دَ اِسمِ مفعول شی، لو دا به په معنیٰ دَ مأخوذ شو اوکوځي. په دغه وخت کښې به مطابقت راشی، په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښې حُکه چې معانی هم مأخوذ دی لو مأخوذ به صفت شی دَ پاره دَ معانی اَوْ که چرته دا صیغه دَ اِسمِ فاعل شی، لو بیا مطابقت نه راځی، په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښې، حُکه چې اعتوار کله په معنیٰ دَ اخذ شی اَوْ معتوره ما صیغه دَ اِسمِ فاعل شی، لو دَ اخذ نه صیغه دَ اِسمِ فاعل به اخذ شی، لو مطابقت رانغی، په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښې، حُکه چې آخذ به دَ معانی صفت اوکوځي. حالانکه معانی مأخوذ دی، اخذ نه دی اَوْ دویم دلیل دا دے دَ فاضل هندی، چې المعتورة صیغه دَ اِسمِ مفعول ده اَوْ ضمیر چې مستتر دے، چې راجع دے الف لامِ موصوله، هغه به مفعول ما لم یسم فاعله دے اَوْ په علیه کښې "ه"، چې راجع دے معرب ته، هغه به نے معفول ثانی اوکرځی په واسطې دَ حرفِ جر سره اَوْ که چرے دا صیغه دَ اِسمِ فاعل شی، لو په المعتورة کښې چې کوم ضمیر مستتر دے اَوْ راجع دے، الف لامِ موصوله، هغه به ورله فاعل شی اَوْ "ه" ضمیر چې راجع دے

---

بانی دَ بل نوم دغه)... بیا دَ دے شعر په مقابله کښې شاه عبدالقادر صاحب شاه ولی الله چې کله تفسیر دَ قرآن ولیکلو نو دوی فرمائیل:-

روزِ محشر هر کسی در دست گیرد نامه من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل

نو هر کله چې مولانا محمد خوشتری صاحب په جیل کښې بندی شو، نو دا شعر یې اَوْوے چې:-

روزِ محشر هر کسی در دست گیرد نامه من نیز حاضر میشوم زنجیر زندان در بغل

بیا نو استاد محمد ابراهیم صاحب فانی وفرمائیل، چې زه په یو محفل کښې ناست وم، خپل دیوان مې په مرتب کښې نیولے وو، نو دا شعر مې اَوْوے چې:-

روزِ محشر هر کسی در دست گیرد نامه من نیز حاضر میشوم تحریرِ دیوان در بغل

معرب وته صفه په ورله مفعول شی اَوْ علیٰ حرف جر به زائد اوګرځی، ځکه چه اعتوار دا فعل متعدی دے اَوْ دے خپل مفعول ته بغیر دَ واسطے نه متعدی کیږی۔ پس لازم شونه زیادت دَ حرف جر په تقدیر دَ اِسم فاعل دَ المعتورة۔ شارح جامیؒ فرمائی چه، المعتورة دا صیغه دَ اِسم فاعل ده، ځکه چه هر کله۔۔۔۔ معارضه راشی په مابین دَ اِسم فاعل اَوْ دَ اِسم مفعول کښے، نو ترجیح ورکولے کیږی اِسم فاعل ته، ځکه چه اصل په اسناد دَ فعل یا دَ شبهه فعل کښے اسناد دے الیٰ الفاعل وته اَوْ بل دا چه المعتورة صیغه دَ اِسم فاعل شی، نو دَ ورود نه صیغه دَ اِسم فاعل واحد راغلے اَوْ مطابقت راغے، په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښے، ځکه چه معانی وارده دی، په معرب باندے اَوْ هر کله چه اعتوار متضمن اوګرځیدو، ځکه چه ورود فعل لازمی دے اَوْ فعل لازمی مفعول ته بنفسه نه متعدی کیږی، بلکه په واسطے دَ حرف جر سره متعدی کیږی۔ پس نه عدم مطابقت لازم شو په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښے اَوْ نه زیادت دَ حرف جر لازم شو۔

**سوال۔** تعدد دَ اعراب دا لغو دے، په معرب باندے، ځکه چه جائزه نه ده چه اعرابونه احد دے داسے۔۔۔۔ اوګرځی، په معانی متعدده باندے۔ **جواب۔** هغه معانی چه عارضے دی معرب وته دا متعاقبے اَوْ غیر مجتمع دی، ځکه چه په دوی کښے دَ بعضو دَ بعضو سره تضاد دے[1]، نو مناسب دا چه هرے معنے له دے جدا اعراب ورکړے شی۔ **سوال۔** په اِسم کښے خو درے محله دی، اول، وسط اَوْ آخر، نو آخر دَ معرب ولے متعین کړے شو، دَ پاره دَ اعراب؟

**جواب۔** اِسم دال دے په نفس مسمیٰ باندے اَوْ اعراب دال دے په صفت دَ مسمیٰ باندے نو صفت مؤخر وی دَ موصوف نه[2]، په دے وجه باندے آخر دَ اِسم دا متعین کړے شو دَ پاره دَ اعراب۔ بل یو عمومی **سوال** وارد یږی چه تا ولے تعریف دَ اعراب مقدم کړو په عامل باندے۔ پکار داده چه تا اول تعریف دَ عامل کړے وے ځکه عامل متقدم دے په اعراب باندے نو ځکه دَ تقدیم یے داده چه عامل مؤثر دے اَوْ اعراب اثر دے اَوْ مؤثر مقدم وی په اثر باندے۔

**جواب۔** دلته مصنفؒ لحاظ دَ تقدم اَوْ دَ تاخر نه دے کړے، بلکه مصنفؒ دلته لحاظ اَوْ اعتبار دَ قرب اَوْ دَ بعد کړے دے۔ اعراب چونکه سبب قریب دے اَوْ عامل سبب بعید دے په دے وجه یے تعریف دَ اعراب مقدم کړو په عامل باندے۔

---

[1] په دے شان چه په مقام کښے معنیٰ دَ فاعلیت وی، نو دا معنیٰ دَ مفعولیت نه شی کیدلے۔ ۱۲ (م۔س).

[2] یعنی نفس مسمیٰ دَ اِسم ذات دے اَوْ وصف مسمیٰ دَ اسم صفت دے اَوْ ذات متقدم وی په صفت باندے یعنی صفت مؤخر وی دَ ذات نه۔ ۱۲ (م۔س)۔

# درس نمبر ۵۲

**والانواعه رفع ونصب وجرٌ**

ترجمه:- اَؤ انواع دَ اعراب دَ اِسم هغه رفع نصب اَؤ جر دے، یا دا چه انواع دَ اعراب دَ اسم درے دی، یو رفع دَ، دویم نصب دے اَؤ دریم جر دے - هرکله چه فارغ شو مصنف دَ بیان دَ امور ثلاثه نه، په امور خمسو کښے (لغرض فی اوکره) په امر رابع کښے، په هغه انواع دَ اعراب دَ اِسم دی، نو ئے فرمائیل وَالانواعه الخ، یعنی هرکله چه مدلول (چه هغه معنیٰ مقتضیٰ دَ اعراب دَه چه، هغه فاعلیت، مفعولیت اَؤ اضافت دی) په درے قسمه وګرځیدو، نو په کار دا ده، چه کوم شے چه هغه مدخول باندے، چه اعراب دے، هغه دهم په درے قسمه باندے اوګرځی، نو په دے وجه باندے انواع دَ اعراب درے ذکر کړل، وجه دَ حصر دَ انواع دَ اعراب په درے کښے دا ده، چه دا اعراب به خالی نه وی، یا به دال وی، په عمده باندے اَؤ یا به دال وی په فضله باندے، که چرے دال وی، په عمده باندے، نو هغه رفع ده اَؤ که چرے دال وی په فضله باندے، نو بیا به خالی نه وی، یا به بلاواسطه نه وی اَؤ یا به سره دَ واسطے نه وی، که چرے بے دَ واسطے نه وی، هغه نصب اَؤ که چرته سره دَ واسطے نه وی، هغه جر شو۔

وجه تسمیه:- رفع ته رفع په دے وجه وائی چه 'لارتفاع الشفة السفلی عند التلفظ به'۔ یعنی په وخت دَ تلفظ کښے په دے باندے لاندینئ شونډه اوچتیږی، یا دا چه دَ درے مرتبه لوړه اَؤ چته ده په خپلو دواړو اخوینو باندے، ځکه چه فاعل دے دَ پاره دَ هغه چه هغه عمده په کلام کښے واقع کیږی، چه فاعل دے اَؤ نصب ته نصب په دے وجه وائی چه 'لانتصاب الشفتین علی حالهما عند التلفظ به' اَؤ یا دَ دے وجه نه چه، دے اُودروی فضله لره، په کلام کښے په دے شان سره چه، هغه ته دَ کلام ضرورت نه وی، مګر بیا ئے هم په کلام کښے سره یو ځائے کوی، لکه 'ضرب زیدٌ عمرواً' کښے عمرواً چه دے فضله دے په کلام کښے[1] اَؤ جر ته جر په دے وجه ماند وائی 'لان الشفة السفلی ینجر الی الاسفل عند التلفظ به' اَؤ یا دا چه عامل دَ دے راخکی فعل لره اِسم ته۔

**سوال.** انواعه مبتداء ده اَؤ رفع ونصب وجر ورله خبر دے اَؤ خبر محمول وی، په مبتداء باندے اَؤ دا حمل نه صحیح کیږی، ځکه چه دلته حمل دَ امور متعدد ده، متباینه راځی، په شی واحد باندے

**جواب.** دلته کښے عطف مقدم دے، په ربط باندے، نو معنیٰ به دا وی شی چه انواع دَ اعراب هغه رفع نصب اَؤ جر دی اَؤ یا دا چه دَ انواعه دَ پاره خبر محذوف دے، چه هغه ثلاثة دی۔

---

[1] یعنی دا فعل سره نه وی، دَ کلام نه اَؤ دا نصب ده لره قائموی، په کلام کښے - سره دَ دے نه چه دغه فضله ته ضرورت نه وی، دَ کلام سره تلر والی دَ کلام کښے۔ ۱۲ (م-س)۔

یعنی الواعه ثلاث اَوْ رفعٌ نصبٌ جرٌ دَ پاره مبتدا کانې محذوفې دي، چه هغه احدُهَا رفع، وثانیها نصبٌ، وثالثها جرٌ دے۔ **سوال**. حصر ستا دَ الواعو په ثلاثو کښې باطل دے، ځکه چه لږ بل اعراب هُم شته دے، چه هغه جزم دے۔ **جواب**. خبره اَوْ بحث زمونږ په اعراب دَ اِسم کښې دے اَوْ جزم خو اعراب دَ فعل دے۔ **سوال**. مصنفؒ ولې تعبیر اوکړو دَ حرکات اعرابیه نه په رفع اَوْ نصب اَوْ جر سره دا سے بهٔ یې وئیلي وو چه ضمةٌ وفتحةٌ وکسرةٌ؟
**جواب**. دا خاص دي په حرکاتِ اعرابیه اَوْ حروفِ اعرابیه دواړو پورے اَوْ اطلاق یې نه کیږي په حرکات بنائیه باندِ اصلاً اَوْ هرچه دے ضمة وفتحة وکسرة، نو دَ دے غالب اِستعمال په حرکات بنائیه کښې اَوْ قلیل اسعتمال یې په حرکاتِ اعرابیه کښې دے اَوْ هرچه دے ضم، فتح اَوْ کسر بغیر التاء دا خاص دي په حرکات بنائیه پورے۔

## فالرفع علم الفاعلیة

ترجمه:- پس رفع چه دهٔ، برابره خبره دهٔ که حرفاً وي که حرکةً وي، لفظاً وي که تقدیراً اَوْ که محلاً وي.
داعلامه ده دَکون دَ شئ فاعل حقیقةً وي که حکماً وي، دلته دا فاء تفسیریه ده اَوْ الف لام په الرفع کښې عهدي دي اَوْ معهود په دے سره هغه رفع ده چه کومه مخکښې والواعه رفع ونصب وجرٌ کښې ذکر ده۔ "عَلَمٌ" په څلورو معانیو سره استعمالیږي، اول په معنیٰ دَ جنډے سره، دویم په معنیٰ دَ جبل (غر) سره، دریم په معنیٰ دَ اِسم مخصوص سره راځي. اَوْ څلورم په معنیٰ دَ نښے (نښانې) سره راځي اَوْ دلته ترے دا څلورمه معنیٰ مُراد ده، په الفاعلیة کښې یا اَوْ تا دَ مصدر دَ پاره راغلي دي۔ په دے وجه باندِ موږ دا معنیٰ کوو چه "کون الشئ فاعلاً" یعنی کیدل دَ شئ فاعل حقیقةً وي که حکماً دي۔ **سوال**. نهٔ منو دا خبره چه رفع علامه دَ فاعل ده، ځکه چه رفع څنګه راځي په فاعل کښې، لو دغه شان په نورو اسمائو کښې هُم راځي، لکه مسند اَوْ خبر وغیره شو۔ **جواب**. مُراد په فاعل سره عام دے، حقیقةً وي که حکماً۔ حقیقةً خو ظاهر دے اَوْ حکماً هغه ته وائي چه موجودیږي په هغه کښې خصلت دَ فاعل، چه هغه کیدل دَ هغه دي مسند الیه یا جزء ثانی دَ کلام دَ پاره، لو مبتداء خو مسند الیه ده، خصلت دَ فاعل په کښې موجود شو اَوْ خبر مسند دے، چه جزء ثانی دے دَ کلام نه، لو دا هُم خصلت دَ فاعل دے، چه څنګه فاعل عام دے، حقیقتاً وي که حکماً، لو دغه شان رفع هُم عامه ده۔ حرفاً وي که حرکةً، لفظاً وي که تقدیراً اَوْ که محلاً وي۔

## والنصب علم المفعولیة

اَوْ نصب عام دَ دے نه چه حرفاً وي که حرکةً، لفظاً دي که تقدیراً اَوْ که محلاً دي، دا علامه ده؛

کېدلو دَ شي مفعول یعنې کون الشيئ مفعولاً اَوْ مفعول حقیقتاً وي که حُکماً وي. **سوال**. نهٔ منو دا خبره چه نصب علامه دهٔ دَ مفعول، ځکه چه نصب څنګه موجود ېږي ---------- په مفعول کښې، نو دغه رنګ ------- په نورو اسماؤ کښې هُم، چه هغه مفاعیل خمسه دي لکه دَ دے نه علاوه په نورو اسماؤ کښې موجودېږي لکه تمیز شو، حال شو، استثناء شوه. **جواب**. مُراد په مفعول سره عام دے، حقیقتاً وي اَوْ که حُکماً. حقیقتاً خو ظاهر دے اَوْ هَرچه دے حکماً، نو دا هغه دے چه په ده پورے تعلق دَ فعل راغلے وي. پس دا تمام دَ دهٔ نه په فاعل باندې چه څنګه مفعول عام دے، نو دغه شان نصب هُم عام دے، حرفاً وي که حرکةً، لفظاً وي که تقدیراً یا محلاً.

**والجرُّ علم الاضافة** اَوْ جر عام دَ دے نه، چه حرفاً وي که حرکتاً، لفظاً وي که تقدیراً اَوْ که محلاً وي، دا علامه وي دَ کېدلو دَ شي مضاف الیه اَوْ مضاف الیه عام دے، حقیقتاً وي که حکماً وي. **سوال**. نهٔ منو دا خبره چه جر علامه دهٔ دَ مضاف الیه، ځکه چه جر څنګه په مضاف الیه کښې راځي نو دغه شان راځي، په هغه مجرور کښې، چه هغه مجرور په حرفِ جر سره وي، لکه مررت بزیدٍ. **جواب**. مضاف، مضاف الیه عام دے، حقیقتاً وي که حکماً. حقیقتاً خو ظاهر دے اَوْ حکماً لکه جار مجرور شته په مررت بزیدٍ کښې. **سوال**. څهٔ وجه ده چه مصنفؒ په الفاعلیة اَوْ په المفعولیة کښې یا اَوْ تا مصدري اوکړل اَوْ په الاضافة کښې ئې یا اَوْ تا رانهٔ وړل. **جواب**. الاضافة بنفسه مصدر دے، نو دَ یا اَوْ دَ تا لګولو ضرورت نشته اَوْ یا فاعل یا مفعول دا بنفسه مصدر نهٔ دے، نو په دے وجه ئې ورسره یا اَوْ تا مصدریه کېښودل------ **سوال**. رفع ئې ولے خاص کړو، په فاعل پورے اَوْ نصب ئې ولے خاص کړو، په مفعول پورے اَوْ جر ئې ولے کړو، په مضاف الیه پورے اَوْ عکس ئې ولے ونهٔ کړو؟ **جواب**. فاعل قلیل دے اَوْ رفع ثقیل دهٔ، نو قلیل له مونږ ثقیل ورکړو، دَ پاره دَ تعادل، دغه شان مفعول کثیر دے اَوْ نصب خفیف دے، نو کثیر له مونږ خفیف ورکړو دَ پاره دَ تعادل[1] اَوْ مضاف الیه دَ پاره جر متعین شو.[2]

## درس نمبر ۴۶

**والعامل ما به یتقوم المعنی المقتضی للاعراب.** اَوْ عامل دَ اِسم چه مؤثر وي هغه عامل چه لفظي وي که معنوي وي، دا هغه شے دے چه په سبب بعید

---

[1] ځکه چه کثرة تقاضا دَ خفت کوي اَوْ خفیف په حرکاتو کښې نهٔ دے مګر نصب. ۱۲ (م - س).

[2] ځکه چه مضاف الیه متوسط دے اَوْ جر هُم متوسط دے. ۱۲ (م - س).

دَ دغه سره حاصلیږی معنیٰ، هغه معنیٰ چه واردیږی په معرب باندې په سبب دَ بدلیت سره هغې معنیٰ چه هغه مقتضی وی دَ اِعراب، چه فاعلیت، مفعولیت اَؤ اضافت دی۔ هر کله چه فارغ شو، مصنفؒ دَ بیان دَ اسوء ایمه نه په امورِ خمسه کښې، نو وُئے ویئیل چه "والعامل" یعنی شروع یې اوکړه په اَمرِ خامس کښې، چه عامل دے۔ ځکه په الاعراب سره مصنفؒ سبب قریبه ذکر کړے وو، اَوس ـــــ دلته په والعامل سره سبب بعیده بیانوی۔ دغه شان دَ تعریف دَ والعامل دَ ذکر کولو دَ پاره څو وجوهات دی۔ اَوله وجه دا ده چه ځکه په تعریف دَ اعراب کښې لفظ دَ اختلاف راغلے دے اَؤ لِاختلاف دَ پاره یو سبب قریبه دے اَؤ بل سبب بعیده دے۔ پس په الاعراب سره یې سبب قریبه ته اشاره اوکړه اَؤ په والعامل سره سبب بعیده ذکر کوی ـــــ دوئیمه وجه دا ده، چه ځکه مصنفؒ حُکم دَ معرب ذکر کړے دے اَؤ په هغې کښې یې عامل ته ضمناً اشاره کړې وه، نو اوس په تعریف دَ عامل سره یې صراحةً ذکر کوی ـــــ دریمه وجه دا ده چه مصنفؒ په تعریف ـــ دَ اِسم معرب کښې ویئیلی دی چه فالمعرب المرکب الخ، نو په تعریف کښې یې مرکب راوړے دے اَؤ چه کوم شی مرکب وی، نو دَ هغې دَ پاره دَ څلورو علتونو ضرورت دے۔ یو علت مادی، دوئیم علت صوری، دریم علت فاعلی اَؤ څلورم علت غائی ـــــ پس اسم معرب دا علت مادی دے۔ اعراب دا علت صوری اَؤ العامل دا علت فاعلی اَؤ معانی معتوره دا علت غائی، نو په العامل سره تعریف دَ عامل ذکر کوی، چه هغه علت فاعلی دے۔ په دې وجه باندې یې اوویئیل چه والعامل۔ مثالونه: جاءَ په دې ترکیب کښې چه جاءنی زیدٌ دا عامل دے، چه حاصله شوې ده په سبب دَ دې سره معنیٰ مقتضی دَ اعراب، چه هغه فاعلیت دے اَؤ علامه یې رفع ده۔ رأیت په دې ترکیب کښې چه رأیت زیداً دا عامل دے، چه حاصله شوې ده په سبب دَ دې معنیٰ مقتضی دَ اعراب چه هغه مفعولیت دے اَؤ علامه یې نصب دے۔ بار په مررت بزیدٍ کښې دا عامل دے چه حاصله شوې ده په سبب دَ دې معنیٰ مقتضی دَ اعراب چه هغه اضافت دے اَؤ علامه یې جر دے۔ **سوال**۔ ستا تعریف دَ عامل دا جامع اَؤنه کړه ځکه دو خپلو افرادو لره اَؤ خارج شو ترینه عوامل جازمه دَ فعل مضارع۔

**جواب**۔ دلته په العامل کښې الف لام عهدی دی اَؤ معهود په دې سره عامل دَ اِسم دے، نه مطلق عامل اَؤ عوامل جازمه دا مختص دی په فعل پورې۔ زده کړه! دا خبره چه عامل په دوه قسمه دے۔ یو مطلق عامل دے، دوئیم عامل دَ اِسم دے۔ مطلق عامل، مطلق مهمل نه وائی اَؤ په اِصطلاح کښې "مایجعل آخر الکلمة علیٰ" وجه المخصوص اَؤ دَ عامل دَ اِسم تعریف په خپله باندې مصنفؒ کړے دے۔ دلته لفظ دا "ما" دَ شئ نه عبارت دے یا بیان...

وی دَ اِسم نه اَوْ یا دَ حرف نه اَوْ یا دَ فعل نه ـ کهٔ چرے 'ما' عبارت شی دَ اِسم نه، وےلے انعال عامله اَوْ حروف عامله اَوْ دغه شان عامل معنوی ترے نه خارج شو اَوْ کهٔ عبارت شی دَ فعل نه، نو انعال عامله خو په کښے داخل شو ولے حروف عامله اَوْ اسمائے عامله اَوْ معنوی ترے نه خارج شو اَوْ کهٔ چرے عبارت شی دَ حرف نه، نو حروف عامله په کښے داخل شو خو اسمائے عامله، انعال عامله اَوْ عامل معنوی ترے نه خارج شو ـ **جواب**. ما عبارت دے دَ شی نه ـ پس عوامل دَ اِسم چه لفظی وی که معنوی وی، ټول په کښے داخل شو ـ په بِهٖ کښے دا باء سببیه دهٔ، یا دا باء دَ پارهٔ دَ استعانت ده ـ **سوال**. بِهٖ ئے ولے مقدم کړو؟ په فعل یتقوم باندې، په تعریف دَ عامل کښے اَوْ په تعریف دَ اعراب کښے ئے مؤخر کړے دے دَ فعل نه ـ په دے کښے څهٔ نکته ده ـ **جواب** دا دے چه دلته کښے مصنفؒ 'بِهٖ' مقدم کړے دے، په فعل باندې دَ پاره یو فائدے څکه چه تقدیم دَ ماحقه التاخیر فائده کوی، حصر اَوْ اختصاص لره، نو دلته کښے غرض دَ مصنفؒ حصر اَوْ اختصاص دے، په دے وجه ئے بِهٖ مقدم کړو په یتقوم باندې ـ **سوال** واردیږی، چه معنیٰ دَ اِعراب دا خو قائمه ده په معرب پورے نه په عامل پورے، نو تعریف دَ عامل په مابه یتقوم المعنی المقتضی للاعراب سره صحیح نهٔ شو ـ **جواب**. دلته کښے یتقوم ـ ـ ـ ـ په معنیٰ دَ یحصل سره دے ـ **سوال**. دَ یتقوم نسبت عامل ته نهٔ صحیح کیږی، څکه چه قیام په ذوی الروح کښے راځی اَوْ عامل دَ ذوی الروح نه نهٔ دے ـ **جواب** دا دے چه دلته کښے یتقوم په معنیٰ دَ یحصل سره دے، یعنی چه حاصلیږی ـ

## درس نمبر ۴۷

> فالمفرد المنصرف والجمع المکسّر المنصرف بالضمّة رفعاً والفتحة نصباً والکسرة جرا

ترجمه :- پس اِسم هغه اِسم چه مفرد وی، لفظاً اَوْ معناً ـ هسے مفرد چه منصرف دے، صحیح نوی حقیقتاً وی کهٔ حکماً اَوْ جمع هسے جمع چه مکسّر وی، بنا دَ مفرد دَ هغے اَوْ هسے جمع چه منصرفه وی ـ دا دواړه اسماء به معرب کیږی، په ضمے سره په حالت رفعی کښے او معرب کیږی به په فتحے سره په حالت نصبی کښے اَوْ معرب کیږی به په کسری سره په حالتِ جری کښے، یا دا چه معرب کیږی به په اعراب دَ رفع سره په ضمے باندې اَوْ معرب کیږی به په اعراب دَ نصب سره په فتحے باندې اَوْ معرب کیږی په اعراب دَ جر سره په کسرې باندې، مصنف رحمة الله علیه په دے عبارت سره اَوَس اصناف دَ اعراب ذکر کوی، څکه چه مخکښے ئے تعریف دَ معرب نکره دَ معرب ذکر کړل ـ بیا ئے تعریف دَ اعراب اَوْ انواع دَ اعراب وړاندے ئے عامه ...

ذکر کړو، نو اوس اصناف د اعراب اؤ انواع د اعراب ذکر کوي[1]۔ د حالت رفعي د پاره څلور قسمه دي، چه په ضمې سره وي اؤ که په واؤ سره وي، که په الف سره وي۔ د حالت نصبي د پاره څلور قسمه دي، چه په فتحې سره وي، که په الف سره وي اؤ که په یا سره وي، که په کسرې سره وي۔ د حالت جري د پاره هم څلور قسمه دي، چه په کسرې سره وي، که په یا سره وي، اؤ که په الف سره وي اؤ که په فتحې سره وي، نو د دې ټولو اعرابونو د پاره مقامات اؤ محلونه پیژندل ضروري دي۔ په دې وجه باندې مصنف‌رح فالمفرد المنصرف اووې، فوائد د قیودو دا دي[2]، چه په مفرد سره تثنیه اؤ جمع خارج شو، په لفظاً اؤ معناً سره پورې نه اسمائے ستة مکبره خارج شو، په منصرف سره ترې نه غیر منصرف خارج شو اؤ په صحیح سره ترې نه غیر صحیح خارج شو، په نحوي سره ترې نه صرفي خارج شو اؤ تحقیقاً مثال لکه زید شو اؤ د حکماً مثال لکه د دلو اؤ ظبي شو اؤ په جمع مکسر سره ترې نه جمع سالمه خارجه شوله اؤ په منصرف سره ترې نه جمع مکسره غیر منصرفه خارج شوه۔ د بالضمة رفعاً بالفتحة نصباً اؤ د بالکسرة جراً د پاره متعلق مقدر دے، چه یعرب دے۔ **سوال**. مفرد به یا په مقابله د تثنیې اؤ د جمع کښې اخلې اؤ یا به یې په مقابله د مضاف اؤ د شبهه مضاف کښې اخلې۔ که چرې په مقابله د تثنیې اؤ د جمع کښې یې اخلې، نو داخل شو به کښې اسمائے ستة مکبره، ځکه چه دوئ مفرد په دې معنیٰ سره دي، خو معرب په دې اعراب سره نه دي اؤ که چرې په مقابله د مضاف اؤ د شبهه مضاف کښې یې اخلې، نو خارج شو ترې نه غلام په دې ترکیب کښې چه غلام زید، ځکه چه دے معرب دے، په دې اعراب سره، ولې مفرد نه دے په دې معنیٰ سره؟

**جواب**. مراد په مفرد سره حقه مفرد دے، چه په مقابله د تثنیې اؤ د جمع کښې داخلې وي اؤ که ته وائې چه اسمائے ستة به کښې داخلیږي، نو زه وایم چه دا به کښې نه داخلیږي، ځکه چه مراد په مفرد سره مفرد لفظاً اؤ معناً دواړه دے اؤ اسمائے ستة اګرچه مفرد دي لفظاً، لیکن دا معناً مفرد نه دي، ځکه چه معنیٰ د دې منبئ ده[3]، د تعدد نه..... **سوال**. توصیف ستا د جمع په مکسر سره نه صحیح کیږي..... ځکه چه کسر خو صفت دے، د پاره د مفرد نه د جمع۔ **جواب**. دا صفت بحال متعلقه دے، یعنې صفت په دوه قسمه دے، اول صفت بحاله دے اؤ دویم صفت بحال متعلقه۔

---

[1] حالتونه د اعراب درے دي، حالت رفعي، حالت نصبي اؤ حالت جري۔ بیا د هر واحد د پاره څلور قسمه دي۔

[2] یعنې په معنیٰ په کښې چه کوم قیودات ذکر دي۔

[3] یعنې د دوئ په معنیٰ کښې تعدد پروت دے۔ رم۔ س۔

صفت[۱] بحاله، لکه زید عالم شو اَؤ صفت بحال متعلقه، لکه زیدٌ عالم ابوه، لودلته کښې هم صفت بحال متعلقه دے۔ عبارت به ؤ داسے شی "والجمع المکسر بناء مفرده" یا الجمع المکسر مفرده"۔
**سوال** ۔ بناء د مترلو په اختصار وی، لو مصنف رح ولے اکتفا اُونه کړه؟ صرف به ذکر د بالضمة والفتحة والکسرة باندِ بغیر د رفعاً، نصباً اَؤ جراً نه۔ **جواب**۔ مصنف رح اکتفاء اونه کړه، په ذکر د ضمة، فتحه اَؤ کسرة باندِ بلکه رفعاً، نصباً اَؤ جراً ئې هم ورسره ذکر کړل، د پاره د رفعه د توهم، چه بیا به دا وهم پیدا کیدو، چه کېنې دا د داړه اسماء مبنی وی، ځکه چه ضمه، فتحه اَؤ کسره، د دے غالب استعمال په حرکاتو بنائیه وُ کښې دے۔ **سوال**[۲]۔ بیا خو صرف یرفع ینصب اَؤ یجر به ئې ذکر کړے وو، یعنی ضمه، فتحه اَؤ کسره به ئې نه وے ذکر کړی۔
**جواب** دا دے چه مصنف رح صرف په رفع نصب اَؤ جر اکتفاء اُونه کړه، ځکه چه رفع نصب، اَؤ جر دا چه څنګه په حرکات اعرابیه کښې راځی، لو دغه شان په حروف اعرابیه کښې هم راځی۔ بیا به دا وهم پیدا کیدو چه د دے اسماء اعراب بالحروف دے، حالانکه دا خو بالحرکت دے۔
**سوال** ۔ دا رفعاً، نصباً اَؤ جراً ولے منصوب دی؟[۳]۔ **جواب** دا دے چه دا بناء بر ظرفیة یا بنا بر مفعول مطلق، که دوی منصوب اوګرځی بنا بر ظرفیة، لو **سوال** دا وارد یږی چه ظرفیة د رفع نصب اَؤ د جر نه صحیح کیږی، ځکه چه دوی نه ظرف زمان دی اَؤ نه ظرف مکان دی۔ **جواب**۔ دلته مضاف مقدر دے، چه هغه حالت دے۔ پس تقدیر د عبارت به دا سے شی چه "یعربان بالضمة، حالة الرفع والفتحة حالة النصب، والکسرة حالة الجر"۔ اَؤ که چیرته منصوب اوګرځی، بنا بر مفعول مطلق، لو بیا بیرے دا **سوال** وارد یږی چه رفعاً، نصباً اَؤ جراً منصوب بنا بر مفعول مطلق نه صحیح کیږی، ځکه چه مفعول مطلق هغه ته وائی چه فعل مشتمل وی، په هغه باندِ د قبیلے د اشتمال د کل په جزء باندِ اَؤ دلته کښې فعل چه یعربان مقدر دے۔ دا خو مشتمل نه دے په رفع نصب اَؤ جر باندِ۔
**جواب** ۔ دلته کښې هم تقدیر د مضاف دے، چه هغه اعراب دے، لو اصل عبارت به داسے شی، چه یعربان بالضمة اعراب رفع، بالفتحه اعراب نصب، بالکسرة اعراب جر۔

## درس نمبر ۴۸ :-

اَؤ دریمه وجه د دے د نصب د پاره دا ده چه دا منصوب

---

[۱] صفت بحاله دے ته وائی چه د لو موصوف د پاره صفت بنفسه ثابت شی اَؤ صفت بحال متعلقه دے ته وائی چه متعلقاتو د موصوف د پاره ثابت وی لکه زیدٌ عالم ابوه ۔ [۲] چه څه کله مترجم دا وهم کولو، لو پکار ده چه رفعاً، نصباً اَؤ جراً ئې نه وے ذکر کړے ۔
[۳] ځکه چه د نصب د پاره څو طرق ګرځیدلی دی۔ (م. س).

دے، بنا بر حالیت یعنی د رفعاً، نصباً اَوْ جراً حال واقع شوی دی، دَ ضمیر دَ یعربان فعل مقدر نه.... ...چه دا رفعاً، نصباً اَوْ جراً دا حال واقع شی، دَ ضمیر دَ یعربان نه چه هغه فعل مقدر دے خو به دِ دے باندِ **سوال** وارد یږی هغه دا چه، حال محمول وی په ذوالحال باندِ، نو دلته کښے دا حمل نه صحیح کیږی، ځکه چه دلته کښے حمل دَ صرف وصف راځی په ذات باندِ، ځکه چه رفعاً، نصباً اَوْ جراً دا مصادر دی اَوْ ضمیر ذات دے۔ **جواب**. په دے کښے موږ تاویل کوؤ، چه مرفوعاً، منصوباً اَوْ مجروراً دے، په صیغو کِ اِسم مفعول سره۔ **سوال**. دا قِسم اعراب ئے ولے خاص کړو، په دا قسم دَ اِسم نور؟ **جواب**. دا قِسم اعراب اصل دے اِوْ دا قِسم دَ اِسم هم اصل دے، نو اصل ئے اصل ته ورکړو، رعایتاً للتعادل۔ دا قِسم اعراب ځکه اصل دے، چه دا اعراب بالحرکت دے اَوْ اعراب بالحرکت اصل دی، په نسبت سره اعراب بالحروف وته، ځکه چه اصل په اعراب کښے تبعیت دے اَوْ کوم لوظے چه ذمنی وی، په خپله معنیٰ کښے، نو ذا اصل وی اَوْ اعراب بالحرکت کامل دے، په تبعیت کښے، په دے وجه باندِ اصل اوګرځیدو اَوْ دا قِسم دَ اِسم اَصل دے، ځکه چه مفرد اصل دے، په نسبت سره تثنیٰ اَوْ جمع ته اَوْ منصرف اصل دے، په نسبت سره غیرمنصرف ته ځکه چه معرب دے، په احوال ثلاثه کښے په حرکات ثلاثه سره، یا اعرابات ثلاثه سره اَوْ دا اصل دے، دَ هغه نه چه هغه معرب نه وی، په احوال ثلاثه کښے په اعرابات ثلاثه سره اَوْ جمع مکسر دا اصل دے، په مقابله دَ جمع سالم کښے، ځکه چه لیکار دا دے چه دَ مفرد اَوْ دَ جمع په مابین کښے دِ فرق اَوْ اختلاف وی، لفظاً اَوْ معناً، نو په جمع مکسر کښے اختلاف دے په مابین دَ مفرد اَوْ دَ جمع کښے لفظاً اَوْ معناً، په دِ دے وجه باندِ دا قِسم دَ اِسم اَصل اوګرځیدو۔ پس اصل له موږ اصل ورکړو۔ مثالونه:۔ لکه جاءنی رجلٌ، رأیتُ رجلاً، مررتُ برجلٍ او جاءنی رجالٌ، رأیتُ رجالاً، مررتُ برجالٍ اَوْ مثال دَ مفرد منصرف صحیح حکمی، لکه جاءنی دلوٌ وظبیٌ الخ۔

| والجمع المؤنث السالم بالضمة والكسرة |
|---|

ترجمه:۔ اَوْ جمع مؤنث هغه جمع مؤنث چه سالمه وی، بنا دَ مفرد دَ هغهٔ چه جمع شوے وی، په الف اَوْ په تا سره۔ برابره خبره ده چه مفرد ئے مذکر وی اَوْ مؤنث اَوْ دا جمع سالمه مؤنثه عامه ده، چه فی الحال وی اَوْ که فی الاصل وی، دا به معربه کیږی، په ضمے سره په حالت رفعی کښے اَوْ دا معربه کیږی، په کسرے سره په حالة نصبی اَوْ په جری کښے، دلته حالة نصبی تابع کړے شوے دے، دَ حالتِ جری۔ دا اُوس هغه اعراب ذکر کوی، چه حالت نصبی په کښے تابع دَ حالتِ جری، په السالم باندِ هم هغه اعتراض وارد یږی، چه کوم په المکسر باندِ راغلو، جواب ئے هم هغه دے، یعنی مصنف بحال متعلقه دے اَوْ مطلب به ئے دا شی، چه السالم بنا د مفرده یا السالم مفرده دَ بالضمة والکسرة دپاره متعلق مقدر دے چه تعرب دے، نو تقدیر به ئے دا شی، چه تعرب بالضمة رفعاً والکسرة

نصب او جراً او په نصب د رفع، نصب او د جر کښې هغه احتمالات دی چې مخکښې ذکر شوی دی۔
**سوال**. دا قسم اعراب ولې خاص کړے شو په دا قسم د اسم پورے۔ **جواب**. جمع مونثه سالمه دا فرع ده د جمع مذکر سالم او په هغه کښې حالت نصبي تابع د حالت جري وو په دې وجه هم تابع شو د پاره د دې، چې مزیت او فوقیت د فرع رانشي په اصل باندې۔ **سوال**. مزیت او فوقیت د فرع خو په اصل راغلے دے، ځکه چې فرع له تا اعراب بالحرکت ورکړو چې هغه اصل دے او اصل له دې اعراب بالحروف ورکړو چې هغه فرع ده۔ **جواب**. دلته کښې مونږ اعراب بالحرکة ورکړو د وجه د ضرورت نه، ځکه چې موجود نه وو لږ حروف د پاره د اعراب د جمع مونث سالمې، یا دا چې دلته کښې مزیت د فرع په اصل نه دے راغلے، ځکه چې اعراب بالحرکة مطلق اصل نه دے، بلکه اصل دے په مفرد او کښې او اصل په تثنیه او په جمع کښې اعراب بالحروف دے نو بیا مزیت د فرع په اصل رانغلو۔ **سوال**. نه منو دا خبره، چې دا قسم اعراب خاص دے په جمع مونث سالمې پورې، ځکه چې د دې جمعه وی، چې جمع مونث سالمې به نه وی او معرب به وی، په دې اعراب باندې یعنې هغه به مذکر وی او معرب وی، په دې اعراب باندې، لکه مرفوعات، منصوبات او مجرورات، چې مفرد د دوئ مذکر دے، چې هغه مرفوع، منصوب او مجرور دی او دغه رنگ جمع مونث سالمه به وی او معرب به نه وی، په دې قسم سره، لکه ارضون، سنون او قلون، چې دا جمع د ارض، سنة او قلة چې دا مونث دی۔ پکار دا ده چې دا هم معرب کړے شوې وے، په دې قسم اعراب سره۔ **جواب**. مراد په جمع مونث سالم معنی اصطلاحی ده چې جمع یې داخلی وی، په الف او په تا سره، او دس بواپه خبره چې مفرد د هغه مذکر وی او که مونث، نو خارج شو ترې نه ارضون او سنون وغیره۔ **سوال**. نه به درته او ښایم چې یو اسم به وی جمع مونث سالم به نه وی او معرب به وی، په دې اعراب سره یا دا یې چې یو اسم به وی هغه به مفرد وی او معرب به وی، په دې اعراب سره، لکه عرفات شو چې دا خو یو اسم مفرد دے او معرب دے، په دې قسم د اعراب سره۔ **جواب**. مونږ په معنی کښې دا خبره کړې ده، چې جمع مونث سالمه عامه ده، فی الحال وی او که فی الاصل وی او دلته اګرکه عرفات فی الحال مفرد دے او علم دے، د یو ځائے د خاص میدان، لیکن فی الاصل دا جمع د عرفة ده او جمع یې راغلے په الف او په تا سره۔

# درس نمبر ۹۴

**غیر المنصرف بالضمة والفتحة** مصنف په دې عبارت سره اعراب د غیر منصرف بیانوی او دے وئیل چې غیر المنصرف الخ یعنی غیر منصرف مفرد وی او که جمع مکسر، دا به معرب وی به ضمه سره په حالت رفعي کښې او معرب به وی، په حالت نصبي او جري کښې، په فتحه سره دلته کښې حالت جري تابع د حالة نصبي دے۔

کړه دا خبره چه اِسم به درے قسمه دے، یو هغه دے چه مشابهه وی، دَ فعل سره په معنی مطابقی کښے۔ دویم هغه دے چه مشابهه وی، دَ فعل سره په معنی تضمنی کښے۔ دریم هغه دے چه مشابه وی، دَ فعل سره په ادنیٰ مشابهت سره۔ پس حکم دَ اوّل دا دے چه دے به عمل کوی، په شان دَ عمل دَ فعل اَو مبنی به وی، په شان دَ بناء دَ فعل، لکه اسمائے افعال اَو حکم دَ ثانی دا دے چه دے به عمل کوی په شان دَ عمل دَ فعل اَو مبنی به نه وی، په شان دَ بناء دَ فعل، لکه اِسم فاعل شو اَو حکم دَ دریم دا دے چه دے به عمل نه کوی په شان دَ عمل دَ فعل او مبنی به نه وی په شان دَ بناء دَ فعل، بلکه دے منع کوی، هغه اعراب چه کوم مختص دے په اِسم پورے، لکه غیر منصرف شو۔ **سوال**۔ غیر منصرف لره ولے دا اعراب دے، یعنی جر به کښے تابع دَ نصب دے؟
**جواب**۔ دا غیر منصرف مشابهه دے، دَ فعل سره په وجود دَ فرعیتینو کښے، لکه چه څنګه فعل محتاج دے، مشتق منه اَو فاعل ته۔ دغه شان غیر منصرف هم محتاج دے، وجود سببونو ته۔
**سوال**۔ چه څنګه په جمع مؤنث سالم کښے حالت نصبی تابع دَ حالت جری دے او دلته کښے جری تابع، دَ حالت نصبی دے، نو هغه دِ ولے مقدم کړو، په دهٔ باندِ؟ **جواب**۔ جر اصل دے په نسبت سره نصب ته، نو هغه صورت مقدم شه، چه کوم تابع دَ جری دے۔

**اَبوکَ واَخوکَ وهَنوکَ وحَموکِ وفوکَ وذومالٍ مضافةً الی غیر یاءِ المتکلّم بالواوِ والالفِ والیاءِ**

هرکله چه مصنف فارغ شو دَ بیان اعراب بالحرکة نه، نو شروع ئے اوکړه، په بیان دَ اعراب بالحرف کښے، نو وئے ویل چه ابوك الخ مراد به دے سره هغه اسمائے ستة دی چه هغه موحده دی تثنیه اَو جمع نه دی مکبره دی، مصغره نه دی اَو په حال دَ کون دَ دے اسماء کښے چه هغه مضاف وی، غیر دَ یاء دَ متکلم ته، نو دوی اعراب به په حالتِ رفعی کښے واؤ سره وی په حالت نصبی کښے په الف سره اَو په حالة جری کښے په یاء سره، یعنی دغه اسمائے به په احوال ثلاثه کښے معرب وی، په حروف ثلاثه سره۔ اَبٌ په اصل کښے اَبَوٌ ناقص واوی دے اَو دغه شان اَخٌ په اصل کښے اَخَوٌ دے اَو هَنٌ په اصل کښے هَنَوٌ دے اَو حَمٌ په اصل کښے حَمَوٌ دے، دا حَلوٌ ناقص واوی دی اَو فوك یعنی فَمٌ په اصل کښے فَوهٌ وو، اجوف واوی، په دلیل دَ افواه سره، ځکه چه دا جمع دَ افواه ده، اَو هر یو شے چه جمع ته رد کړے شی، نو اصل ئے معلوم شی، دَ فوه نه ها حذف کړے شو، خلاف القیاس بیا فو پاتے شو، نو واؤ په میم مبدل کړے شو۔ اَو ذو په اصل کښے ذَوَوٌ وو

---

ځکه چه «و» اَو «م» قریب المخرج دی۔ ۲۔ (م۔س)۔

لفيف مقرون - دَ دوه واوُه يو ځائے جمع شول، نو يو واوُ ترې نه حذف شو - **سوال**. ناقص يے ولے مقدم کړو، په اجوف اوُ په لفيف باندې - **جواب** دا کثير دی اوُ العزة للكاثر -
**سوال**. ولے مخالفت اوکړو؟ مصنفؒ په ضمير دَ مخاطب دَ حموكِ دَ لوړو نه، ځکه چه په هغوئ کښے ضمير دَ مخاطب دَ مذکر راوړے دے اوُ دلته کښے ضمير دَ مخاطب مؤنث دے -
**جواب**. دَ حموكِ نسبت ښځے ته کيږی، ځکه حَم، ليور ته والی اوُ دا دَ ښځے دَ پاره وی -
**سوال**. ولے مخالفت اوکړو؟ مصنفؒ په اضافت دَ ذو کښے دَ دے لوړی نه، په دے شان سره چه دَ ذو اضافت يے اِسم ظاهر ته کړے دے اوُ دَ لوړو يے ضمير ته کړے دے -
**جواب**. ذو وضع شوے دے، دَ پاره دَ توصيف دَ شی په اِسم جنس سره اوُ ضمير اِسم جنس نه شی راتلے، ځکه چه دا حاصليږی، په اِسم ظاهر سره، نه په ضمير سره - **سوال**. اسماء سته دا خو مفرد دی اوُ دَ مفرد اعراب په حرکت سره دے، نه په حروف سره، نو دَ دوی اعراب يے ولے په حروف سره راوړے دے - **جواب**. دا دَ پاره دَ دفع دَ تنافی او منافرت، ځکه چه هَر مفرد له معتبره اعراب بالحرکت ورکولو او تثنيے اوُ جمع له اعراب بالحروف، نو بيا خو به دَ دوئ په مابين کښے بعد اوُ تنافی راتلی، نو دَ پاره دَ دفع دَ دغه تنافی دوی له اعراب بالحركة ورکړے شو لکه څنګه چه جمع سالمه مؤنث کښے، سره دَ دے نه چه جمع ده، هغے له اعراب بالحركة ورکړے شو - **سوال**. دَ دفع دَ تنافی دَ پاره خو يو اِسم کافی وو، نو شپږو اسماؤ ته څه ضرورت وو؟ **جواب**. هَر واحد دَ تثنيے اوُ دَ جمع نه هغے لره دَ دے دَ ښه حالت دی، لنو مجموعه شپږ شو نو هَر واحد له مونږ ورکړو اِسم عليحده -

# درس نمبر ۵۰:- **سوال**. دغه اسماء ولے مقدن کړے شو، دَ پاره دَ دفع دَ دغه منافرت. يعني نور اسماء لره يے دا اعراب ورکړے وو؟ **جواب**. دا سے چه دَ دے اسماء مشابهت وو، دَ تثنيالو اوُ دَ جموعو سره لفظاً اوُ معناً په دے وجه باندې يے دا اعراب خاص کړل - هَر چه دے لفظاً، نو هغه دا سے چه څنګه دَ تثنيے ( اوُ دَ جمع) په آخر کښے حرف صالح دَ پاره دَ اعراب شته، نو دغه شان دَ دے اسماؤ په آخر کښے هُم حرف صالح دَ پاره دَ اعراب شته اوُ معناً دا چه څنګه دَ تثنيے اوُ دَ جمع په معنیٰ کښے تعدد دے، نو دغه شان دَ دے اسماؤ معانی هُم مبنی دی، دَ تعدد نه، لکه اب شو، دا هغه ته وائی چه هغه لره ابن وغيره وی، علیٰ هذا القياس - **سوال**. دا سے خو نور هُم اسماء شته، چه دَ هغوئ په آخر کښے حرف صالح دَ پاره دَ اعراب شته، نو هغه د هُم معرب اوکړځولے شی په دے قسم اعراب سره، لکه يدٌ اوُ دمٌ چه دا په شان دَ اب اوُ اخ دی، ځکه چه يدٌ په اصل کښے يدوٌ اوُ دمٌ په اصل کښے دموٌ دے - **جواب**. دا موقوف

دے په سماع باندې د عربو نه، ځکه چه عرب اعاد د عذر فالق کوي، په دے اسماء کښې نه په غیر کښې. هلته چه معنی کښې موږن وئیلي وو، چه اسمائے ستہ، هغه اسمائے ستة چه هغه موحد وي او مکبر وي. دا قیودات معنی لکولي وو، د پاره د دفع د اعتراض. **سوال**. تا خو اووئے چه د دے اسماؤ اعراب به په دے قسم سره وي او زه نه منم دا خبره چه د دے اسماؤ اعراب په دے قسم سره دے، ځکه په حالت د تثنیې او د جمع کښې د دے اعراب په دا شان نه دے، بلکه د نورو تثنیالو او د جموعو په شان دے او دغه رنګ په حالت د تصغیر کښې د دے اعراب دا نه دے، بلکه په حرکت سره دے، نو تا ځنګه حکم په طریقه د عمومیت سره راوړو، چه د دے اسماؤ اعراب به په دا قسم وي.

**جواب**. دلته ورسره قید د موحد او مکبر ملحوظ دے. **سوال**. دا قیودات به ئے ورسره ذکر کړي وو. **جواب**. دا ئې ورسره ذکر نه کړل او اکتفاء ئې وکړه، په مثالونو باندې[1].

**سوال**. په حالت د اضافت کښې به ئې هم اکتفاء په مثال کړې وه، لکه دا وائي چه مضافةً الی غیر یاء المتکلم، نو دلته کښې به دا هم اکتفاء په مثال کړې وه. **جواب**. دلته کښې مصنف اکتفاء په مثال باندې اونه کړه، ځکه چه بیا به دا وهم پیدا کېدو، چه ګنې شرط په دے اسماؤ کښې دا دے چه د دوے اضافت راشي ضمیر د مخاطب ته هله به ورباندې دا قسم اعراب راځي، حالانکه دا نه ده، ځکه چه هر کله ضمیر د مخاطب ته د دے اضافت اوشي، نو دا اعراب ئې دے او که ضمیر د غائب یا اسم ظاهر ته د دے اضافت اوشي، نو هم ئې دغه اعراب دے، لکه جاءني ابوه، یا جاءني ابو زید. **سوال**. ابوك او اخوك دا اسماء مشتمل دي، په لغو او په استعمالو باندې لغو په جانب د واو کښې ده[2]. او استعماله په جانب د الف او د یا کښې ده[3]. **جواب**. مراد په ابوك وغیره سره اسمائے ستہ دي او د هر محله دا سے اوشي چه ذکر د یو فرد معین وي او مراد ترے نه نوع وي، ته ئې اووائې چه زیدٌ ضاحكٌ بالطبع، نو دلته کښې خو ذکر د زید دے، چه یو فرد معین دے، لیکن مراد ترے نه انسان دے، چه نوعه ده.

## درس نمبر ۱۵:

دلته په اسمائے ستہ کښې یو ضابطه ده، هغه دا چه دا اسمائے

---

[1] ځکه چه دغه مثالونه مفرد دي، تثنیه او جمع نه دي او مکبر دي او مصغر نه دي. ۱۲ (م-س).

[2] لغویت په جانب د واو کښې په دے معنی سره دے، چه یو ولاړ ئې خپل دے او ته ئې وائې چه حالت رفعي ئې په واو سره دے، نو دا خو نه ده، مګر جمع د واو ښنو ده او دا لغو ده. ۱۲ (م-س).

[3] یعنی په جانب د الف او د یا کښې ئې استعماله راځي، په دے معنی سره چه ته وائې چه حالت نصبي ئې په الف سره، او حالت جري ئې په یا سره دے، لحوق د الف او د یاء په واو باندې محال دے. (م-س).

نسته په خالی نه وی یا به موحد وی او یا به تثنیه وی۔ که چیرے تثنیه وی، نو اعراب د دوی د لفظونو تثنیاتو په شان دے لکه چیرے موحد وی، نو بیا به خالی نه وی، یا به مضمر وی یا به مکبر وی۔ که چیرے مضمر وی، نو اعراب د دوی بالحرکة دے او که مکبر وی، نو بیا به خالی نه وی یا به مضاف وی یا د متکلم وته، یا به مضاف وی غیر د یا د متکلم وته۔ که چیرے مضاف وی، یا د متکلم وته، نو اعراب د دوی بالحرکة دے او که غیر د یا د متکلم ته یے اضافت راغلے وی، نو بیا به یے اعراب په احوالو ثلثه کښے په حروف ثلاثه سره وی۔

## المثنیٰ وکلا مضافاً الی مضمرٍ واثنان واثنتان بالالف والیاءِ

هر کله چه فارغ شو مصنف د بیان د اعراب د هغه اسماؤ نه چه په احوال ثلاثه کښے په حروف ثلاثه سره وی، نو اوس یے شروع اوکړه په اعراب هغه اسماؤ کښے چه په احوال ثلثه کښے معرب وی، په حرفینو سره، نو وئیل چه المثنیٰ یعنی مثنیٰ او ملحقات د مثنیٰ چه کلا او کلتا دی، په حال د کون د دے کلا او کلتا کښے چه اضافت یے راغلے وی، ضمیر ته او دغه شان ملحقات د مثنیٰ چه اثنان او اثنتان دے۔ د دوی اعراب په الف سره وی، په حالت رفعی کښے او په یا سره به وی، په حالت نصبی او جری کښے، نو دلته کښے حالت نصبی تابع د حالت جری دے۔ **سوال.** ذکر د کلا او د کلتا او د اثنان دا مستدرک دے۔ پس د ذکر د مثنیٰ نه، ځکه چه دا د افرادو د مثنیٰ نه نه دی۔ **جواب.** دا د افرادو د مثنیٰ نه نه دی، بلکه د ملحقاتو د مثنیٰ نه دی، ځکه چه ملحقات د مثنیٰ هغه ته وائی چه یا خو لفظاً او معناً دواړه تثنیه وی یا فقط معناً تثنیه وی او مفرد ورلوه من لفظه نه وی۔ **سوال.** چه څنګه کلا د ملحقاتو د مثنیٰ نه دے، نو دغه رنګے کلتا هم د ملحقاتو د مثنیٰ نه دے، نو مصنف کلتا ولے ذکر نه کړه؟ **جواب.** کلا اصل دے او کلتا فرع ده، نو دلته کښے مصنف اکتفاء اوکړه په اصل باندے۔ **سوال.** چه څنګه کلتا فرع ده او اکتفاء په اصل باندے شوی ده، نو لیکل داده چه په اثنان کښے هم اکتفاء په اصل اوکړے شی او اثنتان دے ذکر نه کړے شی۔ **جواب.** نکته تا رلوه وی، قاړلوه نه وی او دویم **جواب** دا دے چه حکم د اعدادو په تذکیر او په تانیث کښے مختلف کیږی۔

**سوال.** چه حال ذکر شی۔ پس د معطوف علیه نه او د معطوف نه، نو هغه قید وی، د پاره د دواړو، نو دلته کښے مضافاً الی مضمرٍ دا دے قید اوګرځی، د پاره د مثنیٰ او کلا دواړو۔ حالانکه دا خو قید د پاره د کلا دے، فقط نه د مثنیٰ۔ **جواب.** دا قاعده اکثریه ده او کلیه نه ده۔

**سوال.** کلا یے ولے مقید اوګرځولو په قید د مضافاً الی مضمرٍ سره۔ **جواب.** د کلا د پاره دوه حیثیته دی، یو حیثیت د لفظ دے، او د حیثیته د لفظ نه دا مفرد دے، نو لیکل داده چه د له

اعراب بالحرکة ورکوے شی اَوْ تحکیم حیثیت دَ معنی دے، لوډ حیثیته دَ معنی نه دا تثنیه دَه۔ لکار دا ده چه دَ دے له اعراب بالحرف ورکړے شی، لو لحاظ دَ دواړو حیثیتنو اوکړے شو۔ چه کله اضافت دَ دے اُو شی مظهر ته، لو دے له اعراب بالحرکة ورکړے شو، ځکه چه اعراب بالحرکة هم اصل دے اَوْ مظهر هُم اصل دے اَوْ چه کله اضافت ئے اوشی مضمر ته، لو دغه وخت کښې اعراب بالحرف ورکړے شو ځکه چه مضمر هُم فرع دَه اَوْ اعراب بالحرف هُم فرع دَه۔ پس عبارت به داسې شی چه المثنیٰ وملحقاته من کلا وکلتا مضافاً الی مضمرٍ واثنان واثنتان تعرب بالالف رفعاً وبالیاء نصباً وجراً المفتوحة ماقبلها۔

# درس نمبر ۵۲

**والجمع المذکر السالم واولو وعشرون واخواتها بالواو والیاءِ**

ترجمه:۔ اَوْ جمع مذکر، هغه جمع مذکر چه سالم وی بناء دَ مفرد دَ هغې اَوْ هغه جمع مذکر سالم چه جمع شوی وی، په واوْ اَوْ په نون سره، په حالت رفعی کښې اَوْ په یا اَوْ نون سره، په حالت نصبی اَوْ جری کښې۔ برابره خبره دَه چه مفرد ئے مذکر وی که مؤنث اَوْ دغه شان ملحقات دَ جمع مذکر سالم چه اولو اَوْ عشرون اَوْ دَ عشرون اخوات چه هغه عقود ثمانیه دی (دَ عشرون نه تر تسعون پورے)، معرب کیږی به په حالت رفعی کښې په واوْ سره اَوْ په حالت نصبی اَوْ جری کښې په یاء سره، لو دلته کښې حالت نصبی تابع دے دَ حالت جری۔ **سوال**. تا منم دا خبره چه دا قسم اعراب راځی په جمع مذکر سالم کښې ځکه چه جمع دَ مؤنث هُم په دے اعراب راغلی دَه، لکه ارضون، سنون، قلون۔ چه دا جموع دَ ارضة سنة قلة دی اَوْ دا اسماء خو مؤنث دی۔ **جواب**. دلته کښې مراد دَ جمع مذکر سالم نه جمع اصطلاحی دَه، یعنی هغه جمع مذکر سالم چه جمع شوی وی، په واوْ اَوْ په نون سره اَوْ یا په یا اَوْ نون سره۔ برابره خبره دَه، چه مفرد ئے مذکر وی که مؤنث۔ **سوال**. ذکر دَ اولو اَوْ دَ عشرون مع جمع مذکر سالم نه لغو اَوْ مستدرک دے، ځکه چه دا افراد دَ جمع مذکر سالم دی۔ **جواب**. دا افراد دَ جمع مذکر سالم نه دی، ځکه دَ دے لره مفرد من لفظه نشته، بلکه دا دَ ملحقاتو دَ جمع مذکر نه دی، چه صیغه ئے یا معنیٰ ئے دَ جمع وی، خو مفرد ورله من لفظه نه وی۔ **سوال**. ستا خبره خو صحیح دَه په اولو کښې، چه دے لره مفرد من لفظه نشته، ولې په عشرون کښې نه دَه صحیح، ځکه چه دَ دے لره مفرد من لفظه شته دے، چه هغه عشرة دے۔ **جواب**. دَ عشرون دَ پاره عشرة مفرد نه شی کیدے ځکه چه اقل دَ جمع ثلاثة دی، لو چه هر کله موږ عشرة درے ځله جمع کړو، لو عشرون معنیٰ به ثلثون شی۔ **سوال**. دا قسم

اعراب ئې مخکې دېته قسم د اسم له ورکړو. ليکن دا ده چه اعراب بالحرکت ئې دوئ له ورکړے ده، ځکه چه دا اصل دے۔ **جواب**. دا جمع ده او جمع فرع ده د مفرد او اعراب بالحرکة اصل دے، په لفت سره اعراب بالحرف ثقيل ؤ، نو اصل چه مفرد دے، هغه ته موږ اصل ورکړو چه اعراب بالحرکة دے او فرع چه جمع ده، هغه ته موږ اعراب بالحروف ورکړو، د پاره د رعايت د عدل۔ **سوال**. چه هر کله جمع فرع د مفرد ده، نو بيا دِ ولے په جمع مؤنث کښې اعراب بالحرکة ورکړے سوه۔ **جواب**. په جمع مؤنث سالم کښې موږ اعراب بالحرکة ورکړو، د وجه د مجبورئ او ضرورت نه، ځکه چه نه وو ځائ صالح د پاره د اعراب په آخر د جمع مؤنث سالم کښې۔ **سوال**. په مثنیٰ کښې حالت رفعي په الف سره دے او حالت نصبي جري په يا سره دے، نو قياس دا تقاضا کوله چه په جمع مذکر کښې حالت رفعي په واؤ سره شي او حالت نصبي او جري و په الف سره شي۔ **جواب**. حروف د اعراب درے دي، (واؤ، الف او يا) او هر واحد د تثنيه او جمع له درے حالتونه دي، نو که اول حروف د اعراب تثنيه له ورکړو، نو جمع بے اعرابه پاتې او که دا اول له ورکړو، نو التباس لازميږي، په دے وجه باندې موږ تقسيم اوکړو، يعنې تثنيه ته په حالة رفعي کښې موږ الف ورکړو، ځکه چه دا ضمير د فاعل دے، په افعالو د تثنيه کښې، لکه ضَرَبَا شو يا يضربان شو او په جمع مذکر سالم کښې موږ په حالت رفعي کښې واؤ ورکړو، ځکه چه دا ضمير د فاعل دے، په جموعو د افعالو کښې، لکه يضربون شو يا ضربوا شو، او "يا" مشترکه ده په مابين د دواړو کښې په حالة جري کښې۔ **سوال**. حالت نصبي خو بلا اعراب پاتې شو۔ **جواب**. دا تابع دے د حالت جري۔ **سوال**. حالتِ نصبي دِ تابع اوګرځي د حالتِ رفعي۔ **جواب**. حالتِ رفعي عمده دے او حالت نصبي او جري فضله دي، لو د دوئ په مابين کښې مناسبت دے، نو دا دواړه د يو بل تابع ګرځيدے شي۔

## درس نمبر ۵۳:-

اوس دا **سوال**. وارديږي، چه هر کله يا مشترکه شوه په تثنيه او په جمع کښې، نو دا خو التباس راغے، په دواړو کښې۔ **جواب**. دا التباس مدفوع دے، په حرکة د ماقبل د يا سره، په دے شان سره چه په تثنيه کښې د يا نه ماقبل فتح ده او دا ځکه چه تثنيه کثيره ده او فتح اخف الحرکات دے، نو کثير له مو فتح ورکړو، ځکه چه کثرت تقاضا د خفت کوي او ما قبل د يا نه په جمع کښې کسره ورکړے شوه، ځکه چه جمع قليله ده او کسره ثقيله ده، نو که قليل له ثقيل ورکړے شي، په دے کښې څه مضائقه نشته۔ هر کله چه فارغ شو، مصنف د بيان د اعراب بالحرکة او د بيان د اعراب بالحروف نه، نو شروع ئې اوکړه، په اعراب تقديري کښې، د اعراب بالحرکة درے صورتونه دي او دا اعراب بالحروف څلور صورتونه دي، د اعراب بالحرکة درے صورتونه دا دي، چه کله اسم معرب دے په احوال ثلثه کښې په حرکاتِ ثلاثه سره۔ دويم دا چه حالتِ نصبي۔

شوے دی په هغه کښې ظهور د اعراب لفظاً، لکه قاضي شو او مراد په قاضٍ سره هر هغه اسم متمکن دے چه په آخر د هغه کښې یا وی او ما قبل ترے نه کسره وی - برابره خبره ده چه یا ثابته وی، که ساقطه وی په التقاء د تنوین سره دا اعراب به تقدیری وی، د وجه د استثقال نه په حالت رفعی او جری کښې ځکه چه یا ضعیفه ده او ضمه او کسره ثقیل دی، نو ضعیف حمل د ثقیل نه شی کولے او په حالت نصبی کښې ئے اعراب لفظی دے ځکه چه فتحه اخف الحرکات دے او ضعیف حمل د خفیف کولے شی، او دغه رنګ اعراب تقدیری دے، د وجه د استثقال نه په مثل د مسلمیّ کښې مراد په دے سره جمع مذکر سالم ده چه اضافت ئے شوے وی، "ی" د متکلم ته، په حالت رفعی کښې به ئے اعراب تقدیری وی ځکه چه په ابدال او قلب سره شئ د حقیقت نه نه اوځی، مسلمیّ په حالت رفعی کښې مسلموی وو - دلته کښې مسلمون جمع ده، چه هر کله اضافت یا د متکلم ته راغے، نو دا نون په اضافت سره ساقط شو، مسلموی شو - پس د هغے نه واؤ او یا جمع شو، د صرف د قاعدے مطابق واؤ په یا سره بدل شو، بیا دوه حروفه د یو جنسه راغلل - ادغام به کښے اوشو او "یا" ما تقاضا کوی چه زما نه ما قبل د کسره وی، نو میم له کسره ورکړے شوه، نو په حالت رفعی کښے اعراب تقدیری دے او په حالت نصبی او جری کښے صرف ادغام شوے دے او په ادغام سره یو شئ د حقیقت نه نه اوځی، لهٰذا په حالت نصبی او جری کښے به اعراب لفظی وی - **سوال** ۔ تقدیر د اعراب د وجے د تعذر نه په عصا کښے او تقدیر د اعراب د وجه د ثقل نه په قاضي کښے دا به خالی نه وی یا به قبل الاعلال وی او یا به بعد الاعلال وی، که چرے قبل الاعلال وی، نو بیا خو به دواړه کښے یعنی په عصا او په قاضي کښے اعراب تقدیری د وجه د تعذر نه یکسان دے، نو ولے تا په عصا کښے حکم په تعذر سره اوکړو او په قاضی کښے استثقال سره - **جواب** ۔ په عصا کښے اعراب تقدیری دے، د وجه د تعذر نه قبل الاعلال او بعد الاعلال دواړو - قبل الاعلال، ځکه چه په عصا کښے الف ساکن وضعی دے او په دے اعراب لفظاً نه راځی او بعد الاعلال، ځکه چه دا محذوف په منزله د ملفوظ باندے راغلے دے او په قاض کښے اعراب تقدیری دے، د وجه استثقال نه قبل الاعلال او بعد الاعلال دواړو، ځکه چه قبل الاعلال به دے کښے "یا" ده او یاء خفیفه، ضمه او کسره ثقیل دی او خفیف حمل د ثقیل نه شی کولے او بعد الاعلال ځکه چه محذوف کالملفوظ دے - مخو مسلمی کښے په هغو باندے د دے وارو اعرابات راتلے شی - **سوال** ۔ دا هر کله عطف شو په عصا باندے، نو بیا اجتماع د دوه ادوات د تشبیه راځی، نو دا نحو به مستدرک اوګرځی - **جواب** ۔ دا عطف

---

۱۔ ځکه چه یو ک "تشبیه" دے او هغه هم د تشبیه د پاره ده، نو لازم شو تکرار د ادات د تشبیه او دا باطل دے - ۱۲ ( س )

تابع دَ حالت جري وي - دریم[2] دا چه حالتِ جري تابع دَ حالتِ نصبي وي اَوْ اعراب بالحروف کښې دَسے[1] صورتونه دا مذکور دي اَوْ څلورم[2] دا چه حالت رفعي په الف سره وي، نو اوس مصنف[رح] بیان کا اعراب تقدیري کوي، نو وَيے وئیل چه :-

## التقدیر فیما تعذر کعصًا وغلامی مطلقا

ترجمه:- اعراب تقدیري دا ثابت دے، په هغه اسم معرب کښې چه ممتنع وي، ظهور دَ اعراب لفظًا په دغه اسم معرب باندِ، لکه عصا شو، نو دلته کښې مراد دَ عصا نه هر هغه اسم معرب دے، چه په آخر دَ هغه کښې الف راغلے وي - برابره خبره ده چه ثابت وي[2] اَوْ که ساقط شوي وي، دَ وجه دَ التقاء دَ تنوین نه[2] اَوْ یا لکه غلامی شو، مراد په غلامی سره، هر هغه اسم دے، چه اضافت ئې راغلے وي یا دَ متکلم ته سِوا دَ جمع مذکر سالم نه اَوْ دَ مطلقا معنیٰ دا ده، چه په دا قِسم اِسم کښې به اعراب تقدیري وي، په احوال ثلاثه کښې -

**تفصیل** په التقدیر کښې الف لام عهدي دے اَوْ معهود په دیے سره اعراب دے۔

**سوال.** دلته کښې بحث دَ اعراب دے اَوْ تاسو دَ تقدیر شروع کړو، دا خو نه دے، مګر خروج دَ بحث نه اَوْ دویم[1] دا چه، ته وائې چه تقدیر به ثابت وي، په هغه ځائے کښې چه هلته ظهور ممتنع وي، حالانکه دا خو نه ده، په واسئل القریة کښې اهل مقدر دے، یعنی واسئل اهل القریة اَوْ دغه رنګ په سال المیزاب کښې ماءُ مقدر دے، یعنی سال ماء المیزاب اَوْ دا دے ممتنع نه دے، ظهور دَ دیے، یعنی مونږ په دیے تلفظ ارکولے شو اَوْ ظاهر هُم کولے شو - **جواب** دَ دیے دواړه سوالونو دا دے، چه دلته کښې په التقدیر کښې الف لام عهدي دے اَوْ معهود په دیے سره اعراب دے، نو مطلب به دا شي، چه اعراب تقدیري نه مطلق تقدیر اَوْ ستا سوال بنا دے، په مطلق تقدیر باندِ، په فیما کښې "مَا" عبارت دے، دَ اسم معرب نه - **سوال.** تعذر دَ اعراب خو په فعل ماضي امر حاضر اَوْ حروف کښې هم دے، سره دَ دیے نه هلته اعراب مقدر نه دے -

**جواب.** ما عبارت دے، دَ اِسم معرب نه اَوْ دا تا چه ذکر کړل، دا اسماء نه دي -

**سوال.** په تعذر کښې چه کوم ضمیر دے، دا به یا راجع کوے، اعراب ته اَوْ یا "مَا" ته چه عبارت دے دَ اِسم نه اَوْ دواړه نه صحیح کیږي، ځکه که چیرے راجع کوے ئې اعراب ته، نو موصول چه "مَا" دے، هغه بے عائده پاتے کیږي اَوْ که راجع کوے "مَا" ته، نو معنیٰ نه صحیح کیږي، ځکه چه معنیٰ به په دغه صورت ........ کښې دا شي، چه تقدیر دَ اعراب ثابت دے په هغه اِسم

---

[1]. لکه العصَا، په الف لام سره - ۱۲ (م.س).

[2]. لکه عصاً په تنوین سره - ۱۲ (م.س).

معرب کښې چې متعذر وي' اسم معرب الخ - **جواب**. دلته د ضمیر راجع دے 'اعراب' ته اَوْ لَهٗ نه واخله' په موصول بے عائده پاتے کیږي' لو نو وایو چې دلته کښې عائد محذوف دے' چې فیه دے' لو تقدیر د عبارت به دا شی' چې 'التقدیر فیما تعذر فیه'. **سوال**. تعذر خو دې ته وائي چې ممکن الحصول وي' خو په کلفت اَو په مشقت سره' لو دلته کښې په دے اسماؤ اَو په مثل د دوے باندې اعراب لفظي راتلے شي' خو په کلفت اَو مشقت سره اَو حال دا دے چې په دے اعراب لفظي نه شي راتلے - **جواب**. دلته کښې تعذر په معنیٰ د امتناع سره دے' یعنی چې ممتنع وي' ظهور د اعراب په هغې باندې - **سوال**. چې په دوئ باندې هر کله ظهور د اعراب ممتنع شو' لو دا دې په مبني کښې داخل شي - **جواب**. مراد په امتناع سره دا دے چې ممتنع وي' ظهور د اعراب په هغې باندې لفظاً اَو په مبني باندې خو اعراب لفظاً نه راځي اَو نه تقدیراً' یعنی په مبني باندې ممتنع دے' لفظاً اَو تقدیراً دواړه - تطبیق د مثال د ممثل سره' په عَصَا کښې اعراب تقدیري حکم دے' چې د دے په آخر کښې الف دے اَو الف ساکن وضعي دے' قابل نه دے د بدلې د اعراب لفظاً اَو په غلامي اَو په مثل د دے کښې' حکم اعراب تقدیري دے' چې د دے په آخر کښې یاء ده اَو یاء دا تقاضا کوي' چې زما نه ماقبل ډکره وي - مطلقاً: دا یا حال دے' اَو یا مفعول مطلق دے' یعني اطلق اطلاقاً' لو د مطلقاً دا مطلب شو' چې په دے واړو حالتونو کښې به دے اعراب تقدیري وي' په مطلقاً سره بیا غرض د مصنف رحمه الله دے' په بعضو مذاهبو باندې' حکه چې په دے کښې درے مذهبه دي - اول مذهب دا دے' چې په احوال ثلثه کښې د دے اسماؤ اعراب تقدیري دے - (یعني د غلامي) دویم مذهب دا دے' چې حالت نصبي اَو رفعي کښې د غلامي اعراب تقدیري دے اَو په حالت جري کښې لفظي دے' چې څوک وائي' چې په حالت جري کښې' په دے کښې اعراب لفظي دے' لو هغوی وائي چې دا کسره د اعراب راغلي ده' ولے مصنف رحمه الله په دے دواړو مذهبو باندې' چې څوک وائي چې په دے کښې اعراب لفظي دے' بے صورت د کسرې کښې' لو حکه چې دا کسره خو د اعراب نه ده' بلکه دا تیاء د موافقت د وجه نه راغلي ده اَو بیا دا اعراب د پاره به بله راوړلے کیږي اَو بل دا مذهب چې مبني دے' په دوئ باندې رد لو کړو اَو ئے وویل چې مطلقاً' په درے واړو احوالو کښې به په دے کښې اعراب تقدیري وي -

## درس نمبر ۵۴

| اَوْ اِسْتُثْقِلَ کَقَاضٍ رَفْعاً وَجَرّاً وَنَحْوُ مُسْلِمِيَّ رَفْعاً | ترجمه :- اَو اعراب تقدیري دا ثابت دے' په هغه اسم معرب کښې چې ثقیل گرځولے |
| --- | --- |

ده، په کقاضٍ باندٍ اَؤ په قاضيٍ باندِ هُم عطف صحیح کیږی لوکه ته دا وائې چه دلته کښې با ادوات دَ تشبیه جمع کیږی، لکه کغو۔ جواب دا دے، چه دلته کښے حقیقتاً تکرار دَ ادواتو دَ تشبیه نه راځی، ځکه چه تشبیه اوله په استقبال کښے ده اَؤ دویمه په کېدلو دَ لفظ کښے ده (جمع سالمه چه په واؤ اَؤ په نون سره مضاف وی، یا دَ متکلم ته. **سوال**. دلته کښے راوړلو دَ نحوة ضرورت نشته، صرف لوکاف تشبیه صالح دے۔ **جواب** دا دے چه په راوړلو دَ نحو کښے اشاره ده، دے خبرے ته، چه اعراب تقدیری دَ وجه دَ ثقل نه بالحرکة راځی، لو دغه شان اعراب تقدیری دَ وجه دَ ثقل نه بالحرف هُم راځی، نو په کاف سره اشاره لوشوه بالحرکة ته اَؤ په نحوه سره اشاره اوشوه بالحرف ته، برخلاف دَ تعذر نه چه هلته کښے اعراب تقدیری بالحرکة راځی لَوُ بالحرف نه راځی، ځکه یې هلته کښے حرف کاف راوړے دے، لکه وئیلی دی چه کعصا:

| **واللفظی فیما عداه** |
|---|

اَؤ اعراب لفظی دا ثابت ده، په هغه اسم معرب کښے چه قانون یې کړے وی، دَ دے مذکورو نه بلغیر راحد دَ دے دواړو نه چه هغه تعذر اَؤ ثقل دے، دلته کښے په اللفظی کښے یا النسبتیه ده، لو دا صفت اُوگرځیدو اَؤ دَ هغه صفت دَ پاره لابدی ده، دَ موصوف نه، لو دَ دے دَ پاره موصوف الاعراب دے، لو مطلب به دا شی، چه الاعراب اللفظی۔ **سوال**. په عداه کښے ضمیر راجع ده، تعذر لَوُ ثقل دواړو ته، لو پکار دا ده چه عداهما یې وئیلے وے اَؤ دلته تثنیے ته ضمیر دَ مفرد راجع شوے دے[۱]. **جواب** دا مؤل ده، په تاویل دَ مذکور سره اَؤ مذکور مفرد دے، اَؤ یا دا چه دا په اعتبار دَ کل واحد شوے دے۔

# درس نمبره ۵۵:- غیر منصرف

| **غیر المنصرف ما فیه علتان من تسع او واحدة تقوم مقامهما.** |
|---|

هر کله چه مصنف رح ذکر کړی وو په تفصیل دَ معرب کښے منصرف اَؤ غیر منصرف، اَؤ غیر منصرف اقل وجوداً وو، دَ منصرف نه لو په معرفت دَ غیر منصرف سره، معرفت دَ منصرف هُم راتلو، ځکه چه دا دواړه دَ یو بل ضد دی، لو چه کله په دغو ضدینو کښے دَ یو تعریف اُوشی، لو دَ بل ضد تعریف ورسره په خپله معلوم شی، ځکه چه الاشیاء تعرف باضدادها لو چه هر کله یې تعریف دَ غیر منصرف اوکړو، لو دَ منصرف تعریف هُم ورسره معلوم شو۔ **ترجمه** دَ متن دا ده:- غیر منصرف، دا هغه اسم معرب دے چه ثابت

---

[۱] مطابقت نه راځی، په مابین دَ راجع لَوُ دَ مرجع کښے۔ ۲ (م۔ س)

وی، په دغه اسم معرب کښې دوه[2] علتونه مؤثرتیا سره د استجماع د ټولو شرائطونه، د علل تسعه نه، او یا ثابت وی، په دغه اسم معرب کښې یو علت چه هغه په تاثیر کښې قائم مقام د دوه[2] علتونو وی.

**سوال**. غیرالمنصرف مبتدا ده او ابتدائیت د غیر نه صحیح کیږی، ځکه چه دا نکره ده، الکه دلته یې اضافت راغلے دے، خو دلته کښې فائده د اضافت چه هغه تعریف تخصیص او یا تعریف دے، هغه نه ده حاصله شوی. **جواب**. دا اعتراض ستا هلته وارد دیږی، چه کله په مقابله د غیر کښې اضدا د کثیره وی، نو ابتدائیت یې نه دے صحیح او چه کله صرف یو ضد وی، نو بیا صحیح دے او دلته کښې د ده په مقابله کښې صرف منصرف دے او یا جواب دا دے چه، ابن مالک نحوی وائی چه مراد په مبتدا سره فائده او استفاده ده، برابره خبره ده، چه مبتدا نکره وی، که معرفه وی.

**سوال**. ستا دا تعریف د غیر منصرف مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې ضَرَبَتْ، ځکه چه په دے کښې یو سبب تانیث دے او بل وزن فعل. لکار دا ده چه دا غیرمنصرف شی.
**جواب**. دا ما عبارته دے، د اسم نه او دا صیغه د ضَرَبَتْ خو فعل دے. **سوال**. ستا دا تعریف مانع اونه ګرځیده، د دخول د غیر نه او داخل شو، په کښې حضارِ او ثمارِ، چه په دے کښې یو[1] سبب تانیث دے او دوهم[2] علمیت دے. **جواب**. دلته مراد په اسم سره اسم معرب دے او دا دواړه اسماء د مبنیاتو نه دی. **سوال**. حبلٰی او مصابیح چه کله علمیت اوګرځی، د پاره د دوو[2] تخصیصونو نو لکار دا ده، چه دا د تبیلے د قسم اول نه اوګرځی، ځکه چه یو[1] سبب به په حبلٰی کښې علمیت شی او دوهم[2] تانیث او په مصابیح کښې به یو[1] علمیت شی او دوهم جمعیت سره، د دے نه په دوی کښې یو[1] علت قائم مقام د دوه[2] علتونو دے. **جواب**. مراد په علتونو سره مؤثرتیا دی او په دے اسمائو کښې علمیت مؤثر نه دے[1]. **سوال**. ستا تعریف جامع اونه ګرځیده، خپلو افرادو له او خارج شو ترے نه نوح، ځکه چه په ده کښې علتونه موجود دی، چه یو[1] علمیت دے او دوهم[2] عجمه ده او بیا هم منصرف دے. **جواب**. مراد په علتونو سره هغه علتونه دی، چه مؤثر وی سره د استجماع د جمیعو شرائطو د تاثیرنه او دلته کښې شرائط د تاثیرنه دی موجود، ځکه چه په نوح کښې عجمه ده او په هغه کښې شرط تحرک د اوسط دے او دا ساکن الاوسط دے.
**سوال**. د تقوم نسبت علت ته نه صحیح کیږی، ځکه چه د قیام نسبت ذوی الارواح او ذوی الاجسام ته کیږی او علت د دوی نه نه دے. **جواب**. مراد په قیام سره تاثیر دے، یعنی تاثیر کوی، په شان د دوو[2] علتونو.

---

[1] یعنی په حبلٰی کښې علمیت د تانیث سره مؤثر نه دے او په مصابیح کښې علمیت مؤثر د جمعیته سره نه دے. ۱۲ (م، حـ)

**درس نمبر ۵۶ :- سوال** . تا اووئیل چه غیر منصرف هغه ته وائی چه په هغه کښې دوه علتونه وی، نو دی خو لازم شو، توارد د علتونو په معمول واحد باندې او دا باطل دے۔
**جواب** دا دے، چه توارد د علتونو په معمول واحد باندې او دا په هغه وخت کښې باطل دے، چه دواړه مستقلې وی او دلته خو علتین باجتماعهما مؤثری دی[1]. **سوال** دا وارد یږی چه قائم مقام خو هغه ته وائی، چه یو شی نه وی او دویم د هغه په ځائے باندې اودریږی، نو دلته به دا مطلب شی، چه دوه علته نه وی او د هغوی په ځائے باندې یو اودریږی او حال دا دے، چه امر خو داسې نه دے۔
**جواب** . دلته د قائم مقام نه معنی مصطلح نه ده مراد، بلکه دلته د نائب دا معنی ده، چه یو علت په تاثیر کښې برابر د دوو علتونو وی. علت[2] مؤثر او عارض ته وائی، دلته د علت نه مراد هغه امور دی، چه داخل شی، په اسم معرب باندې، نو منع کوی، په هغه باندې دخول د کسرې او د تنوین: وهی شعر:-

۱ عدل و وصف و تانیث ومعرفة          وعجمة ثم جمع ثم ترکیب !
والنون زائدةٌ من قبلها الف          و وزن فعل وهذا القول تقریب

وهی ضمیر راجع دے علل تسعه وته. **سوال** . چه مرکله هی عبارت او کوم چه د علل تسعه نه. دا مبتدا ده او عدل و وصف الخ ورله اخبار دی، نو حمل د واحد راغے په متعدد باندې او دا باطل دے. **جواب** . دا حمل لازمیږی، چه ربط مقدم شی، په عطف باندې او دلته کښې عطف مقدم دے، په ربط باندې. دا اشعار چه کوم ده ذکر کړل، دا د یو مشهور نحوی ابوسعید الانباری دی او اول شعر د ده دا دے، چه:-

۲ موانع الصرف تسع کلما اجتمعت          ثنتان منها فما للصرف تصویب !

اوس دلته **سوال** واردیږی چه مصنف ؒ ولے دا شعر ذکر نه کړو؟ **جواب** . په تعریف د غیر منصرف سره د دے شعر مفهوم ته اشاره راغله. لیس د دے ذکر ته ضرورت پاتے نه شو، ځکه چه بنا د متون په اختصار ده. **سوال** په دے شعر کښې ثم جمع ثم ترکیب راغلی دے او د دے نه ځکه په دے پنځو عللو کښې یے ثمَّ نه دے ذکر کړے او ثم راځی، د پاره د تراخی د امر، نو مطلب به دا شی چه، د دے پنځو علتونو علتیت مقدم دے، په جمع او په ترکیب باندې ولا مرلیس کذالك؟ **جواب** . دلته ثم د مطلق عطف او د پاره د مجرد محافظت د وزن شعر

---

۱. نه دا چه هر واحد مؤثر دے، بلکه دا دواړه په جمع شی، نو جمله به مؤثر وی، په عدم انصراف کښې - ۱۲ (م- س).
۲. علت په لغت کښې دې ته وائی، عارض غیر طبعی یعنی حالت غیر طبعیه او په اصطلاح کښې دے ته وائی مالیس بمعنی المتعجب بل بمعنی ماینبغی ان یختار المتکلم عند حصوله امراً یناسبه. ۱۲ (م- س).

راغلی دے، په النون زائدة باندې **سوال** واردیږي چه دا زائدة به یا مرفوع والی، چه د دے صفت شي، د پاره د النون، نو دا نه صحیح کیږي، ځکه چه النون معرفه دے او زائدة نکره ده او په مابین د موصوف او صفت کښې مطابقت ضروري دے او که منصوب یې ولئ، بنا بر حالیت نو هم نه صحیح کیږي ځکه چه حال واقع کیږي، د فاعل نه او یا د مفعول نه او النون نه فاعل دے او نه مفعول دے۔

**جواب**، دا دواړه صحیح کیږي، چه مرفوع شي دا صفت، ویے د پاره د النون، خو الف لام په النون کښې زائد دي۔ پس مطابقت راغے، په مابین د موصوف او د صفت کښې، یعنی دواړه نکره شو او که منصوب شي، نو دا به حال شي د النون نه او النون دا فاعل دے، د فعل محذوفه، چه معنه تمنع دے۔ پس تقدیر د عبارت به دا سے شي، وتمنع النون الصرف زائدة۔

**من قبلها الف** په دے کښې توجیهات ثلاثه دي، اول توجیهه دا ده چه، الف فاعل معنوي دے او د جار مجرور د متعلق چه ثابت دے، نو معنی به دا شي چه نون په حال د کون د ده کښې چه زائد وي، او ماقبل د ده نه ثابت وي الف، نو په دے سره خو زیادت د نون ثابت شو او د الف ثبوت راغے فقط، لیکن زیادت یې معلوم نه شو او حال دا دے چه الف او نون دواړه مزیدتین دي او دویم توجیهه دا ده چه الف مبتدأ مؤخر شي او من قبلها خبر مقدم شي، لیکن په دے سره هم زیادت د نون راځي او وجود د الف ثابتیږي، حالانکه الف او نون دواړه مزیدتین دي۔

## درس نمبر ۵۷ :-

دریمه توجیهه دا ده چه من قبلها الف: دا الف فاعل دے، د زائدة او من قبلها، دا متعلق دے، په زائدة پورے او الف مقدم دے، په نون باندې۔ پس بنا په دے توجیهه باندې زیادت د الف ثابت شو۔ صراحة او زیادت د نون معلوم دے بنا په دے قاعده باندې، چه یو شي حال واقع شي، د یو اسم نه او فاعل د حال مغائر وي د ذوالحال نه، نو دا فائده کوي اشتراک د ذوالحال د فاعل د حال سره په تعلق د معنی وصفي کښې۔ پس یو له زیادت ثابت شو صراحة او بل له زیادت ثابت شو، بنا په دغه قاعده باندې لکه په دے قول کښې چه جاءني زید راکباً من قبله اخوه، دلته کښې راکباً حال دے، د زید نه او زید ذوالحال دے او فاعل د حال اخوه دے، نو د دے دواړو په مابین کښې مغائرة ده۔ پس دے فائده کړه اشتراک د ذوالحال چه زید دے، د فاعل د ذوالحال سره چه اخوه دے تعلق په معنی وصفي کښې چه رکوب دے، بعینه دغه حالت په النون زائدة من قبلها الف کښې دے۔

**وهذا القول تقریب** په دے کښې درے توجیهات دي۔ اول توجیهه دا ده چه دا قول قریب دے، حفظ ته، لها تقریب الی الحفظ، ځکه چه دا نظم دے او نظم اسهل وي، په حفظ کښې په نسبت سره نثر ته — دویمه توجیهه: دا قول

قريب دے حق ته اؤ صواب ته، كما التقريب الى الحق، په دے شان سره چه بعض نحاة وائي چه اسباب د منع صرف دوه[2] دي، چه يو حكايت[1] دے او دويم تركيب دے او بعض نحاة وائي چه يولس[11] دي، نو شاعر اووے چه، تما كوم نهه[9] علل ذكر كړي، دا قول قريب دے حق ته — دريمه[3] توجيهه: دا قول قريبي او مجازي دے، تحقيقي نه دے، يعني دا خبره چه هر واحد د دے نهه علت مجازي دے، ځكه چه مؤثر خو علتين دي، علت واحد نه دے۔

**مثل عمر واحمد وطلحة وزينب و ابراهيم ومساجد ومعديكرب وعمران نواحمد**

هر كله چه مصنف[رح] فارغ شو د بيان د تعريف او د اسبابو د غير منصرف نه، نو اوس په دے عبارت سره امثله ذكر كوي د پاره د هر واحد، د دے علتو تسعو، عمر، مثال د عدل او د علميت د دے، په احمد كښے، وزن فعل او وصف دے، په طلحة كښے تانيث لفظي او علميت دے، په زينب كښے، تانيث معنوي او علميت دے، په ابراهيم كښے، عجمه او علميت دے، په مساجد كښے، جمع منتهى الجموع دے، چه دا قائم مقام د دوه[2] دے، په معديكرب كښے، تركيب او علميت دے، په عمران كښے، الف نون زائدتان او علميت دے او په احمد كښے، وزن فعل او علميت دے۔ **سوال**. بنا د متونو په اختصار ده، نو بيا دا ولے مصنف[رح] له چه د تانيث د پاره يے يو مثال ذكر كړے وے او دا دوه[2] مثالونه راوړل: يو طلحة او دويم[2] زينب۔ **جواب**. په ذكر د مثالونو د تانيث كښے اشاره ده، قسمين د تانيث ته، چه يو لفظي او دويم[2] معنوي دے[2]

**درس نمبر ۵۸:- لطيفه:** شيخ رضي د علم نحو لوے امام گڼړلے شي لېكن دا متعصب شيعه دے، دا وئيلي دي، چه عمر مثال د عدل او علميت نه صحيح كيږي، ځكه چه په عمر كښے عدل نه ؤ (نعوذ بالله)۔

**وحكمه ان لاكسرة ولا تنوين**

ترجمه:- او اثر مرتبه د غير منصرف د دے حيثيت نه چه دے مشتمل دے په علتينو باندِ او يا په يو

---

[1] حكايته دے وائي چه النقل من الفعلية الى الاسمية كشمر وضرب، چه دا اسماء د شخصينو دي دے ته حكايته په دے وجه ... چه ما اسماء غير منصرف دي. بعد النقل او كسره او تنوين پرے منع كوي لكه څنګه چه منع وه، په دوئي باندو ځوا د نقل له د حكايته نه ـ ۲ (م ـ س)۔

[2]. فائده:- مصنف[رح] چونكه مثال د معرفي ذكر نه كړو. وجه يے دا ده چه د دے د پاره ضابطه ده، هر علم په كوم مثال كښے علميت نه، هغه د معرفي مثال كرځيدے شي لكه علم معرفه دي. (۲-س)۔

علت چه هغه په تاثیر کښې قائم مقام د دوو علتونو وي - بیا دے چه نه موجود یږي، په ده کښې کسره او تنوین تمکن - **سوال**۔ اضافت د حکم غیر منصرف ته نه صحیح کیږي، ځکه چه اضافت موثر نه کیږي او دلته کښې غیر منصرف موثر نه دے، بلکه موثر خو علتونه دي یا یو علت چه قائم مقام د دوو وي - **جواب**۔ دلته اضافت د حکم غیر منصرف ته د وجه د مناسبت او د ملابست نه دے، ځکه چه دا غیر منصرف مشتمل دے په علتونو یا په یو علت باندې چه قائم مقام د دوو دے - **سوال**۔ اضافت د حکم غیر منصرف ته نه صحیح کیږي، ځکه چه د حکم معنیٰ داده: اسناد امر الی آخر ایجاباً او سلباً او دا معنیٰ راځي په مرکب کښې او غیر منصرف قسم دے، د معرب نه، او معرب قسم دے، د اسم او اسم قسم د کلمې نه دے او د کلمې په مفهوم کښې افراد ماخوذ دے او چه د حکم معنیٰ هغه شي چه کوم فقهاء کوي ده، چه خطاب الله الی المکلفین، لو په دے معنی سره هم اضافت نه صحیح کیږي - **جواب** دا دے چه دلته کښې حکم په معنیٰ لغوي سره دے، چه هغه اثر مرتبه دے - **سوال**۔ حکمه مضاف، مضاف الیه مبتدا ده "أَنْ لَا كَسْرَةَ وَلَا تَنْوِينَ" دا جمله خبر دے، او قاعده دا ده چه خبر کله جمله واقع شي نو لابدي وي، په کښې د عائد نه، چه راجع وي، مبتدا ونه، او دلته په خبر کښې عائد نشته - **جواب**۔ دلته عائد محذوف دے تقدیر د عبارت به دا شي وحكمه ان لا كسرة موجودة فيه ولا تنوين موجود فيه - پس په فيه کښې دا ضمير راجع دے، مبتدا ته، دلته په ان لا كسرة ولا تنوين کښې لا دا لائے نفي جنس ده او كسرة ورله اسم دے او خبر ئے موجودة فيه محذوف دے او تنوين اسم د لائے نفي جنس دے او خبر ئے محذوف دے چه موجود فيه دے - **سوال**۔ کسره او تنوین ولے نه راځي، په غیر منصرف کښې؟ **جواب**۔ غیر منصرف مشابهه دے د فعل سره په وجود د فرعیتونو کښې، لکه چه څنګه فعل محتاج دے، مشتق منه (مصدر) او فاعل ته لو دغه رنګے غیر منصرف هم محتاج دے، سببونو ونه، ځکه چه په دے کښې هر یو علت لو فرعیة ثابت دے، لکه عدل فرع د معدول عنه ده، وصف فرع د موصوف ده، تانیث فرع د تذکیر ده، معرفه فرع د نکره ده، عجمة فرع د عربیة ده، جمع او ترکیب فرع د مفرد دي - الف او نون مزید تین فرع د مزید فیه دي او وزن فعل فرع د وزن اسم ده او چونکه په فعل باندې کسره او تنوین نه راځي، لو په دوی هم کسره او تنوین نه راځي - **سوال**۔ قول ستا په فرعیة د فعل صحیح کیږي، په مذهب د بصریانو چه هغوی وائي چه، اصل په اشتقاق کښې مصدر دے او فعل د مصدر نه مشتق دے، خو په نزد د کوفیانو نه صحیح کیږي، ځکه چه هغوی په نزد اصل په اشتقاق کښې فعل دے، لو دا فرع او نه ګرځېدو - **جواب**۔ مذهب د کوفیانو (غالوڅ) مردود دے او دویم جواب دا دے چه هغوی په نزد فعل په اعلال کښې فرع ده، د مصدر **سوال**۔ کسره ئے ولے مقدم کړه، په

تنوین باندئ اوٌ تقدیم خو دَ اسبابو دَ ترجیح نه دے ، فما هو المرجح ههنا؟ **جواب** .کهٔ متبوع دهٔ آو تنوین تابع دے لکه متبوع مقدم وی' په تابع باندې نو۔

# درس نمبر ۵۹

## ويجوز صرفه للضرورة اوللتناسب

ترجمه :- او جائز دی گرځول دَ غیر منصرف په حُکم دَ منصرف کښې' په ادخال دَ کسرے او دَ تنوین سره ، دَ وجے دَ ضرورة شعری نه' چه وزن شعر دے او رعایت دَ قافیے دے' په دے شان سره چه هغه ترک دَ انکسار دَ انزحاف او ترک دَ رعایت دَ قافیے دے، او یا جائز دے گرځول دَ غیر منصرف په حُکم دَ منصرف کښې دَ پاره دَ تناسب ځکه چه تناسب کیږی مابین دَ کلمتین کښې لیوا مهم دے، په دے عبارت سره چه ویجوز دے' غرض دَ مصنفؒ دفع دَ سوال دهٔ- **سوال** دا دے چه' نه وائے چه په غیر منصرف باندې کسره او تنوین نهٔ راځی' نو بهٔ دغه او بنایم چه غیرمنصرف بهٔ وی او کسره او تنوین بهٔ پرے راغلی وی' لکه په دے قول دَ حضرت فاطمة الزهری رضی الله تعالیٰ عنها کښې چه په مرثیه دَ پیغمبر صلی الله علیه واله وسلم کښې فرمائی :-

؎ صُبَّت علیَّ مصائبٌ لَوْ انَّها صُبَّتْ عَلَی الایام صِرْن لَیَالِیا
ماذا علی من شمَّ تربة احمدٍ ان لاَّ یشم مدالزمان غوالیا

په دے پورته شعر کښې مصائب چه غیرمنصرف دے' تنوین ورباندې راغلے دے۔ دا غیرمنصرف دے' چه جمع منتهی الجموع دهٔ او دغه شان په دے شعر دَ حضرت امام شافعیؒ کښې چه فرمائی' په مدح دَ حضرت امام ابوحنیفهؒ کښې :-

؎ لقد ذکرٍ نعمان لَنَا ان ذکره هو المسك ما کرره یتضوع

دلته کښې نعمان غیرمنصرف دے ځکه چه الف او نون مزیدتین په کښې راغلی دی' سره دَ علمیة نه او بیا هم ورباندې تنوین داخل شوے دے ، هم دا رنګې په دے اشعارو کښې چه په مدح دَ نبی ﷺ کښې ویلے دی:-

؎ سَلَامٌ علیٰ خَیْرِ الْاَنَامِ وَسَیِّدٍ حَبِیْبِ اِلٰهِ الْعٰلَمِیْنَ مُحَمَّدٍ
شَفِیْعٍ نَذِیْرٍ هَاشِمِیٍّ مُکَرَّمٍ عَطُوْفٍ رَؤُفٍ مَنْ یُّسَمّٰی بِاَحْمَدٍ

دلته کښې احمد[1] غیرمنصرف دے او بیا هم ورباندې کسره داخله شوی ده' نو مصنفؒ جواب اوکړو چه ویجوز صرفه الخ یعنی جائز دی گرځول' دَ غیر منصرف په حکم دَ منصرف

---

[1]. په احمد کښې یو سبب وزن فعل دے او بل په کښې ---- علمیة دے۔ ۱۲ (م-س)-

کښې د وجې د ضرورت شعري نه چه هغه وزن شعر دے او رعایت د قافیې دے او ځان ته ئې کړل دي د انکسار نه، انکسار قطع ثلاثیه ته والې او په اصطلاح د شعراء کښې خروج د وزن دے، د هغه اوزانو نه چه کوم معتبر دي، په نزد د شعراء او د علماء د علم عروض باندې، نو دلته که چرے په مصاب باندې تنوین راننه شي، نو لازمیږي انکسار او دغه شان ځان ته ئې کړل دي، د اتحاف نه انزحاف قطع ثلاثیه ته والې او په اصطلاح د علماء علم عروض کښې دے ته والې چه خروج د وزن دے، د سلاسة نو په نقصان کښې که چرته تنوین راننه شي، نو لازمیږي انزحاف۔ که څوک اووائي چه انزحاف دیجائز شي، ځکه چه په دې سره خو خروج د وزن نه نه راځي۔ **جواب** دا دے چه علماء د علم عروض داهم ناجائز ګرځولي دي، ځکه چه په دې سره په سلاست او روانۍ د شعر کښې فرق راځي او دغه شان په شعر کښې د رعایت د قافیې خیال ساتل، قافیه د شعر آخري حروف ته والې چه په هغه سره د بیتونو آخري حروف برابر وي، چه دې ته حرف رَوِيّ وائي۔ د هغې د حرکت لحاظ به ساتلے، نو په آخري شعرونو کښې، چه مَن یستی بأحمد راغلے دے، په دې کښې حرف دال او په دې باندې حرکت د کسرے دے، او س که چرته په دې باندې کسره رانه شي، نو مخالفت به راشي، د رعایت د قافیې د حرکت نه، ځکه چه په نورو بیتونو کښې دا حرف رَوِيّ، چه دال دے، مکسور دے او په دې کښې به مفتوح شي۔

**سوال** چه هرکله یو اسم غیر منصرف شو، نو هغه منصرف کیږي بیا نه، نو ته ځنګه وائې چه ویجوز صرفه۔ **جواب** دلته د منصرف نه مراد کېدل د غیر منصرف دي، په حکم د منصرف کښې چه هغه ادخال د کسرے او د تنوین دے، نه حقیقتاً منصرف۔

## درس نمبر ۶:

**سوال** د ضرورت شعري د وجې نه خو د غیر منصرف انصراف واجب دے او د تناسب د وجې نه جائز دے، نو تا څنګه حکم اوکړو، په دواړو باندې د جواز او ادِ دِ وُے چه ویجوز الخ۔ **جواب** د یجوز دوه معنې دي، [۱] اوّل دا چه جائز دے، انصراف او غیر انصراف او [۲] دویمه معنیٰ دا ده چه غیر انصراف ئې واجب نه دے او انصراف عام دے، چه واجب بي، لکه په صورت د ضرورت شعري کښې او یا جائز وي، لکه په صورت د تناسب کښې، یعنې دلته کښې یجوز په معنیٰ د امکان عام سره دے، چه مقید دے په قید د وجود سره یعنې چه مقید وي، په جانب د وجود کښې، ځکه چه امکان عام په [۲] دوه قسمه دے، [۱] اوّل مقید په جانب د وجود او [۲] دویم مقید په جانب د عدم۔ امکان عام په اصطلاح د منطقیانو کښې وئیلے کیږي، سلب د ضرورت د جانب مخالفه د محمول، لکه ته وائي چه الانسان کاتب بالامکان العام۔ دلته کښې دا کاتب چه محمول دے، د دې

---

[۱] سلاست په معنیٰ د رواني سره دے۔ یعنې انزحاف دې ته وائي چه خروج د وزن که د روانۍ نه په اشعار کښې۔ ۲۰

جانب مخالف چه لیس بکاتب دے، په صورت دَ امکان عام کښې به معنیٰ دا شی چه، عدم کتابت انسان له ضروری نۀ دے آؤ یا لکه اوګوره چه الانسان لیس بکاتب بالامکان العام، نو دا لیس بکاتب جانب مخالف کاتب دے، په صورت دَ امکان عام کښې به دا معنیٰ شی چه، کتابت انسان لره ضروری دے، نو اوس کله چه مقید وی، په جانب دَ وجود ..... نو عدم به سلب وی او که مقید وی په جانب دَ عدم، نو وجود به سلب وی، پس دلته به یجوز صرفه کښې امکان عام مقید په جانب دَ وجود دے، یعنی نۀ دی منع صرف والے دَ ده ضروری آؤ انصراف یې واجب وی آؤ که ضروری واجب، آؤ امکان خاص سلب دَ ضرورت دَ جانبینو والی، یعنی عدم او وجود یې نۀ دی ضروری آؤ بعضو دا جواب کړے دے چه یجوز صرفه، دَ صرف معنیٰ انصراف نۀ ده، بلکه تغیر دے، نو معنیٰ به دا شی چه جائز ده تغیر دَ منصرف، لیکن دا جواب ضعیف دے، ځکه چه دلته کښې دَ معنیٰ متبادر نه اعراض کړے شوے دے، غیر معنیٰ متبادر ته۔[1]

**للضرورة أو للتناسب**:۔ دا مفعول له واقع شوے دے، مفعول له به دوه قسمه دے، یو تحصیلی او دویم حصولی۔ تحصیلی هغه ته وائی چه دَ هغه دَ وجود دَ وجه نه صدور دَ فعل اوشی لکه ما قول چه قعدت عن الحرب جبناً۔ حصولی هغے ته وائی، چه دَ هغه دَ حصول دَ پاره صدور دَ فعل شوے وی، لکه ته وائے چه ضربتهٔ للتادیب آؤ دَ تناسب دَ وجه نه غیر منصرف، ځکه منصرف کیږی چه په کلام دَ عربو کښې حصول دَ تناسب په مابین دَ کلماتو کښې امر مهم دے۔

**مثل: سَلاسِلاً وأغلالاً**

دا مثال دے دَ پاره دَ تناسب، دلته کښې دَ اغلالاً دَ وجه نه چه منصرف دے، سلاسلاً چه غیر منصرف دے۔ منصرف کړے شوے دے، سلاسل جمع دَ سلسلة ده، زنځیر ته وائی آؤ اغلال جمع دَ غلّ ده، هتکړے ته وائی۔ **سوال**. صرف سلاسلاً به یې ذکر کړے وه آؤ اغلالاً به یې نه وه ذکر کړے؟[2] **جواب**. دا دواړه مثالونه صحیح کیدے شی، ځکه چه تناسب راځی په دوه..... کلماتو کښې آؤ په دے سره وضاحت هم دَ مثال راځی۔ **سوال**. چه اغلالاً به یې دَ سلاسلاً دَ وجه نه غیر منصرف کړے وه؟[3] **جواب**. منصرف اصل دے آؤ غیر منصرف فرع ده، نو فرع تابع دَ اصل وی آؤ اصل تابع دَ فرع نۀ وی۔ **سوال**. مصنف[4] ولے مثال دَ تناسب ذکر کړو آؤ مثال یې دَ ضرورة شعری ذکر نه کړو؟ **جواب**. ځکه دَ ضرورة شعری کثیر ده؛

---

[1] معنیٰ متبادر هغې ته وائی چه ذهن هغه ته سبقت کوی۔ (م۔س)۔

[2] ځکه چه بناء دَ متن په اختصار ده۔ (م۔س)۔ [3] یعنی عکس به یې کړے وه۔ (م۔س)۔

اَوْ مشهور دی، په خلاف دَ مثالونو دَ تناسب نه، چه قلیل اَوْ غیر مشهور دی، لو دَ وجے دَ کثرت اَوْ دَ شهرت نه، مصنف مثالونه دَ ضرورت شعری ذکر نه کړل۔

## درس نمبر ۶۱

## ومایقوم مقامهما الجمع والفا التانیث

ترجمه:- اَوْ هغه علت چه قائم مقام دے، په تاثیر کښے دَ دوؤ علتونو چه یو جمع منتهی الجموع دهٔ اَوْ دا ځکه چه په دے کښے یو جمعیت دے اَوْ دویم تکرار دَ جمع دے اَوْ دا تکرار حقیقتاً وی که حکماً۔ دَ حقیقتاً مثال خو دا دے، لکه اکالیب، چه جمع دهٔ دَ اکلب اَوْ اکلب جمع دهٔ دَ کلب، لو په دے کښے خو حقیقتاً تکرار دَ جمع راغلے دے، لو په دے تکرار دَ جمع باندے دا په منزله دَ مستقل علت دے لوَ حکماً په هغه کښے خو حقیقتاً تکرار دَ جمع نه وی، لکه مساجد اَوْ مصابیح شو چه دا دواړهٔ دَ مسجد اَوْ دَ مصباح جمع دی اَوْ دغه رنګے قائم مقام دَ علتونو دوؤ الفین دَ تانیث دی، چه یو الف مقصوره، لکه حبلی دے اَوْ دویم الف ممدوده، لکه حمراء دے اَوْ دا ځکه قائم مقام دَ دوؤ سببونو دی، چه په دے کښے یو تانیث دے اَوْ دویم په کښے لزوم دَ تانیث اَوْ یا لزوم دے، دَ دے الفینو دَ اسم سره مخکښے په تعریف دَ غیر منصرف کښے اجمالاً تقسیم دَ غیر منصرف قسمونو ته ذکر شوے وو، په هغه کښے دَ قسم اَوَّل چه په هغه کښے دَ دوؤ سببه موجود دی، دَ هغه تفصیل یے ذکر کړو اَوْ اوس په مایقوم مقامهما سره دَ دویم قسم چه په هغه کښے یو علت قائم مقام دَ دوؤ سببونو وی، هغه ذکر کوی، دلته کښے ما موصوله هم صحیح کیږی اَوْ موصوفه هم۔ ما عبارت دے دَ علت نه۔ **سوال**۔ په یقوم کښے ضمیر دَ مذکر دے، چه راجع دے ما ته اَوْ هر کله چه ما عبارت اوګرځیدو دَ علت نه، لو موافقت رانغے په مابین دَ راجع اَوْ دَ مرجع کښے۔ **جواب**۔ تذکیر دَ ضمیر په اعتبار دَ تعبیر سره دے، چه هغه لفظ دَ ما دے۔ **سوال**۔ مایقوم مقامهما دا مبتداء دهٔ اَوْ الجمع او الفا التانیث ورله خبر دے، لو معنیٰ به دا شی، چه هغه علت چه هغه قائم مقام دَ دوؤ علتونو دے، په تاثیر کښے هغه جمع اَوْ الفین دَ تانیث دی، "والامر لیس کذالك"۔ **جواب**۔ دلته کښے دَ الجمع لوَ دَ الفا التانیث دَ پاره مبتدا کانے محذوف دی۔ دَ الجمع دَ پاره مبتدا احدهما دهٔ اَوْ دَ الفا التانیث دَ پاره ثانیهما دهٔ۔

**سوال**۔ الفین دَ تانیث دا دواړهٔ چه یو ځائے شی، لو یو علت دے، چه قائم مقام دے، دَ دوؤ علتونو۔ حالانکه دا سے نه دهٔ، ځکه چه هر واحد دَ دوی نه علت مستقله دے، چه قائم وی په مقام دَ دوؤ علتونو۔ **جواب** دا دے چه دلته کښے کل واحد محذوف دے یعنی کل واحد من الفی التانیث۔

**سوال**۔ اضافت دَ الف تانیث ته نه صحیح کیږی، ځکه چه دلته کښے خو هغه دے، دَ پاره دَ تانیث۔ **جواب**۔ دلته مجازاً اطلاق په همزه دَ الف شوے دے۔ **سوال**۔ چه هر کله په الفینو دَ تانیث کښے

یعنی جب قائم مقام د سببینو دے، په یو به کښې تانیث مثو اَوْ بل لزوم، لو په طلحة کښې دوهم دفعه یو تانیث قائم مقام د سببینو اوګرځي. جواب. لزوم په الفینو کښې لازمی وضعی دے اَوْ په "تاء" د طلحة کښې عارضی دے.

# درس نمبر ۶۲

## فالعدل خروجه عن صيغته الاصلية

ترجمه:- پس معدولیت د اِسم دا مخرجیت د اِسم دے، د مادے د هیئت اصلی خپل نه، بل هیئت ته، سبب د قاعدے صرفیه نه یا معدولیت د اِسم مخرجیت د اِسم دے، د هیئت د اِسم نه، چه هغه صورت تقاضا کوی، د اصل اَوْ د قاعدے چه دا اِسم دے، په هغه باندې بناوی. هُوکله چه مصنفؒ فارغ شو، د بیان د اجمال د اسبابو د منع صرف نه، لو شروع یې اوکړو په تفصیل کښې. دلته دا فا تفسیریه اَوْ تفصیلیه ده اَوْ الف لام په العدل کښې عهدی دی اَوْ معهود په دے سره هغه عدل دے چه کوم مخکښې په اجمال کښې ذکر شوے دے.

**سوال.** عدل یې ولے مقدم کړو په نورو اسبابو د منع صرف باندې؟ **جواب.** دا مقدم وو په اجمال کښې. په دے وجه یې مقدم کړو په تفصیل کښې، چه موافقت راشي، په مابین د اجمال اَوْ د تفصیل کښې، او لف نشر مرتب جوړ شي. **سوال.** په اجمال کښې یې ولے مقدم کړو؟

**جواب.** شرائط اَوْ قیودات په عدل کښې تقریبًا نشته، په خلاف د نورو اسبابو د منع صرف نه، چه په هغوی کښې قیودات اَوْ شرائط موجود دی، لو په دے وجه په منزله د مفرد اوګرځیدو اَوْ هغه نور په منزله د مرکب دی اَوْ مفرد مقدم وی په مرکب باندې یا دا چه عدل مطلق دے اَوْ دا نور مقید دی اَوْ مطلق مقدم وی په مقید باندې. **سوال.** مصنفؒ ولے تعریف د عدل اوکړو؟ اَوْ د نورو اسبابو د منع صرف یې اونه کړو؟ **جواب.** په عدل کښې خفاء وو که اِختلاف وو اَوْ په نورو اسبابو کښې خفاء اَوْ اختلاف نه وو لا د هغوی ذکر هم ضمنًا حاله په ځائے راغلی دے، لو د دے وجه د خفاء اَوْ اختلاف اَوْ عدم ذکر نه د ده ذکر د تعریف ته ډیر ضرورت پیښ شو. اَوس مصنفؒ کوم تعریف چه د عدل کړے دے، دا اِصطلاحي تعریف دے اَوْ د عدل لغوی تعریف به مونږ کوو. پس عدل په لغت کښې په اعتبار د صلے سره په پنځو معانیو باندې راځي، په معنیٰ د مساوات سره چه کله یې صله بین راشي، لکه عدل بین زید وعمرٍ ای ساوی بینهما. په معنیٰ د اعراض سره چه کله صله د ده عن راشي، لکه عدل عنه ای اعرض عنه. په معنیٰ د میلان سره چه کله صله د دے الی راشي، لکه عدل الیه ای مال الیه. په معنیٰ د بعد سره چه کله صله د دے من راشي، لکه عدل منه ای بعد منه. په معنیٰ د تغیر سره چه صله د دے فی راشي، لکه عدل فیه ای تغیّر فیه. پس په دے معنیٰ اصطلاحي کښې لحاظ د معنیٰ لغو

ساتلے شي، یعنې دَ معنیٰ اصطلاحي اَوْ لغوي په مابین کښې مناسبت وي - اُوس دلته کښې په مابین دَ معنیٰ لغوي اَوْ اصطلاحي کښې به څنګه مناسبت وي، ځکه چه معنیٰ لغوي خو په پنځه معنیٰ راغلې ده، نو په کومه معنیٰ کښې وسره دَ معنیٰ لغوي مناسبت دے، نو دلته په آخري معنیٰ یعنې دَ تغیّر په معنیٰ کښې ورسره مناسبت راغلے دے، په دے وجه باندې دَ هدایة النحو والا دَ عدل په تعریف کښې تغیّر راوړے دے۔ **سوال** ، عدل خو صیغه دَ صفت مشبه ده، ځکه چه دا په وزن دَ فعل دے، اَوْ دا دَ اوزانو دَ صفت مشبه نه دے اَوْ صفت مشبه خو دلالت کوي، په ذات مع الوصف باندې، نو شمول دَ عدل دَ اسبابو دَ منع صرف نه نۀ دے صحیح، ځکه چه اسباب دَ منع صرف دا اوصاف دي۔

**جواب** ، دا صیغه دَ صفت مشبه نه ده، بلکه دا صیغه دَ مصدر ده - **سوال** ، چه هر کله دا صیغه دَ مصدر اوګرځیده، نو بیا به خالي نه وي یا به مصدر په معنیٰ دَ اِسم فاعل وي، یا به مصدر په معنیٰ دَ اِسم مفعول وي، که مصدر په معنیٰ دَ اِسم فاعل شي، نو دا به اوګرځیږي عادل اَوْ عادل صفت دَ متکلم ده اَوْ عدل خو صفت دَ لفظ دے اَوْ بل دا چه عادل صیغه دَ اِسم فاعل په ذات مع الوصف باندې دلالت کوي اَوْ اسباب دَ منع صرف دَ قبیلې دَ اوصافو نه دي اَوْ که چرته کښې صیغه دَ اِسم مفعول شي، نو دا به په معنیٰ دَ معدول اوګرځي، نو دا هم ذات مع الوصف دے اَوْ بل دا چه معدول خو په خپله باندې لفظ دے، اَوْ اسباب دَ منع صرف داخو الفاظ نه دي۔ **جواب** . دا مصدر مبني للمفعول دے، په مصدر مبني للمفعول اَوْ مصدر په معنیٰ دَ مفعول کښې دا فرق دے، چه مصدر په معنیٰ دَ مفعول کښې مجاز لغوي دے اَوْ په مصدر مبني للمفعول کښې مجاز نشته۔ دریم[3] دا چه مصدر په معنیٰ دَ مفعول دلالت کوي په ذات مع الوصف باندې اَوْ مصدر مبني للمفعول صرف وصف دے اَوْ دَ مصدر مبني للمفعول نه تعبیر په درے[2] طریقو سره کیږي، اَوَّل[1] دا چه، دا صیغه دَ مفعول شي اَوْ خبر واقع شي دَ باب دَ کون، نو دلته به دا شي، دکون الاسم معدولا، اَوْ دغه تعریف کړے دے، شرح جامي ——

دویم[2] : دَ صیغې دَ اِسم مفعول سره "یا" اَوْ "تا" مصدریه اولګوے، لکه معدولیت —— دریم[3] : دَ هغه فعل نه صیغه دَ فعل مضارع مجهول جوړه کړے اَوْ ورسره به ان مصدریه اولګوے، لکه په دے مقام کښې اُومے ان یعدل۔ دلته په خوجه باندې **سوال** واردیږي چه دا ضمیر به خالي نۀ وي یا به یې راجع ما ته عدل ته وي یا به یې راجع دائے اِسم ته اَوْ دواړه نه صحیح کیږي، ځکه چه که چیرے عدل ته راجع شي، نو بیا اخذ دَ محدود راځي، په حد کښې اَوْ دا ناجائز دے اَوْ که چرته اِسم ته راجع شي، نو لازمیږي اضمار قبل الذکر۔ **جواب** دلته دا ضمیر راجع دے، اِسم ته لکه چه ته وائے لازمیږي اضمار قبل الذکر، نو اضمار قبل الذکر نه لازمیږي، ځکه چه ذکر عام دے، حقیقتاً وي اَوْ که حکماً دلته کښې اګر که اِسم حقیقتاً نه دے ذکر وے حکماً ذکر دے ځکه چه دا بحث دَ اِسم دے۔ **سوال** ما العدل مبتداء ده لکه خو چیمہ

دے' لو دلته کښې دا حمل نه صحیح کیږی' ځکه چه دَ العدل نه نو تعبیر په معدولة سره اوکړو' دا متعدی دے اَوْ خروجه کښې خروج مصدر دَ فعل لازمی دے 'لو حمل دَ لازمی راغے په متعدی باندې اَوْ دا نه دے صحیح -**جواب**. دلته کښې مصدر دَ فعل لازمی بدل کړے شوے دے په مصدر دَ فعل متعدی چه هغه باب انفعال دے' یعنی اخراج اَوْ بیا دا دَ عدل په شان مبنی للمفعول کرځولے شوے دے' لو ځکه سړی دا معنیٰ اوکړه' چه معدولیت دَ اِسم مخرجیت دَ هغه دے' الخ -

## درس نمبر ۶۳:-

صیغه په لغت کښې زر دربوته اندا اختن ته وائی اَوْ په اِصطلاح کښې هغه هیئت ته وائی' چه حاصل وی حروفو ته' په اعتبار دَ تقدیم اَوْ دَ تاخیر اَوْ دَ حرکاتو' سکنالو سره -

**سوال**. تا اُووے چه' عدل خروج دَ اِسم دے' دَ صیغے نه' لو اِسم عبارت دے' دَ مادے اَوْ دَ هیئت نه اَوْ دغه شان صیغه هُم عبارت دے' دَ مادے اَوْ دَ هیئت نه' لو دا خو خروج دَ شی دَ خپل نفس یا خروج الکل عن الکل لازم شو اَوْ دا باطل دے اَوْ دغه شان مثال مطابق نه دے' دَ ممثل سره. ځکه چه په مثالونو کښې خروج دَ هیئت نه راغلے دے -**جواب**. دلته کښې مراد دَ صیغے نه هیئت دے -

**سوال**. په دغه صورت کښې خروج دَکل دَ جزء نه راغے اَوْ دا باطل دے -**جواب**. مراد په اِسم سره ماده ده -**سوال**. په دغه وخت کښې خروج دَ جزء' دَ جزء نه راغے اَوْ دا هُم باطل دے -[1]

**جواب**. خروج دَ جزء' دَ جزء نه په هغه وخت کښې باطل دے' چه یو جزء مشتمل نه وی په بل باندې اَوْ دلته کښې خو ماده مشتمله ده' په صیغت باندې -**سوال**. تعریف دَ عدل مانع اُونه ګرځېد د' دَ دخول دَ ضرب نه اَوْ داخل شو په کښې مشتقات' لکه ضَرَبَ شی' چه دا دَ ضرب نه مشتق دے یا نور مشتقات چه هغه اسماء دی -**جواب**. په عدل کښې شرط دا دے' چه معدول اَوْ معدول عنه به متحد المعنیٰ نه وی -

**سوال**. ستا دا تعریف مانع اُونه ګرځېد وکه دخول دَ غیرنه اَوْ داخل شو' په کښې اسماء محذوفة الاعجاز - اسماء محذوفة الاعجاز هغه اسماؤ ته وائی چه آخری حروف دَ هغې حذف شوے وی' لکه یَدٌ اَوْ دَمٌ شو' چه یَدٌ په اصل کښې یدیٌ وو اَوْ دمٌ په اصل کښې دَمَوٌ دے' لو یدٌ اَوْ دمٌ خروج دَ دو اسماؤ نه شوے دے - یکار دا ده چه دوی ته عدل اوویلے شی -**جواب**. په عدل کښې شرط دا دے چه په معدول اَوْ معدول عنه کښې دِ بقاء دَ مادے وی اَوْ دلته کښې بقاء دَ مادے نشته -**سوال**. چه هرکله په عدل کښې بقاء دَ مادے شرط دے' لو بیا ستا تعریف دَ عدل جامع نه شو' خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترې ثلث اَوْ مثلث' ځکه چه دوی معدول دی دَ ثلاثة' ثلاثة نه په معدول عنه کښې "تا" شته اَوْ په معدو

---

[1] اُستاذ صاحب به مثیل چه بچوا به طالبانو په عدل کښې داتپه کړله چه ا- (م-س)

[2] بعد مه په عدل کښې سبق شو بل دَ جانان دَ لوری ښند مثل مثلا مینه

کښې تا نشته، لوبقاء د مادے راغلے **جواب**. مراد په مادے سره بقاء د مادے اصلی دی او دلته کښې تازه دی، په مادہ اصلی کښې نه دی داخله - **سوال**. ستا تعریف مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې مغیراتِ قیاسیه[1]، لکه مرمیٰ چه دلته بقاء د مادے او اتحاد د معنیٰ دواړه وافقلی دی، ځکه چه دا د مرموی نه معدول دے - **جواب**. مادے چه مونږ په معنیٰ کښې ویلی دی د بے د قاعدے مرنیه نه او دلته کښې دا د قاعدے مرنیه او د قیاس موافق مرمیٰ د مرموی نه ماخوذ شوے دے، یعنی اعلال په کښې شوے دے -

## درس نمبر ۶۴ :-

**سوال**. ستا دا تعریف مانع او نه ګرځیدو د دخول د غیر نه او داخل شو په کښه جموع شاذه. اَنْیُبٌ او اقوس چه د اجمع د ناب او د قوس دی، دا دواړه اجوف دی او قاعده په اسماؤ د اجوف کښې دا ده، چه د دوی جمع په وزن د افعال راځی، لکه د قوم جمع اقوام، د ثوب جمع اثواب د موت جمع اموات، نو دا اسماء اول د خپلے قاعدے موافق جمع شوی دی، په وزن د افعال، یعنی انیاب او اقواس او بیا خلاف القیاس د دوی جمع اقوس او انیب راغلی دی، نو په دوی باندے تعریف د عدل صادق دے، چه د انیب او د اقوس خروج راغلے دے، د انیاب او د اقواس نه په خروج غیر قیاسی سره - **جواب**. دا جمع دی، د قوس او ناب - دا یے نه چه اول یے جمع انیاب او اقواس راغلی دی او پس د هغه نه بیا جمع یے انیب او اقوس راغلی دی، که چرته د قاعدے موافق وی، نو بیا یے دے جموع شاذه او مغایرات شاذه وے ویلے او دوئیمه وجه دا ده چه معتبر په عدل کښې د دوه څیزونو دی، لوجود د اصل او بل اعتبار د هغه اسم، د هغه اصل نه - که په دوی کښې یو هم منتفی او ګرځیدو نو بیا به عدل نه وی، دلته کښې دا خبره متیقنه نه ده چه انیب او اقوس د دوی خروج د انیاب او اقواس نه شوے دے او دا د دوی د پاره اصل دے - **سوال**. ستا دا تعریف د عدل مانع او نه ګرځیدو د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې لغات، لکه کتْف چه دا لغت دے په کتِف کښې، نو دلته کښې کتف ماخوذ دے د کتِف نه. د دواړو معنیٰ یوه ده او بقاء د مادے هم په کښې شته، نو دا داخل شو په تعریف د عدل کښې - **جواب**. شرط په عدل کښې دا دے، چه مخرج عنه یے غیر مشهور وی او مخرج دِ مشهور وی او دلته دا دواړه مشهور دی -

### ضابطه په عدل کښې

زده کړه دا خبره چه دلته کښې یوه ضابطه ده، چه په هغے سره د دے ټولو اعتراضاتو نه جوابونه معلومیږی - هغه دا ده چه دا مخرج او مخرج عنه به خالی نه وی یا به متحد المعنیٰ وی یا به نه وی، که چرته متحد المعنیٰ نه وو، نو هغه مشتقات او که چرته متحد المعنیٰ وو، نو بیا به خالی نه وی یا به سره د بقاء د مادے اصلی نه وی او یا به نه وی، که چرته نه وو، نو

---

[1] مغیراتِ قیاسیه یے هغه ته وائی چه اعلال بالغیر په کښې راغلے وی، موافق د قاعدے صرفیه سره - (م - س).

دا اسماء محذوفة الاعجاز اوکه سره د بقاء د مادے نه وی، لو بیا به خالی نه وی یا به سره د قاعده نه وی یا به بے د قاعدے نه وی، که چرته سره د قاعدے نه وی، لو بیا به خالی نه وی یا به موافق وی د قاعدے سره یا به نه وی که نه وی لو دا مغائرات شاذه او که موافق وی، لو مغیرات قیاسیه او که چرته که بے د قاعدے نه وی، لو بیا به خالی نه وی، یا به مخرج او مخرج عنه دواړه مشهور وی او یا به مخرج عنه شهور نه وی او مخرج به مشهور وی، که چرته اول[1] وو، لو دا لغات شه او که دویم[2] وو، لو دا عدل شه۔




**سوال**: دومره تکلفاتو ته څه ضرورت وو، ځکه چه د عدل تمیز د نورو اسبابو د منع صرف نه حاصل شو په تعریف سره۔ **جواب** دا دے چه په تعریف کښے دوه[2] مذهبه دی، یو[1] مذهب د متقدمینو دے او دویم[2] مذهب د متأخرین دے۔ متقدمین وائی چه غرض د تعریف نه تمیز عن بعض ماعدا دے[1] او په نیز د متأخرینو غرض د تعریف نه تمیز عن جمیع ماعدا دے[2] او مصنف[رح] په مذهب د متأخرینو باندے دے۔

# درس نمبر ۶۵

## تحقیقاً کثلث ومثلث

دا تحقیقاً صفت واقع شوے دے، د پاره د مفعول مطلق مقدر، چه هغه خروجاً دے، "ای خروجاً محققاً"۔ **سوال**: مفعول مطلق خو واقع کیږی د فعل نه او دلته خروج چه هغه محقق وی، لکه ثلث او مثلث شو، دلته

---

[1] که د انسان تعریف فقط په حیوان ناطق سره و کړو (م۔س)۔
[2] که د انسان تعریف په حیوان ناطق سره و کړو (م۔س)۔

کښې واقع شوې دے، دَ مصدر نه چه خروج دے ـ **جواب**: مصدر په دې دَ عدل کښې دے مؤول وی، په تاویل دَ فعل سره دَ ان مصدریه نه، نو خروج په تاویل دَ ان تخرجه سره دے، په دې توارسرہ چه تحقیقاً مصنف[۲] قسمونه دَ عدل بیانوی، چه عدل په دوه قسمه دے، یو تحقیقی دے او دویم[۲] تقدیری دے ـ اوس دلته اختلاف په تعریفونو دَ دواړو کښې په مابین دَ مشهورینو او محققینو دے ـ مشهورین وائی چه عدل تحقیقی دا خروج تحقیقی دے، دَ اصل محقق نه او عدل تقدیری دا خروج اعتباری دے، دَ اصل اعتباری نه او محققین وائی چه عدل تحقیقی دا خروج اعتباری دے، دَ اصل محقق دے او عدل تقدیری دا خروج اعتباری دے، دَ اصل اعتباری نه ـ پس محل دَ نزاع په مابین دَ دوی کښې عدل تحقیقی دے، مشهورینو په خپله دعوی باندې درے دلائل نیولی دی، ۱: تحقیقاً او تقدیراً ما صفت واقع شوی دی، دَ پاره دَ خروج، نو مطلب دا شو چه په عدل تحقیقی کښې خروج تحقیقی دے او په عدل تقدیری کښې خروج تقدیری او اعتباری دے ـ ۲: کله چرے په دواړو کښې خروج اعتباری شی، نو بیا به مقابله جوړه نه شی، په مابین دَ عدل تحقیقی او تقدیری کښې ـ ۳: عدل تحقیقی دے نه وائی چه په منع کښې دلیل موجود وی، په وجود دَ اصل باندې او دلیل په وجود دَ اصل باندې ـ دا بعینه دلیل دے په وجود دَ فرع باندې او دلیل په وجود دَ فرع باندې، دا دلیل دے په خروج باندې، نو په عدل تحقیقی کښې خروج تحقیقی دے ـ دَ محققینو دَ پاره یو[۱] دلیل دے، فقط او بیا مشهورینو[۲] دَ درے واړو نه جوابونه کوی ـ محققین وائی چه په عدل تحقیقی کښې خروج اعتباری دے، دَ اصل محقق نه، ځکه چه عدل دَ اسبابو نحویه اعتباریه نه دے، په دې شان سره چه علم په علت باندې روستو دے، دَ علم نه په حکم باندې، نو کله چرے په عدل تحقیقی کښې خروج تحقیقی شی، نو بیا به دا اونه کړی، دَ اسباب ضروریه اعتباریه نه ـ اوس جواب ورکوی، مشهورینو ته دَ دلیل اول نه، چه تاسو وائی چه، تحقیقاً او تقدیراً دا صفات دی دَ پاره دَ خروج ـ پس په عدل تحقیقی کښې خروج تحقیقی دے او په تقدیری کښې اعتباری دے، نو دَ دې جواب دا دے چه تحقیقاً او تقدیراً دا صفات بحال متعلقه دی، یعنی تحقیقاً اصله او تقدیراً اصله[۲] ـــــ دَ دویم دلیل نه جواب ورکوی، چه تاسو وائی، کله چرے په دواړو کښې خروج اعتباری شی، نو مقابله به برابره نه شی، په مابین دَ عدل تحقیقی او تقدیری کښې، نو موږ وایو چه، فرق په کښې شته

---

[۲] پوهه شه چه یو صفت بحاله دے او دویم[۲] صفت بحال متعلقه ـ صفت بحاله دې ته وائی چه بالذات دَ موصوف دَ پاره صفت واقع شی، لکه زید عالم او صفت بحال متعلقه دې ته وائی چه صفت دَ موصوف دَ متعلقاتو دَ پاره واقع شوے وی، لکه زید عالم ابوه یا لکه داعوه، پښتو استاذ صاحب دَ خوش طبعۍ په طور ویلی دی چه:-

جانان مې جنګ کښې تورې اوکړې ... ځکه منسوب راته کوم ځه سوړینه

په اعتبار دَ أصل سره چه عدل تحقيقي کښې اصل محقق دے اَوْ په تقديري کښې اَصل اِعتباري دے ـــــ دَ دَيْ دليل نه جواب وکوئ چه منو داخبره چه عدل تحقيقي کښې دليل شته په وجود اصل بانِدِ اَوْ دليل په وجود دَ اَصل دا يعيۡه دليل دے په وجود دَ فرع بانِدِ ولے دا نه منو چه دليل په وجود دَ فرع بانِدِ دا دليل دے، په وجود دَ خروج بانِدِ، ځکه چه په هرکړئ اَصل اَوْ فرعه موجود وي، ليکن بيا هُم خروج نه وي، لکه په جموع شاذه کښې، چه أَنيبُ اَوْ اقوس دي۔

**كَثُلٰث وَمَثْلَث** دا مثال دَ عدل تحقيقي دے، هَرکله چه موجود شو، دا دواړه اسماً په کلام دَ عربو کښې غير منصرف اَوْ په غير منصرف کښې لابُدي ده دَ وجود دَ سببونه[1]، نو موږ متوجه شو، دے خبرے ته، چه په دواړو کښې سببُن کوم دي۔ پس په دوئ کښې خو يو سبب موجود شو، چه هغه وصفية دے۔ ولے وصفيت يو لاځے کافي نه وو، دَ پاره دَ منع صرف۔ پس نحاة مجبور شول، اعتبار دَ سبب آخرنه اَوْ سبب آخر صالح نه وو، په دوئ کښې دَ پاره دَ منع صرف سِوا دَ عدل تحقيقي نه، ځکه چه عدل تحقيقي هغه نه والي، چه دليل موجود وي، په وجود دَ اَصل بانِدِ بے دَ منع صرف نه، په دے شان سره، چه کله موږ متوجه شو دَ دے معنٰے ته، نو په معنٰی دَ دوئ کښې تکرار وو، اَوْ تکرار دَ معنٰے دلالت کوی په تکرار دَ لفظ بانِدِ اَوْ دلته کښې تکرار دَ لفظ نه وو، نو موږه حکم اوکړو، چه دا معدول دي دَ ثلٰثة ثلٰثة نه۔ **سوال** ـ معتبر په منع صرف کښې وصف وضعي اصلي دے، نه وصف عارضي اعتباري اَوْ دلته خو وصف اعتباري دے۔

**جواب** ـ په معدول عنه کښې چه هغه ثلٰثة ثلٰثة دے، وصف اعتباري دے، خو چه کله په دے کښې عدل راغے اَوْ ثُلٰث اَوْ مَثْلث ترے نه معدول شو، نو اوس په معدول کښې وصف وضعي راغے، ځکه چه عدل په کښې وضع ثاني اوکړه شوه۔

# درس نمبر ۶۶

**وَاُخَرُ** دا بل مثال دَ عدل تحقيقي دے، هَرکله چه موجود شو أُخَرُ " په کلام دَ عربو کښې غير منصرف اَوْ په غير منصرف کښې لابُدي ده، دَ وجود دَ سببونه يا دَ يو سبب نه، چه قائم وي په مقام دَ سببونو اَوْ موجود نه وه په دے کښې سببُن سِوا دَ وصفيت نه اَوْ وصفيت يوځے کافي نه وو دَ پاره دَ منع صرف، نو مجبور شو نحاة اعتبار دَ سبب آخرته اَوْ سبب آخر صالح نه وو دَ پاره دَ منع صرف سِوا دَ عدل تحقيقي نه اَوْ عدل تحقيقي دے نه والي، چه دليل موجود وي په اصل بانِدِ سِوا دَ منع صرف نه، نو دلته کښې عدل تحقيقي په دے شان سره دے، چه اُخَرُ جمع دَ اُخْرىٰ ده اَوْ اُخْرىٰ مؤنث دَ

---

[1] يا دَ يو سبب نه چه هغه قائم مقام دَ سببونو وي۔ ۱۲ (م ـ س)۔

آخَرُ دے اَوْ آخَرُ صیغه د اسم تفضیل ده اَوْ په اسم تفضیل کښے قاعده داده چه دا به مستعمل وی په طرق ثلاثه سره، چه یا به مستعمل وی په من سره یا به مستعمل وی په الف لام سره اَوْ یا به مستعمل وی په اضافت سره. هر کله چه دوی او کتل چه دا نه دے مستعمل په یو د طرق ثلثه سره. پس نحاة اَوْ ویئیل چه دا معدول دے، د الآخَرُ یا د آخر من نه اَوْ ذهاب نه دے کړے، ځکه اضافت. وقته ځکه چه په وخت د انقطاع د اضافت کښے دغه وجه دی. لو دا چه دا به مبنی وی، په ضمه باندِ لکه قَبْلُ بَعْدُ.

**سوال**. د اُخر معدول د الاخر، یعنی د هغه اسم تفضیل نه چه مستعمل وی، په الف لام سره نه صحیح کیږی. ځکه چه الاخر معرفه ده اَوْ اُخَر نکره ده، دلیل پرے دا قول د باری تعالیٰ دے چه 'فعدة من ایام اُخَر' دلته ما صفت واقع شوے دے، د پاره د نکرے، لو پته ولګیده، چه دا نکره ده. **جواب**. خبره زمونږ په اصل کښے ده اَوْ تعریف یا تنکیر دا عوارض دی اَوْ والعوارض لا تعتبر. **سوال**. نه منم دا خبره چه اُخَر صیغه د اسم تفضیل ده، ځکه چه اسم تفضیل خو دیته وائی چه معنی مصدری په هغه کښے په نسبت سره د غیر نه زیاته وی اَوْ دلته کښے خو د آخر دا معنیٰ نه ده، بلکه دا مستعملیږی په معنیٰ د غیر سره. **جواب**. آخر په معنیٰ د اشد تأخرا سره دے اَوْ دا معنیٰ د اسم تفضیل ده اَوْ هر چه دے ... د

د معنی د تفضیل نه غیرته، لو دا د وجه د عارض نه دے اَوْ العوارض لا تعتبر.

**وَجُمَعُ** دا بل مثال د عدل تحقیقی دے، هر کله چه موجود شو په کلام د عرب کښے جمع غیر منصرف اَوْ په غیر منصرف کښے لابدی ده د سببونو نه یا د یو سبب په قائم مقام وی د سببونو اَوْ موجود نه وو په دے کښے سببونه سیوا د یو سبب نه چه هغه وصفیت دے اَوْ وصفیت وحده کافی نه وو، د پاره د غیر انصراف. پس نحاة مجبور شو اعتبار د سبب آخر ته اَوْ سبب آخر صالح نه وو ..... د پاره د غیر انصراف سیوا د عدل نه پس معتبر کړو نحاة په دے کښے عدل تحقیقی عدل تحقیقی ځکه دے ته وائی چه موجود وی دلیل په وجود د اصل باندِ سیوا د منع صرف نه، لو دلته دلیل په وجود د اصل باند، په دے شان سره دے، چه جُمَعُ جمع د جمعاء ده اَوْ قاعده په اَفْعَلُ فَعْلاءُ کښے داده. که چرے دا وصفی وی، نو جمع به یئے په وزن د فُعْل راځی، لکه جمع د حمراء راځی حُمْرٌ اَوْ که چرته اسمی وی، نو جمع د دے راځی، په وزن د فَعَالیٰ یا فَعْلاوات، لکه جمع د صحراء راځی صحاریٰ یا صحراوات اَوْ هر کله چه جُمَعُ په یو هم د دے اوزانو نه نه وو. پس نحاة حکم اوکړو چه دا معدول دے، د جُمْعٌ نه اَوْ یا د جماعیٰ اَوْ جمعاوات نه. **سوال**. نه منم دا خبره چه دا صیغه د اسم تفضیل ده، ځکه چه جمع خو تابع راځی اَوْ په مابین د تابع اَوْ د صفت کښے منافات دے. **جواب**. په اصل کښے د وضع دے، د پاره د صفت اَوْ استعمال د دے په تابع کښے د وجه د عارض نه دے اَوْ العوارض لا تعتبر.

**سوال**. جُمَعَ که چرته دا فعل فعلاء صفتی د جمع نه معدول شی، خو دا صحیح ده، ولے که افعل فعلاء

لسمي دَ جمع نه ملخوذ شي، نو بیا یې نه منم - **جواب** دا دے چه دلته کښې اسمي حمل دَے په صفتي باندې

**او تقديرًا كعُمَر** اَؤ یا خروج تقديري اَؤ اعتباري وي، په دے سره مصنفؒ دَ عدل دویم قسم بیانوی، چه هغه عدل تقديري دے - عدل تقديري یے ته وائی

چه دلیل په وجود دَ اصل باندې نه وي، سوا دَ منع صرف نه، لکه عُمَرؓ - هرکله چه موجود شو په کلام دَ عربو کښې عمر غیر منصرف اَؤ په غیر منصرف کښې لابُدی ده دَ سببونه اَؤ یا دَ یو سبب نه چه قائم مقام وي دَ دوو سببونو اَؤ موجود نه وو، په دے کښې مگر علمیت اَؤ علمیت وحده کافی نه وو دَ پاره دَ منع صرف - پس نحاة مجبوره شو، اعتبار دَ بل سبب ته اَؤ بل سبب په دے کښې صالح نه وو دَ پاره دَ اعتبار دَ منع صرف - پس نحاتو معتبر کړو په دے کښې عدل تقديري اَؤ عدل تقديري دے ته وائی چه دلیل په وجود دَ اصل باندې نه وي سوا دَ منع صرف[1]، لهٰذا معدول دے دَ عامر نه - پس یو سبب په کښې علمیت شو اَؤ بل په کښې عدل شو.

# درس نمبر ۶۷

**وباب قطامِ فی تمیم** دلته کښې قطامه معدول دے، دَ قطامة نه - په بعض نسخو کښې ومثل قطامِ دے اَؤ په اکثرو نسخو کښې وباب قطامه دے، نو چه ومثل قطامه شي، په دے کښې به اشاره راشي دے خبرې ته، چه په عمر کښې هم عدل تقديري دے، اَؤ په قطام کښې هم عدل تقديري دے، خو په دواړو کښې فرق دے اَؤ دا به په دے صورت کښې مستقل مثال شي، دَ پاره دَ عدل تقديري اَؤ چه باب قطام شي، نو په دے کښې به اشاره راشي، قاعدے کلیے ته چه مراد په باب قطامه سره دا دے، چه یو اسم راشي په وزن دَ فعال اَؤ هغه علم وي، دَ پاره دَ اعیان مؤنثه اَؤ نه وي ذوات الراء، نو په دے کښې به عدل تقديري وي، دَ پاره دَ حمل په ذوات الراء باندې - پوهه شه، چه وزن دَ فعال په څلورو معانیو سره راځي، یو دَ پاره دَ امر لکه نزال امتراك، نزال په معنٰی دَ انزل بلند اَؤ تراك په معنٰی دَ اترك باندې، دویم په معنٰی دَ وصف راځي، لکه فجار اَؤ فساق، دریم په معنٰی دَ مصدریة راځي، دا درے واړه مبني دي بالاتفاق په نزد دَ حجازیینو اَؤ په نزد دَ بني تمیم، اَؤ څلورم په معنٰی عَلَمي باندې راځي، بیا دا په دوه قسمه دے، یو ذوات الراء اَؤ بل غیر ذوات الواء. ذوات الراء په نزد دَ حجازیینو اَؤ دَ اکثرو بني تمیمو مبني دے اَؤ که په غیر ذوات الرواء کښې

---

[1] یعني دا یقیني دَ خه دلیل نه غیر منصرف ثابت دے، په کلام دَ عربو کښې په دے وجه باندې به مونږ کښې فرضیت دَ سبب آخر کوله شي، دَ پاره دَ محافظت دَ قانون نحوي. ۱۲ (م،س).

[2] ذوات الراء هر هغه اسم ته وائی چه په آخر کښې یې راء وي، په حال دَ کوم دَ مونږ کښې چه دے علم دي، په وزن دَ فعال (نور یې بل ځای).

اِختلاف دے، دَ اهلِ حجاز په نزد بانډے مبني دے، اَؤ دَ بني تميمو مبني بلکې معرب غیر منصرف دے، نو ځکه موږ دا خبره اوکړه چه هر کلمه دا مثل قطام شی، نو دا به مثال شی دَ پاره دَ عدل تقدیری، به مستقل طریقه سره - پس هر کلمه چه اومونده شو فوات الراء په کلام دَ عربو کښې مبني اَؤ معجود وی، په دوی کښې دَوه سببه اَؤ دَ دَوه سببه کافي نه دی دَ پاره دَ بناء، نو معتبر کړے شو په دوی کښې عدل تقدیری اَؤ غیر ذوات الراء دا حمل کړے شو په ذوات الراء باندې اَؤ په خپلو نظائرو باندې - **سوال**. چه هر کلمه متلبّسه اسبابو سره نو اسم مبني کوځی، نو پکار دا ده، چه په کوم اسم کښې دَ دریو نه زیات اسباب موجود شی، نو هغه دِ په طریقه اولیٰ سره مبني اوکړځی، لکه آذربائیجان، چه په ده کښې پنځه اسباب جمع دی، یو عجمه، دوئم علمیت، دریم تانیث، څلورم ترکیب اَؤ پنځم الف اَؤ نون مزید تېن دی اَؤ بیا هم دا مبني نه دے - **جواب**. په ذوات الراء کښې عدل تقدیری معتبر کړے شو، دَ پاره دَ دے چه دَ دے مشابهه راشی، دَ مبني اصل سره اَؤ چه مشابهه راشی، دَ مبني اصل سره، هغه مبني کوځی اَؤ هرچه دے آذربائیجان، نو دا خو مشابهه نه دے، دَ مبني الاصل سره - **سوال**. کثیر دا اسماؤنه په وزن دَ فعال دی اَؤ هغه بیا هم مبني دی، لکه حضار او طمارِ وغیره؟ **جواب**. خبره موږ په غیر ذوات الراء کښې ده اَؤ ته دَ ذوات الراء خبره کوے - **سوال**. شروع ستا په بحث دَ باب قطام باندې دا خروج دے، دَ بحث نه، ځکه چه بحث موږ په هغه غیر منصرف کښې دے، چه په هغه کښې عدل معتبر کړے شوے وے، دَ پاره دَ سببیت دَ منع صرف اَؤ ملته په باب دَ قطام کښې عدل راغلی دے، دَ پاره دَ حمل - **جواب**. خبره موږ په مطلق عدل کښې ده - برابره خبره ده، چه هغه حاصل وی، دَ پاره دَ سببیت دَ منع صرف اَؤ یا دَ پاره دَ حمل -

# درس نمبر ۶۸

## الوصف شرطه ان یکون فی الاصل

ترجمه:- بل سبب دَ هغه اسبابو نه، چه معتبر اَؤ مؤثر دے په سببیت دَ منع صرف کښې هغه وصفیت دَ وصف دے اَؤ وصفیت په دَوه قسمه دے، یو وصفیت اصلی وضعی اَؤ بل وصفیت عارضی - دلته کښې مصنف[2] تعریف دَ وصف اونه کړو، دَ وجه دَ ظهور اَؤ دَ وجه دَ عدم خفاء نه، وصف عرض اَؤ قائم بالغیر ته وائی، ځکه چه اشیاء په دَوه قسمه دی، یو هغه وی، چه قائم بالذات وی، هغه ته جواهر وائی اَؤ بل هغه دے، چه قائم بالغیر وی، هغه ته اعراض وائی اَؤ په اِصطلاح کښې وصف دا هغه اِسم دے، چه دلالت کوی، په ذاتِ مبهمه باندې، چه ملحوظ وی، سره دَ بعض صفاتو نه - **سوال**. ستاسو دا تعریف دَ وصف لره دَ اسبابو دَ منع صرف نه صحیح کیږی، ځکه چه وصف ذات دے اَؤ اسباب دَ منع صرف دَ قبیله دَ اعراضو نه دی - **جواب**. مراد په وصف سره وصفیت دَ وصف دے اَؤ وصفیت وصف یو عرض دے، چه دلالت نه کوی په ذات باندې اَؤ دا چه مراد په وصف سره کون دَ اِسم دے، چه دلالت کوی په ذاتِ مبهمه باندې اَؤ سره

---

(پاتے دَ بل مخ نه)... لکه حضارِ او طمارِ وغیره - (م - س).

دَ وصفیة دَ وصف په تاثیر دَ منع صرف کښې هغه کمزوری دَ دې وصفیة دی، اصلي وضعي (ځکه چه اصل په اسماؤ کښې انصراف دے او غیر انصراف غیر اصل دے)۔ پس دَ پاره دَ اخراج دَ یو شي دَ اصل نه غیر اصل ته دَ دې دَ پاره دَ سبب قوي او دَ مخرج قوي ضرورت دے، په دې وجه بانډې وصفیت اصلي معتبر کړے شو۔

**سوال** مخه اصل کله په مقابله دَ صفت کښې راشي، نو مراد ترې نه موصوف وي، نو لګیا دا دے چه وصفیت عارضي دِ هُم په سببیت دَ منع صرف کښې معتبر کېږے شي۔ **جواب**. دلته کښې دَ اصل نه مراد وضع ده، یعني وصفیت وضعي۔ **سوال**. فی راحق، دَ پاره دَ ظرفیة او دلته کښې دا داخل شوے دے په وضع بانډې او وضع خو نه ظرف زمان دے او نه ظرف مکان۔ **جواب**. فی په معنیٰ دَ عند بانډې دے، ای شرطه ان یکون عند الوضع۔

**فلا تضره الغلبة** پس نه ضرر رسوي ضرر، دے وصف وته، غلبه دَ اسمیة په ده بانډې، ملته کښې دا فاء جزائیه ده او شرط دَ دې دَ پاره مقدر دے، یعني اذا کان الامر کذالك فلا تضره الغلبة۔ **سوال**. غلبه دَ اسمیة وصفیة ته ولې ضرر رسوي، ځکه چه په هر کوم وخت غلبه دَ اسمیة راشي، نو وصفیة زائله شي؟ **جواب**. مراد په عدم ضرر سره خروج دَ دهٔ دے دَ سببیة دَ منع صرف نه او بله دا چه وصف په دوه قسمه دے، یو هغه دے چه مخکښې دَ راتلو دَ علمیة نه مشهور وي او دویم هغه چه مخکښې دَ راتلو دَ علمیة نه غیر مشهور وي۔ پس هغه وصف چه غیر مشهور وي، مخکښې دَ راتلو دَ اسمیة نه هغه ته غلبه دَ اسمیة ضرر رسوي او هغه وصف چه مشهور وي، مخکښې دَ راتلو دَ اسمیت نه، نو غلبه دَ اسمیة هغه ته ضرر نهٔ رسوي او دلته کښې دا دویم مراد دے۔

**درس نمبر ۶۹**:۔ **سوال**. چه هر کله غلبه دَ اسمیة وصفیة ته ضرر نه رسوي، نو لګیا دا دے چه کله اسود علم اوګرځي، دَ پاره دَ رجل ابیض، نو دا دِ غیر منصرف اوګرځي، دَ وجې دَ وصفیة او دَ وزن فعل نه۔ حالانکه دا خو غیر منصرف دے، دَ وجې دَ علمیة او دَ وزن فعل نه۔ **جواب**. دلته مراد په غلبې سره اختصاص دَ اسم دے، په خپلو بعضو افرادو پورې او دلته کښې ابیض (رجل) دَ افرادو دَ اسود نه نهٔ دے۔ **سوال**. بیا خو لګیا دا دے، چه کله اسود علم اوګرځي دَ پاره دَ رجل اسود، نو دا دِ غیر منصرف اوګرځي، دَ وجې دَ وصفیت اصلي او وزن فعل نه، حالانکه دا خو غیر منصرف دے، دَ وجې دَ علمیة او وزن فعل نه۔ **جواب**. مراد په اختصاص دَ اسم سره په خپلو بعضو افرادو پورې په دې شان سره دے، چه دے محتاج نهٔ وي، په دلالت کښې الفاظ دَ ضمیمې یا قرینې وته او دلته دا محتاج دے، قرینې او ضمیمې ته، چه هغه رجل اسود یا القوا... سره موصوفات دي۔

**فلذالك صرف اربع فی مررت بنسوة اربع** پس دَ وجې دَ دې مذکوره

هغه اصالت د وصفیت دے اَو عدم مضرت د غلبے د اسمیت دے، منصرف کوځولے شوے دے اربع په دے ترکیب کښے، چه مررت بنسوة اربعٍ. **سوال**. ذالك اسم اشاره مفرد دے اَو مخکښے دوه څیزونه ذکر شوی دی، چه یو اصالت د وصفیت دے اَو بل عدم مضرت د غلبے د اسمیت دے۔ پس مشار الیه دوه دی اَو اسم اشاره مفرد راوړے شوی ده. **جواب**. مشار الیه په تاویل د مذکور سره دے اَو دلته کښے اربع حکماً منصرف دے، چه په ده کښے وصفیت اصلی نشته ځکه چه دا په اصل کښے اسم دے، د پاره د عدد مخصوص، چه مافوق د ثلثه اَو ما تحت د خمسه دے اَو دلته کښے د وجے د عارض نه صفت واقع شوے دے، چه هغه بنسوة دی، نسوة موصوف اَو اربع صفت۔

**وامتنع اسود وارقم للحية وادهم للقيد**

اَو غیر منصرف دے اسود اَو ارقم چه د اسمین دی، د پاره د مار اَو ادهم چه دا اِسم دے، د پاره د زنځیر اَو هتکړئ اَو دا حکماً غیر منصرف دی، چه دلته غلبے د اسمیت وصفیت ته ضرر نه دے رسولے، یعنی د وجے د عدم مضرة د غلبے د اِسمیت دا غیر منصرف دی۔ اَسود په معنیٰ د تور اَو ارقم په معنیٰ د برګ اَو ادهم هم په معنیٰ د تور سره راځی، په دے اسماء کښے وصفیت اصلی دے۔

**وضعف منع انعی للحيه واجدل للصقر واخيل للطائر**

اَو باطل دے غیر انصراف د انعیٰ چا لوهم کړے دے، چه انعیٰ مشتق دے د خبث نه۔ پس د هغه نه دا علم کوځولے شوے دے، د پلید د مار لوَ باطل دے غیر انصراف د اجدل چا لوهم کړے دے، چه اجدل مشتق دے، د جدل نه لوَ جدل قوة ته وائی۔ پس د هغه نه علم کوے، د پاره د ښکرے (باز) اَو د هغه شان چا لوهم کړے دے، اَخیل مشتق دے د خال نه لوَ خال داغ اَو نقطے ته وائی۔ پس د هغه نه علم اوګرځید، د پاره د مارغه د وجے د عدم قطع نه، په کون د دوئ بانډے اوصاف اصلیه۔ اَوس **سوال** دا راځی چه ځنګه عدم قطع اَو عدم جزم دے، په کون د دے بانډے اوصاف اصلیه، نو دغه شان عدم قطع ده، په کون د دوئ بانډے عدم اوصاف اصلیه، نو تاسو ولے ترجیح ورکړه؟ انصراف لره په عدم انصراف بانډے۔ **جواب** دا دے چه دلته کښے مرجع موجود دے اَو هغه دا چه اصل په اسماء کښے انصراف دے، په دے وجه بانډے ترجیح ورکړے شوه انصراف ته په عدم انصراف بانډے۔

## درس نمبر: ۷

**التانيث بالتاء شرطه العلمية**

بل سبب د هغه اسبابو نه چه هغه معتبر دے د پاره د سببیت د منع صرف هغه تانیث دے، چه هغه حاصل وی، په تا سره۔ مراد د تا نه هغه تا ده چه مدوَره وی اَو بدلیږی په حالت د وقف کښے په

ها دره۔ **سوال**۔ مقابله ستا د تانیث لفظي د معنوي سره نه صحیح کیږي ځکه چه په دوا ړو کښې تا راغلې ده۔ **جواب**۔ مراد په تانیث سره هغه تانیث لفظي دے چه تا په کښې لفظي وي۔ شرط د تانیث په تاثیر د سببیت د منع صرف کښې هغه کېدل د دِه مؤنث دی علما (کون المؤنث علما) د پاره د دِے چه علمیت لازم اوګرځي، د کلمے سره ځکه چه اعلام محفوظ دي د تصرف نه بقدر الامکان۔

**والمعنوی کذالك** | اَؤ تانیث معنوي په اشتراط د علمیت کښې په شان د تانیث لفظي دے اَؤ تانیث معنوي هغه ته وائي چه تا په کښې مقدره وي۔ په تانیث لفظي کښې علمیت شرط د وجوب دے اَؤ په تانیث معنوي کښې علمیت شرط د جواز دے۔ دلته کښې المعنوي صفة ده د موصوف ولفظ التانیث دے۔ **سوال**۔ تشبیه ستا د تانیث لفظي سره د تانیث معنوي نه نه صحیح کیږي ځکه چه په تانیث لفظي کښې تا لفظاً ده اَؤ په تانیث معنوي کښې تا مقدره ده۔ **جواب**۔ دلته کښې تشبیه په اشتراط د علمیت کښې ده، نه په "ة" کښې۔ **سوال**۔ دا تشبیه ستا نه صحیح کیږي ځکه چه په تانیث لفظي کښې علمیت شرط د وجوب دے اَؤ په تانیث معنوي کښې شرط د جواز دے۔ **جواب**۔ تشبیه په مطلق اشتراط د علمیت کښې ده۔ برابره خبره ده که اشتراط د پاره د وجوب وي اَؤ که د پاره د جواز وي۔

**وشرط تحتم تاثیره الزیادة علی الثلثة** | په دے عبارت سره مصنفؒ بیان د هغه شروطو کوي چه هغه خاص دي په تانیث معنوي پورے۔ پس دا شرط د وجوب د تاثیر دي۔ پس وائي چه شرط د وجوب د تاثیر د تانیث معنوي په منع صرف کښې هغه یو د دے امورو ثلاثه نه دے، چه هغه یو زیادة دے په ثلثه حروف باندې، یعني احدها الزیادة علی ثلثة احرف (الف لام بدل د مضاف الیه نه دے په الزیادة کښې)۔

**او تحرك الاوسط او العجمة** | اَؤ بل شرط هغه تحرک د حرف اوسط دے، دلته کښې الاوسط دا صفت دے، د پاره د الحرف اَؤ دریم شرط عجمه دے، یعني کېدل د دغه اسم په لغت عجمي کښې، د پاره د دِے چه پیدا شي په دغه اسم کښې ثقل اَؤ دا درے شروط په دے وجه بلندې کېښودے شول ځکه چه کله چرے زیادة په ثلاثة احرف راشي، لوړ دا به اوګرځي ثلاثي اَؤ که چرته تحرک د اوسط راشي، لوړ دا به اوګرځي ساکن الاوسط اَؤ که چرته عجمي اوشه ګرځي، لو شي به دا عربي اَؤ دے د درے واړو سره پیدا کیږي خفة، چه هغه منافي دے د ثقل د یو د سببونو سره۔

## درس نمبر ۱۷

**فهند یجوز صرفه** | دلته فا تفریعیه ده یا فا جزائیه ده اَؤ شرط ورلو محذوف مقدر دے چه اذا کان الامر کذالك فهندٌ یجوز صرفه، ځکه چه په دے کښې انتفاء

۱ ... ط باعلی ده، زیادة په ثلثه، تحرک د حرف اوسط اَؤ عجمه دا درے واړه په کښې نشته

پس انصرافئې جائز دے۔ **سوال**۔ مصنفؒ یجوز صرفه اُووے او یجب صرفه ئې ولې اُونهٔ وے؟
**جواب**۔ انصراف دَدے واجب حُکم نه دے چه سببین په کښې موجود دی چه یو تانیث دے او بل علمیت، نو وجود دَ سببین تقاضا دَ عدم انصراف کوی او انتفاء دَ شروطو یې تقاضا دَ انصراف کوی۔ پس روا او گرځیدو انصراف دَدے۔

**وزینب وسقر وماه وجور ممتنع** او دَ وجه دَ وجود دَ شروط ثلثة نه زینب سقر ماه او جور غیر منصرف او گرځیدل، یعنی ممتنع صرف کل واحد منها، ځکه چه په دوئ کښې تانیث او علمیت دے۔ زینب نوم او علم دے دَ یو مؤنث او زیادة رابع دے، په دریئمے حرفو باندے۔ اول شرط په کښې موجود شو او سقر دا علم دے، دَ پاره دَ یو طبقې دَ طبقاتو دَ جهنم او متحرک الاوسط دے نو دوئم شرط په کښې موجود شو، ماه او جور دا اعلام دی دَ پاره دَ ښهرونو او عجمی اسماء دی، نو دریئم شرط په کښې موجود شو[1]۔

**فان سمی به مذکر فشرطه الزیادة علی الثلثة** او که چرته کښې مسمیٰ کړے شو په دے تانیث معنوی سره یو مذکر، نو شرط دَدے تانیث معنوی دَ پاره دَ منع صرف هغه زیادة دے، په دریئمے حرفو باندے په الثلثة کښې الف لام بدل دَ مضاف الیه نه، یعنی ثلثة احرف او دا شروط ورلره ځکه دی، چه هر کله نا لګه شو تانیث دَ ده په سبب دَ تسمیه دَ ده سره دَ پاره دَ مذکر نو په ده کښې نقصان پیدا شو۔ پس دَ ازاله دَ نقصان دَ پاره لابدی شوه دَ جبیری نه او هغه جبیره زیادت دَ حرف رابع دے[2]۔

**فقدم منصرف** دا تفریع ده، په دے شرط مذکور۔ قدم منصرف دے ځکه چه په ده کښې فوت دَ شرط رافع دے ځکه چه په ده کښې تانیث لفظاً نشته دے او نه په کښې حکماً علامه دَ تانیث شته او تانیث دَ ده زائله شوے په سبب دَ تسمیه دَ ده سره دَ پاره دَ مذکر او زیادة په کښې نه دے رابع دَ حرف زائد دَ پاره دَ جبیره دَ نقصان چه هغه ازاله دَ تانیث ده۔

**وعقرب ممتنع** او عقرب غیر منصرف دے، یعنی معقرب ممتنع صرفه او دا په دے وجه غیر منصرف دے، چه په ده کښې شرط موجود دے، ځکه چه هر کله په ده کښې ازاله دَ تانیث حاصله په سبب دَ علم دَ ده سره دَ پاره دَ مذکر نو په ده کښې نقصان پیدا شو او دَ هغه نقصان جبیره په حرف زائده سره اُوشوه۔

---

[1] پس دا اسماء غیر منصرف دی او ممتنع دے الصراف دَ دوئ دَ وجه دَ وجود دَ شروطِ ثلثة نه۔ ۲ (م۔س)۔
[2] او هغه حرف رابع په ده کښې قائم مقام دَ تانیث او گرځید۔ (م۔س)۔

## درس نمبر ۲۷

**المعرفة شرطها ان تكون علمية** بل سبب د هغه اسبابونه چه هغه معتبر دے، د پاره د سببیت د منع صرف، هغه تعریف د معرفے دے. معرفه مصدر میمی دے، په معنیٰ د معلومولو (شناختن) او پیژندلو ہاندے راځي او په اصطلاح کښے هغه اسم دے، چه وضع شوے وي د پاره د ذات معین یا ما وضع لشيءٍ معینٍ. **سوال**. شمیرل ستا معرفے لره د اسبابو د منع صرف نه نه صحیح کیږي، ځکه چه معرفه دلالت کوي په ذات باندے او اسباب د منع صرف د قبیلے د اعراضونه دي. **جواب**. مراد دلته کښے په معرفے سره تعریف د معرفے دے. دغه سوال په دلے طریقه هم دے چه د معرفے نه به یا معنیٰ لغوي مراد اخلے او یا معنیٰ اصطلاحي. که معنیٰ لغوي مراد اخلے نو دا نه صحیح کیږي، ځکه چه په لغت کښے معرفه معلومولو ته وائي او دا صفت د متکلم دے او متکلم ذات مع الوصف دے او اسباب د منع صرف اعراض دي، نو شمیرل ستا معرفے لره د اسبابو د منع صرف نه نه صحیح کیږي او که چرته معنیٰ اصطلاحي مراد شي، نو هم نه صحیح کیږي، ځکه چه دا بعینه لفظ دے او اسباب د منع صرف الفاظ نه دي. **جواب**:- دلته کښے اصطلاحي معنیٰ مراد ده او په دے معنیٰ کښے بیا مجاز دے او مجاز یا مجاز لغوي دے یا مجاز بالحذف دے. مجاز لغوي دا چه ذکر د معرفے دے او مراد ترے نه تعریف دے او که مجاز بالحذف شي نو دلته کښے به عبارة په حذف د مضاف سره شي، یعنی تعریف المعرفة. شرط د تاثیر د معرفے په سببیت د منع صرف کښے علمیت یا شرط د تاثیر د معرفے په سببیة د منع صرف کښے علمیة دے او علمیت ځکه شرط دے، چه دا لانر او کوچني د کلے سره ځکه اعلام محفوظ دي، د تصرف نه بقدر الامکان. **سوال**. دلته په شرطها ان تکون علمية کښے تکرار د کون راځي. لیکن دا سے چه په تکون فعل باندے ان مصدریه داخل شوے دے او ان مصدریه چه داخل شي په فعل باندے، نو هغه په تاویل د مصدر سره کوځي، نو ان تکون په تاویل د مصدر سره اوګرځیدو او دا بل دا چه په علمیت کښے یا او تا مصدریه دي. دا هم مستلزم دي کون لره، نو تقدیر به دا سے شي. شرط کونها کونها علماً. **جواب**. مراد په علمیة سره نفس د جنس تعریف نه او یا دا چه دلته په علمیة کښے دا یاد نسبتیه ده. پس هیڅ اشکال نشته په دے کښے.

**سوال**. معرفه[1] ولے خاص کړه د سببیت د منع صرف او علمیت ولے شرط کړے په دے کښے؟

**جواب**. معارف ټول شپږ دي. اسماء اشارات، موصولات، مضمرات، معرف باللام، او معرف بالاضافة او اعلام. پس دا اول درے په دے کښے مبني دي او هر چه دے معرف باللام او معرف بالاضافة، نو دا غیر منصرف، منصرف کوي. پس پاتے شو معرفه او هغه علم او علمیة په کښے شرط

---

[1] صورت د سوال داسے دے چه معرفه ولے خاص کړے شوه په تمامو معارفو کښے د پاره د سببیت د منع صرف او علمیة په کښے ولے شرط کړے.

ځکه دے چه اعلام محفوظ دی د تصرف نه بقدر الامکان ـ **سوال** ۔ علمیة به یٔ سبب ګرځولے وو او معرفه به یٔ د دے له شرط کړے وو لکه څنګه چه صاحب د مفصل دا سے کړی دی **جواب** ۔ فرعیت اظهر دے په معرفه کښے د علمیة نه، حکه چه معرفه فرعه د نکرې ده ـ **سوال** ۔ د دے ستو ماتن وائی چه ومانیه علمیة مؤثرة اذا نکّر صُرِفَ، نو د دے نه معلومیږی چه مؤثر به سببیت د منع صرف کښے علمیة دے نه معرفه ـ **اول جواب** دا دے چه عبارت د ماتن مبنی دے په مذهب د جمهور باندې د جمهورو په نزد باندې علمیة مؤثر دے ـ **دویم جواب** دا دے چه هلته علمیة بالواسطه مؤثر دے او په معرفه کښے علمیة بالذات مؤثر دے لو یا دا چه دا اطلاق مجازاً دے ـ

**درس نمبر ۳۷:** ـ **سوال** ۔ اشتراط د علمیة د پاره د معرفے دا خو اشتراط د شی دے د پاره د خپل نفس او دا باطل دے، ځکه چه معرفه علمیة لره شامله ده ـ **جواب** ۔ د دلته اشتراط د خاص راغلے دے د پاره د عام او دا جائز دے لکه الحیوان ضاحک بشرط الانسان، معارف عام دے لکه په دے شعر کښے دی چه :-

معارف این همه پنج اندزین نه بیش نه کم    مضاف و مضمر و ذواللام مبهمات وعلم[1]

هلته موټی وئیلی دی چه معارف شپږ دی او دلته کښے په دے شعر کښے پنځه راغلی دی وجه دا ده چه په اسمائے اشارات او موصولات باندې اطلاق د مبهمات کیږی او دے ته مبهمات ځکه وائی چه اسم اشاره بغیر د مشارالیه او اسم موصول بغیر د صله نه مبهم دی ـ

## درس نمبر ۳۸

العجمة شرطها ان تکون علمیة فی العجمة | بل د هغه اسباب نه چه معتبر دے په سببیت د منع صرف کښے، هغه کون د لفظ

دے چه وضع کړی وی هغه لره غیر عرب یعنی مجموع شرط د دے په تاثیر د سببیت د منع صرف کښے هغه کیدل د دې دے، منسوب علم رُتَه په لغت عجمی کښے ـ برابره خبره ده چه دا علم حقیقتاً وی او که حکماً ـ عجمه په لغت کښے لکنت او د ژبے النبتلوبة والی او په اصطلاح کښے ماوضعه غیر العرب ته وائی ـ

**سوال** ۔ دلته به د عجمی نه یا معنیٰ لغوی مراد اخلے یا معنیٰ اصطلاحی ـ که معنیٰ لغوی مراد اخلے نو لکنت خو صفت د متکلم دے او متکلم ذات مع الوصف دے او اسباب د منع صرف د قبیلے د امرا ضو نه دی او که معنیٰ اصطلاحی اخلے نو هم نه صحیح کیږی ځکه چه اصطلاحی معنیٰ د عجمی هغه ماوضعه غیر العرب

---

[1] دلته معارف شپږ په نمبر او شمیره، اشارات[1] او کړه، موصول[2] ئې مضمر[3] او شمیره د اضافت[4] سره بل لوم[5] د تعریف وایه، علم[6] ورلوه آخر کښے خپل دلبر او شمیره ـ ۱۲ ـ (م ـ س) ـ

والی آؤ دانه دے، مګر لفظ لؤ اسباب د منع اعراض دی، یعنی اوصاف دی او بعینه الفاظ نه دی۔

**جواب.** د لته کښې معنیٰ اِصطلاحی مراد ده او دلته په معنیٰ اصطلاحی کښې موږ تاویل کوؤ چې مراد دے کون اللفظ موضوعاً بغیر وضع العرب او کون مصدر دے لو ستا اعتراض نه وارد یږی، او که

**سوال** وارد یږی چې ابتداء نه ولې د دے اسبابو د منع صرف نه داسې تعبیر کړے وے چې په هغې کښې تاویل ته ضرورت نه وے۔ حالانکه په عجمه په معرفه په وصف وغیره کښې موږ تاویل ته محتاج شو۔

**جواب.** دا تعبیرات مصنف چې منکښې په شعر کښې هُو دا تعبیر کړے دے، لو که چرته په تفصیل کښې بل قسم تعبیر کړے وے، لو بیا به مخالفت راتلو په مابین د اجمال او د تفصیل کښې۔ **سوال.** ان تکون مُستلزم دے کون لو او په علمیت کښې تاء لوتا مصدری راغلی دی، د دے نه هُم کون مستفاد دے، لو دلته کښې تکرار د کون راغے، چې دا به فائده دے (کمامر)۔ **جواب.** مګر دلته کښې تکرار د کون نشته، ځکه چې په علمیت کښې یا او تا مصدری نه دی، ځکه که چرے مصدری شی، لو او به کړی، علمیت لوع کړ عجمه نه، حالانکه علمیت د نوع د عجمے نه نه دے، بلکه دا یا او تا نسبتیه دی، لو معنیٰ به دا شی چې شرطها ان تکون منسوبة الی العلم فی اللغة العجمیة او دا علمیة ځکه شرط کړے شو، چې دا لازم او ګرځی، د کلے سره، ځکه چې اعلام محفوظ دی، د تغیر نه بقدر الامکان۔ **سوال.** تا اُودٔیل چې شرط په عجمه کښې دا دے چې دا به علم وی په لغت عجمی کښې، لو نو تاسه بنایم چې یو لفظ به وی، هغه په لغت عجمی کښې علم نه وی او منتقل شوے به وی لغت عربی ته بغیر د تصرف نو او بیا به هم غیر منصرف وی، لکه قالون، دا په لغت عجمی کښې مطلق جید ته والی۔ بیا منتقل شو لغت عربی ته او علم او ګرځیدو د یارو د قالون او په لغت عجمی کښې دا علم نه دے۔ **جواب.** د عجمی علمیت عام دے، حقیقتاً وی یا حکماً، حقیقتاً لکه ابراهیم شو او حکماً لکه قالون، ځکه چې دے هر کله منتقل شو، د لغت عجمی نه عربی وته، بغیر د تصرف نه او علم واقع شو په لغت عربی کښې، لو ګویا کښې دے حکماً علم دے په لغت عجمی کښې۔

## درس نمبر ۷۵

**اَوْ تحرك الاوسط او الزیادة علی الثلثة** او بل شرط د پاره د عجمی په سببیت د منع صرف کښې هغه تحرك د حرف اوسط دے، ځکه چې دا تحرك حرف اوسط په منزله د حرف رابع دے او یا زیادة دے، په ثلثة احرف باندې، د پاره د دے چې په دے کښې ثقل پیدا شی یعنی بل شرط په عجمه کښې د پاره د سببیت د منع صرف هغه یو د دے امرین مذکورینو نه دے، ځکه که چرے تحرك الاوسط کښې، لو ساکن الاوسط به شی او که چرته زیادة په ثلاثة باندې را نه شی، لو ثلاثی به شی او دا پیدا کوی خفت لو چې دا منافی دے، د ثقل د یو سببیتو سره۔

**فَنُوحٌ مُنْصَرِفٌ** پس لوح منصرف دے، د وجه د انتفاء د شرط ثانی نه چې هغه تحرک د اوسط دے یا زیادة دے، په ثلثه باندې، دلته په فنوح سره مصنف تفریع بیانوی په شا

ثالی بانډی۔ **سوال**۔ پکار دا وه چه مصنف رح به اول دَ دې ته تعریفین بیان کړی وے، په شرط اوّل باندې لکه چه مُلّا هدایة النحو ملا ذکر کړی دی، چه فلیجامع منصرف او بیا یې تعریفین بیان کړی وے وجوداً او عدماً۔

**جواب**۔ ـ ـ ـ ـ مصنف رح په نوح سره تفریع نه بیانوی، بلکه دا تشبیهه ده په "ما نحو الحق" باندې حکه چه بعض نحاة وائی، چه نوح غیر منصرف دے، لکه په هغوئ رد اوکړو او وُے وئیل چه نوح منصرف ۔ که چرته غرض دَ مصنف رح تفریع وه، نو بیا پکار داوه، چه دَ وجودی مثال یې هم ذکر کړے وے، دَ عدمی نه، حکه چه نوح مثال دَ عدمی دے۔ **سوال**۔ حال دَ عجمی په عدم ظهور دَ علامې کښې په شان دَ حال دَ تانیث معنوی دے، نو پکار دا وه چه دَ هند په شان نو په نوح کښې هم الصراف او عدم الصراف جائز شی۔

**جواب**۔ فرق دے په مابین دَ تانیث معنوی او دَ عجمی کښې حکه چه په تانیث معنوی کښې په بعض مواضعو کښې علامه دَ تانیث ظاهریږی، لکه په ارض کښې چه په صورت دَ تصغیر کښې علامه دَ تانیث ظاهره شی، لکه اریضة شی او په عجمه کښې په هیخ ماځای کښې علامه دَ عجمی نه ظاهریږی۔ **سوال**۔ په ماه وجور کښې عجمه معتبر کړے شی نه، سره دَ سکون دَ اوسط نه او دا دِ غیر منصرف کړے شی۔ **جواب**۔ په ماه وجور کښې عجمه معتبر کړے شوی ده، دَ پاره دَ تقویت دَ سببینو، حکه چه په هغه کښې نخکښې سببین موجود دی چه یو علمیت او بل تانیث دے۔

**وشتر وابراهیم ممتنع** دا مثال دَ هغه دے چه شرط ثانی په کښې موجود وی۔ پس په شتر کښې حرکت دَ اوسط دے، دا علم دے، دَ پاره دَ یو قلعې چه په دِیاربکر کښې ده او په ابراهیم کښې زیادة دا فی دے، په ثلثه احرف باندې۔ پس دا دواړه غیر منصرف دی، یعنی دَ شتر وابراهیم ممتنع صرفهما او دا مثال وجودی دے۔

**فائده** علماء دَ نحوې فرمائی، چه دَ دې نه مذکوره اسمائو دَ انبیاء نه علاوه چه ذکر شوی دی په دے شعر کښې دَ نورو ټولو انبیاؤ اسماءِ مبارکه غیر منصرف دی، هغه شعر دا دے:۔

گر تو می خواهی که دانی نام هر پیغمبری ‌‌ ‌ ‌ تاکه دانست اے برادر نزد نحوی منصرف
صالح و هود و محمد با شعیب و نوح و لوط ‌ ‌ ‌ ‌ این همه دانو دیگر باقی همه لاینصرف

**سوال**۔ شیث ؑ او عزیر ؑ خو هم منصرف دی، نو هغه یې ولے ذکر نه کړل؟ **جواب**۔ مراد په دے انبیاء نه هغه انبیاء دی چه دَ هغوئ ذکر په قرآن پاک کښې راغلے، په نبوت یا په رسالت سره او دَ شیث ؑ خو دَ سره نوم نشته په قرآن پاک کښې او عزیر ؑ نوم خو راغلے دے، لکه "وقالت الیهود عزیر ابن الله" لیکن متصف نه دے، په صفت دَ نبوت یا دَ رسالت سره۔

## درس نمبر ۶۷

**الجمع شرطه صیغة منتهی الجموع** بل سبب دَ هغه اسبابو نه چه معتبر دے تنها سببیة دَ منع صرف هغه جمعیت دَ جمع دے او دا قائم

مقدم دے، د سببونو چه لوبه خپله جمعیت دے لکه بل په کښې لزوم د جمعیت دے او ما لزوم د جمعیة په منزله د سبب آخر دے۔ پوهه شه چه جمع په لغت کښې انضمام ته وائی او په اصطلاح کښې ما دل على احادٍ مقصودة بالفاظ مفردة ته وائی۔ **سوال**۔ د جمع نه مراد معنیٰ لغوی ده که معنیٰ اصطلاحی۔ که معنیٰ لغوی آخلے نو انضمام صفت د متکلم دے او متکلم ذات مع الوصف دے او اسباب د منع صرف اعراض دی، او که چیرے معنیٰ اصطلاحی آخلے نو ما دل على احادٍ الخ۔ دا خو لعینه لفظ دے او اسباب د منع صرف خو الفاظ نه دی، بلکه اعراض دی۔ **جواب**۔ دلته معنیٰ اصطلاحی مراد ده، خو دا محمول ده په تاویل سره، هغه دا چه دلته مضاف حذف دے، ای جمعیة الجمع۔ **سوال**۔ زه به تاته امثله پیش کړم چه جمع به وی او غیر منصرف به نه وی لکه رجال شهٔ آی مسلمون وغیره۔ **جواب**۔ مراد په جمع سره جمع منتهی الجموع ده او دا مذکور داسے نه دی، شرطه صیغة الخ۔ شرط د جمعیت د جمع په سببیت او په تاثیر د منع صرف کښې، هغه دا دے، چه دا به صیغه د منتهی الجموع وی، د پاره د دے چه دا محفوظ او کړی، د تغیر نه بقدر الامکان ځکه چه صیغه د منتهی الجموع دا جمع کیږی په جمع تکثیر سره لغوی۔ منتهی مصدر میمی دے، په معنیٰ د انتها باندې، یعنی انتها الجموع۔ **سوال**۔ جموع جمع د جمع که او اقل د جمع درے دی، نو مطلب دا شو چه درے ځله ځلوګنه د یو اسم جمع راشی، نو هله به هغه غیر منصرف کرځی۔ حالانکه داسے نه ده، ځکه چه مساجد خو لو ځل جمع راغلے دے او بیا هم صیغه د منتهی الجموع ده۔

**جواب**۔ دلته کښې مراد د جمع نه ما فوق الواحد دے، لیکن دا جواب ضعیف دے، ځکه چه د دے مطلب به دا شی چه په دوه ځل چه جمع شی نو بیا به صیغه د منتهی الجموع وی۔ حالانکه داسے نه ده۔ پس حق په جواب کښې دا دے، چه مراد په صیغه د منتهی الجمع سره اصطلاحی معنیٰ مراد ده، چه هغه داده چه صیغه د منتهی الجموع هغه ته وائی چه اول حرف یې مفتوح وی او دریم حرف الف او د الف نه روستو دوه حرفونه، حقیقتاً وی یا حکماً او یا درے حرفه وی خو ساکن الاوسط وی او د الف نه پس چه کوم حرف وی هغه به مکسور وی۔ مثال د اول چه پس د الف نه دوه حرفه حقیقتاً وی۔ کمساجد او چه پس د الف نه حکماً حرفین وی، لکه دوابٌ دلته کښې د الف نه روستو اګر که یو حرف دے، خو دا در حقیقت دوه حرفه دی، ځکه چه دلته کښې ادغام شوے دے، چه دا په اصل کښې دوابب وو او یا لکه جوارٍ شو، دلته کښې د الف نه پس یو حرف دے، لیکن دا په اصل کښې جواری دے او مثال د دریم، لکه مصابیح شو، د الف نه پس درے حرفه دی او ساکن الاوسط دی۔

**وجه د تسمیه**: صیغه د منتهی الجموع ته منتهی الجموع ځکه وائی، لکه ګویا دا جمع شوی ده مرتین۔ حقیقتاً او که تقدیراً، حقیقتاً لکه اکالبُ چه جمع د اکلب ده او اکلب جمع د کلب ده او تقدیراً مثال لکه مساجد او نور افعل وغیره شو۔

**بغیر هاء**: په حال د کون د دے صیغه د منتهی الجموع کښې چه دا متلبس نه وی په تاء تانیث سره، هسے تاء چه مدوره او بدلیږی په حالت د وقف کښې په هاء او دا ځکه چه کله چرته دا سره د تاء نه

اوګرځي نو دا به په وزن مفردات سره شي نو دَ دې په جمعیت کښې به نقصان اوخلل راشي لکه طواعیة او کراهیة شو. **سوال**. پکار دا ده چې فوارة دې منصرف اوګرځي ځکه چې دَ دې په آخر کښې هاء راغلې ده او فرازنةٌ دِ غیر منصرف شي ځکه چې په دې کښې ماثه نه دِه راغلې. **جواب**. مُراد په هاء سره هغه تاء ده چې بدلیږي په حالت دَ وقف کښې او دریم جواب دا دے چې په فوارة کښې هاء اصلي ده لا. **سوال**. دَ بغیرها سره به بغیر یاالنسبة هُم وئیلي وو دَ پاره دَ دې چې په مثل دَ مدائنيؐ ریږي نه خارج شي. **جواب**. دَ دې دَ اخراج دَ پاره قید ته ضرورت نشته ځکه چې دا سره دَ یاءِ نه مفرد لحض دے.

**کمساجد ومصابیح** مساجد مثال دَ وضع منتهی الجموع دے چې په هغه کښې پس دَ الف نه دوه حرفه راغلي وي حقیقتاً. دا جمع دَ مسجد ده او مصابیح مثال دَ هغه جمع دے چې پس دَ الف نه درې حرفه وي او ساکن الاوسط وي. مصابیح جمع دَ مصباح ده او مصباح چراغ ته وائي.

**واما فرازنة فمنصرف** او هر چې دے په مثل دَ فرازنة نو دا منصرف دے یا دا فرازنةٌ منصرف دے، دَ وجې دَ فوات دَ شرط نه ځکه چې مونږ وئیلي وو چې دا صیغه دَ منتهی الجموع به متلبس نه وي په تاء سره چې بدلیږي په حالت دَ وقف کښې په هاء سره او دلته کښې دا متلبس ده په تاء سره چې بدلیږي په هاء باندې فرازنة جمع دَ فرزون ده. دا بوه مُهره اوګرځي ده دَ کیتو دَ شطرنج نه او دې ته وزیر هُم وائي. **سوال**. اَمّا به یا استینافیه وائي او یا به تفصیلیه وائي. که استینافیه وائي نو مخکښې ترې نه سوال نشته او که تفصیلیه شي نو مخکښې اجمال نشته. **جواب**. دا تفصیلیه دے که ته وائې چې مخکښې اجمال نشته نو مونږ وائو چې اجمال شته ځکه چې مخکښې دا اووے چې بغیرها او دلته کښې دَ هغه تفصیل بیانوي چې اما فرازنة سره. **سوال**. فرازنة مبتداء ده او منصرف ورله خبر دے. فرازنة مونث دے او منصرف مذکر دے نو مطابقت رالغی په مابین دَ مبتداء او دَ خبر کښې. **جواب**. دلته لفظ دَ فو مقدر دے چې مضاف دے فرازنة ته. نو مبتداء فو ده او مذکر دے یا دوئیم جواب دا دے چې مطابقة په مابین دَ مبتداء او دَ خبر کښې مشروط دے په شروط ثمانیه سره چې یو دَ هغه نه دا دے چې خبر دِ مشتق وي. هله مطابقة ضروري ده او دلته کښې خبر مشتق نه دے، چې منصرف دے، که څوک اووائي چې منصرف خو مشتق دے، دَ انصراف نه نو ته څنګه وائې چې دا مشتق نه دے. جواب دا دے چې دا علم دے او علم په منزله دَ جامد کښې دے.

## درس نمبر ۷۷

**وحضاجر علماً للضبع غیر منصرف** او حضاجر په حال دَ کون دَ دَه کښې چې دے علم دے، دَ پاره دَ حیوان مخصوص چې هغه ته کوبن وائي.

---

[1] او مُراد نو ریږي هغه تا ما چې هغه حاصلیږي حلق نه، په صورت دَ هاء سره په وخت دَ ادائیګی دَ وقف کښې. (م.س.)

دا غیر منصرف دے، په دیے عبارت سره مصنفؒ دفع اعتراض کوی۔ **اعتراض** دا وارد یږی چه معتبر او مؤثر په سببیت د منع صرف کښے هغه جمعیة د جمع دے او وزن د صیغه د منتهی الجموع ورلره شرط دے، نو لکه دا ده چه حضاجر منصرف اوګرځی، ځکه چه په دے کښے جمعیة نشته دے، نو **جواب** اوکړو مصنفؒ د دیے اعتراض نه چه دا لفظ چه حضاجر دے، په حال د کون د دے کښے چه دا علم دے د پاره د حیوان مخصوص، نو دا غیر منصرف دے، ځکه چه دے منقول دے د جمع نه، یعنی دے په اصل کښے جمع دے۔

**لکونه منقولاً عن الجمع** | حاصل د جواب د مصنفؒ دا دے چه جمعیت د جمع په دوه قسمه دے، یو جمعیت اصلی دے او بل جمعیت حالی، نو په حضاجر کښے اګر که حالاً جمعیة نشته دے، لیکن په اصل کښے په کښے جمعیة شته، ځکه چه دا په اصل کښے جمع د حضجر دے او حضجر عظیم البطن ته وائی، بیا مسمیٰ کړے شو هر یو فرد د دغه جنس نه په حضاجر سره، د وجه د عظیم د بطن نه۔

**سوال**۔ نشته دے ضرورت په دے اعتبار د جمعیت ته، ځکه چه په دے کښے سببین موجود دی چه یو علمیة دے او بل تانیث دے۔ **جواب**۔ علمیة په دیے کښے غیر متؤثر دے، ځکه چه هرکله د ده تنکیر راشی نو بیا کار دا نه چه دے منصرف شی، خو مره د دے نه دا غیر منصرف دے او هر چه دے تانیث، نو هرکله چه دے علم او ګرځیده د پاره د جنس ضبع، نو د جنس اطلاق په مذکر او په مؤنث دواړو باندے کیږی۔ **سوال**۔ تا چه جمعیة د جمع کښے تقسیم او کړو په حالی او په اصلی سره، نو لکار دا ده چه تا ویلی دے چه الجمع شرطهان یکون فی الاصل لکه چه ځکه په وصف کښے ویلی شوی دی۔ **جواب**۔ بیا به تو ته معلومه کړو لکه چه ځکه په وصف کښے یو اصلی دے او بل عارضی دے، نو دغه شان په جمع کښے هم یو اصلی جمعیت وی او بل عارضی، حالانکه په جمعیت کښے عارضی نشته۔

**سوال**۔ په حضاجر کښے اګر چه جمعیة حالی نشته خو اصلی شته، په دے وجه غیر منصرف دے۔ نو ته به د دے او وایئ چه نه په کښے جمعیة اصلی وی او نه حالی، بیا به هم غیر منصرف وی، لکه لفظ د سراویل، چه نه په کښے جمعیت حالاً شته، نه اصلاً۔
**جواب**۔ اوکړو مصنفؒ په دیے قول سره "وسراویل اذا لم یصرف فهو الاکثر"۔ او سراویل په هغه وخت کښے چه دا غیر منصرف شو نو دا مذهب اکثر د غالو دے یا دا چه د غیر منصرف اطلاق په کلام د عربو کښے اکثر او عام دے۔

**فقد قیل عجمی حمل علی موازنه** | پس ویلی شوی دی چه دا لفظ عجمی دے او غیر منصرف کرځولے شوے دے د وجے د حمل نه په اوزانو د جمع د عربی چه هغه اناعیم مصابیح قنادیل دی۔ پس حاصل د جواب دا دے چه جمعیة د جمع عام دے حقیقتاً وی که حکماً۔ د حقیقتاً مثال خو لکه مصابیح وغیره شو او د حکماً هغه چه حقیقتاً خو جمع نه وی، خو د وجه د وزن نه هغه حمل شوے وی په لوړو اوزانو د جمع باندے لکه سراویل چه حقیقتاً خو جمع نه دے خو وزنیے د عربی جمعو په شان دے۔
**سوال**۔ پکار دا ده چه اسباب د منع صرف دے لس اوګرځی یو ئے به کښے جمعیت د جمع شی او بل حمل په اوزانو د جمع۔

* تدبرو د سوال مذکور دا دے چه هرکله جمع په دوه قسمه سره ده حقیقتاً او بل حکماً، نو پکار ده د نورو په بل ترجیح۔

باندې مستقل اثر کوي. **جواب.** اسباب د منع صرف په نحو باندې نه زیاتیږي، ځکه چه دلته کینې په جمعیة د جمع کښې تعمیم شوې دے، چه دا عام دے، حقیقتاً وي، که حکماً. یعنې هر حقیقت دا یو سبب دے، البته تعمیم په کښې وشو.

**سوال.** نقد قیل اعجمي، الجمي دا مقوله د قول ده او مقوله د قول جمله وي او دلته مفرد ده. **جواب.** اعجمي دا خبر دے او مبتداء یې محذوفه ده، چه هُوَ دے، یعنې هُوَ اعجمي یا هذا اللفظ اعجمي.

## وقیل عربي جمع سروالة تقدیرا

دا بل وجه ده غیر انصراف د سراویل ذکر کوي چه جاري شوي دي چه دا لفظ د سراویل عربي دے او په دے کښې جمع تقدیري ده، چه دا جمع د سروالةٌ ده او سروالة د پټکي ټوټې او ځینې ته وائي. او حاصل د جواب دا دے چه جمعیة د جمع عام دے، حقیقتاً وي که تقدیراً او که اعتباراً، او سراویل اګر که جمع حقیقي نه ده، لیکن تقدیراً او اعتباراً جمع ده، ځکه چه هرکله دا لفظ موجود شي په کلام د عربو کښې غیر منصرف او په دے کښې یو سبب موجود نه وو، د اسبابو د منع صرف سوا د وزن نه او وزن د جمع بغیر د جمعیة منصرف نه ګرځوي غیر منصرف، نو لیس مقدر شو، چه په دے کښې جمع تقدیري، چه دا جمع د سروالة ده، وقیل عربي هغه اعتراض مذکور والا هیري او هغه یې جواب دے، قیل هُوَ عربي یا هذا اللفظ عربي.

## واذا صرف فلا اشکال

نو په هغه وخت کښې چه دا سراویل منصرف او نشي نو شي، بیا نو اشکال نشته، ځکه چه دا تعمیمات موږ په جمع کښې لوکړل، چه عام ده، حقیقتاً وي که حکماً او که تقدیراً. دا خو به هغه وخت د پاره اوشول، چه سراویل غیر منصرف واقع شوې دے او چه کله دا منصرف شي، بیا په دے کښې اشکال نشته. **سوال.** فلا اشکال کښې لا لنفي الجنس دے، او دا تقاضا کوي د نفي د جنس اشکال، حالانکه دلته کښې اشکال وارد دے، هغه دا چه هرکله سراویل منصرف شي، نو دے خو په وزن د قنادیل او مصابیح وغیره باندې صادق دے، نو هغه دے هم منصرف او ګرځي، ځکه چه جمع د سببیت د منع صرف نه اوځي، په سبب د وزن د مفرد سره. **جواب.** دا دے چه دلته کښې د لا اشکال نه مراد مطلق اشکال نه دے، بلکه خاص اشکال ترے نه مراد دے، هغه دا چه جمع د سببیة د منع صرف نه په هغه وخت کښې اوځي چه هغه په وزن د اوزان عربیه باندې راشي، چه هغه مفرد وي او سراویل دا مفرد عربي نه دے، بلکه دا مفرد عجمي دے.

## درس نمبر ۷۸

## ونحو جوارٍ رفعاً و جراً کقاضٍ

او حکم د مثل د جوارٍ په حالت رفعي او جري کښې په شان د قاضٍ دے، په حالت نصبي کښې خو بلا اتفاق غیر

---

وهاهنا قد بل نرخ ۔)۔۔ چه اسباب د منع صرف یو لس اګر چه یو یو جمع حقیقي شي بل به جمع حکمي شي۔ ۱۲ (م۔س)۔

ل. اقل استعمال په لفظ د سراویل کښې د انصراف دے لغیر اشکال نه او اکثر یې کښې د عدم انصراف دے، سره د اشکال نه (م،س).

منصرف دے، مراد په مثل د جوارٍ سره هغه اسم منقوص دے چه هغه په وزن د فواعل سره وی، بوابی وغیره. چه یائی وی که واوی وی، لکه جوارٍ او دواعٍ شو، چه جوارٍ په اصل کښے جواریٌ وو او دواعٍ په اصل کښے دواعوٌ وو۔ **سوال**۔ مصنف رحمه الله صرف مثال د یائی ذکر کړے دے چه جوارٍ دے او مثال د واوی یے ذکر نه کړو څه وجه ده؟ **جواب**۔ وجه دا ده چه واوی کښے د اعلال نه پس مثال د یائی جوړیږی، په دے وجه یے واوی ذکر نه کړو۔ **سوال**۔ تشبیه د مصنف رحمه الله د جوارٍ د قاضٍ سره نه ده صحیح، ځکه چه جوارٍ جمع ده او قاضٍ مفرد دے۔ **جواب**۔ دلته تشبیه د جوارٍ د قاضٍ سره په حکم کښے ده۔ **سوال**۔ په حکم کښے هم تشبیه نه صحیح کیږی، ځکه چه حکم په قاضٍ کښے اتفاقاً دے او په جوارٍ کښے اختلافاً دے۔ **جواب**۔ دا تشبیه په صورت کښے ده په دے باب یا **سوال** وارد یږی، چه تشبیه په صورت کښے هم نه صحیح کیږی، ځکه چه جوارٍ په وزن د فواعل دے او قاضٍ په وزن د فاعل دے ځکه چه قاضٍ په اصل کښے قاضیٌ دے، نو په صورت کښے به څه رنګ تشبیه راشی؟ **جواب**۔ دلته کښے تشبیه په سقوط د یاء او په ادخال د تنوین کښے ده، په دواړو کښے په آخر کښے یا ساقطه شوی ده او ادخال د تنوین په کښے راغلے دے، په جوارٍ کښے په حالت نصبی کښے څه اختلاف نشته، خو په حالت رفعی کښے یے درے مذهبه دی، [۱] اول مذهب د سیبویه دے هغوئی چه جوارٍ منصرف دے په حالت رفعی کښے قبل الاعلال او بعد الاعلال دواړو، هرچه دے قبل الاعلال، هغه په دے وجه چه اعلال متعلق په جوهر د کلمے پورے دے متقدم دے په منع صرف باندے، چه د عوارضو د کلمے نه دے، یعنی د اعلال تعلق په ذات د کلمے پورے دے او د منع صرف تعلق په صفت د کلمے پورے نه دے، بلکه دا یو عرض دے او ذات متقدم وی په عرض باندے او هرچه بعد الاعلال دے منصرف دے، د وجه د عدم بقا د صیغے د منتهی الجموع نه۔ پس دا په دواړو صورتونو کښے منصرف او ګرځید ——— دویم مذهب دا دے چه دا په دواړو صورتونو کښے یعنی قبل الاعلال او بعد الاعلال غیر منصرف دے۔ هرچه دے قبل الاعلال هغه د وجه د بقاء د صیغے د منتهی الجموع نه او هرچه دے بعد الاعلال د دے وجه نه چه المحذوف کالملفوظ، په دے مذهب باندے **سوال** وارد یږی چه هرکله دا غیر منصرف دے نو تنوین ورباندے ولے راغلے دے؟ حالانکه په غیر منصرف تنوین نه راځی۔ **جواب**۔ دا دے چه دا تنوین د اعراب نه دے، بلکه دا تنوین عوضی دے ——— دریم مذهب دا دے، چه قبل الاعلال منصرف دے او بعد الاعلال غیر منصرف دے، هرچه دے انصرف د ده قبل الاعلال هغه په دے وجه چه اعلال متعلق په جوهر د کلمے پورے دا متقدم دے په منع صرف باندے، چه د عوارضو د کلمے نه دے، او هرچه دے عدم انصراف د ده بعد الاعلال هغه په دے وجه چه المحذوف کالملفوظ۔ په دے مذهب باندے **سوال** وارد یږی چه قبل الاعلال تاراے غیر منصرف نه کیږی، په دے کښے حقیقتاً صیغه د منتهی الجموع باقی ده او بعد الاعلال دے غیر منصرف او ګرځید چه حقیقتاً

---

[۱] یعنی په ذات د کلمے پورے دا متعلق دے الخ (م۔س)۔

په کښې صیغه د منتهی الجموع باقی نه ده، داخو ګویا تاحقیقت ترک کړو او مجازاً د صیرورة اکړو. **جواب**. دا دے قبل الاعلال په هغې کښې مانع موجود وو، چه هغه اعلال لره ابدال وو او بعد الاعلال مانع نه وو موجود، لو هغه مجاز، چه بغیر د مانع نه وی، بهتر دے، د هغه حقیقت نه چه سره د مانع نه وی.

**التركيب** و بل سبب د هغه اسبابو نه چه معتبر دے، د پاره د سببیت د منع صرف هغه ترکیب دے، ترکیب په **لغت** کښې نم ای یو ځلے کولو ته وائی او په **اصطلاح** کښې جعل الکلمتین او اکثر کلمة واحدة من غیر حرفیة جزء یعنی ګرځول د دوه کلمتینو یا د زیاتو کلمه واحده، بغیر د حرفیة د جزء نه. **سوال**. زه به تاته اوښایم چه لیراسم بروی، ترکیب به په کښې وی سره د علمیة نه او هغه به هم هغه منصرف وی، لکه النجم نو به په کښې علمیة دے او بل ترکیب ځکه چه الف لام شان له کلمه ده. **جواب**. معنی د مکلی دی چه مراد په ترکیب سره جعل الکلمتین او اکثر کلمة واحدة من غیر حرفیة جزء او دلته په دے کښې حرفیة د جزء ملحظ دے.

**شرطه العلمية** شرط د پاره د تاثیر د ترکیب په سببیت د منع صرف کښې هغه علمیة دے، د پاره د دے چه دا لازم اوګرځی د ده سره ځکه چه اعلام محفوظ دی، د تغیر نه بقدر الامکان.

**وان لايكون باضافة** او بل شرط دا دے ورلره چه دا مرکب اضافی نه وی ځکه چه اضافت منافی دے، د منع صرف سره، ځکه چه دے غیر منصرف لره منصرف کوی.

**سوال**. لکه چه ځنګه شرط په ترکیب کښې دا دے، چه دا دې مرکب اضافی نه وی، لو هغه شان مرکب توصیفی به هم نه وی، لو تا ولے مرکب اضافی ذکر کړو او توصیفی دې ذکر نه کړو؟ **جواب** دا دے چه مرکب توصیفی یې ذکر نه کړو، د وجه د اکتفاء نه په مرکب اضافی باندې، ځکه چه دا دواړه اقسام د مرکب تقییدی دی او مرکب تقییدی هغه ته وائی چه جزء ثانی قید وی د پاره د جزء اول یعنی بخوا د راتلو د جزء ثانی نه، په جزء اول کښې عموم وی، خو چه کله ورسره جزء ثانی راشی، لو بیا په کښې خصوص پیدا کیږی. پس که د دې دواړو جزئینو په مابین کښې نسبت د اضافت وو، لو مرکب اضافی بلوی، لکه غلام زید او که نسبت د صفت وو، لو مرکب توصیفی به وی.

**ولا اسناد** او بل شرط (عدمی) ورلره دا دے چه په دے کښې به اسناد نه وی، ځکه چه اعلام مشتمل په اسناد باندې دا د قبیلے د مبنیاتو نه دی او انصراف او عدم انصراف دا د اقسام معرب نه دی **سوال**. چه ځنګه شرط په ترکیب کښې دا دے، چه به دے کښې دا اسناد نه وی، یعنی ان لا یکون اسنادیاً لو ما خو هم په کښې شرط دے چه مرکب صوتی او مرکب تعدادی دې هم نه وی، لو تا ولے دا یو ذکر کړو؟

**جواب**. دلته کښې مصنف اکتفاء اوکړو په مرکب اسنادی باندې، ځکه چه مرکب تعدادی او صوتی د مبنیاتو نه دی. پس د دې نه زده کړه داخبره چه مرکب په شپږ[1] قسمه دے، مرکب[1] توصیفی، مرکب[2] اضافی، مرکب[3] اسنادی، مرکب[4] صوتی، مرکب[5] تعدادی او مرکب[6] امتزاجی او معتبر په موږ کښې د پاره د تاثیر په سببیت د منع صرف کښې هغه مرکب امتزاجی دے او دا نور ځکه نه دی چه مرکب اضافی غیر منصرف، منصرف ګرځوی او مرکب توصیفی

داخل دے په مرکب اضافي کښ ځکه چه ما سوا د اقسام د مرکب تقییدی دی اؤ مرکب اسنادی د قبیلے د مبنیاتو نه دے اؤ منصرف اؤ غیر منصرف د اقسام د معرب نه دی اؤ مرکب تعدادی اؤ صوتی داخل دی په اسناد کښ۔ پس معتبر کړے شو مرکب امتزاجی[1]۔

**مثل بَعْلَبَكَّ** یعنی مثال د ترکیب په مثل د بعلبك دے مثل مضاف دے اؤ بَعْلَبَكَّ مضاف الیه دے مضاف سره د مضاف الیه نه خبر د مبتدا محذوف دے، ای هو مثل بَعْلَبَكَّ۔ بعل د بت اؤ د صنم نوم دے اؤ بَكَّ د صاحب بت یعنی د سړی نوم دے۔ پس د هغه نه دا علماؤ ګوځولے شو د پاره د بلد مخصوص په شان کښے نو په دے کښے دوه سبب موجود شو یو علمیة اؤ بل ترکیب نو حکم په دے د غیر منصرف جاری کړے شه۔

## درس نمبر ۷۹

**الالف والنون** بل سبب د هغه اسبابو نه چه معتبر دے، د پاره د سببیت د منع صرف هغه الف اؤ نون چه زیات کړے شوی دی په آخر د اسم کښ اؤ یا د دوی تشبیه د الفین د تانیث سره په عدم قبولیة د تاء تانیث کښ۔ سوال. آسباب د منع صرف خو ټول فروع دی۔ پس الف اؤ نون د څه د پاره فرع دی۔

---

[1] یعنی شنیه مانه۔



**جواب**: په نوعیت د دې کښې اختلاف دے، بعض علماء وائي چې مانع د منع ٌ علیه دی او بعض وائي چې د دې مشابهت د الف او نون د تانیث سره راغلی دے، په عدم قبولیت د تاء کښې، نو مشبه او مشبهٌ به او مشبه فرع د مشبه به دی۔ **سوال**: اسباب د منع صرف د تبیلي کولو صلاحیت نه دی او الف او نون خو ذوات دی، نو شمول د دوئي د اسبابو د منع صرف نه صحیح او نه کو ځېدل۔ **جواب**: په شمول د الف او نون مزیدتین د اسبابو د منع صرف نه د وجه زیادت او د وجه د مشابهت نه دی لکه زیادت او مشابهت د تبیلي د ارصلاحیت نه دی۔

**ان کانتا فی اِسمٍ**

که چرته دا دواړه راغلي وي په اِسم کښې۔ **سوال**: مقابله ستا د اِسم د صفت سره (په دې توګه چې ولي او یا فی صفة) نه صحیح کیږي، ځکه چې اِسم هُم مادل علی معنی ته وائي او صفت هُم مادل علی معنی ته وائي۔ **جواب**: د اِسم د پاره یو معنی عامه ده چې مقابل د حرف او د فعل دے، او بله معنی خاصه ده چې مقابل د صفت دے، نو چې کله دے په مقابله د صفت کښې راشي نو معنی خاصه به ئې مراد وي، نو دلته کښې مراد د اِسم نه اِسم ذاتی غیر صفتي دے او د صفت نه مراد اِسم صفتی مشتق دے۔

پس معنی دا شوه چې که چرته دا دواړه راغلي وي په اِسم ذاتی کښې، نو اِسم په (۱) څلورو معنو سره راځي، یو مقابل د فعل او حرف، (۲) دویم مقابل د لقب او کنیت، (۳) دریم په مقابله د مهمل کښې او څلورم په مقابله د صفت کښې۔

**فشرطه العلمیة کعِمرانَ**

پس شرط د هغه اِسم چې مشتمل دے په الف او نون مزیدتین باندې هغه علمیت دے یا شرط دے د سبب په تاثیر د منع صرف کښې هغه کېدل د دغه دی علم، د پاره د دې چې دے لازم او کوځي د کلمې سره ځکه چې اعلام محفوظ دی د تغیر نه بقدر الامکان۔ **سوال**: مخکښې تا الف او نون ذکر کړي دی او په شرطه کښې تو ضمیر د مفرد راجع کړے دے، نو مطابقت رانغی، په مابین د راجع او د مرجع کښې۔ **جواب**: دا ضمیر راجع دے اِسم ته، چې مشتمل دے په الف او نون مزیدتین باندې او یا دا چې دا ضمیر راجع دے سبب ته، ځکه چې دا دواړه یو سبب دے۔

**سوال**: یکار دا ده چې په کانتا کښې هُم ضمیر د مفرد راوړے وے او په ځائے د کانتا د کانَ وئیلے وے، نو خلاصه د سوال دا شوه چې یا به دې په دواړو کښې ضمیر د تثنیې معتبر کړے وے او داسې به ئې وئیلي وو چې "ان کانتا فی اِسم فشرطهما الخ" او یا به ئې په دواړو کښې مفرد ضمیر راوړے وو او داسې به ئې وئیلي وو چې "ان کانَ فی اِسم فشرطه الخ"۔ **جواب**: الف او نون مزیدتین ته دوه اعتباره دی، یو اعتبار د ذات دے او بل اعتبار د سببیت دے، په اعتبار د ذات سره خو تثنیه دی او په اعتبار د سببیت سره سبب واحد دے، نو مصنف د دواړو اعتبارونو لحاظ اوساتلو، لکه عمرانَ شو۔ دا مثال د هغه اِسم ذاتی دے چې الف او نون په کښې مزیدتین دی۔ عِمرانَ آبادئ ته وائي، بیا دا علم راغلی دے، د پاره د پلار د موسیٰ او د پلار د مریم، لکه په قرآن کښې راغلي دي "واذ قالت امرأة عمران رب انی نذرت لک ما فی بطنی"۔

**او صفة فانتفاء فعلانة**

او که چرته دا الف او نون مزیدتین راغلي وي په اِسم صفتي

کښې نو بیا شرط د منع صرف ورلوه دا دے چه مؤنث د دهٔ به په وزن د فعلانة نه راځي۔ مُراد فعلانة نه دے، چه مؤنث د دهٔ به قابل د پاره د تاء نه وی، ځکه چه هر کله مشابهت د دوئ راغلے دے د الفِ نون تانیث سره په عدم قبول د تاء کښې نو په مؤنث د دوئ کښې به تاء د تانیث نه راځي۔ پس دا شرط به حاصلیږی په انتفاء د فعلانة سره (دا شرط ورلوه عدمی دے)۔ **سوال**. فانتفاء فعلانة دا ورلوه جزاء ده، ځکه چه فاء په کښې جزائیه ده او شرط ورلوه النکانتا الخ، دے، نو قاعده دا دے چه جزاء خو جمله وی او دلته جزاء مفرد ده، ځکه چه انتفاء مضاف او فعلانة مضاف الیه دے، مضاف سره د مضاف الیه نه مفرد دے۔ **جواب**. دا جمله ده او مبتدا ورلوه مقدره ده، چه فشرطه انتفاء فعلانة۔ **سوال**. فعلانة به یا په فتح د فاء سره وی او یا په ضمه د فاء سره که فتحه د فاء سره وی، نو لیکل دا ده، چه عریانا دِ غیر منصرف شی، ځکه چه مؤنث د دهٔ عریانة دے، په ضمه د فاء سره او که په ضمه د فاء سره وی، نو لیکل دا ده چه ندمان غیر منصرف شی، ځکه چه مؤنث د دهٔ ندمانة دے[1] په فتحه د فاء سره۔ **جواب**. مُراد په فعلانة سره دا دے، چه په هغه کښې به تاء د تانیث منوی ے برابره خبره ده، چه فاء په کښې مفتوح وی، که مضموم وی۔

**وقيل وجود فعلى** | او بعضو وئیلی دی چه شرط په تاثیر د منع صرف کښې د الف او نون مزید تینو په اسم صفتی کښې هغه دا دے، چه مؤنث د دهٔ به په وزن د فعلی راځي، نو د دوئ په نزد باندې دا شرط وجودی دی ځکه چه الف او نون مزید. تین مشابهت راغلے دے د الفِ د تانیث سره په عدم قبول د تاء تانیث کښې او چه هر کله په دے کښې وجود د فعلی شرط شو نو دا یقینی خبره شوه، چه انتفاء د فعلانة یعنی عدم د تانیث به کښې راغلو۔

**ومن ثم اختلف فى رحمٰن دون سكران وندمان** | او د وجه د وجود د اختلاف نه په شرط کښې اختلاف واقع شوے دے، په انصراف او عدم انصراف د رحمٰن کښې (یعنی په لفظ د رحمٰن کښې) بناء په مذهب اوّل باندې غیر منصرف دے، ځکه چه شرط په کښې موجود دے، چه هغه انتفاء د فعلانة دے، یعنی مونث د دهٔ به په وزن د فعلانة نه وی او دلته کښې خو دا صفت خاصه دے، د ذات د باری تعالیٰ او نشی مستی کولے هغه ذات په تذکیر او په تانیث سره، او د هغه د پاره مؤنث نشته او په نزد د قیل باندې دا منصرف دے، د وجه د انتفاء د شرط د عدم انصراف نه ځکه چه د هغوئ په نزد شرط دا دے، چه وی به مؤنث د دهٔ په وزن د فعلی باندې او د دے لفظ د پاره د سره مؤنث نشته، نو دا منصرف شو او اختلاف نه دے کړے شوے، په لفظ د سکران کښې په عدم انصراف د دهٔ کښې، په مذهبونو کښې۔ بنا په مذهب اوّل به کښې شرط د عدم انصراف موجود دے، چه هغه انتفاء فعلانة دے او بنا په

---

[1] مراد په فعلی سره فعلی صفتی دے۔ (م۔س)۔

مذهب ثاني په کښې هم شرط د عدم انصراف موجود دے چې هغه وجود د فعلى دے ځکه چې مؤنث د دې سکرۍ راځي، په وزن د فعلى باندې، ځکه چې هر کله مؤنث د دې په وزن د فعلى راشي۔ پس انتفاء د فعلانة په کښې به خپله راشي او دغه شان اختلاف نه دے کړے شوے په انصراف د ندمان کښې، دا بالاتفاق منصرف دے، هر چې دے بنا په مذهب اول هغه د دې وجې نه چې د دې مؤنث فعلانة راځي دے چې ندمانة دے او شرط په کښې موجود نه شو چې هغه انتفاء د فعلانة دے او هر چې دے مذهب ثاني د هغوي په نزد په کښې هم شرط د عدم انصراف نه دے موجود، چې هغه وجود د فعلى دے يعنې هغوي وائي چې مؤنث د دې نه په وزن د فعلى راځي او دلته مؤنث د دې په وزن د فعلانة راغلى دے، نه په وزن د فعلى باندې۔

**فائده:** زده کړه دا خبره چې د ندمان دوه معنې دي، يو د منادمت نه دے چې معنې يې نديم يعنې انديم خاص هغه دوست ته وائي چې هغه د شرابو ملګرے وي، نو په دې معنى سره دے منصرف دے ځکه چې مؤنث د دې په تاء سره راځي چې ندمانة دے او بل ندمان د ندم نه دے چې معنى يې پشيماني ده او مؤنث د دې په الف سره راځي او په تاء سره نه راځي، نو په دې معنى سره دے غير منصرف دے او دې فرق ته اشاره کړې ده، شاعر په لاندې شعر کښې وئيلي دي چې

ندمان منصرف که بود از منادمت — تانيث او بتا بود و معنيش نديم!
ور از ندم بود به الف دان مؤنثش — قائل به انصراف شدن غير مستقيم.

## درس نمبر ۸۰

**وزن الفعل شرطه ان يختص[1] به كشمّر وضرب**

بل سبب د هغه اسبابو نه چې معتبر دے د پاره د سببيت د منع صرف هغه کېدل د اسم دي، موزون په هغه وزن باندې چې هغه شميرلے کيږي د اوزانو د فعل نه چې مضموزن په فعل کښې ابتداءً موجود وي او په اسم کښې پس د نقل نه. **سوال** شمر ستا وزن فعل لره د اسبابو منع صرف نه نه صحيح کيږي، ځکه چې منصرف او غير منصرف د اقسامو د معرب نه دي او معرب قسم دے د اسم نه، لو څنګه به وزن فعل تاثير اوکړي په اسم کښې؟ **جواب** مراد په وزن فعل سره کېدل د اسم دي موزون په هغه وزن چې هغه شميرلے کيږي د اوزانو د فعل نه. **سوال** په وزن الفعل کښې ساقت لازمي دے چې دا مانډ کړي اختصاص۔ پس رومبستو د وزن الفعل ذکر د يختص نه بے فائدے او مستدرک دے. **جواب** دا دے چې دلته اضافت وزن فعل ته د پاره د مجرد نسبت او تعلق دے۔ **سوال.** دا وزن د فعل به يا په

---

[1] ان يختص به كشمر وضرب: يعنې شرط د وزن فعل په تاثير د سببيت د منع صرف کښې هغه دا دے چې دا وزن به خاص

وكاسه عصر يوسى ۲۰۰ ۱۱۲ م سه ۱۳۰۰

اِسم کښې موجود دی اَثّ یا بهٔ نهٔ وی ـ کهٔ وی بیا دا دَ خواصو دَ فعل نهٔ نهٔ شی ځکه چه خاصه والیٰ چه مَالیوجد فیه ولا یوجدُ فی غیرہٖ ته لوُ دلته کښې خو دا موجود شو په غیر کښې چه هغه اِسم دے اَوُ که چرے موجود نه وی، لو نشی دَ دهٔ دَ اَسبابوُ دَ منع صرف نهٔ نهٔ صحیح کیږی ـ **جواب** ـ دلته دا وزن دَ فعل بهٔ یا په اِسم کښې موجود وی بیا بهٔ نقل شوے وی، دَ فعلیة نه اسمیة ته ـ **سوال** ـ نهٔ منو دا خبره چه دا وزن بهٔ ابتداءً په فعل کښې وی بیا بهٔ نقل شوے وی اِسم ته، لکه یشکر اَوُ شلم، چه دا اوزان دَ فعل دی اَوُ ابتداءً موجود هم وی، په اسمو کښے ـ

**جواب** ـ دلته مُراد په اختصاص سره اختصاص دے، په وزن عربی په لُغت عربی کښے اَوُ دا اسماء دَ لغت عجمی دی ـ مثال یئ لکه شمّر اَوُ ضرب چه دا علمین لوګوی، دَ چا دَ پاره ـ شمّر دا نوم دے دَ اَس دَ حجاج بن یوسف اَوُ بعضے خلق چه ضرب هم علم اوګرځی ـ

**اویکون فی اوّله زیادۃ کزیادته** اَوُ که چرته کښې اختصاص دَ دے وزن دَ فعل سره نهٔ وی راځلے لو بیا به وی په اَوّل دَ مایکون علی وزن الفعل کښے زیادة دَ یو دَ حروف اتین نه په شان دَ زیادة په فعل کښے ـ **سوال** ـ بیا اَوّله کښے ضمیر خا ته راجع دے ځکه که چرے وزن فعل ته راجع شی، لو دا وزن فعل خو یو معنیٰ مصدری ده، دَ هغې دَ پاره اَوّل آخر نشته ـ **جواب** ـ دا ضمیر راجع دے، مایکون علی وزن الفعل ته، لو مجاز دے (اَوُ دلته کښې صنعة استخدام دے، اَوّله کښې ضمیر مایکون علی وزن الفعل ته راجع دے اَوُ په کزیادته کښې فعل ته) ـ

**غیر قابل للتاء** په حال دَ کون دَ دے وزن فعل کښې چه دا بهٔ قابل نهٔ وی، دَ پاره دَ تاءِ اصلی یعنی چه عارضی نهٔ وی لوُ مراد په تاء سره هغه تاء مدوّره ده، چه بدلیږی په حالت دَ وقف کښې په هاء سره ځکه چه تاء متحرکه دَ خواصو دَ اِسم نه ده اَوُ دا ځکه که چرے تاء په کښې راشی، لو دا قوی کوی جهت دَ مشابهت دَ اِسم لهٔ ضعیف کوی جهت دَ مشابهت دَ فعل چه دا نقصان رسوی سبب دَ وزن فعل ته ـ **سوال** ـ دلته بهٔ درته اَربعاتُم چه غیر منصرف بهٔ وی لوُ تاء بهٔ په کښې راغلی وی یعنی وزن فعل بهٔ وی لکه اربعٌ شو په حین دَ علمیت کښې په دے کښې تاء راځی، لکه اربعة شو ـ **جواب** ـ مراد په تاء سره تاء قیاسی ده اَوُ دا تاء غیر قیاسی ده ـ **سوال** ـ اسودة غیر منصرف دے، یعنی په کښې وزن فعل دے اَوُ یو وصف هم دے لو سره دَ دے نه قبلول دَ تاء دے ـ **جواب** ـ مُراد په غیر قابل التاء سره هغه تاء ده چه هغه اصلی وی اَوُ دا تاء عارضی ده اَوُ دلته کښې اسود دَ جهت دَ وصفیت اصلی نه غیر منصرف دے اَوُ په وصفیت اصلی کښې په دے کښې تاء نشته، ځکه چه مؤنث دَ دهٔ سوداء راځی په هغې کښې تاء نشته ـ

**ومن ثم امتنع احمر وانصرف یعمل** اَوُ دَ وجې دَ اشتراط دَ عدم قبولیة دَ تاء نه ممتنع کوشیدلے دے ـ الضراف صرف دَ اَحمَرَ ځکه چه په دے کښې لپ زیادت راغلے دے، په شان دَ فعل اَوُ بل عدم قبولیت دَ تاء دے، چه مؤنث دَ دے په وزن دَ

فعلاء حوا راځي او د وجه د فوات د شرط نه منصرف دے 'یعمل' ځکه چه دے قابل دے د پاره د "تاء" مؤنث د دهٔ یعملة راځي، لکه عرب والي، ناقة یعملة۔

**فائده:**۔ زده کړه دا خبره چه بعض اوزان مشترک دي په مابین د فعل او د اسم کښې، لکه ماضي د ثلاثي مجرد واحد مذکر غائب، لکه فعل څه دے په وزن د اسم دے، شجر او حجر ـــ دویم مضارع د ثلاثي مجرد واحد مذکر غائب، لکه یزید دا اسم هم دے او دا مضارع هم دے ـــ دریم د باب افعال د دے په وزن اسم، لکه اکرم۔ احمد وغیره او د رباعي مجرد ماضي، لکه دحرج د دے په وزن باندې، لکه جعفر اسم دے۔

## درس نمبر ۱۸

**ومافیه علمیة موثرة اذا نکر صرف** هرکله چه مصنف فارغ شو د بیان د اسبابو د منع صرف نه، نو شروع ئے اوکړه په دے خبره کښې، چه غیر منصرف څنګه منصرف کیږي۔ پس دے وئیل چه وما الخ۔

**قاعده:**۔ هغه اسم یا هغه غیر منصرف چه ثابت وي، په هغه کښې علمیت هے علمیة چه مؤثر وي، د جهة یا په طریق د سببیة نه یا مؤثر وي د جهة د شرطیة نه، علمیة چه مؤثر وي د جهة د سببیة نه۔ هغه ته وائي چه علمیة په کښې مؤثر بنفسه وي او شرط نه وي، د پاره د تاثیر د سبب آخر، لکه په عدل او وزن فعل کښې او علمیة چه مؤثر وي د جهة د شرطیة نه دے نو وائي چه علمیة مؤثر بنفسه وي او شرط وي د پاره د تاثیر د سبب آخر، لکه د تانیث په الفنون او د جمع نه علاوه په باقي نورو اسبابو کښې۔ او س زده کړه دا خبره چه علمیة به خالي نه وي یا به مؤثر وي په سببیت د منع صرف او یا به نه وي، که مؤثر نه وي په سببیة د منع صرف کښې، لکه په الفنون د تانیث کښې او په جمع کښې، نو که چه مالیو سبب تام مقام د سببونو دے، او که چرته مؤثر وي، نو بیا به خالي نه وي یا به مؤثر په طریقة د سببیة سره وي، چه علمیة په کښې مؤثر بنفسه وي او شرط نه وي، د پاره د تاثیر د سبب آخر، لکه په عدل او وزن فعل کښې او یا به مؤثر وي، په طریقة د شرطیة سره، چه علمیة به کښې مؤثر بنفسه وي او دے شرط وي، د پاره د تاثیر د سبب آخر، لکه په باقي اسبابو کښې۔

**اذا نکر صرف** چه علمیة د هغه زائل شي، په وخت د تنکیر کښې، نو دا به منصرف کیږي، تنکیر د اعلامو په څلور طریقو سره راځي، چه ذکر د علم او شي او مراد ترے نه صرف مسمی وي یا مراد ترے نه جماعت وي، لکه جاء لي زیدٌ ورایتُ زیداً آخر او یا لکه لفظ د فلان، چه د جماعت په هر فرد د دهٔ اطلاق کیږي ــــ دریم دا چه ذکر د علم او شي او مراد ترے نه وصف مشهوره د علم وي، لکه لکل فرعون موسیٰ۔ دلته کښې ذکر د فرعون او د موسیٰ دے چه دا اعلام دي، لیکن مراد ترے نه هغه صفات مشهوره د دوئ دي، چه فرعون په صفت د ابطال د حق مشهور وو او موسیٰ په صفت د احقاق د حق مشهور وو، په دے وجه د دے مطلب دا دے چه لکل مبطل محق ـــ دویم دا چه د علم تثنیه یا جمعیة راشي، لکه جاء لي زیدان جاء لي زیدون ـــ څلورم دا چه په معرفة باندې الف لام داخل شي ـــ

**لما تبیّن من انها لا تجامع موثرة الا ما هی الخ** د دې د دغه نه چه ظاهر شرے دے په دلیل التزامی سره، چه هغه دا دے چه په تحقیق سره دا علمیة نه جمع کیږي د لو سبب د اسبابو سره په حال د دې علمیة کښې چه موثر وي، مګر هغه چه دا علمیة په کښې شرط وي۔ مطلب دا چه دا علمیة په کښې ثابت وي او موثر وي په طریقه د شرطیة سره چه دے شرط وي د بل د تاثیر د سبب لپاره۔

**شرط فیه الا العدل ووزن الفعل** او نه جمع کیږي، دا علمیة په حال د ګرځن د دې کښې چه دا موثر وي غیر د هغه نه چه شرط وي، په دې کښې مراد د عدل او وزن فعل نه۔ مطلب دا چه دا علمیة موثر بنفسه خو وي ولې دے شرط نه وي، د پاره د تاثیر د سبب آخر، لکه په عدل او وزن فعل کښې یعنی دا ...... علمیة جمع کیږي، د هغه اسبابو سره، چه په چا کښې موثر وي شرطاً او موثر وي سبباً۔ په دغه عبارت کښې من انها کښې من بیانیه دے، د پاره د "ما"۔ **سوال**۔ په دې عبارت کښې مستثنیٰ منه واحد دے او مستثنیٰ متعدد دے او د مستثنیٰ منه واحد دے نه مستثنیٰ متعدد د بغیر د حرف عاطفه نه راغلی دے او دا نابلیږي دے، حکه چه په دې عبارت کښې الاّ موخر ملد راغلی دے او حرف عاطفه په کښې نشته۔ **جواب**۔ د دلته استثناء د دوی نه راغلی ده او مستثنیٰ هم دوه دی۔ پس تقدیر د عبارت به داسې شي، چه من انها لا تجامع سببا من الاسباب حال کونها موثرة الا سببا هی ای العلمیة او د دغه شان د الاّ د پاره مستثنیٰ منه په الا العدل کښې هغه مقدر دے، تقدیر داسې دے چه "ولا تجامع موثرة غیر ما هی شرط فیه الا العدل الخ"۔

**وهما متضادان الخ** او دا دواړه یعنی عدل او وزن فعل د یو بل ضد دی، یعنی دواړه په یو اسم کښې نه جمع کیږي۔ په دې عبارت سره مصنف دفع د سوال کوي۔

**سوال** دا واضح یږي چه په یو اسم کښې علمیة عدل او وزن فعل وي او په کار دا ده چه کله علمیة ترې منه زائل شي نو دا و غیر منصرف او ګرځي، حکه چه دوه سببه عدل او وزن فعل موجود دی، په دې کښې او مصنف **جواب** او کړو چه هما متضادان، چه دا دواړه په یو اسم کښې نه جمع کیږي، حکه دا د یو بل ضد دے او اجتماع د نقیض محال ده او دا په دې وجه متضادین دی، چه اوزان د عدل غیر قیاسي او محدود دی او اوزان د وزن فعل قیاسي او استقرائي دی، حکه چه اوزان د عدل هغه شپږ دی، لکه شاعر وائي چه:-

ے اوزان عدل را بتامی تو شش ے شمر | مُفْعَلُ فُعَلُ مثالها مثلث عمر
فعل است مثل اُمس و فعال است چون ثلث | مثل فعال دان تو قطام و فعل سحر[1]

---

[1] بلکه د پښتو ما غني:-

ے مُفْعَلُ لکه مثلث فَعْلِ اَمْسِ دے دا دوه | فُعَلُ دا یې ثالث وزن مثال راوړه عمر!
رابع فُعَالُ ثلث خامس فَعالَ قطامَ | فَعَلُ دا یې سادس وزن مثال راوړه سَحَرُ

# درس نمبر ۸۲

**فلا یکون معها الا لاحدهما** پس نه به وی، هغه سبب چه مشروط وی سره د علمیت
یعنی نه به وی هغه سبب چه علمیت به کښے شرط نه دے، سره د علمیة نه مگر
یو د دے دواړو نه چه عدل دے او وزن فعل دے۔ دلته دا فا تفریعیه ده، یعنی چه هر کله عدل او وزن فعل د دیو
بل نقیض او ضد دی، نو د علمیة سره به نه جمع کیږی، مگر یو به دوی کښے چه یا به علمیت او عدل او یا به علمیة او
وزن فعل وی او په دے دواړو اسبابو کښے علمیت شرط نه دے۔ **سوال** منفی په لایکون سره به یا سبب
مطلقه وی او یا به دا اسباب مذکورین (چه عدل او وزن فعل دی) وی، که سبب مطلقه وی، نو دا
کذب دے صریحا۔ معنیٰ به داشی چه یو سبب به هم د علمیت سره نه جمع کیږی، سوا د دے دواړو نه او که
اسباب مذکورین وی، نو لازمیږی نفی د شی د دخیل نفس نه او دا باطل دے۔ **جواب** دلته منفی نه مو
سبب مطلقه دے او نه اسباب مذکورین دی، بلکه منفی دلته کښے هغه سبب دے چه علمیت په کښے غیر مشروط دے۔

**فاذا نکر بقی بلا سبب او علی سبب واحد** هر کله چه منکر کړے شی، هغه اسم چه علمیة
په کښے مؤثر دے، نو پاتے به شی دا غیر منصرف بغیر د سبب
نه که چرته علمیة په کښے مؤثر وی په طریقه د شرطیه سره، حکمه چه دا علمیة لوگی شوے دے، شرط د پاره د تاثیر د سبب آخر هغه
هغه سبب به هم مؤثر وی، په علمیة ورسره وی، هر کله چه علمیة ترے نه زائل شی نو دے باقی پاتے شو بلا سببه، حکمه چه
په انتفاء د شرط سره انتفاء د مشروط راځی او یا به باقی پاتے شی، سره د سبب واحد نه۔ که چرته دا علمیة په کښے مؤثر
وی په طریقه د سببیت سره۔ پس هر کله چه علمیة ترے نه زائل شو، نو یو سبب پاتے شو او یو سبب کافی نه دے، د پاره د
منع الصرف۔ **سوال** علمیة شرط دے په تانیث د طلحة کښے، حالانکه تانیث ترے نه نه زائل کیږی، په زوال د
علمیة سره۔ **جواب** مراد په زوال سره زوال د وصف د سبب دے، نه د ذات د سبب او وصف د سبب
زائل کیږی، په زوال د علمیة سره۔

**وخالف سیبویه الاخفش فی مثل احمر علما** او مخالفت کړے دے، سیبویه
د اخفش نه په مثل د احمر کښے، مراد د احمر نه
هر هغه اسم دے چه وصفیة په دهٔ کښے ظاهره وه، ټکه د علمیة نه برابره خبره ده چه په وزن دا فعل وی لکه احمر او
یا په وزن د فعلان وی لکه سکران۔ پس چه څنگه اختلاف په احمر کښے دے، په مابین د سیبویه او د اخفش کښے
دغه شان اختلاف د دوئی ثابت دے په سکران کښے په حال د کون د دے احمر کښے چه دے علم واقع شوے وی۔
اخفش نه لازم دے اخفش اوسط چه دا شاگرد دے د سیبویه۔ اخفش درے دی۔ یو استاذ د سیبویه دے، دویم
شاگرد د سیبویه او دریم معاصر د سیبویه، چه هغه نه د سیبویه استاذ وو او نه شاگرد۔ دلته کښے د دوئی نه اخفش
نه شاگرد د سیبویه مراد دے۔ **سوال** په خالف سیبویه الاخفش کښے نسبت د مخالفت [illegible] دے،

اؤ د اسود ادب اؤ غیرمستحسن دے. **جواب**. دلته شاګرد د قاعدے موافق روان دے اؤ استاذ د قاعدے موافق نه دے روان، په دے وجه ورته نسبت د مخالفت اوکړے شو. اخفش والی ؤ مثلاً د احمر کښے چه کله علمیت زائل شی په تنکیر سره، نو دا به منصرف اوګرځی اؤ سیبویه....... والی چه په احمر کښے کله علمیت زائل شو په تنکیر سره، نو نشته دے یو مانع د اعتبار د وصفیت اصلی نه، نو پس دا به غیرمنصرف شی، لکه په احمر کښے چه کله علمیت زائل شو نو یو په کښے وصفیت اصلیه ده اؤ بل په کښے وزن فعل دے. پس دا غیرمنصرف شو بنا په سیبویه باندې. **سوال** وارد یږی چه کوم شان مانع نشته په اعتبار د وصفیت اصلی باندې نو همغه شان بامث نشته په اعتبار د وصفیت اصلی باندې ځکه چه اصل په اسماو کښے انصراف دے، نو ته ولے دا غیرمنصرف ګرځوے؟ **جواب**. بامث شته دے په اعتبار د وصفیت اصلی باندې، چه همغه قیاس دے، په اسود اؤ ارقم باندې چه په هغوی کښے وصفیت اصلیه معتبر کړے شوے دے، نو دلته به هم معتبر کړے شی بنا په مذهب محقق باندې. في مثل احمر ګویا دا استشاره ده. د ما قبل ظالطلی نه چه ده ویلی دی چه وما فیه علمیة موثرة اذا نکر صرف الا في مثل احمر الخ.

**اذا نکر اعتبارًا للصفة الاصلیة بعد التنکیر**

(په حال د کون د دے احمر کښے چه دے علم وی) په همغه صفت کښے چه زائل شی علمیت د ده په تنکیر سره. پس دا غیرمنصرف دے، په نزد د سیبویه باندې. د وجے د اعتبار د سیبویه نه وصفیت اصلیه لره. پس د تنکیر د ده نه، اګرکه علمیت زائله شو خو بیا هم په کښے سببین موجود دی، چه یو وصفیت اصلیه دے اؤ بل وزن فعل دے. **سوال**. اخفش مرفوع اوویه اؤ دا به فاعل شی د پاره د خالف اؤ سیبویه به منصوب شی بنا په مفعولیت، نو استاد د مخالفت به استاذ ته راغله شی اؤ تقدیر د سیبویه به په اخفش باندې (ګو چه مفعول دے) د وجه د احترام نه شی. **جواب**. اعتبار دا مفعول له دے اؤ په تقدیر د لام سره دے، چه ماکله منصوب شی، نو دا به مشروط وی په شروط ثلاثه سره، یو شرط په کښے دا دے چه فاعل د مفعول له اؤ فعل د مفعول له به واحد وی، نو دلته د اعتبار د پاره فاعل خو سیبویه دے اؤ که چیرے د خالف فعل لره فاعل اخفش شی، نو دا به مخالفت راشی، په مابین د فاعل د مفعول له اؤ د فاعل د فعل کښے اؤ مونږ خو ویلی دی چه د دواړو فاعل به یو وی.

**ولا یلزمه باب حاتم لما یلزم من اعتبار المتضادین فی حکم واحد.**

اؤ نه لازمیږی په سیبویه د اعتبار د وصفیت اصلیه نه په احمر کښے اعتبار د وصفیت په باب د حاتم کښے د وجے د اعتبار د متضادینو نه (یعنی د دوؤ وصفینو متضادینو) په یو اسم غیرمنصرف کښے، په همغه یو وصفیت دے اؤ بل علمیت دے اؤ دا ځکه متضادین دی، چه وصف دلالت کوی په ذات مبهمه باندې اؤ علمیت دلالت کوی په ذات معینه باندې اؤ دا دواړه د یو بل ضد دی اؤ په یو اسم کښے اجتماع د

نقیضین لحاظه ده. مراد په باب د حاتم سره هغه علم دے چه هغه په اصل کښې وصف وي سره د بقاء علمیت نه. حاتم ماصفت دے د پاره د شهور سخي، چه حاتم طائي دے. ولا یلزمه دا اعتراض دے، د جانبه د اخفش نه په سیبویه باندې چه هر کله تا اعتبار د وصفیة اصلي اوکړو په احمر کښې. پس د زائله کیدو د علمیة نه، نو یکار دا ؤ چه دا اعتبار نه په حاتم کښې هم اوکړې. پس جواب اوکړو مصنف د جانبه د سیبویه نه چه دا نه لازمیږي ځکه چه علمیت او وصفیة نه جمع کیږي، په یو اسم غیر منصرف کښې (د حاتم طائي اصلي نوم عبد الله بن سعد الطائي دے).

سوال. علمیة محقق د استضاد دے، د وصفیة محققه سره نه د وصفیة اعتباریه سره او دلته خو وصفیت اعتباریه دے.
جواب. وصفیة اعتباریه دا قیاس کښې شرط دے په وصفیة محققه باندې.

# درس نمبر ۸۳

**وجمیع الباب باللام او بالاضافة ینجر بالکسر** او ټول باب د غیر منصرف په سبب د دخول د لام تعریفي سره او په اضافت سره، د دغیر موته دا به مجرور وي، په صورت د کسرې سره، برابره خبره ده چه کسره لفظاً وي که تقدیراً وي. **سوال.** دلته ما با سببیه ده او لام ذات دے، لهذا به څنګه سبب شي. **جواب.** دلته مدخول د با محذوف دے چه دخول دے، نو تقدیر به داشي چه "وجمیع الباب بدخول اللام" او په الباب کښې دا الف لام بدل د اضافي دی، د مضاف الیه نه، چه هغه غیر منصرف دے، نو اصلي عبارت به داشي چه وجمیع باب غیر المنصرف. **سوال.** زه به درته اوښایم چه په غیر منصرف به لام داخل وي او بیا به هم مجرور په کسره سره نه وي، لکه غلام لاحمد بالمال لاحمد. **جواب.** مراد په لام سره لام تعریفي دے نه لام جاره او په لاحمد کښې لام جاره دے.
**سوال.** غیر منصرف به وي او اضافت به په کښې راغلے وي، بیا به هم مجرور نه وي او نه معنی والا چه په اضافت سره به هغه مجرور وي په کسره سره لکه غلام احمد. دلته کښې احمد مضاف الیه واقع شوے دے او بیا هم مکسور نه دے. **جواب.** مراد په اضافت سره اضافت د یه غیر منصرف دے، غیر موته نه اضافت د غیر په دته. **سوال.** زه به تاته اوښایم چه د غیر منصرف اضافت به غیر ته راغلے وي او یا به ورباندې الف لام داخل وي او بیا به هم کسره ورباندې نه وي داخله شوې (په سبب د عامل جاره سره) لکه حبلٰی مررت بالحبلٰی او یا مررت بحبلکم. **جواب.** کسره عامه ده برابره ده چه لفظاً وي که تقدیراً. دلته الحرکة لفظاً نشته، خو تقدیراً شته. **سوال.** ستا دا عبارت مشتمل دے په استدراک باندې، ځکه چه د ینجر نه پس د بالکسر ضرورت او فائده نشته. **جواب.** دانګه ده چه کوم به یو اسم مجرور وي، خو په کسره سره به نه وي. په دے وجه بالکسرې سره اوښوے. **سوال.** ینجر به یې نه وو وئیلي، بلکه صرف ینکسر به یې وئیلي وو.
**جواب.** د کسرې اطلاق په حرکات بنائیه باندې کیږي او مراد زمونږ حرکات اعرابیه دي. **سوال.** چه بالکسر یې اووئیل، نو کسره خو خاص دے په حرکات بنائیه پورے، او غیر و خو نصب په حرکات اعرابیه کښې ده.

جواب دا دے چه دلته کښې تقدیر دَ عبارت دے، هغه دا دے چه ینجر بصورة الکسر. سوال. پکار دا ده چه ـ یئ ینجر وئیلی وے اؤ نه ینکسر بلکه دا به ئې وئیلی وو چه ینصرف، یعنی جمیع الباب باللام والاضافة ینصرف لنو غیر په نوخه شوی وه؟ جواب. په دغه حالت کښې په انصراف اؤ عدم انصراف دَ نحویانو کښې خلاف دے. بعض والی چه منصرف دے. برابره خبره ده چه سببین باقی وی سره دَ لام اؤ اضافت نه یا نه وی باقی، که سببان نحوی باقی خو ظاهره دا چه دا منصرف دے اؤ که باقی وی، نو لام اؤ اضافة دَ خواصو معظمه مکبره دَ اِسم نه دی، نو قوی کیږی دیه سره جهة دَ اسمیة اؤ ضعیف کیږی به شابهت دَ فعل سره اؤ بعض والی چه غیر منصرف مطلقاً برابره خبره چه سببین باقی وی اؤ که نه وی، که سببین باقی وی، خو غیر منصرف شو ظاهراً اؤ که نه وی باقی، نو زوال عارضی لره اعتبار نشته. دریم مذهب دا دے چه په وخت دَ بقاء دَ سببین کښې غیر منصرف دے اؤ په وخت دَ عدم دَ بقاء کښې منصرف دے. سوال. چه هر کله دا غیر منصرف شو، نو چه څنګه ورباندې تنوین نه راځي، نو کسره دې هم ورباندې رانه شي. جواب. ممتنع په غیر منصرف باندې اصلاً تنوین دے اؤ کسره په تبعیة دَ تنوین کښې ورباندې منع ده. پس هر کله چه ضعیف شو مشابهت دَ ده په سبب دَ دخول دَ لام اؤ اضافت دَ فعل سره، نو اثر ئې اوګرځیده په سقوط دَ تنوین کښې چه متبوع دے، نه په تابع کښې چه کسره ده.

# درس نمبر ۴۸ ، المرفوعات

هر کله چه مصنف رح فارغ شو دَ بیان دَ مقدمی نه، نو شروع ئې اوکړه په مقاصدو کښې او وئیل چه المرفوعات. دلته احتمالات اربعه دی، یو دا چه دَ المرفوعاتُ خبر مضاف الیه دے اؤ مضاف اؤ مبتدا مرو دَ دیه محذوف دی، نو اصل عبارت به داسے شي چه هذا بحث المرفوعات ــ دوییم دا چه المرفوعاتُ مبتدا مضاف الیه ده اؤ مضاف اؤ خبر ئې محذوف دی، نو تقدیر دَ عبارت به داسے شي چه "بحث المرفوعات هذا" ــ دریم دا چه المرفوعات ساکن دے، دَ دیے دَ پاره عامل نشته دے اؤ دا واقع شوے دے دَ پاره دَ فصل په ملبن دَ بحثونو کښې اؤ ــ څلورم دا چه دَ المرفوعات مبتدا ده اؤ خبر ئې هو ما اشتمل الخ دے. سوال. المرفوعات ولې مقدم کړل په منصوباتو اؤ مجروراتو باندې؟ جواب. دَ دیے اعتراض دوه جوابه دی، یو دا چه مرفوعات قلیل دی اؤ منصوبات اؤ مجرورات کثیر دی. پس قلیل په منزله دَ بسیط ده اؤ کثیر به منزله دَ مرکب اؤ بسیط مقدم وی په مرکب باندې، دویم جواب دا دے چه مرفوعات مشتمل دی په عمده باندې چه هغه رفعه ده اؤ منصوبات اؤ مجرورات فضله دی اؤ عمده مقدم وی په فضله باندې.

فائده :- بسیط په دوه معنو سره راځي، یو په معنیٰ دَ عدیم الاجزاء چه اجزاء ورلره نه وی اؤ بل په معنیٰ دَ قلیل الاجزاء، چه یو شے وی اؤ دَ هغه اجزاء قلیل وی، په نسبت سره غیره، نو دلته هر بسیط والی اؤ دلته دا دوییمه معنیٰ مراد ده.

المرفوعات هو ما اشتمل علی علم الفاعلیة

مرفوعات یا دا جنس مرفوع دَ هغه اِسم

دے، چه مشتمل دے، د تبیع د اشتمال د موصوف نه په صفت باندې، په علامې د کون د اسم باندې فاعل او علامه ماته، چه لفظاً وی که تقدیراً وی که محلاً او د ضمه ده په مفرد او په جمع مکسر منصرفه او په جمع مؤنث سالمه کې لکه جاءنی زید ورجال ومسلمات او الف دے په تثنیه کښې لکه جاءنی رجلان او واؤ دے په اسماء سته مکبره او په جمع مذکر سالم کې لکه جاءنی ابوک او جاءنی مسلمون۔

## وجه د حصر

مرفوعات لوړل ثمانیه دی، وجه د حصر یې دا ده چه دا مطلب به خالی نه وی یا به لفظی وی یا به معنوی وی، که معنوی وی، نو بیا به خالی نه وی یا به مسند الیه وی یا مسند به وی، که مسند الیه وی، نو دا مبتداء د قسم اول، او که مسند به وی، نو بیا به خالی نه وی، یا به رافع وی اسم ظاهر لره، یا به نه وی، که وی هغه قسم ثانی د مبتداء دے او که نه وی، نو دا خبر دے او که لفظی وی، نو بیا به دا خالی نه وی، یا به فعل او شبه فعل وی او یا به حرف وی، که فعل او شبه فعل وی، نو بیا به خالی نه وی، یا به قائم وی په اسم پورے او یا به واقع وی، په اسم باندې۔ که اول وی نو فاعل او که پورے ثانی وی، نو مفعول، مالم یسم فاعله دے او که حرف وی، نو بیا به خالی نه وی، یا به مسند الیه وی، یا به مسند وی، که مسند الیه وی، نو بیا به خالی نه وی، یا به په کلام موجب کښې وی او یا به په کلام غیر موجب کښې وی۔ که چرته په کلام موجب کښې وی، لکه اسم د افعال ناقصه نیوا ملیس نه او که په کلام غیر موجب کښې وی، نو بیا اسم شو ملیس او د ما او لا مشبهتین بلیس او که چرته مسند وی، نو بیا به خالی نه وی، یا به په کلام موجب کښې وی، یا به په غیر موجب کښې وی، که په کلام موجب کښې وی، لکه خبر د حروفو مشبه بالفعل او که په کلام غیر موجب کښې وی، لکه خبر د لائ نفی جنس شو پس ما او ل ثمانیه اقسام شو۔



...(پاتے ذیل نقشہ)




**سوال.** مرفوعات به یا جمع دَ مرفوع والی اَوْ یا به جمع دَ مرفوعة. که جمع دَ مرفوع وائے، نو دا نه صحیح کیږي، ځکه چه مرفوع مذکر دے لَوْ دَ دے جمع به الف اَوْ به تاسره نه راځي، بلکه به الف اَوْ تا سره جمع دَ مؤنث راځي اَوْ که جمع ئې دَ مرفوعة وائې، نو دا خو صفت دے دَ پاره دَ اِسم اَوْ اسم مذکر دے اَوْ مطابقت ضروري دے په مابین دَ موصوف اَوْ دَ صفت کښې، نو دلته کښې مطابقت نشته. **جواب.** دا جمع دَ مرفوعة ده اَوْ که ته وائې چه مطابقت نه راځي په مابین دَ موصوف اَوْ صفت کښې، نو زهٔ وایم چه دا صفت واقع دے، دَ پاره دَ الکلمة، یعني الکلمة المرفوعة، نو مطابقت راغے، په مابین دَ موصوف اَوْ صفت کښې، یا دا چه دا جمع دَ مرفوع ده، که ته وائې چه الف اَوْ تا سره خو جمع دَ مؤنث راځي اَوْ دا خو مذکر دے، نو جواب دا دے چه دا بنا دے دَ غالتو په قاعده باندې چه دا مرفوع صفت دے دَ اِسم اَوْ هغه مذکر غیر عاقل دے اَوْ صفت دَ مذکر غیر عاقل راځي، په مؤنث سره، لکه ایام خالیات.

**سوال.** دا هو ضمیر به خالی نه وائې یا به ئې راجع کوے المرفوعات ته، نو مطابقت نه راځي، په مابین دَ راجع اَوْ دَ مرجع کښې اَوْ یا به ئې راجع کوے مرفوع ته، نو اضمار قبل الذکر لازمیږي. **جواب.** دا ضمیر راجع دے مرفوعات ته اَوْ که ته وائې چه مطابقت نشته، نو زهٔ وایم، چه دا بنا دے، دَ غالتو په قاعده باندې چه ضمیر کله دا ئې شي، په مابین دَ مبتداء اَوْ دَ خبر کښې، نو رعایت دَ خبر اولی دے، ځکه چه دے مفید دے دَ فائدے.

## درس نمبر ۸۵:-

لیکن دا جواب ضعیف دے، ځکه چه په دے سره لازمیږي تعریف دَ افرادو اَوْ تعریف دَ افرادو نه کیږي، بلکه تعریف دَ جنس کیږي، نو بل جواب دا دے، چه دا ضمیر راجع دے مرفوع ته اَوْ دلالت به په دے باندې، مرفوعات کوي، چه جمع دَ مرفوع ده. نو دا اضمار قبل الذکر حکمًا، دَ قبیلے دَ دلالت دَ جمع نه په مفرد باندې، خو دا جواب هم ضعیف دے، ځکه چه په دے کښې هم تعریف دَ افرادو لازمیږي، بلکه تعریف دَ جنس کیږي. پس حقه په جواب کښې دا ده، چه دا ضمیر راجع دے جنس مرفوع ته اَوْ دلالت کوي، په دے باندې مرفوعات دَ قبیلے دَ دلالت دَ جمع نه په جنس باندې اَوْ دا جواب محقق اَوْ صحیح دے.

**سوال**. جنس ولې جمع کيږي، ځکه چې د جنس اطلاق په جمع او په مفرد په توله برابر دے، لهٰذا مرفوعات جمع ولے راوړله؟ **جواب**. جنس کله جمع کيږي په اعتبار د کثرت د انواعو سره، لکه په فقه کښې راځي چې کتاب البيوع، لهٰذا د بيع جمع بيوع راغلی ده او بيع خو جنس دے، لهٰذا بهتيجه دا شوه چې په اعتبار د کثرت انواع سره دے. **سوال**. ظاهر متبادر د اشتمال نه اشتمال د کل دے په جزو باندې، لهٰذا چې ترے دا مراد شي، نو بيا به مرفوع بالحرکة د تعريف نه خارج شي، ځکه چې دا جزو د کلمې نه نه دے. **جواب**. مراد د اشتمال نه اشتمال د موصوف دے په صفت باندې، نه اشتمال د کل په جزو باندې. **سوال**. چې هر کله مراد په اشتمال سره اشتمال د موصوف دے په صفت باندې، نو بيا خو مرفوع بالحرکة داخل شو په تعريف کښې، ليکن مرفوع بالحروف ترے نه خارج شو، ځکه چې دا صفت د کلمې نه دے.
**جواب**. اعراب بالحرکة اصل دے او اعراب بالحروف فرعه ده، نو بيا چې کله اطلاق په اعراب بالحرکة د صفت اوشو، نو په تبع د دې کښې په اعراب بالحروف هم اطلاق د صفت اوکړے شو. يا دا چې صفت عام دے، حقيقتاً وي که حکماً، حقيقتاً لکه اعراب بالحرکة او حکماً لکه اعراب بالحروف. **سوال**. اطلاق د علم دے په حروفو او حرکاتو نه صحيح کيږي، ځکه چې علم اسم دے او حروف او حرکات اسماء نه دي، بلکه اوصاف دي. **جواب**. مراد په علم سره علامه ده په مشتمل وي په علامې د فاعليت باندې. **سوال**. نه منو دا خبره چې رفع علامه د فاعل ده، ځکه چې علامه د شي د هغه نه جُدا کيږي او رفع جُدا کيږي د ذات د فاعل نه. **جواب**. مراد په دې سره دا دے چې رفع علامه ده د کون د شي د فاعل، نه علامه د ذات د فاعل. **سوال**. تعريف د مرفوع دِ جامع نه شو افرادو خپلو له، ځکه چې خارج شو ترے نه "جاءني موسىٰ او جاءني هؤلاء" چې دا دواړه مشتمل دي په علامې د کون د شي باندې فاعل او بيا ذکر ورباندې رفعه نشته. **جواب**. علامه د فاعل عامه ده که لفظاً وي لکه جاءني زيدٌ او که تقديراً وي، لکه جاءني موسىٰ او که محلاً وي لکه جاءني هؤلاء.

## درس نمبر ۸۶

**فمنه الفاعل** | پس بعض د جنس مرفوع نه هغه فاعل دے يا بعض د جنس د ما اشتمل نه هغه فاعل دے. زده کړه دا خبره چې دلته اختلاف دے په مابين د جمهورو نحاتو او د محققين کښې چې اصل په مرفوعاتو کښې فاعل دے که مبتداء. پس د جمهورو په نزد باندې اصل فاعل دے بنا په دلائلو اربعه باندې. ۱:- فاعل اصل دے په مرفوعاتو کښې ځکه چې دا جزو واقع کيږي د جملې فعليې نه او جمله فعليه اصل ده په نسبت سره نورو جملو ته ځکه چې دا موافق ده د غرض د متکلم سره په اخبار او استخبار او په حدث د واقع کېدو په ازمنو ثلاثه کښې. پس چې جمله فعليه اصل شوه، نو جزو يې هم اصل شو. ۲:- عامل د عامل لفظي دے او عامل د مبتداء معنوي دے او عامل لفظي اقوی دے د عامل معنوي نه. پس معمول دې هم اصل شو. ۳:- فاعل عام دے په مرکب تام او ناقص دواړو کښې راځي، په خلاف د مبتداء چې په مرکب تام کښې راځي او ناقص کښې نه راځي. ۴:- عامل د فاعل محسوس دے او عامل د مبتداء غير محسوس دے او محسوس

اولیٰ أو اقوی وی، دَ غیر مخصوص نه. محققین وائی چه مبتداء اصل دهٔ په مرفوعاتو کښې، دَ هغوئ دَ پاره دوه[2] دلائل وی. ۱:- مبتداء قائمه آو باقی دهٔ، په ما هو الاصل باندې چه هغه تقدیر دے، ځکه چه اصل په محکوم علیه تقدیم دے، په خلاف دَ فاعل نه، چه هغه مؤخر دے. ۲:- مبتداء محکوم علیه دهٔ په حکم عامه سره ځکه چه دا جامد آو مشتق دَ دواړو نه محکوم علیه واقع کیږی، په خلاف دَ فاعل نه چه دے صرف دَ مشتق نه واقع کیږی آو دَ جامد نه نهٔ واقع کیږی. محققینو نه دَ جمهورو دَ طرف جواب، جمهور محققینو ته جواب ورکوی، دَ آول دلیل نه، چه فاعل هُم په ما هو الاصل باندې قائم آو باقی دے، ځکه چه اصل په فاعل کښې تاخیر دے، دَ فعل نه، لکه دَ کافیې صاحب وائی چه: والاصل ان یلی الفعل آو یا دا چه په فاعل کښې هُم تقدیم دے، لیکن تاخیر دَ دهٔ دَ صیغه دَ عارض نه راغلے دے، والعوارض لا تعتبر آو دَ هغوئ دَ دَوَیم دلیل نه جواب دا دے چه ځنګه مبتداء محکوم علیه دهٔ، په حکم عامه سره دغه رنګې فاعل هُم محکوم علیه دے، په حُکم عامه سره، لکه فاعل دَ افعال مدح آو ذم چه هغه جامد دے آو بیا ترې نه هُم فاعل واقع کیږی. پس مذهب دَ جمهورو مثبت دَ پاره دَ خپلے مدعیٰ وګرځید آو په مذهب دَ محققینو سره صرف آولویت دَ تقدیم دَ مبتداء معلومیږی. **سوال**. په منه کښې ضمیر چاته راجع دے.

**جواب**. دا دے چه دا ضمیر یا راجع دے مرفوع ته آو یا ما اشتمل ته آو دواړو ته یے ارجاع صحیح کیږی، که مرفوع ته راجع شی، نو هُم په کښې دوه[2] حسنه آو دوه[2] قبیح دی آو که راجع شی ما اشتمل ته، نو هُم دَ دوه[2] حسنه آو دوه[2] قبیح دی، چه راجع شی مرفوع ته، نو دوه[2] قبیح دا دی، چه یو به مرجع صریحی نه شی، آو بله چه مرجع به قریب نه شی آو دوه[2] حسنه دا دی چه یو به ارجاع دَ ضمیر ما هو المقصود ته راشی آو بل حسن دا چه انتشار دَ ضمائرو به لازم نه شی آو چه ما اشتمل ته راجع شی، نو دوه[2] قبیح دا دی چه ارجاع دَ ضمیر به ما هو المقصود ته لازم نه شی، ځکه چه په محدود آو په حد کښې مقصود محدود وی، نو چه ارجاع دَ ضمیر محدود ته او نه شی بلکې دا مقصود دے آو بله قبح دا ده چه انتشار دَ ضمائرو به راشی او که دوه[2] حسنه دا دی، چه مرجع به صریحی شی آو بل دا چه مرجع به قریب شی را

**وهو ما اسند الیه الفعل او شبهه** آو دا فاعل چه دے، دا هغه اسم دے، اسم عام دے، صراحتًا وی که تاویلًا، حقیقتًا وی که حکمًا، چه اسناد شوے وی دَ ته

اسناد اصالتًا نه اسناد بالتبع، په قرینې دَ ذکر دَ توالع سره په ما بعد کښې آو اسناد عام دے، تام وی که ناقص وی، خبری وی که انشائی وی، مثبت وی که منفی، محقق وی که مفقود وی دَ فعل آو یا دَ شبه فعل آو مراد فعل نه فعل اصطلاحی دے. **سوال**. ستا دا تعریف دَ فاعل مانع او نه ګرځید، دَ مفعول دَ غیره نه آو داخل شو په کښې فعل

---

[2] مصنف کښې چه کوم دوه حسنه دی هغه په دَوَیم صورت کښې قبیحے دی، دا دواړه صورتونه دَ یو بل عکس دی. (م-س).

په دے ترتیب کښې چه اعجبنی ان ضربت زیداً۔ دلته کښې ان ضربتَ دا فاعل دے، دَ پاره دَ اعجبنی اَوْ سوْ دَ دِے نه دافعل دے اَوْ فاعل خو قسم دَ مرفوع دے اَو دا قسم دَ اِسم دے۔ **جواب**. فاعل عام دے، صراحتًا وی که تاویلاً وی۔ دلته ان ضربتَ الرکۀ صراحتًا فاعل نه دے، لیکن تاویلاً فاعل دے، ځکه چه دا په تاویل دَ مصدر سره فاعل دے۔ هر کله چه ان مصدریه په فعل داخل شی، نو دا کوځی به تاویل دَ مصدر سره، نو تقدیر به عبارت به داسے شی چه اعجبنی ضربك زیداً۔ **سوال**. ستا دا تعریف مانع اونه کرځید، دَ دخول دَ غیرونه اَوْ داخل شو به کښې معطوف، په دے قول کښې چه جاءنی زیدٌ وعمرٌو۔ دلته کښې عمرو فاعل دے اَوْ دا معطوف دے۔ **جواب**. مُراد په اسناد سره اسناد بالاصالة دے اَوْ دلته په عمرو کښې اسناد بالتبع دے۔ **سوال**. په تعریف کښې اسناد مطلق ذکر دے اَوْ تا مقید کړو په قید دَ اصالتاً سره اَوْ دا خو نه دے، نو مجاز اَوْ ارتکاب دَ مجاز په تعریفاتو کښې ناروا دے **جواب**. ارتکاب دَ مجاز په تعریفاتو کښې په صفه وخت کښې ناجائز دے، چه قرینه داله نه وی اَوْ دلته کښې قرینه شته ځکه چه روستو ذکر دَ توابع راغلے۔ **سوال**. راوړل دَ لفظ دَ "اَوْ" ستا نه صحیح کېږی، په تعریف کښې ځکه چه لوَ راځی دَ پاره دَ تشکیك لوَ تعریف راځی، دَ پاره دَ ایضاح اَوْ دَ یقین اَوْ دا منافی دے تشکیك سره۔ **جواب**. اَوْ دَ پاره دَ تشکیك نه دے، بلکه دَ پاره دَ تنویع اَوْ دَ تقسیم راغلے دے۔[1]

## درس نمبر ۸

**وقدم علیه علی جهة قیامه به** اَوْ حال دا دے چه دا فعل یا شبهه فعل دا به مقدم کړے شوے وی، په دے فاعل باندے په تقدیم وجوبی نوعی سره، هغه اسناد چه واقع وی، په طریقے دَ قیام سره دَ فعل یا دَ شبهه فعل په فاعل پورے۔ برابره خبره ده چه دا فعل یا شبهه فعل دَ دے فاعل نه صادر وی اَوْ یا قائم وی، په ده پورے، یعنی نسبت دَ فعل یا دَ شبهه فعل دے فاعل ته شوے وی اَوْ دا صیغه دَ فعل معلوم وی۔ وقدم علیه دا حال واقع شوے دے اَوْ جمله فعلیه چه کله حال واقع شی اَوْ فعل په کښې دَ ماضی وی، نو په هغے باندے به قد داخلیږی، نو عبارت به داسے شی "وقد قدم علیه"۔ **سوال**. په قدم کښې ضمیر راجع دے، فعل اَوْ شبهه فعل ته اَوْ دا خود دوه څیزه دی، نو مطابقت راغلے، په مابین دَ راجع اَوْ دَ مرجع کښې۔ **جواب**. دا ضمیر راجع دے کل واحد ته اَوْ بل دا

---

[1] په دے مقام کښې اُستاذ صیب دَ مستفید ېنو دَ خوشطبعۍ دَ پاره یو لطیفه دَ درس په دوران کښې ذکر کوی هغه دا ده چه یو ملک دوه ځله دَ نیکه کیږو مبارکه سره وه اَوْ نوم یے شاه ګل وو، نو دوی یو کلی ته لاړل، چه هلته یو بل سړی کیږے سره وو، نو دوه ملک اسره چه پاباه غفد دے شاه ګل دے، نو نیکه وعده اُروے چه هر سړی کیږے خو شاه ګل نه وی، نو غفرنیکه هر "اَوْ" دَ پاره دَ تشکیك نه وی، ما الکما شعر

ما کل بیضاء شحمة ۔۔۔ وما کل سوداء تمرة

په وجه د لفظ د "أوْ" راوړے شوے دے چه "أوْ شبهه الخ" دے أوْ مراد په دے سره احد الامرین دے۔

**سوال** وارديږی چه "ستاد التعريف مانع" اُونه ګرځيدو د دخول د غیرونه اُوْ داخل شو په کښ مبتدا په دے ترکیب کښے چه کړيسن یکرمک "دلته مَن اِسم دے اُوْ صفت چه کريم دے هغه تړے نه مقدم دے اُوْ اسناد یٔ هُم د غه من ته شوے دے، لو تعريف د فاعل ورباندے صادقيږی اُوْ بيا هُم فاعل نه دے، بلکه مبتداء دہ۔ **جواب**۔ مُراد په تقديرسره تقديم وجوبي دے اُوْ دلته تقديم دخبر په مبتداء باندے لغلي دے، دا جوازی دے۔ **سوال**۔ تعريف د فاعل مانع نه شو د دخول د غیرونه اُوْ داخل شو په کښے رَجُلٌ په دے ترکیب کښے چه في الدار رجلٌ، ځکه چه رجلٌ مبتداء دہ اُوْ دلته خو تقديم وجوبي دے، لو یکار دا دہ چه دا د فاعل شي، ځکه چه د في الدار د پاره متعلق، فعل دے یا شبهه فعل دے اُوْ هغه مقدم دے په رجلٌ باندے په تقديم وجوبي سره اُوْ نسبت یٔ شوے دے رجلٌ ته، لو تعريف د فاعل په دے رجلٌ چه مبتداء دہ صادقيږی۔ **جواب**۔ مراد په تقديم سره تقديم وجوبي نوعي دے، نه تقديم وجوبي شخصي اُوْ دلته تقديم دخبر چه ظرف دے د انواعو نه دے، بلکه فردي دے (يعني د يو فرد تقديم واجب دے)۔ **سوال**۔ علی جهة قيامه به داجار مجرور دے اُوْ د دے د پاره اعراب محلي دے، لو د دے اعراب څه دے؟ **جواب**۔ د دے اعراب د نصب دے بنا بر مفعول مطلق، چه دا مفعول مطلق واقع شوی د اسند فعل نه۔ **سوال**۔ مفعول مطلق هغه ته وائی چه فعل مشتمل وی په هغه باندے د تيبے د اشتمال د کل نه په جزو باندے اُوْ دلته کښے اسند خو مشتمل نه دے په علی جهة قيامه باندے۔ **جواب**۔ دلته مفعول مطلق محذوف دے لکه هغه اسناداً دے اُوْ د هغے په صفت باندے علی جهة قيامه صفت او دروُلے شوے۔

**سوال** دا وارديږی چه علی جهة الخ جار مجرور متعلق غواړی اُوْ متعلق د دے که اسند شي، لو تقديم د صفت راځی په موصوف باندے اُوْ دا ناجائز دے، ځکه چه صفت مؤخر وی اُوْ مؤخر ځکه وی، چه دے تابع دے اُوْ موصوف مقدم وی، ځکه چه دے متبوع دے اُوْ که متعلق د دے اسناداً شي، لو اتصاف د شي راځی په خپل نفس پورے اُوْ دا هُم ناجائز دے۔ **جواب**۔ دلته کښے متعلق د علی جهة الخ محذوف دے چه واقعاً دے، لو تقدير به داسے شي، "وقدم عليه اسناداً واقعاً علی جهة قيامه به۔"

**سوال**۔ ظاهر متبادر د قيام نه حدوث اُوْ صدور دے، يعني ما فعل يا شبهه فعل به صادر اُوْ حادث وی د فاعل نه، لو بنا په دے معنی نسبت د مَاتَ په ماتَ زید کښے اُوْ نسبت د طال په طال عمر کښے نه صحيح کيږی۔ **جواب**۔ مُراد په قيام سره د فعل يا د شبهه فعل هغه نسبت د فعل يا د شبهه فعل دے فاعل ته برابره خبره دہ چه صادر وی، د دہ نه اُوْ که نه وی صادر اُوْ نسبت د فعل معلوم وی نه شوے وی۔

**سوال**۔ صاحب د مفصل خو په تعريف کښے علی جهة قيامه به قيد نه دے ذکر کړے، تا ولے دا قيد راعه کړو مخالفت د اُوکړو د اصل نه، ځکه چه کافيه ماخوذ دہ د مفصل نه اُوْ مفصل اصل دے؟

جواب. صاحب د منفصل مفعول مالم يسم فاعله درست ګرځولې دے په فاعل کښې او ابن حاجب نه دے داخل کړے، نو په دې تپه سره ابن حاجب ترے نه مفعول مالم يسم فاعله خارج کړو او هغه يې مستقل قسم اوګرځولو۔

**مثل قام زيد وزيد قائم ابوه**

اوّلنۍ مثال د هغه دے چې نسبت د فعل راغلے وی ناقل ته او دوېم مثال د هغه دے چې نسبت د شبهه فعل شوې وی ناقل ته۔ **سوال**. مثال دِ نه دے مطابق د ممثل سره، ځکه چې ته مثال د فاعل ذکر کوے او فاعل خو مفرد دے او تا په مثالونو کښې جمله ذکر کړه۔ **جواب**. دلته تقدير د عبارت دے، چې مثل زيدٌ فى قام زيدٌ او مثل ابوه فى زيدٌ قائمٌ ابوه۔ په اوّلنی مثال کښې فاعل زيد دے او نسبت ورته د قام شوے دے او په دوېم مثال کښې فاعل ابوه دے او نسبت ورته د شبهه فعل شوے دے، چې قائمٌ دے۔

## درس نمبر ۸۸

**والاصل ان يلى الفعل**

او راجح او ماينبغى خبره په فاعل کښې دا ده چې نزديکت د فاعل به راغلے وی، د فعل سره په وخت د عدم د مانع کښې په دې شان سره چې په مابين د فعل او د فاعل کښې معمول نه وی راتع شوی د معمولاتو د فعل نه، ځکه چې فاعل دا جزء دے د فعل نه معناً او لفظاً۔ هر چې دے معناً هغه په دې وجه باندې چې اثر د فعل بغير د فاعل نه راځی، او هر چې دے لفظاً، لکه په ضربتُ کښې چې دلته دا تا ضمير د فاعل دے او دے جزء واقع شوے دے د فعل نه، په دې وجه باندې لام کلمه (با) دا ساکن کړې شوی ده د باره د دې چې لازم نه شی توالی د اربع حرکاتو۔ پس که چرے دا جزء نه وے، نو بيا مونږ به کار ولو دا چې لام کلمه يې متحرکه کړے وے، لکه په ضربكَ کښې، ليکن دا چونکه جزء دے د کلمې نه (يعنى د فعل نه)، په دے وجه يې متحرکه نه کړه، لام کلمه لره، او په ضربكَ کښې (ك) ضمير د مفعول دے، په دې وجه دے جزء د کلمې نه (يعنى د فعل نه) نه دے، نو توالی د اربع حرکاتو په کښې راغلے ده۔ **سوال** اصل په معنىٰ د قانون او د قاعدے دے، نو معنىٰ به دا شی چې قانون په فاعل کښې دا دے چې نژدے به وی د فعل سره او زه به درته اوښايم چې فاعل به فعل سره نژدے نه وی، لکه په دې ترکيب کښې چې ضربكَ زيدٌ – دلته زيدٌ د فعل سره نژدے نه دے او سره د دې نه چې فاعل دے، او حال دا دے چې مخالفت د قانون نه په قوت د خطا کښې وی۔ **جواب**. اصل په معنىٰ د ماينبغى او اولى سره دے، نه په معنىٰ د قانون سره۔ **سوال**. فصل به واقع شوے وی په مابين د فعل او د فاعل کښې يعنى فاعل به د خپل فعل سره يلى نه وی، لکه جاء الرجل. دلته جاء فعل دے او رجل فاعل دے او په مابين د دوی کښې الف لام راغلے دے او ته وائے ان يلى الفعل؟ **جواب**. مراد په يلى سره دا دے چې په دوی کښې به فصل په معمول د دے فعل سره نه وی واقع شوے او دلته دا الف لام معمول د دې

نفل نه دے **سوال**: ستاسو خو وئیلی چه اصل ئی "ما ینبغی" دا ده چه فاعل به د فعل سره نزدے وی. دا خبره ستا نده صحیح ځکه چه په "ما ضرب زیدٌ الّا عمرو" کښے خو ممتنع دی یعنی نه دے پکار د فاعل د فعل سره حالانکه عمرو فاعل دے.

**جواب**: مراد په یلی کیدو د فاعل د فعل سره دا په وخت د عدم د مانع کښے دے او دلته کښے مانع موجود دے چه حرف استثناء دے یعنی واقع کیدل د فاعل دی پس د حرف استثناء نه.

# درس نمبر ۸۹

**فلذالک جاز ضرب غلامهٗ زیدٌ**

دا فا تفریعیه ده او دغه تعلیلیه ده پس د وجه د دے خبرے چه اصل په فاعل کښے یلی کیدل دی د فعل سره جائز دے، دا ترکیب چه ضرب غلامهٗ زیدٌ دے. مراد په دے ترکیب سره دا دے چه فعل وی او د فعل سره نزدے مفعول وی او د مفعول سره نزدے ضمیر وی چه راجع وی وروستو ذکر شوی فاعل ته، نو دلته کښے په غلامه کښے دا ضمیر راجع ده وروستو زید ته چه فاعل دے او دلته اضمار قبل الذکر اګر که لفظاً راغلے دے لیکن رتبتاً نه دے راغلے، ځکه چه فاعل په رتبه کښے مقدم دے په مفعول باندے. پس اضمار قبل الذکر لازم نه شو.

**وامتنع ضرب غلامه زیداً**

او ممتنع دے دا ترکیب چه ضرب غلامه زیداً. مراد په دے ترکیب سره دا دے چه د فعل سره فاعل یلی وی او په دے کښے ضمیر وی چه راجع وی وروستو مفعول ته، نو په غلامه کښے ضمیر راجع دے زید ته او هغه مفعول دے نو دا ترکیب ځکه ناجائز دے چه دلته لازمیږی اضمار قبل الذکر لفظاً او رتبتاً دواړه، ځکه چه دا مفعول دے او مفعول فضله دے او په فضله کښے اضمار قبل الذکر ناجائز دے. **سوال**: تاسو خو دلته تفریع کړے په اصل باندے چه اصل په فاعل کښے دا دے چه دے به یلی وی د فعل سره او تاسو چه کوم مثال ذکر کړو نو په اول مثال کښے خو د فعل سره فاعل یلی نه دے، بلکه مفعول یلی دے او تاسو دے ته جائز اُویلے او په دویم مثال کښے خو فاعل یلی دے او تاسو دے ته ممتنع اُویلے. دا څه وجه ده؟ **جواب**: دا تفریع په اصل نه ده، بلکه دا تفریع ده په هغه قانون باندے چه مستفاد دے د دغه اصل نه چه فاعل به مقدم وی په مفعول باندے. او س پوهه کړه دا خبره چه دلته کښے اختلاف دے په مابین د جمهورو نحاتو کښے او په مابین د ابن جنی او د اخفش کښے په دے ترکیب کښے چه ضرب غلامه زیداً دے. جمهور وائی چه دا ترکیب ممتنع دے ځکه چه په دغه وخت کښے لازمیږی اضمار قبل الذکر په فضله کښے او دا ناروا دے او ابن جنی نحوی اخفش وائی چه دا ترکیب جائز دے ځکه چه ځنګه اضمار قبل الذکر په عمده او په فاعل کښے جائز دے نو دارنګه په فضله کښے هم روا دے. د ابن جنی او د اخفش د پلوه دوه دلیله دی، یو دلیل نقلی دے او بل دے نه عقلی دے. دلیل عقلی دا دے چه ځنګه معنیٰ د فعل لازمی موقوف ده په فاعل پورے، نو دغه شان معنیٰ د فعل متعدی موقوف ده په مفعول پورے، د چه څرنګه اضمار قبل الذکر په فاعل کښے روا دے، نو دغه شان په فضله کښے هم روا دے او دلیل نقلی

دا دے، په دغه کښې په دے مصرعه کښې اضمار قبل الذکر د عمده راغلے. ع جزی ربُّه عنی عدی ابن حاتم، په دے مصرع کښې عدیّ ابن حاتم مفعول دے او د ربُّه ضمیر ورته راجع دے، دا اضمار قبل الذکر په عمده کښې نه دے، بلکه په فضله دے. **جواب** دا دے د دلیل عقلی نه، چه ستاسو په دلیل سره خو افضلیة د مفعول ثابت نه شو، د فاعل نه او نه ورسره مساوات ثابت شو، بلکه افضلیة د مفعول ثابت شو په نسبت سره غیر د فاعل نه او د دلیل نقلی نه جواب دا دے چه دا شعر دے او دلته اضمار قبل الذکر په فضله کښې د ضرورت شعری د وجے نه راغلے دے او د دویم جواب دا دے، چه دلته ضمیر عدی ابن حاتم "مفعول" ته نه دے راجع، بلکه دا راجع دے جزاء ته، چه دلالت ورباندې کوی جزیٰ فعل.

# درس نمبر ۹۰

**وإذا انتفى الإعراب فيهما لفظا والقرينة** او په هغه وخت کښې چه منتفی شی هغه امر چه دال دے په تعین د فاعلیة د فاعل او په مفعولیة د مفعول باندې بالوضع په فاعل او په مفعول کښې په لفظ کښې او منتفی شی هغه امر چه دال دے په تعین د فاعلیة د فاعل او مفعولیة د مفعول باندې بلا وضع، قرینه په لغت کښې علامې ته وائی او په اصطلاح کښې امر دال على تعيين الشئ ته وائی او دا عامه ده که لفظیه وی که غیر لفظیه وی، یعنی که قرینه مقالیه وی یا حالیه وی، او لکه په ضرب عمروا نه یکتلو اعراب د زید او عمرو دال دے په فاعلیة د زید او په مفعولیة د عمرو. دغه شان په ضرب موسیٰ حبلیٰ کښې قرینه لفظیه موجود ده، چه هغه فاعلیة د حُبلیٰ دے، د وجه د ضربت فعل نه، ځکه چه مونږ په مابین د فاعل او فعل کښې ضروری دے په تذکیر او په تانیث کښې نو چه هر کله فعل مؤنث وی نو پته اولګیده چه د دے فاعل هم مونث دے، چه حبلیٰ دے او په اکل الکمثریٰ یحییٰ کښې قرینه حالیه او غیر لفظیه ده، ځکه چه کمثریٰ (APPLE) ماکول واقع کیږی، نو پته اولګیده چه دلته مفعول کمثریٰ دے او په ضرب موسیٰ عیسیٰ کښې نه اعراب شته، چه هغه دال او ګرځی په تعین د فاعل یا د مفعول او نه قرینه شته، نه لفظیه او نه غیر لفظیه، چه دال او ګرځی په تعین د فاعل یا د مفعول باندې. **سوال**. ذکر د قرینې پس د اعراب نه مستدرك دے، ځکه چه قرینه هم امر داله ته وائی. **جواب**. اعراب امر داله ته وائی بالوضع او قرینه امر داله ته وائی بغیر الوضع. **سوال**. تاخو فيهما العبهم په عبارت کښې او دے سره لازمیږی اضمار قبل الذکر، ځکه چه دا راجع دے فاعل او مفعول ته، نو دلته کښې خو ذکر د فاعل راغلے دے او ذکر د مفعول نشته. **جواب**. ذکر عام دے صراحتًا وی که تقدیرا، دلته کښې اګرچه ذکر د مفعول صراحتاً نشته، لیکن تقدیرا شته، ځکه چه هغه کښې مثالونو کښې چه ضرب غلامه زید او ضرب غلامه زیدا ذکر د مفعول راغلے دے.

**أو كان مضمرا متصلا أو وقع مفعوله بعد الا أو معناها** او یا وی دا ضمیر د فاعل ضمیر مرفوع متصل برابره خبره ده، چه مفعول اسم ظاهر وی، لکه...... ضربت زیدا

اَوْ یا مفعول مضمر منفصل وی، لکه ماضربتُ الا ایاك اَوْ یا مفعول مضمر متصل وی، لکه ضربتك اَوْ یا واقع شوے وی مفعول دَ دِے فاعل۔ پس دَ الّا نه، لکه انما ضرب زیدٌ عمرواً (الّا او انما دواړه معنیٰ دَ حصر فائده کوی)۔

**وجب تقدیمه** دا جزا دهٔ دَ پاره دَ اذا په اذا انتفی کښ، یعنی چه کله منتفی اوګرځی، اعراب اَوْ یا قرینه یا فاعل ضمیر مرفوع متصل اَوْ یا واقع شوے وی مفعول دَ دِے فاعل پس دَ الّا نه اَوْ یا دَ معنیٰ دَ الا نه چه انما دے، نو په دِے ټولو صورتونو کښے تقدیم دَ فاعل په مفعول باندِ واجب دے۔

**سوال**: ما دا بهٔ درته اوښایم چه په ضمیر مرفوع متصل باندِ به تقدیم دَ مفعول راځی وی، لکه زیداً ضربتُ۔ دلته کښ "تُ" ضمیر مرفوع متصل دے اَوْ تقدیم دَ مفعول وړباندِ راغلے دے چه زیداً دے۔ **جواب**: تقدیم دَ مفعول په فاعل باندِ په دغه صورت کښے جائز دے، ځکه چه دلته خو تقدیم دَ مفعول په فعل اَوْ فاعل دواړو راغلے دے، اَوْ ځینو بعضی په تقسیم دَ مفعول کښے دَ، په فاعل باندِ چه ضمیر مرفوع متصل دے، فقط۔

**وجوهات** په صورت دَ انحصار کښ په دِے وجه باندِ تقدیم دَ فاعل واجب دے، په مفعول باندِ چه التباس رانه شی په مابین دَ فاعل اَوْ دَ مفعول کښے اَوْ په صورت دَ ضمیر متصل کښے په دِے وجه باندِ واجب دے، چه منافات دے، په مابین دَ اتصال اَوْ انفصال کښے اَوْ په صورت دَ الّا اَوْ دَ معنیٰ دَ الّا کښے په دِے وجه باندِ واجب دے، چه فوت نه شی هغه حصر مطلوبه اَوْ چه منقلب اُونه ګرځی، هغه حصر مقصوده، ځکه چه کله موږ دا اُووایو چه "ما ضربَ زیداً الّا عمرواً" نو مقصود زموږ دا دے چه، انحصار دَ ضاربیت دَ زید په عمرو کښے دے، اګرچه دَ عمرو دَ پاره نور هم ضاربین شته اَوْ دے دَ زید نه علاوه دَ غیرو یا هم مضروب واقع شوے دے، خو چه کله موږ دا اُووایو چه ما ضرب عمرواً الّا زیدٌ، چه ظاهر لره سِیوا دَ زید نه بل چا نه دے وهلے، نو هغه حصر منقلب اوګرځیدو۔

**واذا اتصل به ضمیر مفعول او وقع بعد الّا او معناها، او اتصل به مفعوله وهو غیر متصل وجب تاخیره.**

اَوْ په هغه وخت کښے چه متصل شی په دِے فاعل پورے ضمیر دَ مفعول، یعنی داسے ضمیر چه راجع وی مفعول ته، لکه په دِے قول دَ باری تعالیٰ کښے "واذ ابتلی ابراهیم ربّه" یا واقع شی دا فاعل پس دَ الّا نه اَوْ یا واقع شی پس دَ معنیٰ دَ الّا نه چه انما دے، لکه ما ضرب عمرواً الّا زیدٌ یا انما ضرب عمرواً زیدٌ اَوْ یا متصل شی دَ فعل سره مفعول دَ دِے فعل اَوْ حال دا دے، چه دا فاعل دَ دِے فعل

---

۱. لطیفه: ـ اُستاذ صاحب ... چه زموږ په کلی کښے دَ ... کان ... ضعیف العمر ... په ... نو هغه ... ما ... (م۔س)۔

متصل نه وي نو فعل سره، نو واجب دے تاخیر د فاعل د مفعول نه، په دے کې تولې صورتونه کېږي. هر چه دے په اوّل صورت کښې د دې دپاره چه اضمار قبل الذکر په فضله کښې رانه شي او هر چه دے په دویم صورت کښې چه حصر منقلب نه شي، چه مضروبیت د عمرو منحصر دے په زید پورې او په صورت د اتصال کښې منافات دے په مابین د اتصال او انفصال کښې.

## درس نمبر ۹۱

**وقد يحذف الفعل لقيام قرينة جوازا** | او کله کله حذف کیږي عامل رافع د فاعل په وخت د وجود د قرینې کښې. "بوابو خبره ده"

چه قرینه متحققه وي او که مقدره وي" په حذف جوازي سره. قد چه کله داخل شي په مضارع باندې په معنیٰ د تقلیل باندې راځي، اګر چه په معنیٰ د تحقیق هم راځي، لوئے دے نه داخوه معلومه شوه چه اصل په فاعل کښې دا دے چه فعل د هغه به مذکور وي، لیکن کله کله په وخت د وجود د قرینې کښې حذف کیږي هم شي.

**سوال**. چه څنګه فعل حذف کیږي، په وخت د وجود د قرینې، نو هغه شان شبه فعل هم حذف کیږي، تاوله ذکر د فعل او کړو او د شبه فعل د او نه کړو؛ **جواب** دلته مراد د فعل نه عامل رافع د فاعل دے. برابره خبره ده چه فعل وي او که شبه فعل وي؛ **سوال**. فعل د وله په ذکر سره خاص کړو؛ **جواب**. فعل اصل دے په عمل کښې؛ **سوال** بحث زموږ په فاعل کښې دے او تا شروع په بحث د فعل کښې او کړو؛ داخو نه دے مګر خروج د بحث نه. **جواب**. بحث د متعلقاتو د شي نه خروج د بحث نه دے ځکه چه فعل دا عامل رافع دے د پاره د فاعل؛ **سوال**. په لقیام کښې د لام نه ظاهر متبادر لام تعلیلیه مراد دے چه هر کله لام تعلیلیه شي په وخت د وجود د علت کښې وجود د معلول وجوبا لازم دے، یعنې وجود د علت مستلزم دے وجود د معلول لره وجوبا، نو چه کله په حذف باندې قرینه موجود شوه، دا علت شوه پاره د حذف. پس حذف وجوبا لازم شو او دا خو روستو واګه چه جوازا نو دلته کښې حذف وجوبي پکار دے، نه جوازي. **جواب**. دلته کښې د لام تعلیلیه نه دے، بلکه لام توقیته دے، لکه قرآن پاک کښې راغلی دی چه، أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ، لے وقت د دلوک الشمس! او یا دا چه دلته لام تعلیلیه دے او مراد په علت سره علت جوازي دے، نه علت وجوبي. دلته کښې مراد د قیام نه وجود دے او قیام نسبت قرینې ته نه صحیح کیږي، ځکه چه قیام په ذوی الاجسام کښې راځي او قرینه په دوه قسمه ده، یوه محققه ده، هغه په دے مقام کښې دا ده، چه سوال د سائل مذکور وي او دویمه مقدره ده چه سوال د سائل مذکور نه وي، بلکه مقدر وي. **سوال**. جوزا مفعول مطلق دے، په دے وجه منصوب دے لیکن دا نه دے صحیح ځکه چه مفعول مطلق مغ تو ولئ چه فعل په دۀ باندې مشتمل وي، د قبیلې د اشتمال د کل نه په جزء باندې او دلته خو حذف فعل نه دے، مشتمل په جوازا باندې. **جواب**. دلته مفعول

مطلق حذفاً دے او جولناً ئې صفت دے، دَ باب دَ مفعول مطلق، تقدیر به داسې شي، لقیامِ قرینة حذفاً جوازاً۔
**سوال** ۔ صفت خو حمل وي په خپل موصوف باندې او دلته جوازاً موصوف وصف دے، حمل دَ دې نه صحیح کیږي۔
**جواب** ۔ دلته دا جوازاً مصدر مبني للفاعل دے، یعني په تاویل دَ جائزاً سره دے، تقدیر به داسې شي یحذف الفعل لقیامِ قرینة حذفاً جائزاً۔

## في مثل زيد لمن قال من قامَ

په مثل دَ مفعول دَ زیدٌ کښې چه جواب واقع دے په مَنْ قامَ، نو په جواب کښې دلته اووائي چه زیدٌ، چه دا په اصل کښې قام زیدٌ دے۔ دا مثال دَ تعریف منطبق دے، ځکه چه دلته سوال چه مَنْ قامَ دے، هغه مذکور دے او دلته حذف جوازي دے او قرینه په حذف باندې موجود ده، چه هغه سوال دَ سائل دے او سوال کښې فعل مذکور دے، نو المذکور في السؤال كالمعاد في الجواب دَ قاعدے دَ لاندې په جواب کښې حذف دَ فعل راغلے دے، اوس زه کوم دا خبره چه دلته اختلاف دے په مابین دَ شیخ رضي او دَ ماتن کښې، چه دا زیدٌ چه کوم په جواب دَ سوال کښې راغلے دے، دا مبتداء دے، په نزد دَ شیخ رضي باندې او خبر ئې محذوف دے او په نزد دَ ابن حاجبؒ باندې دا فاعل دے او فعل ئې محذوف دے۔ دَ شیخ رضي دَ پاره دوه دلیلونه دي، یو دلیل عقلي دے او بل دلیل نقلي دے۔ دلیل عقلي دا دے چه مَنْ قامَ دا سوالیه جمله اسمیه ده۔ پکار دا ده چه جواب ئې هم جمله اسمیه راشي او دلیل نقلي دا دے چه په قرآن پاک کښې په جمله اسمیه سره سوال شوے دے، لکه قُلْ مَنْ ينجيكم من ظلمات البرِّ والبحرِ اٰو جواب ئې هم په جملهٔ اسمیه سره راغلے دے، لکه قل الله ينجيكم، نو مطابقت دَ جواب دَ سوال سره راغلے دے په جمله اسمیه کښې او دَ ابن حاجبؒ دَ پاره دوه دلیلونه عقلي هم او دوه دلیلونه نقلي دي۔ اَلْاَوّلُ دلیل عقلي دا دے چه دَ سائل شک په قیام کښې نه دے په مَنْ قامَ کښې بلکه شک ئې په فاعل کښې دے، نو پکار دا ده چه زید دې فاعل شي مبتدا دې نه شي — دَوَّیمُ دلیل عقلي دا دے چه، دَ حذف مخبر په صورت کښې، تکثیر للتغییر په حذف کښې، ځکه چه بیا به فعل حذف شي او بل به ضمیر او چه فاعل زید شي، نو حذف به صرف دَ فعل راشي او تقلیل دَ حذف اولٰی دے، دَ تکثیر دَ حذف نه۔ اَلْاَوّلُ دلیل نقلي دا دے چه په قرآن پاک کښې جمله اسمیه سوالیه راغلې ده او په جواب کښې ئې جمله فعلیه راغلې ده، لکه مَنْ يحيي العظام جمله اسمیه ده او په جواب کښې يُحْيِيهَا الَّذِي اَنْشَاهَا جمله فعلیه راغلې ده— دَوَّیمُ دلیل نقلي دا دے چه مَنْ خلق السموٰت والارض، دا جمله اسمیه ده او دَ دے په جواب کښې خلقهن العزيز العليم، جمله فعلیه راغلې ده۔ لهٰذا جواب دَ شیخ رضي دَ دلیل عقلي نه دا دے، چه دلته کښې اګر که په ظاهر کښې سوال جمله اسمیه ده، لیکن درحقیقت دا فعلیه ده، ځکه چه په اصل کښې مَنْ قَامَ داسې وو هل قامَ زیدٌ وهل قام بکرٌ وهل قامَ عمرو، نو دَ دوئي تطویل نه تعبیر په من قام سره اوشوه او جواب دَ شیخ رضي دَ دلیل عقلي نه دا دے چه اَللّٰهُ يُنَجِّيكُمْ مِنْهَا، دا بظاهر جمله اسمیه ده، لیکن په اصل کښې جمله۔

فعلیه ده. ځکه چه دا یې دے 'ینجیکم الله'. لیکن د دلته تقدیم د الله په فعل باندې راغلے د پاره د دے چه تقدیم د ماحقه التاخیر فائده کوی حصر او اختصاص، نو اعتبار اصل لره وی او هغه اصلیت کښې د جمله فعلیه ده نو مذهب د مصنف قوی دے.

# درس نمبر ۹۴

**شعر: لیبك یزید ضارع لخصومة ٭ ومختبط مما تطیح الطوائح!**

معنیٰ د شعر:- ژړا دې اوکړے شی په یزید باندې "څوک دې اوژاړی" هغه څوک دې اوژاړی چه کمزورے او ضعیف دے په وخت د جنګ کښې (ځکه چه دے یزید بن نهشل به د کمزورو او ضعفاؤ فریاد رسی او امداد کولو په وخت د جنګ د دوی کښې چه به وړاندې ظلم کولو او ژړا دې اوکړے شی په یزید باندې. څوک دې اوژاړی هغه کس چه هغه سائل بلا وسیله دے، د وجه د هلاکت د حوادثو نه. ځکه چه په ژوند وسره سړی به مصیبتونو راغلل، نو دا یزید به د هغه د پاره سهارا وه. اوس چه دے مړ شی نو دا سائل بلا وسیله به د حوادثو د لاسه هلاک شی).

**تشریح اللغات:-** ضارع په معنیٰ د کمزوری او ضعیف، مختبط "سائل بلا وسیله" ته وائی، تطیح په معنیٰ د تهلکے سره دے، الطوائح جمع د مطیحة ده 'خلاف القیاس' حوادث او مصیبتونو ته ئے نه مراد دی.

دا دویم مثال دے چه حذف په کښې جائز وی؛ په وخت د وجود د قرینه کښې. خو په دے کښې قرینه مقدره ده او په پورتنی مثال کښې قرینه محققه ده. دلته قرینه مقدره دا ده چه سوال د سائل په ظاهر کښې مذکور نه دے، بلکه مقدر دے ځکه چه دے وائی 'لِیُبْكَ یَزِیدُ' ژړا دې اوکړے شی په یزید باند، نو سوال پیدا کیږی چه مَنْ یبکیه. پس دا ضارع جواب دے، د دے سوال مقدر چه ژړا دې هغه اوکړی هغه کمزورے او ضعیف په وخت د جنګ کښې. **سوال.** نه خو دا که چه دلته سوال مقدر دے په دے سوال مقدر باندې څه قرینه ده؟ **جواب.** قرینه په دے سوال مقدر باندې صیغه د مجهول ده چه 'لیبك' ده، ځکه چه صیغه د مجهول پیدا کوی تردد او ابهام او د پاره د دفع د تردد او ابهام ضرورت پیښ شو سوال ته.

**سوال.** لخصومة جار مجرور دی که چرے دا په لیبك پورے متعلق شی، نو معنیٰ نه صحیح کیږی، چه ژړا دې اوکړے شی د وجه د خصومة نه. حالانکه دا معنیٰ نه ده، ځکه چه دلته کښې ژړا په مرګ د یزید باندې ده او که ضارع سره متعلق شی، نو دا هم نه دے صحیح، ځکه ضارع صیغه د اسم فاعل ده او دے به عمل کوی چه اعتماد ئے راغلے وی په یو د امورستة باندې چه هغه تیر شو نه مخکښې استفهام وی یا موصوف وی او یا موصول وی وغیره چه تفصیل ئے مونږ ته راروان دے او دلته کښې خو هیڅ یو امر هم نشته، چه ضارع دے باندې اعتماد کړے وی. **جواب.** لخصومة متعلق دے په ضارع پورے او که وائے چه لیکن... نه دے راغلے په یو د امورستة باندې، نو جواب دا دے چه 'لخصومة' دا ظرف دے او ده لره... ... د عمل بکار ده، یعنی یو کمزورے عامل هم په ده کښې عمل کولے شی او دویم جواب دا دے

چه مونږ اعتماد کړے دے، په موصوف محذوفه باندئ چه هغه شخص نه دے ذکر شوے اؤ یا د لحاظ د متن سره صحيح دے، ځکه چه مقصد په اولے مصرعه سره حاصل شوے دے اؤ بنا د متون په اختصار ده، نو د دے ذکر کول به غیر معقوليت نه ښکاريږي.[1]

## درس نمبر ۹۳

**وَوجوباً في مثل وان احد من المشركين استجارك**

اؤ حذف د عامل رافعه د فاعل په حذف وجوبي سره په وخت د وجود د قرينه اؤ حسد سيد کښ په مثل د دے ترکيب کښ چه آيت کريمه دے. مراد په دے سره هر هغه ترکيب دے چه حذف شوے وي عامل رافعه د فاعل، بيا د هغه تفسير راغلے وي، د پاره د رفع د ابهام، چه دا ابهام ناشي دے، د حذف د هغه نه د تکرارت نه اؤ دلته کښ حذف وجوبي دے، ځکه چه قرينه اؤ سد مسد په دے ترکيب کښ موجود دي. هرچه ده قرينه، هغه دخول د ان شرطيه دے په اسم باندے اؤ ان شرطيه په اسم باندے نه داخليږي، بلکه په فعل داخليږي اؤ دلته چه په اسم داخل شوے دے، نو معلومه شوه چه فعل حذف دے اؤ هرچه دے سد مسد هغه قيام د مفسر دے، په ځائے د مفسر باندے. پس تقدير د آيت دا شان دے چه "وان استجارك احد من المشركين استجارك" اؤ دلته کښے حذف په دے وجه باندے واجب دے چه جمع راتلل په مابين د مفسَّر اؤ مفسِّر کښ. پس حذف شو اول استجارك اؤ ثاني تلفظ شو په مقام د اول باندے اؤ دلته دا وجوباً عطف دے په جوازاً باندے اؤ جوازاً صفت دے، د پاره د مفعول مطلق محذوفه چه حذفاً دے، نو دلته کښ. وجوباً صفت دے د پاره د حذفاً اؤ هلته کښے تاويل شوے وو، په جوازاً کښے اؤ په معنیٰ د جائز سره کړے شوے وو، نو دلته به هم دا په معنیٰ د واجباً سره شي. سوال. تاسو وائے چه جمع په مابين د مفسَّر اؤ مفسِّر کښ (يعنے تفسير کښ) نه شي راتلے اؤ حالانکه په بعضے آيت کښ جمع راغلي دا، په مابين د مفسر اؤ تفسير کښ، لکه "اني رأيت احد عشر کوکباً والشمس والقمر رأيتهم لي ساجدين". دلته کښ رأيتهم د اول رأيت د پاره تفسير واقع شوے دے. جواب. راغلے دے جمع په مابين د تفسير اؤ مفسر کښ هلته چه دا تفسير د پاره د مجرد تفسير وي اؤ دلته کښے د پاره د مجرد تفسير نه دے، بلکه د پاره د اظهار د جملے اولے دے. سوال. تاسو وائے چه جمع ناروا ده، په مابين د مفسَّر اؤ د تفسير کښ، حالانکه په جاء ني رجل اے زيدٌ کښے جمع راغلے ده، چه دلته کښے رجل مفسَّر دے اؤ زيدٌ مفسر دے. جواب. دلته کښے مفسِّر وسيلي دی، په معنیٰ د عبارت کښ چه ما

---

[1] د دغه مقصد چونکه په اوله مصرعه کښ حاصل شو اؤ ځيري ده، مصرعه ثاني، نو دا اګر چه د مقام د توضيح سره مناسبه نه ده، ليکن شارح حامي صاحب ځکه نقل کړي ده، نو غرض د دے نه تشريح د لفاظو ده اؤ بل غرض په کښ مشق اؤ تمرين د طالبانو دے. (م.س).

تفسیر راغلے دے، د پاره د رفع د ابهام، چه نلشی وی، د حذف نه نه د نکارت نه اؤ دلته کښے دا تفسیر چه ای زیدٌ دا ناشی دے د نکارت نه، نه د حذف نه۔ پس دا قسم ترکیب روا دے۔

**وقد یحذفان معاً فی مثل نعم لمن قال اقام زیدٌ** اؤ کله کله دا فعل اؤ فاعل دواړه حذف کیدے شی په وخت د وجود د قرینے کښے، په حذف جوازی سره، په مثل د نعم سره نعم کښے۔ دلته فعل اؤ فاعل دواړه حذف دی، یعنی نعم قام زیدٌ په دے کښے حذف جوازی دے اؤ حذف وجوبی نه دے، ځکه چه حذف وجوبی هلته کښے وی، چه قرینه اؤ سد مسد دواړه وی اؤ دلته قرینه خو شته، مگر سد مسد نشته۔ پس دا حذف جوازی شو اؤ حذف وجوبی نه شو۔ قرینه دلته کښے سوال د سائل دے، چه اقام زیدٌ۔ دلته کښے فعل لکه فاعل دواړه مذکور دی په سوال کښے، اؤ المذکور فی السوال کالمعاد فی الجواب۔ **سوال**۔ دلته خو حذف وجوبی شی اؤ نعم دے قائم مقام په مقام د فعل اؤ فاعل دواړو باندے۔ **جواب**۔ نعم حرف دے غیر مستقل دے اؤ فعل اؤ فاعل معاً مستقل دی اؤ غیر مستقل قائم مقام د مستقل نه شی واقع کیدے۔ **سوال**۔ دا قاعده منتقضه شوه په یا حرف ندا باندے، ځکه چه یا حرف دے اؤ قائم مقام دے د فعل چه ادعو دے، په یا زیدٌ کښے، لو غیر مستقل قائم مقام د مستقل (چه فعل دے) واقع شوے دے۔ **جواب**۔ یا قائم مقام د فعل دے، دا قاعده سماعی ده اؤ په سماع باندے پورے شی نه شی قیاس کیدلے۔

## درس نمبر ۹۲

**واذا تنازع الفعلان ظاهراً بعدهما** اؤ هغه وخت کښے چه شتت د تقاضا اوکړی دوه عاملین د معمولیت د اسم ظاهر چه هغه واقع وی، وروستو د دے فعلینو نه په دے شان سره چه یو عامل تقاضا کوی چه دا دِ زما معمول اوګرځی اؤ بل تقاضا کوی چه دا دِ زما معمول اوګرځی لو دا معمول هم صلاحیت د دے خبرے لری چه دے دِ معمول واقع شی، د هر واحد پاره په سبیل د بدلیت سره۔ دا مشهوره مسئله د علم نحو ده، چه دے ته تنازع د فعلین والی۔

**سوال**۔ تنازع چه څنګه په دوه فعلین کښے راځی، لو دغه شان په دوه شبه فعلین کښے هم راځی، تا ولے خاص کړو په ذکر سره فعلین؟ **جواب**۔ ذکر د فعلین دے اؤ مراد ترے نه عاملین دے۔

**سوال**۔ بکاره ده چه بیا عاملین ذکر کړے وے۔ **جواب**۔ ذکر د فعلین د وجه د اصالت نه دے، چه اصل اؤ قوی په عواملو کښے فعل دے۔ **سوال**۔ تنازع چه څنګه په دوه فعلین کښے راځی، لو دغه شان په ډیر و کښے هم راځی، لکه کما صلیت وسلمت وبارکت ورحمت وترحمت علی ابراهیم۔ پس تا ولے صرف دوه فعلینو ته نسبت اوکړو؟ **جواب**۔ دوه فعلین د پاره د حصر نه دی، بلکه اقله مرتبه د تنازع بے ذکر کړه چه هغه دوه دی، کما ازکم اؤ زیات چه هر څو مره وی۔ **سوال**۔ نسبت د تنازع ستا فعلین ته

نهٔ صحیح کیږی ننګ چې تنازع په نحوی الروح او حیوانانو کښې راځی او فعلین خو غیر ذوی الروح دی۔ **جواب**۔ د تنازع لغوی معنیٰ ده چه هغه باېک دیګر نزاع ساختن، یعنی یو بل سره جګړه کول دی او بله معنیٰ اصطلاحی ده هغه داده چه په شفقت سره تقاضا کول دی، د دوه عاملینو د معمولیت د اسم، چه پس د دوی نه وی او دا اسم هم صلاحیت د دې خبرې لری، چه د دواړو د پاره معمول واقع شی په طریقه د بدلیة سره۔ **سوال**۔ دلته ظاهراً صفت دے او د هر صفت د پاره لابدی ده د موصوف نه، لو د دې د پاره موصوف څه دے؟

**جواب**۔ د دې د پاره موصوف اسم دے او دا ظاهراً منصوب دے بنا بر مفعولیة۔ **سوال**۔ تنازع خو باب تفاعل دے او باب تفاعل، لازمی دے او د لازمی د پاره مفعول نه راځی۔ **جواب**۔ باب تفاعل دا منقول دے د باب مفاعله نه او باب مفاعله په دوه قسمه دے، یو هغه دے چه متعدی وی د دوه مفعولینو ته او بل هغه دے چه متعدی وی یو مفعول ته۔ دلته کښې مراد اول دے، چه متعدی وی دوو مفعولینو ته، خو چکله چه باب تفاعل ته راوړلو نو یو مفعول ته یئ متعدی کړو۔ زه کوم دا خبره چه باب تفاعل کښې او مفاعله کښې ما فرق دے، چه په مفاعله کښې معنیٰ د غلبه په ته ده او دواړه دوه جانبین (دوه څیزه) غواړی، خو په باب مفاعله کښې یو ته نسبت د مفعول کیږی او بل ته د فاعل لکه چه په دوی کښې کوم یو مغلوب وی نسبتاً نو هغه ته نسبت د مفعول اوشی لکه ضارب زیدٌ عمرواً او په باب تفاعل کښې یو ته هم نسبت د مفعول نه کیږی، ځکه چه معنیٰ معلوم برابر دی، په غلبه کښې په دې وجه جُدا شی، چه تضارب زیدٌ عمروٌ په ظاهراً سره لفتراز رالځ د اسم ضمیر نه۔ برابره خبره ده چه متصل وی که منفصل وی، که ضمیر متصل وی، خو بیا متعین دے اعمال د ثانی، ځکه چه دا ضمیر کالجزء او ګرځیدو د هغه فعل نه او نه دی حیاتی عمل ورکول، یو د فعلین ته په جز د فعل آخر کښې، لکه ضربت و اکرمته۔ دلته کښې په اکرمته کښې دا ضمیر د منعول متعین دے، د پاره د اعمال د فعل ثانی په اوصت دے، ځکه چه دے کالجزء دے، د دغه او د دې د مفعول د پاره د فعل اوّل چه ضربت دے هم اوکلے واقع شوے دے او که ضمیر منفصل وی، لکه ما ضرب و اکرم الاّ انا، په دې کښې اګر چه تنازع شوی دے، لیکن صورت د قطع د تنازع په کښې نه دے ممکن چه اعمال فعل ثانی لو دے، په نزد د بصرینو او اضمار دے په اوّل کښې، ځکه چه په دغه صورت کښې یا لازمیږی اضمار د حرف او یا دا چه هر کله ضمیر متصل کښې تنازع نه وه، نو حمل کړے شو او قیاس کړے شو، ضمیر منفصل په دهٔ باندې۔

# درس نمبر ۹۵

**بعدهما** | لے واقعاً بعد الفعلین، چه دا اسم ظاهر واقع شوے وی، پس د دے فعلینو نه، بعدهما د پاره متعلق محذوف دے، چه واقعاً دے او دا ځکه به وی، پس د فعلینو نه، که چرے په اوّل یا په وسط کښې نو تنازع نشته، ځکه چه په دغه وخت کښې به متعین وی اوّل۔

**فقد یکون فی الفاعلیة مثل ضربنی و اکرمنی زیدٌ** | دلته کښې دا فاجزائیه ده لو ـــ جواب.

محذوف دے، چہ اذا کان الامر کذالک فقد یکون، اَؤ یا دا فا تفریعیہ، یعنی تفریع دہ چہ ماقبل بانلو اَؤ دا ترکیب راج دے، ځکہ چہ پہ دغہ صورت کښے، تقدیر دَ عبارت تہ ضرورت نشتہ - پس کلہ وی دا تنازع دَ دوے فعلین پہ کوت دَ یو اِسم ظاهر کښے فاعل یعنی هَر یو دَ دوے فعلین نہ دا تقاضا کوی، چہ دا اِسم ظاهر دِ زما دَ پاره فاعل وی، لکہ ضربنی واکرمنی زیدٌ دے، دوئی تقاضا دَ فاعلیۃ دَ زید کوی -

**وفی المفعولیہ مثل ضَرَبْتُ واَکْرَمْتُ زیداً** اَؤ کلہ دا تنازع دَ دوے فعلین راشی پہ کوں دَ اِسم ظاهر کښے مفعول یعنی هَر یو فعلین نہ دا تقاضا کوی، چہ دا اِسم ظاهر دِ وی، زما دَ پاره مفعول، لکہ پہ مثل دَ ضربتُ واکرمتُ زیداً، چہ هر یو فعل تقاضا کوی چہ زیداً دِ زما دَ پاره مفعول شی -

**اوفی الفاعلیۃ والمفعولیۃ مختلفین** اَؤ یا وی دا تنازع دَ فعلین متنازعین یا پہ فاعلیۃ اَؤ یا مفعولیۃ دَ اِسم ظاهر کښے پہ حال دَ کون دَ دوے فعلین کښے چہ مختلفین وی،

دَ حیثیت دَ اقتضاء نہ پہ دے شان سرہ چہ یو تقاضا دَ فاعلیۃ دَ اِسم ظاهر کوی اَؤ تقاضا دَ مفعولیۃ دَ اِسم ظاهر کوی. دلتہ دا مختلفین حال اَؤ صحیح کیږی دَ فعلین نہ - پس معنیٰ بہ دا شی چہ پہ حال دَ کون دَ دے فعلین کښے چہ مختلفین وی اَؤ یا دا خبر دے دَ پاره دَ کان - پس تقدیر بہ داسے شی، ان کان الفعلان مختلفین - مصنف نعلین مقید کړو پہ قید دَ مختلفین سرہ دَ پاره دَ دفع دَ توهم چہ ضرب ضرب زیدٌ اَؤ ضربتُ ضربتُ زیداً خو هُم دَ دوے تنازع نہ دے، لو ما توهم دفع شو پہ دے قید سرہ، چہ دلتہ کښے فعلین مختلفین نہ دی، ځکہ چہ دلتہ کښے ثانی فعل تاکید دے دَ پاره دَ اَوّل، پہ مختلفین بانلو - **سوال** وارد یږی، چہ ذکر دَ مختلفین دے، پس دَ فاعلیۃ اَؤ مفعولیۃ نہ مستدرک دے، ځکہ چہ دَ صفوی پہ اقتضاء کښے خو اختلاف ظاهر دے - **جواب**. تنازع پہ فعلین کښے پہ فاعلیۃ اَؤ مفعولیۃ کښے پہ دوه قسمہ، یوه دا دہ چہ اتحاد وی پہ تقاضا کښے اَؤ متنازع فیہ متعدد وی، لکہ ضربوا اَؤ ضرب نیذ عمرواً، دلتہ کښے اتحاد پہ تقاضا کښے دے، هَر یو فعل والی چہ زیدٌ اَؤ عمرو مالره معمولین اوګرځی - اَؤ قسم هغہ دے چہ اختلاف وی، پہ تقاضا کښے اَؤ متنازع فیہ واحد وی، لکہ ضربنی واکرمتُ زیداً، پہ دے کښے یو فعل تقاضا کوی، چہ زید زما دَ پاره فاعل شی اَؤ بل دَ فعل تقاضا دَ مفعولیۃ دَ زید دہ، لو دلتہ کښے دا دَ دویم قسم مراد دے - **سوال** لو بیا خو حصر دَ تنازع پہ دے اقسام کښے باطل شو، ځکہ چہ خلورم قسم هم پہ کښے موجود شو - **جواب**. آیک قسم مندرج دے پہ قسمین اَوّلین کښے - **سوال**. تا خو دَ اَوّلنو قسمونو مثالونہ ذکر کړل اَؤ دَ دریم قسم مثال دِ دے ذکر نہ کړو؟ **جواب**. ذکر عام دے، صراحتاً وی کہ ضمناً - دلتہ کښے اگر کہ مثال صراحتاً ذکر نہ دے خو ضمناً ذکر دے، ځکہ چہ یو فعل دَ اَوّل قسم نہ را واخلہ اَؤ بل فعل دَ دویم قسم نہ را واخلہ، لو قسم ثالث بہ ترے نہ جوړ شی، لکہ اَوَد دے چہ ضربنی واکرمت زیداً یا اکرمت وضربنی زیدٌ -

**فیختار البصریون اعمال الثانی والکوفیون الاول** ما فا جزائیہ دہ، دَ پاره دَ اذا

شرطیه یالتوزیع ده، په جواز باندې چه نفتیکون دے، یاجزاءده، دَشرط متقدم، دَ بصریونو مراد. ءاه دَ بعضې دی اَوْ په بصریون کښې دا ولې اَوْ لون نسبتی دی اَوْ په بصره کښې د باکسره ده - زړه کړه داخبره چه دلته کښې اختلاف دے، دَ غالتو دَ بصره کښې اَوْ په مابین دَ غالتو دَکوفه کښې - نحات دَ بصرې والې چه په صورت دَ تنازع کښې په عمل ورکولے شی، فعل ثانی لره، یعنی عمل ثانی لره اُولیٰ دے، سره دَ جواز دَ عمل دَ فعل اول نه اَوْ دا ځکه چه اسم ظاهر قریب دے، فعل ثانی ته اَوْ الحق للقریب ثم للبعید اَوْ نحات دَکوفې والې چه، اعمال ورکول فعل اول لره اُولیٰ دے، سره دَجواز دَعمل دَ فعل ثانی نه، ځکه چه حقوق والې دا فعل اول متقدم دے لکه اللفضل المتقدم لکه السابقون السابقون - پس دَمصنفؒ په نزد باندې مذهب دَ بصریانو اَولیٰ دے اَوْ دَقرب نه علاوه یله وجه دَ اولویت دا ده، چه په صورت دَ عمل ورکولو کښې فعل اول ته فصل راځی، په اجنبی سره، په مابین دَ عامل اَوْ دَ معمول کښې اَوْ دا خلاف الاصل دے، ځکه چه اصل په معمول کښې دا دے، چه دے دې یلی وی، دَ عامل سره - بل دا چه اعمال ورکول فعل ثانی لره، په قرآن پاک کښې راغلی دی، لکه هَاؤُمُ اقْرَءُوْا كِتَابِيَهْ، لکه اٰتُوْنِیْٓ اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا اَوْ دغه شان په کلام دَ فصحاءوُ عربو کښې اَعمال راغلے دے، فعل ثانی لره -

## فان اعملت الثانی اضمرت الفاعل فی الاول

دلته دا تفصیلیه ده، الثانی صفت واقع شوے دے، دَ موصوف محذوف، چه هغه الفعل دے اَوْ دغه شان الاول هم صفت دے، دَ پاره دَ الفعل - پس کله چه ته عمل ورکړے فعل ثانی لره چه دا اسم ظاهر دے معمول اوګرځی، دَ پاره دَ فعل ثانی، لکه چه څنګه مذهب بصریانو دے، نو ضمیر دَ فاعل به راوړې، په فعل اول کښې، کله چه دې دواړو فعلونو تقاضا دَ فاعلیت دَ اسم ظاهر کوله، ځکه چه دَ پاره دَ رفع دَ تنازع طرق ثلثه دی، یو اظهار دے، یو حذف دے اَوْ بل اضمار دے، که دلته کښې اظهار کوې، نو تکرار لازمیږی، اَوْ تکرار شنیع دے اَوْ که حذف کوې نو حذف دَ عمدې لازمیږی، په ضرورت سره سره نه اَوْ دا ناجائز دے - پس متعین شو اضمار اَوْ اضمار قبل الذکر نه لازمیږی، ځکه چه دا عمده دے اَوْ په عمده کښې اضمار قبل الذکر روا دے، په شرط دَ تفسیر په مابعد کښې - یوه خبره چه دلته یو ضابطه ده، په اضمار کښې، هغه دا چه ما اضمار به خالی نه وی، یا به په عمده کښې وی یا به په فضله کښې وی، کله چه به په عمده کښې وی، بیا به یا به شرط دَ تفسیر محض وی اَوْ یا به په شرط دَ تفسیر ما وی، په شرط دَ تفسیر محض، لکه هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ اَوْ په شرط دَ تفسیر ما، چه ته والی چه، معلوم وی اَوْ تفسیر هم وی، لکه جاءلی واکرمت زیدا اَوْ چه نه په شرط دَ تفسیر محض وی اَوْ نه په شرط دَ تفسیر ما نو دا ناجائز دے اَوْ که چرته دا اضمار په فضله کښې وی، نو دا هم دغه شان په دوه طریقو سره دے، یو په شرط دَ تفسیر محض یو په شرط دَ تفسیر ما اَوْ یو بغیر دَ دے دواړو نه، نو که چرته په شرط دَ تفسیر محض وی، نو جائز دے اَوْ دا نور دَوه صورتونه ناجائز دی -

—— ✶ ——

# درس نمبر ۹۶

**دون الحذف** نه حذف یعنی په فعل اوّل کښې به اضمار د ضمیر کیږي اوحذف نه شي کیدے ځکه چه حذف د عمده لازمیږي او دا ناجائز دے، ځکه چه فعل موقوف دے په فاعل باندې۔

**خلافاً للکسائی** دا خلافاً مفعول مطلق دے د فعل محذوف، چه خالف دے یا یخالف دے،

یعنی یخالف القول بالاضمار دون الحذف خلافاً للکسائی، هغه والی چه په دغه صورت کښې به فاعل حذف کولے شي ځکه چه د پاره د رفع د تنازع طرق ثلاثه دي، یو اضمار دے یو حذف دے یو اظهار دے، دلته کښې اضمار کوو نو که چه ځکه بصریانو کړے دے، نو لازمیږي اضمار قبل الذکر او د هغه په نزد باندې اضمار قبل الذکر په عمده او په فضله دواړو کښې صحیح نه دے او که اظهار کوو نو لازمیږي تکرار نو پس حذف متعین شو، خو په کسائي باندې سوال واردیږي چه دلته کښې خو حذف د عمده راغلے او دا ناجائز دے۔

**جواب**. حذف د عمده په هغه حالت کښې ناجائز دے چه چرته کښې سد مسد او مقام نه وي او دلته کښې ځو حذف د فاعل راغلے دے. اوس چه په مذهب د بصریانو باندې اعمال د فعل ثاني اوشي او اضمار په فعل اول کښې راشي او دواړه تقاضا د فاعلیت د اسم ظاهر کوي، نو دا به څه شي، ضربني واکرمني زید۔ دلته کښې په ضربني کښې ضمیر دے چه هغه راجع دے زید ته او زید فاعل د اکرمني دے، ضرباني واکرمني الزیدان۔ دلته کښې د ضرباني د پاره فاعل هغه ضمیر د تثنیه دے او د اکرمني الزیدان فاعل دے، په ضرباني کښې ضمیر موافق د اسم ظاهر راغلے دے، ضربوني واکرمني الزیدون د ضربوني فاعل هغه ضمیر د جمع راجع دے الزیدون ته، او د دے په موافق کښې ضمیر د جمع راوړے شوے دے۔

**وجاز خلافاً للفراء** دلته کښې دا جمله معترضه ده او جائز دے اعمال د فعل ثاني په وخت د اقتضاء د فعل اوّل کښې د فاعلیت د اسم ظاهر او د دے قول نه خلاف کړے دے فرّاء نحوي، د هغه په نزد باندې ناجائز دے ځکه چه هغه والی چه یو نقصان به دے د دوه خبرو کښې لازمیږي یعنی احد المحظورین لازمیږي یا اضمار قبل الذکر او یا حذف د فاعل او دا دواړه ناجائز دي د دوئ په نزد په حذف د فاعل باندې قائل دے کسائي او په اضمار باندې قائل دي جمهور نحاة۔

**وحذفت المفعول ان استغنی عنه** او نه به حذف کړے مفعول، که چرے بے پرواه نه وي، د دے مفعول نه په دے شان سره چه دا مفعول د افعال قلوب نه نه وي ځکه چه د پاره د رفع د تنازع طرق ثلاثه دي یا اظهار دے یا اضمار دے یا حذف۔ دلته که اظهار کوو نو لازمیږي تکرار او که اضمار کوو نو لازمیږي اضمار قبل الذکر په فضله کښې او دا ناجائز دے۔ پس متعین شو حذف۔

**والا اظهرت** او که چرته بے پرواه نه وي نو بیا به اظهار د مفعول کیږي په دے شان

سره مې فعل د افعال قلوبو، ځکه چه د پاره د رفع د تنازع طرق ثلاثه دي، حذف دے، اظهار دے او اضمار دے. که حذف کړو، نو لازمیږي حذف د یو د مفعولینو د افعال قلوبو او دا ناجائز دے، ځکه چه افعال قلوب د مفعولینو مضمون لري دے، په دیے شان سره چه دویم مفعول مصدر راواخله او مفعول به ته یې مضاف کړي، نو دا به مضاف او مضاف الیه شي، په کښې شدت اتصال دے، حذف د یو په کښې نه راځي او یا دا چه بعض حضرات وائي چه دا مبتدا او خبر دي، او په مبتدا او خبر کښې حذف د یو نا روا دے، لکه حسبني وحسبت زیداً منطلقاً. دلته کښې حسبني دا تقاضا کوي چه منطلقاً دې زما د پاره مفعول ثاني شي او حسبت دا تقاضا کوي، چه دا د زید د پاره مفعول ثاني شي. دلته کښې حذف نه شي کیدے، ځکه چه مضمون د مفعولینو یو دے، چه هغه انطلاق زید دے، نو مصدر د منطلقاً مضاف شو زید ته، نو په دے کښې حذف نه شي کیدے، ځکه چه د دوئ بینابین کښې شدت اتصال دے او نه اضمار کیدے شي، ځکه چه لازمیږي اضمار قبل الذکر. پس متعین شو اظهار، نو د حسبني د پاره منطلقاً مستقل راوړے شو. پس تقدیر د عبارت به داسے شي چه حسبني منطلقاً وحسبت زیداً منطلقاً.

## درس نمبر ۹۷

**وان اعملت الاول اضمرت الفاعل في الثاني** او که چرته ته اعمال اوکړے یعني فعل اوّل کښې یعني عمل ورکړے فعل اوّل لره، لکه څنګه مذهب د کوفیانو دے او تقاضا کوله فعل ثاني د فاعلیة د اسم ظاهر، نو ضمیر د فاعل به راوړې په فعل ثاني کښې، ځکه چه د پاره د رفع د تنازع طرق ثلاثه دي، اظهار دے، اضمار دے او حذف دے، که چرته اظهار کړو، نو لازمیږي، تکرار او تکرار شنیع دے او که چرته حذف کړو، لازمیږي حذف د عمده په غیر د سد مسد نه او دا ناجائز دے. پس متعین شو اضمار لکه ضربني واکرمني زیداً. دلته کښې الاول او الثاني دا صفتونه دي او موصوف د معمولو الفعل دے.

**والمفعول على المختار** ضمیر به راوړے د پاره د مفعول که چرته دے، فعل ثاني تقاضا کوله، د مفعولیة د اسم ظاهر، بنا په مذهب مختار باندې (او عمل ورکړے شي فعل اوّل لره چه کوم مذهب د کوفیانو دے)، د پاره د دیے چه متوهم وهم او نه کړي، چه مفعول د فعل ثاني مغایر دے د مذکوره او حذف کړے به شي بنا په مذهب غیر مختار باندې، ځکه چه د پاره د رفع د تنازع طرق ثلاثه دي، اضمار دے، اظهار دے، حذف دے، که اضمار کړو، نو لازمیږي اضمار قبل الذکر په فضله کښې او دا ناجائز دے او که چرته اظهار کړو، نو لازمیږي تکرار. پس متعین شو حذف، ځکه چه دا فضله دے او حذف د فضلے جائز دے.

**الا ان یمنع مانع فتظهر** مګر په هغه وخت کښې چه مانع پیدا شي، د اضمار، لکه چه مذهب مختار دے او مانع پیدا شي، د حذف نه، لکه مذهب غیر مختار دے، نو بیا به اظهار متحقق کیږي، په دیے شان سره چه دا دواړه فعلین متنازعین د افعال قلوبو نه دي، ځکه چه دا

دَرفع دَ تنازع طرق ثلاثه دی، اضمار دے حذف دے او اظهار دے اکثر چرته حذف کوو. لوالمرس ی حذف دَیو دَ مفعولین دَ افعال قلوب اَوْ دا ناجائز دے، ځکه چه مقاد دَ دواړه یودی (ځکه چه دوئ دواړه یلمضاف اَو مضاف الیه دی اَو یا مبتدا اَوْ خبر دی) اَوْ که چرته اضمار کوو، لو هم نه صحیح کیږی، لکه په دے قول کښ حسبنی و حسبتهما الزیدان منطلقا. دلته کښ حسبنی دا اقتضا کوی چه، دا منطلقاً دِ زماد یاره مفعول ثالث شی اَوْ حسبتهما وائی چه، دا دِ زماد یاره مفعول ثالث شی اَوْ الزیدان دا فاعل دے. دلته کښ مونږ عمل فعل اَوّل له ورکړے دے. اوس که دلته اضمار کوو، لو یا به ضمیر مفرد راوړو اَوْ یا د تثنیه، که چرته ضمیر د مفرد راوړو اَوْ داسے ووایو چه، حسبنی حسبتهما ایاه الزیدان منطلقا، لو په مابین دَ مفعولین دَ افعال قلوب کښ مطابقت نه راځی ځکه چه یو مفعول تثنیه دے اَوْ بل مفرد دے اَوْ که چرته ضمیر دَ تثنیه راوړو، لو مطابقت نه راځی په مابین دَ راجع اَوْ دَ مرجع، لکه چه اَوْ وایو حسبنی وحسبتهما ایاهما الزیدان منطلقا، لو مطابقت رانغی په مابین دَ راجع اَوْ دَ مرجع کښ، ځکه چه مرجع مفرد دے اَوْ ضمیر دَ تثنیه دے. پس هر کله حذف هم نه صحیح کیږی اَوْ اضمار هم نه صحیح کیږی، لو متعین شو اظهار. پس تقدیر به داسے شی، حسبنی وحسبتهما منطلقین الزیدان منطلقا. سوال. دلته خو دَ سره تنازع متحقق نه دے، ځکه چه یو فعل تقاضا کوی، دَ مفعول مفرد اَوْ بل تقاضا کوی، دَ مفعول دَ تثنیه اَوْ دلته دا مفعول مفرد دے. پس متعین دے دَ پاره دَ فعل اَوّل، ځکه چه هغه مفعول غواړی. جواب. دلته تنازع په هغه اِسم کښ دے، چه هغه متصف دے په صفت دَ انطلاق سره، یعنی ذات من له الانطلاق. برابره خبره ده چه هغه مفرد وی اَوْ که تثنیه وی.

وقول امرء القیس ع کفانی ولم اطلب قلیل من المال | په دے عبارت سره مصنف

جواب ورکوی، دَ جانب دَ بصریینو، کوفیانو

ته اَوْ رد دے، په کوفیانو باندے په دے شان سره چه، امرء القیس افصح دَ شعراؤ دَ عربو دے اَوْ جاهلی دے. دَده په شعر کښ تنازع متحقق شوی ده اَوْ ده عمل ورکړے دے، فعل اَوّل له، لو دَ دے نه معلومیږی چه، زمونږ یعنی دَ کوفیانو مذهب اولیٰ دے، هغه مصرعه دَ امرء القیس دا ده چه، کفانی ولم اطلب قلیل من المال. دلته کښ تنازع په قلیل من المال کښ راغلی ده، کفانی تقاضا کوی چه دے دِ زماد یاره فاعل وګرځی او لم اطلب تقاضا کوی چه، دے دِ زماد یاره مفعول شی اَوْ دلته کښ دے مرفوع دے چه فاعل واقع شوے دے، دَ یاره دَ کفانی فعل اَوّل. لو امرء القیس اعمال ورکړے دے، فعل اَوّل له. مصنف په دے عبارت رد اوکړو اَوْ وے وئیل چه ستاسو به استدلال کښ راوړل دے مصرعه دَ امرء القیس له په اَوْلویت دَ مذهب دَ کوفیانو نه دے صحیح.

لیس منه لفساد المعنی | دا دلیل اَوْ دا مصرعه دَ باب دَ تنازع دَ فعلین نه نه ده،

دَ وجه دَ فساد دَ معنیٰ نه، په صورت دَ تنازع کښ چه هغه اجتماع دَ نقیضین ده. تفصیل دَ دے دا دے، چه دَ دے مصرعے اَوّله مصرعه هغه مُصَدَّر ده په لَوْ سره. په لَوْ کښ دوه معنی

بنه ـ یو دا چه لو راځی د پاره د انتفاء د ثانی د وجه، د انتفاء د اول نه او بله دا چه لو کله داخل شی په مثبت باندې هغه منفي کوي او چه داخل شی په منفي هغه بیا مثبت کوي او معطوف په حکم د معطوف علیه کښې کوځی یعنی په هغه کښې چه څنګه عمل کوي هغه عمل به په معطوف کښې هم کوي ـ که چرته په شرط دا خو شی هغه که مثبت وی نو منفي کوي او که منفي وی مثبت کوي او په جزاء کښې هم دغه شان عمل کوي ـ

**ولو انما اسعیٰ لادنیٰ معیشة . کفانی ولم اطلب قلیل من المال**

دلته کښې لو داخل شوے دے په انما اسعیٰ باندې او دا مثبت دے ـ پس بنا په دویمه مقدمه باندې دا منفي کوځی په دے ترتیب سره چه نو معنیٰ دا شوه چه ګر چرته کښې عدم سعی وے نماد پاره د لادنیٰ معیشة، دغه شان کفانی مثبت دے، د لو په وجه به مونږ معنیٰ د نفي او کړو چه عدم کفایت دے او لم اطلب د صیغه د نفي ده، د لو په وجه به د دی معنیٰ د مثبت او کړی ـ پس په صورت د تنازع کښې به معنیٰ دا شی چه ما کافی نه وی مالو قلیل مال او ما طلب کړے قلیل مال، چیکله د لو نه کافی کیږی قلیل مال ـ نو دے طلب نه شو د قلیل مال او بیا ولی چه نه طلب کو قلیل مال دا نه ده، مګر اجتماع د نقیضین او اجتماع د نقیضین باطل ده ـ په دے وجه باندې دا د باب د تنازع د قبیلې نه نه دے او دلته کښې قلیل من المال دا متعین دے فاعل د اول د پاره او د دویم فعل مفعول مقدر دے چه هغه مجد او عزت دے ـ یعنی لم اطلب المجد والعز او دلیل په دے باندې بیت دے چه ولکنما اسعیٰ لمجد مؤثل ؛ وقد یدرك المجد المؤثل امثالی لیکن زه کوشش کوم د پاره د حصول د بزرګی

# درس نمبر ۹۸

**مفعول مالم یسم فاعله**

هرکله چه مصنف فارغ شو د بیان د قسم اول د مرفوعاتو نه نو شروع ئے او کړو په قسم ثانی د مرفوعاتو کښې ـ پس دے ته ویل شی مفعول مالم یسم فاعله ـ **سوال**. مصنف ولے دا مفعول مالم یسم فاعله مندرج نه کړو په منها سره لکه چه څنګه ئے ویلی دی په فاعل کښې فمنه الفاعل او په مبتدا کښې ولی ومنها المبتدا والخبر نو دلته کښې به ئے ویلی وو چه منها المفعول مالم یسم فاعله؟ **جواب**. دا د وجه د شدت اتصال د مفعول مالم یسم فاعله نه د فاعل سره دلته ئے فصل رانه وړو، تر دے چه بعض نحاة وائی چه مفعول مالم یسم فاعله عین فاعل دے ـ **سوال**. د اماده خو ستا نه عبارت وائے یا به ئے عبارت رانه د فعل نه لو یا شبه فعل نه او یا د دوار د نه، که د فعل نه ئے عبارت وائے نو مفعول مالم یسم فاعله چه د فعل نه راځی، دغه څرنګه د شبه فعل نه هم راځی او که عبارت ئے وائے د شبه فعل نه نو هم نه صحیح کیږی ځکه چه مفعول مالم یسم فاعله د شبه فعل نه راځی داسے د فعل نه هم راځی او که چیرے د دوارو نه ئے عبارت وائے نو لازمیږی عموم د مشترک او دا ناجائز دے ـ **جواب**. دا عبارت دے د فعل نه او عبارت په حذف د مضاف او په حذف د معطوف علیه سره دے، تقدیر به داسے شی چه مفعول الفعل او شبهه لم یسم فاعله ـ

**سوال**. ذکر د فعل د دے خاص کړو چه مفعول الفعل یې اوویلے؟ **جواب**. ماں وجه د اصالت نه ځکه چه فعل اصل دے. **سوال**. په عبارت د مصنف کښې تضاد دے ځکه چه د لوړيم نه معلوميږي چه ذکر د فاعل نه وي موجود او د دويم نه پته لګي چه حذف فاعله چه فاعل د ده حذف وي، او د دے نه معلوميږي چه فاعل يې موجود دے، خو حذف کړے شوے دے، داخو نو صفه ګڼه تضاد. **جواب**. لوليګو به معنی د لومړي کوسره دے. **سوال**. نسبت د فاعل خو فعل ته کيږي او تا مفعول ته اوکړو په فاعله کښې. **جواب**. نسبت د فاعل مفعول ته د وجه د ادنیٰ ملابست نه دے ځکه چه مفعول هم د متعلقاتو د فعل نه دے

**كل مفعول حذف فاعله واقيم هو مقامه**

دا هر هغه مفعول دے چه حذف کړے شوے وي، فاعل د ده او اودروے شوے وي، مفعول په ځائے د فاعل باندې يعنی اسناد د فعل يا د شبهه فعل مفعول ته شوے وي.

**سوال**. تعريف خو د ماهيت او د حقيقت کيږي او تعريف د افرادو نه کيږي. دلته کل راغلے دے او کل راځي د پاره د احاطې د افرادو لپاره د کل ستا دلته به تعريف کښې نه صحيح کيږي. **جواب**. دلته کل د پاره د احاطې د افرادو نه دے راغلے بلکه د پاره د جمعيت او منعيت راغلے دے. **سوال**. مفعول به خو ښکه قائم مقام د فاعل شی ځکه چه فاعل هغه ته وائي چه فعل د ده نه صادر شوے وي يا حادث وي، فعل د ده نه او مفعول هغه ته وائي چه واقع وي فعل د فاعل به ده باندې لو په مابين د دواړو کښې خو منافات دے. **جواب**. مراد د اقامة د مفعول نه په مقام د فاعل باندې، اسناد د فعل دے يا د شبهه فعل دے ده ته. **سوال**. ستا تعريف مانع نه شو د دخول د غير نه او داخل شو په کښې ربيع په دے ترکيب کښې چه انبت الربيع البقل (سپرلی سبزه راټوکوله)، ځکه چه انبات خو حقيقتاً الله تعالیٰ کوي. هغه فاعل حقيقي دے. دلته کښې هغه حذف کړے شو او د هغه په ځائے ربيع راوستلے شو، لو په ده خو هم تعريف د مفعول ما لم يسم فاعله صادقيږي. **جواب**. خبره زموږ به فاعل نحوي کښې دے، نه په فاعل حقيقي کښې.

**قاعده**: حذف د فاعل کله د وجه د شهرت نه کيږي او کله د وجه د عظمت د فاعل نه کيږي او کله د وجه د خساست د فاعل نه کيږي او کله د وجه د جهالت د فاعل نه کيږي (يعنی فاعل معلوم نه وي).

## درس نمبر ۹۹

**شرطه ان تغير صيغة الفعل الى فُعِل او يُفْعَلُ** — او شرط د پاره د حذف د فاعل او

---

ل. مثال د هغه چه د وجه د شهرت او د وجه د عظمت نه حذف شوے وي، لکه خلق الانسان ضعيفا او مثال د هغه چه د وجه د جهالت نه حذف شوے وي، لکه شتم الامير او مثال د هغه چه د وجه د خساست نه حذف شوے وي، لکه ضرب اللص. ۱۲ ۰۲ س

په اقامت د مفعول لپاره په ځای د فاعل باندې دا دے چه متغیر کیږي به صیغه د فعل وزن د فُعِلَ او یُفْعَلُ ته
ته مراد په فعل سره فعل ماضي مجهول دے او یُفْعَلُ سره فعل مضارع مجهول دے۔ برابره خبره ده چه دا دواړه د
ثلاثي مجرد وي که مزید وي او رباعي وغیره وي ځکه چه په فعل مجهول کښې نسبت د فعل په ځای د فاعل باندې
مفعول ته کیږي او دا یو امر غریب دے (او معنیٰ غریبه ده)۔ پس محتاج شو نحاة د دے د پاره یو وزن غریب ته
پس دا وزن غریب وټاکلے شو د پاره د دے چه غرابت د وزن دلالت اوکړي په غرابت د معنیٰ باندې۔
**سوال**۔ تا خو اوئیل چه د مفعول مالم یسم فاعله د پاره شرط دا دے چه تغیر د فعل به راځي، نو فعل یا
یفعل مثله، نو په شبه فعل کښې خو تغیر نه وي راغلے لکه یا الیف ... او مفعول مالم یسم فاعله چه څنګه په فعل
کښې راځي، هم دغسې په شبه فعل کښې هم راځي۔ **جواب**. ذکر د فعل د وجه د اصالت نه دے، چه دلیل
دے ان لم یغیر صیغة الفعل او په شبه فعل کښې به تغیر د صیغې راغلے وي، مفعول مثله۔ **سوال**. فعل او یفعل
خو شامل دي صرف ثلاثي مجرد ولره، نو د دے نه ثلاثي مزید او رباعي وغیره خارج شو۔
**جواب**۔ دلته کښې ذکر د ماضي او د مضارع ثلاثي مجرد دے، لیکن مراد ترے نه مطلق ماضي مجهول
او مضارع مجهول دي، لکه مفعُعِّل یا استُفعِل یا افوعل تفوعل الخ او یا یُستفعَل یضارب یُتَفَعَّل الخ وي۔
**سوال**۔ د غرابة د وزن د پاره صیغه د فِعُلَ (مکسور الفاء مضموم العین) ډیره مناسبه وه، دا به د ... راوړي
ولے ځکه چه دا غریب هم دے او اثقل هم دے۔ **جواب**. د وزن مقصد په فُعِلَ سره حاصل شوے دے
چه ثقیل دے۔ پس د اولو دا ثقل ته ضرورت نشته۔ ر

## ولا یقع المفعول الثاني من باب علمت والثالث

او نه به واقع کیږي مفعول ثاني په ځای د فاعل باندې د باب د علمت
ته۔ مراد په علمت سره هغه فعل دے چه هغه دوؤ مفعولونو ته متعدي کیږي، لکه علمتُ زیداً فاضلاً، ځکه
چه مفعول ثاني د باب د علمت د دے اسناد راغلے دے مفعول اوّل ته په اسناد تام سره، ځکه چه دے په
حقیقت کښې خبر دے، نو که چیرته دے موږ فاعل واقع کړو، نو لازم به شي یو شے هم مسند الیه او هم مسند او دا
باطل دے، ځکه چه فاعل خو مسند الیه وي، نقط۔ **سوال**. دا مونږ درته اوښایو چه یو اسم به هم مسند الیه وي
او هم مسند لکه اعجبني ضربُ زیدٍ۔ دلته کښې ضرب هم مسند الیه دے، ځکه چه دے فاعل دے د
اعجبني او د اسناد هم شوے دے زید ته، نو دا مسند واقع شوے دے، نو یو اسم هم مسند دے او هم
مسند الیه۔ **جواب**. مراد په اسناد سره اسناد تام دے او دلته په اعجبني ضربُ زیدٍ کښې د ضرب اسناد
زید ته اسناد تام نه دے، ځکه چه دا مضاف او مضاف الیه دي په مضاف، مضاف الیه کښې اسناد تام

---

ر. د لطیفے په شکل یوه مقوله ده چه په کوم سړي لږ ضرورت نه حاجت وي۔ ۱۲ (م. س.)

نه وي۔

# درس نمبر ۱۰۰

**والثالث من باب اعلمت والمفعول له والمفعول معه کذالك.**

اَوْ مفعول ثالث دَ باب اعلمت لکه اعلمتُ زیداً عمراً فاضلاً اَوْ مفعول له اَوْ مفعول معه دا هُم په شان د مفعول ثالث دَ باب دَ علمت دی، یعنی لکه چه څنګه مفعول ثالث دَ باب دَ علمت په ځائے دَ فاعل نه شي واقع کیدے، لو همغه شان مفعول ثالث دَ باب دَ اعلمتُ اَوْ مفعول له اَوْ مفعول معه دا هُم په ځائے دَ فاعل نه شي واقع کیدے۔ هر چه دے مفعول ثالث دَ باب اعلمتُ دَ دهٔ اسناد تام راغلے دے، مفعول ثالث ئے ته۔ او کَس که چرته دے موږ په ځائے دَ فاعل راولو نو دے به مسند الیه شي۔ پس لازم به شي یو شے هم مسند اَوْ هم مسند الیه اَوْ دا باطل دے اَوْ هر چه دے مفعول له، نو دے څنګه نه شي واقع کیدے په ځائے دَ فاعل باندې څکه چه په ده کښے به یا النصب ولاړ اَوْ یا به نه ولاړ، که نه ولاړ، نو بیا خو علامه دَ مفعول له دَه اَوْ علامه نه حذف کیږي اَوْ که ولاړ، نو مفعول مالم یسم فاعله خو منصوب نه وي، بلکه مرفوع وي۔ **سوال**۔ نه به درته اوښایم چه مفعول له به وی اَوْ دے به مفعول مالم یسم فاعله واقع شوے وي، لکه ضرب للتادیب۔ **جواب**۔ دلته کښے مفعول له نه دے، مفعول له مراد دے، چه بغیر دَ لام نه وي اَوْ ماخوذ دَ لام نه دے اَوْ هر چه دے مفعول معه، نو دے څنګه مفعول مالم یسم فاعله نه واقع کیږي، چه دے به یا سره دَ واؤ نه قائم مقام دَ فاعل وي اَوْ یا بغیر دَ واؤ نه، که سره دَ واؤ نه وي، نو دا نه صحیح کیږي، څکه چه واؤ راځي دَ پاره دَ انفصال اَوْ په مابین دَ فعل اَوْ دَ فاعل کښے شدت اتصال دے، حتی کښے دے کالجزء دَ فعل نه اَوْ که بغیر دَ واؤ نه ئے راوړو، نو دا خو علامه دَ مفعول معه ده، بیا حذف دَ علامے راځي اَوْ والعلامة لا تحذف۔ **سوال**۔ پکار دا ده چه ظرف دِ هُم قائم مقام دَ فاعل واقع نه شي، څکه چه نصب دَ دهٔ هم علامه دَ مفعولیت دَ دهٔ ده۔ **جواب**۔ ظرفیة دَ ده کوته دَ نفس صیغې نه معلومیږي، په دے وجه ئے ذکر نه کړو۔

**واذا وجد المفعول به تعین له**

اَوْ په هغه وخت کښے چه موجود کړے شي مفعول به په کلام کښے سره دَ نورو مفاعیلو نه، چه صحیح وي اقامت دَ هغو په مقام دَ فاعل باندې، نو متعین کیږي به، دا مفعول به په ځائے دَ فاعل باندې دَ وجه دَ شدت مشابهت دَ ده نه دَ فاعل سره په توقف اَوْ په تعقل کښے یعني چه څنګه فعل متعدي محتاج وي فاعل ته، نو دغه شان محتاج وي مفعول به ته (لکه چه څنګه ضرب بغیر دَ ضارب نه نه راځي، نو دا شان دَ مضروب نه هم نه راځي)۔

**فائده**:۔ دَ فعل دَ پاره درے وجوده دي، یو وجود خارجي، دویم وجود ذهني او دریم وجود لفظي په وجود خارجي کښے فعل محتاج دے فاعل ته، مفعول ته، ظرف ته، آلے ته اَوْ په وجود ذهني کښے محتاج دے فاعل ته اَوْ مفعول ته اَوْ په وجود لفظي کښے محتاج دے صرف فاعل ته۔ دلته بزرګے نه مراد وجود ذهني

دے۔ سوال: اذا وجد الخ شرط دے او جزاء یے تعین له دے، نو دلته خو شرط او جزاء دواړه یو دی، چه مفعول به دے، حالانکه په شرط او جزاء کښے تغایر ضروری وی۔ جواب: دلته په عبارت کښے تقدیر دے یعنی اذا وجد المفعول به مع سائر المفاعیل تعین له۔ سوال: دلته دا تعین مستدرک دے، ځکه چه مفعول به بغیر له جمیع شی د مفعول له سره او د مفعول معه سره، نو مفعول به خو په خپله متعین دے، ځکه چه مفعول له او مفعول معه د فاعل قائم مقام نه شی کیدے۔ جواب: مراد د مفاعیل نه هغه مفاعیل دی، چه صحیح وی اقامت د هغوی په ځائے د فاعل باندې او د مفعول له او معه اقامت په ځائے د فاعل نه صحیح کیږی.

**لتقول ضرب زید یوم الجمعة امام الامیر ضربا شدیدا فی داره فتعین زید ..**

په دے عبارت کښے زید مفعول به دے او دے کښے نور مفاعیل سره په دے ترکیب کښے لفظ د یوم الجمعة ظرف زمان امام الامیر ظرف مکان، ضربا مفعول مطلق دے د پاره د نوع په اعتبار د صفت سره او شدیدا دا صفت او قید دے، د پاره د ضربا او داره دا هم مفعول به دے، په واسطے د حرف سره، اوس عبارت داسے دے چه ضرب محمود زیدا۔ پس عمرو چه فاعل وو، حذف کړے شو او د هٔ په ځائے باندې زید چه مفعول به دے قائم کړے شو او ترجیح ئے ورکړے شوه په نورو مفاعیلو باندې، چونکه ضربا مقید کړے شو په شدیدا سره، ځکه چه مفعول مطلق بغیر د قید د تخصیص نه قائم مقام د فاعل نه واقع کیږی، ځکه چه فائده به کښے نشته، چه فعل سره کوم متصل دے په هٔ باندې زیاتوالے حاصل چه دلته اختلاف دے په مابین د کوفیانو او بصریانو کښے۔ بصریان وائی چه په دے صورت کښے قیام د مفعول به په ځائے د فاعل باندې واجب دے۔ کوفیان وائی چه اولی دے نه واجب۔

**فان لم یکن فالجمیع سواء**

که چرے مفعول به نه وی موجود۔ پس ټول مفاعیل چه هغوی اقامت صحیح وی، په ځائے د مفعول باندې برابر دے اقامة د هغوی په ځائے د مفعول باندې به د ترجیح نه۔ فان لم یکن دا شرط دے، یعنی فان لم یوجد المفعول به، فالجمیع دا جزاء ده۔

**والاول من باب اعطیت اولی من الثانی**

الاول صفت دے او د کوم صفت د پاره لابدی وی د موصوف نه، د دے د پاره موصوف المفعول دے، یعنی المفعول الاول مفعول شان د الثانی د پاره موصوف هم المفعول دے، یعنی المفعول الثانی۔ پس معنیٰ د عبارت به داسے وی او اقامة د مفعول اول د باب د اعطیت (د باب د اعطیت نه مراد هغه فعل دے، چه متعدی وی دوه مفعولونو ته) په ځائے د فاعل باندې اولیٰ راجح دے د اقامت د مفعول ثانی د باب لعطیت نه په ځائے د فاعل، لیکن دا اولویت په هغه وخت کښے دے، چه کله په دوی کښے التباس نه وی، که چرته التباس وی، نو بیا واجب دے، لکه اعطیت زیدا درهما، چه کله مجهول جوړے نو بیا کړو نو وائی به چه اعطی زید درهما؛

زید مفعول اول اؤ درهماً مفعول ثانی۔ پس دلته مفعول اول چه زید دے اقامة دَ دهٔ په ځائے دَ فاعل اولیٰ دے، دَ ثانی نهٔ چه درهماً دے اؤ که چرته درهماً واقع کړے، نو دا هم صحیح دے، ځکه چه دلته التباس نهٔ راځي، زید به هر حال کښے آخذ دے اؤ درهم به هر حال کښے مأخوذ دے اؤ دا ترکیب چه اعطیت زیداً عمرواً دے، چه هر کله ئے مجهول کړے، نو داسے به ئے وائے، اعطی زیدٌ عمرواً اؤ اقامت دَ مفعول اوّل چه زید دے، دا واجب دے په مقام دَ فاعل باندِ، ځکه چه دلته التباس راځي، چه هر واحد دَ دے دواړو نه آخذ اؤ مأخوذ صحیح کیږي۔

# درس نمبر ۱۰۱

**فمنها المبتدأ والخبر فالمبتدأ هو الاسم**

پس دَ بعض مرفوعاتو نه مبتدأ اؤ خبر دي۔

پس مبتدأ چه دهٔ، دا هغه اسم دے، برابره خبره ده چه صراحتاً وي که تاویلاً وي اؤ چه تاویلاً وي، نو بیا برابره خبره ده چه ان په کښے ملفوظ وي که مقدر وي۔

**فائده:**۔ په بعضو نسخو کښے دَ فمنه په ځائے فمنها راغلے دے، چه منه شي، نو ضمیر به راجع شي مرفوع ته اؤ په دغه وخت کښے به مرجع ضمني اوګرځي اؤ که منها شي، نو ضمیر به راجع شي مرفوعات ته اؤ په دغه وخت کښے به مرجع صریحي شي اؤ څرنګه صریحي اولے وي، دَ ضمني نه، په دے وجه باندِ هغه نسخه چه کومے کښے منها سره راغلے ده، اولیٰ ده دَ منه نه۔ **سوال.** مبتدأ او خبر خو دَ ؤه علیحده قسمونه دي دَ مرفوعاتو نه، نو لکاره داده چه دا دواړه ئے په جدا جدا منها سره ذکر کړے وے، فمنها المبتدأ ومنها الخبر به ئے وئیلي وو۔ **جواب.** دا د وجه دَ اشتراک نه په عامل معنوي کښے، چه دَ دوی دواړو عامل یو دے، چه معنوي دے، په دے وجه ئے په یو منها کښے راوړل اؤ دویم جواب دا دے، چه دَ دے دواړو په مابین کښے شدت تلازم دے، نو ځکه ئے په یو منها کښے راوړل، یعنی مبتدأ بغیر دَ خبر نه نهٔ وي اؤ خبر بغیر دَ مبتدأ نه نهٔ وي، په دے جواب باندِ **سوال** واردیږي چه یو مبتدأ شته اؤ هغه بغیر دَ خبر نه راځي، لکه قسم ثاني دَ مبتدأ **جواب.** خبره نو منتزیه مبتدأ اصلي کښے ده، چه هغه قسم اوّل دَ مبتدأ دے۔ **سوال.** ته خو وائے چه مبتدأ دا یو اسم دے، نو زهٔ درته اوښایم چه مبتدأ به وي اؤ اسم به نهٔ وي، لکه ان تصوموا خیرٌ لکم، دلته ان تصوموا مبتدأ ده اؤ اسم نهٔ دے، بلکه فعل دے۔ **جواب.** اسم عام دے، صراحتاً وي که تاویلاً وي۔ دلته کښے ان تصوموا اګر که اسم صریحي نهٔ دے، لیکن مؤول دے، په تاویل دَ اسم سره، ځکه چه ان په فعل مضارع داخل شي، نو دا به تاویل دَ اسم سره وي، چه ان تصوموا به په تاویل دَ صیامکم سره شي، نو دَ ان تصوموا خیر لکم تاویل به داشي، چه صیامکم خیر لکم۔ **سوال.** زهٔ به درته اوښایم چه مبتدأ به وي اؤ نهٔ به صراحتاً اسم وي اؤ نه به ورباندِ ان داخل شوے وي، چه مؤول اوګرځي په تاویل دَ اسم سره، لکه په دے مصرع کښے:۔

ع۔ تسمع بالمعیدي خیرٌ من ان تراه۔ دلته دا تسمع مبتدأ ده اؤ سره دَ دے نه چه فعل دے اؤ ان ورباندِ هم نه دے داخل شوے۔ **جواب.** ان عام دے ملفوظ وي که مقدر۔ دلته اګر که لفظاً ا... دے ... تقدیراً ان

ان موجود دے، لو تقدیر بهٔ ملحوظ شی، چه "ان تسمع"۔ اوس دا به په تاویل د اسم سره اوگرځی۔ **سوال**. د تقدیر د ان د پاره خو خاص مواضع دی، چه لن به مقدر وی، پس د حتیٰ ـ کے، لام جحد، فا، واو او او نه لو دلته په تسمع کښه خو په حکم د دے مذکورو نشته دے، لو ته څنګه وائے چه دلته ان مقدر دے۔

**جواب**. دا شهزن حالیونه د پاره د تقدیر د ان په سبب د شهرت سره دی او د دے نه علاوه په لږ و ځایو کښه هم ان مقدر کیږی، په سبب د عدم شهرت سره۔

| **المجرد عن العوامل اللفظية مسند اليه** |
|---|

هغه اسم چه نه موجود یږی، په دے کښه د جنس عوامل لفظیه نه (یو عامل) هم عامل لفظی

چه هغه لو تاثیر وی، په معنیٰ کښه په حال د کون د دغه اسم کښه چه اسناد کړے شوے وی، ده ته۔

**سوال**. المجرد خو هغه ته وائی، چه خالی کړے شوے وی، لو مطلب به دا شی په دے مقام کښه چه په مبتدا کښه خو عامل لفظی وی، وَلے دے مجرد کړے شوے وی، د هغه عامل لفظی نه او حال دا دے، چه په مبتدا کښه خو د سره عامل لفظی نشته۔ **جواب**. دلته المجرد په معنیٰ د لم یوجد سره دے، یعنی چه نه وی موجود په دا کښه عامل لفظی۔ **سوال**. العوامل جمع ده، د عامل لږ اقل د جمع درے دی، لو مطلب به دا شی، چه نه وی موجود په دے کښه متشے یا زیات د درے عوامل لفظیه نه او که چرے کوم د دریو نه وی، لو موجود یږی به په کښه. حالانکه په دے کښه خو د سره عامل لفظی نشته۔ **جواب**. دلته په العوامل کښه الف لام جنسی دی او که الف لام جنسی چه په جمع داخل شی، لو باطلیږی جمعیة او اراده کولے شی، په هغے سره جنس۔ پس دلته جنس عامل لفظی مراد دے۔ **سوال**. ته خو وائی، چه عامل لفظی په مبتدا کښه به نه وی او ځکه به دلته امثال چه مبتدا په وی او عامل لفظی به په کښه موجود وی، لکه بحسبک درهم۔ دلته بحسب درهم کښه بحسبک مبتدا ده او د سبا نو داخل ده، حالانکه دا خو حرف جار دے او حرف جار عامل لفظی دے۔

**جواب**. مونږ په معنیٰ کښه دا خبره کړی ده، چه هسے عامل لفظی چه هغه لو تاثیر وی، په معنیٰ کښه او دلته کښه ما با زائده ده، ده لو تاثیر په معنیٰ کښه نشته۔ اوس زه کوم دا خبره چه دلته اختلاف دے، په عامل د مبتدا او خبر کښه۔ جمهور وائی چه په مبتدا او په خبر کښه عامل معنوی دے او بعض وائی، چه په مبتدا کښه عامل معنوی دے او په خبر کښه عامل لفظی دے، چه هغه مبتدا ده او بعض نحاة وائی چه، په دواړو کښه عامل لفظی دے۔ په مبتدا کښه عامل خبر او په خبر کښه عامل مبتدا ده۔ پس د دے نه پوه شه، چه په مونږ تعریف کښه لابکی ده، د جنس او د فصل نه۔ لو په تعریف د مبتدا کښه اسمٌ دا جنس دے، لو ل اسماء په کښه داخل شو او د المجرد عن العوامل اللفظية دا یو فصل دے په دے سره پرے نه خارج شو هغه اسماء چه په هغوی کښه عامل لفظی وی او په مسند اليه سره ترے نه خارج شو خبر۔

# درس نمبر ۱۰۲

**أَوِ الصِّفَةِ الْوَاقِعَةِ بَعْدَ حَرْفِ النَّفْيِ أَوْ أَلِفِ الْاِسْتِفْهَامِ**

لکه یا دا مبتداء واقع شوی وی، صفت لکه صفت علم شی حقیقتاً صفت وی که مجازی مجری د صفت وی، هغه خو صفت چه واقع شوی وی. پس د حرف نفی او د حرف استفهام، ځکه چه د عمل د صفت د پاره خو شرطونه دی، چه اعتمادیې کیږي وی، په شپږو څیزونو باندې، ¹مبتدا لره، ²مرجع موصول، ³موصوف، ⁴ذوالحال، ⁵حرف نفی او ⁶شپږم حرف استفهام دے. دلته کښې غرض د مصنف مبتدا قسم ثالی بیانول دی.
**سوال.** او راتی د پاره د تشکیک او دلته خو نه د ے مناسب شک مناسب دے او نه د مصنف سره مناسب دے، نو دلته څه وجه لری د حرف د او راوړے دے؟ **جواب.** دلته او د پاره د تشکیک نه دے، بلکه د تنویع د پاره دے. **سوال.** ستا دا تعریف مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې دا ترکیب چه اقرشی انت. دلته قریشی صفت نه دے او بیا هم مبتدا قسم ثانی دے. **جواب.** صفت عام دے، حقیقتاً صفت وی یا جاری مجری د صفت وی او دلته کښې قریشی اګر چه صفت نه دے خو جاری مجری د صفت دے، ځکه چه په دے کښې یاد نسبتیه راغلی ده او یا النسبتیه شي په حکم د مفعول (مشتق) کرځی. پس دلته تقدیر د عبارت به داسې شی المنسوب الی قریش انت. **سوال.** صفت خو هله عمل کوی چه د اعتماد کیږي وی په شپږو څیزونو باندې چه مبتداء ده، موصوف، موصول، ذوالحال، حرف نفی او حرف استفهام، نو مصنف صرف دا دوه (چه حرف نفی او حرف استفهام دے) ولې ذکر کړل خاصةً، دا نور څلور یې ولې ذکر نه کړل؟ **جواب.** په دے څلورو کښې چه په ځای یې صفت اعتماد اوکړی نو مبتداء قسم ثانی نه حاصلیږي، ځکه که چرے په مبتداء اعتماد اوکړی، نو دا به خبر شی، د صفت د پاره او که په موصول اوکړی، دا به صله شی، او که په موصوف اوکړی نو دے به صفت شی او که په ذوالحال اوکړی نو دے به حال شی. لهذا متعین شو دا دواړه. **سوال.** صفت خو اعتماد کوی په حرف استفهام، نو تا ولې الف استفهام اوویل؟
**جواب.** دلته کښې د الف استفهام نه مراد حرف استفهام دے. پس دا الف یې د وجه د اصالت نه ذکر کړو او ګنا الف نه مراد همزه دے. زمونږ کوم دا خبره چه په عمل د اسم صفت کښې اختلاف دے په مابین د جمهورو، سیبویه او اخفش کښې. جمهور والی چه اسم صفت به هله عمل کوی، چه اعتماد یې په هغه لسو سره مذکورو راغلی وی او سیبویه او اخفش والی چه بې د اعتماد نه هم عمل کوی. خو بیا د سیبویه او اخفش په مابین کښې اختلاف دے. سیبویه والی چه سره د قبح نه اسم صفت عمل کوی او اخفش والی چه بغیر د قبح نه دلیل د دوی دا دے چه: نعم خبیر بنو لهب عند الناس مکرم. دلته خبیر اسم صفت دے او بې د اعتماد نه یې عمل کړے دے، یعنی مبتداء قسم ثالی واقع شوی ده. په دے دلیل دا **سوال** وارد یږی چه کیدے شی دا خبیر خبر د خبو مقدم کړی او بنو مبتداء مؤخره شی. پس دا نه شو مبتداء قسم ثالی او استدلال هم په ... [illegible]

شی جواب. دا چه نه شو کیدے چه خبرٌ دِ خبر مقدم شی اَو مَحمُودٌ دِ مبتداء مؤخر شی، حُکه چه خبر خبر مقدّ شی اَو سه خی ململ مسه په عندالناس منکم کښ، لو فصل به راشی په مابین دَ عامل اَو معمول کښ په اجنبی سره - دَ جمهورو دَ طرف نه دَ دوه دلیل جواب دا سے چه دلته کښ دَ ضرورت شعری دَ وجه نه خبرٌ عمل کړے دے، بغیرِ دَ اعتماد نه اَو دا جائز دے - دَوُم جواب دا دے چه دلته خبر مبتداء نه دهٔ ، بلکه ضمن مبتداءٔ اَو دَ خبر نه پس چه کوم ضمن راغلے دے، دا یے تفسیر دے یا په خبرٌ کښ ضمیر دے چه راجع دے ضمن ته، چه دَ خبرٌ نه مخکښ مقدر دے اَو دا موجود اَو مذکور ضمن دَ دے دَ پاره تاکید دے - پس دا قسم قسم ثالث هم نه شو اَو دلته کښ اسم صفت اعتماد اوکړو په مبتداء باندے، تقدیر به دا سے شی چه ضمن خبرٌ الخ -

**رَافِعَةٌ لِظَاهِرٍ** په حال دَ کون دَ دے صفت کښ چه دے به رفع ورکوؤنکی وی اسم ظاهر لره، اِسم ظاهر عام دے، حقیقتاً وی که حکماً (ظاهر صفت دے دَ پاره دَ اِسم)۔

**سوال.** اِسم ظاهر لره به رفع ورکوونکی وی، نو دے ته اَرَاغِبٌ چه رفع یئے ورکړی وی ضمیر لره، لکه اَرَاغِبٌ اَنتَ عَن آلِهَتِي يا ابراهيم. دلته راغب صفت دے اَو رفع یئے ورکړی ده انت ضمیر لره - **جواب.** اِسم ظاهر عام دے، حقیقتاً وی که حکماً. انت ضمیر منفصل په حکم دَ اِسم ظاهر کښ دے -

**مثل زیدٌ قائمٌ وما قائمٌ الزیدان وأقائمٌ الزیدان** زیدٌ قائمٌ مثال دَ مبتداء قسم اَوّل دے، زیدٌ مبتداء دے اَو قائمٌ خبر دے، وما قائم الزيدان، دا مثال دَ مبتداء قسم ثانی دے، چه صفت راتلے وی، پس دَ حرفِ نفی نه اَو الزیدان فاعل دے، دَ صفت اَو مسند دے، دَ خبر. اقائمٌ الزیدان، دا مثال هم دَ مبتداء قسم ثانی دے، چه صفت واقع دے، پس دَ همزه دَ اِستفهام نه اَو دلته هم الزیدان فاعل دے دَ صفت اَو مسند دَ خبر دے۔

# درس نمبر ۱۰۳

**فان طابقت مفرداً جاز الامران** که چرته مطابقت کولو سره صفت واقع پس دَ حرفِ نفی اَو استفهام نه دَ پاره دَ خبرو ده، چه رافع وی اِسم ظاهر لره اَو که نه وی). دَ مفرد اِسم سره په افراد کښ - پس جائز دی په دغه صورت کښ دوه امرین کیدل دَ دے مبتداء قسم ثانی، چه دا صفت مبتداء واقع شی اَو اِسم ظاهر فاعل دَ صفت اَو مسند دَ خبر اَو کیدل دَ دے مبتداء قسم اَوّل، چه اِسم ظاهر مبتداء مؤخره شی اَو صفت دِ دلته خبر مقدم شی، لکه اَقَائِمٌ زَيدٌ. دلته کښ صفت قائم دے، دا هم مفرد دے اَو اِسم ظاهر چه زید دے، دا هم مفرد دے، په دے کښ دواړه مجبا جائز دی، چه قائم مبتداء اوګرځی اَو زید اِسم ظاهر فاعل دَ صفت اَو مسند دَ خبر شی، اَو دا خبره هم جائز ده، چه زید مبتداء مؤخره شی اَو قائم خبر مقدم شی -

**ضابطه** زمونږ کښ دا خبره چه صفت به یا مطابق وی، دَ اِسم ظاهر سره اَو یا به نه وی، ...

موافق دی، لزبیا بہ خالی نہ وی یا بہ موافق وی، پہ افراد کښے اؤ یا بہ موافق وی پہ تثنیہ اؤ پہ جمع کښے۔ کہ چرے موافق وی، پہ افراد کښے، جاز الامران کما مرّ، اؤ کہ چرتہ موافق وی، پہ تثنیہ اؤ پہ جمع کښے، لزبیا مبتداء قسم اوّل صحیح کیږی، یعنی اسم ظاهر بہ مبتداء مؤخر شی اؤ صفت بہ خبر مقدم شی، ځکہ چہ حال دَ اسم صفت پہ تقاضا دَ فاعل کښے پہ شان دَ فعل دے، اؤ پہ فعل کښے خو دا قاعدہ دہ چہ فاعل اسم ظاهر وی، "وَحِّدِ الفعل ابداً" دلتہ کښے فاعل اسم ظاهر دے، نو فعل (اسم صفت) لکارے، چہ مفرد وی اؤ دلتہ خو مفرد نہ دے۔ پس متعین شوہ دا خبرہ چہ اسم ظاهر مبتداء مؤخر شی اؤ صفت ورلہ خبر مقدم شی، لکہ "اقائمان الزیدان یا اقائمون الزیدون"۔ دلتہ کښے زیدان او زیدون دا مبتداء مؤخر دی اؤ قائمون یا قائمان، دا خبر مقدم دی۔ کہ چرتہ مبتداء قسم ثانی معتبر دا اوګرځو، نو قائمان یا قائمون دا بہ الزیدان یا الزیدون فاعل اوګرځی اؤ دا نہ دہ صحیح، ځکہ چہ حال دَ اسم صفت پہ شان دَ فعل دے اؤ چیکلہ فاعل دَ فعل اسم ظاهر وی، نو فعل بہ همیشہ مفرد وی اؤ دلتہ خو فاعل اسم ظاهر دے اؤ (اسم صفت) فعل تثنیہ اؤ جمع دے، پہ دے وجہ باطل دا بہ مبتداء مؤخر اؤ خبر مقدم دَ قسم نہ شی اؤ کہ چرتہ دا صفت مطابق نہ وی دَ اسم ظاهر سرہ، پہ دے شان سرہ، چہ اسم صفت مفرد وی اؤ اسم ظاهر تثنیہ یا جمع وی، نو پہ دے صورت کښے بہ مبتداء قسم ثانی وی اؤ قسم اوّل بہ نہ وی، ځکہ چہ مطابقت شرط دے، پہ مابین دَ مبتداء اؤ دَ خبر کښے او دلتہ مطابقت لښتہ دے، پہ دوئم کښے، لکہ "اقائم الزیدان" یا "اقائم الزیدون" نو پس دلتہ کښے مبتداء قسم ثانی متعین دہ۔ شلورم احتمال دا دے چہ اسم صفت تثنیہ وی اؤ یا جمع وی اؤ اسم ظاهر مفرد وی، دا صرف احتمال عقلی دے، وجود ورلہ پہ خارج کښے نشتہ۔ **سوال**: پہ مطابقت کښے بہ ضمیر یا مطلق صفت تہ راجع کوے اؤ یا صفت مذکورہ تہ، کہ مطلق صفت تہ یے راجع کوے، نو جاز الامران حکم نہ صحیح کیږی، بلکہ لیاس صحیح کیږی، چہ هغہ مبتداء دَ قسم اول دہ، لکہ "قائم زیدٌ" زیدٌ مبتداء مؤخر اؤ قائم خبر مقدم۔ کہ چرے ضمیر راجع کوے صفت مذکورہ تہ، یعنی صفت چہ واقع وی، پس دَ حرف استفهام اؤ حرف نفی نہ، چہ رافع وی اسم ظاهر لرہ، نو بیا العۃ لظاهر نہ صحیح کیږی، ځکہ چہ دے کلہ رفع ورکوی، اسم ظاهر لرہ، لزبیا خو بیا هم جاری دے، جاز الامران نہ صحیح کیږی۔ **جواب**: پہ مطابقت کښے ضمیر راجع دے، صفت مذکورہ تہ، قطع نظر وے خبرہ نہ چہ رفع ورکوی، اسم ظاهر لرہ اؤ کہ نہ ورکوی۔

## درس نمبر ۱۰۴

**والخبر هو المجرد المسند به المغایر للصفة المذکورة** اؤ خبر دا هغہ اسم دے چہ ښوی مجرد پہ دا کښے، یعنی عامل لفظی دَ عوامل لفظیونہ۔ هسے عامل لفظی چہ هغہ لرہ تاثیروی، پہ معنیٰ کښے، چہ واقع وی، اسناد پہ دَ سرہ چہ مغایر وی، دَ صفت مذکورہ سرہ، چہ هغہ کښے پہ مبتداء کښے ذکر شوے دے، چہ هغہ صفت واقع شوے وی، پس دَ حرف استفهام نہ اؤ دَ حرف نفی نہ، چہ رافع وی اسم ظاهر لرہ، پہ دے عبارت سرہ مصنف تعریف دَ خبر کوی، ځکہ یے مبتداء اؤ خبر پہ یو تعریف

سره ذکر کړی وو چه په معنی کښې شدت نه زیرت دے او چونکه د دواړو مفهوم جدا جدا دے، په دې وجه ئې د دواړو تعریف ځان ځان له ذکر کړو. هو المجرد سره تړے نه خارج شو خبر د کان یا خبر د ان وغیره. په المسند به سره بیرته نه خارج شو مبتداء قسم اول او په المغائر للصفة المذکورة سره نه مبتداء قسم ثانی خارج شو. **سوال**. په مبتداء کښې خو عامل ابتداء ده، ولے په خبر کښې عامل څنګه ابتداء ده؟ **جواب**. مراد په ابتداء سره عامل معنوی دے.

**سوال**. عامل خو هغه څیز دے او هدی شی په څنګه موثر شی. **جواب**. موثر په حقیقت کښې متکلم دے او عوامل خو په هغه امارات د تاثیر د متکلم دی. **سوال**. هرکله چه مبتداء عامل شو، په خبر کښې او خبر عامل او ګرځی په مبتداء کښې، نو بیا دا قول به څنګه صحیح شی چه 'هما اسمان مجردان عن العوامل اللفظیة'. **جواب**. څنګه مونږ

ویلی دی چه په مبتداء کښې اختلاف دے او د هغه شان په خبر کښې هم دے، چه عامل په دوی کښې لفظی دے، که معنوی دے. جمهور بصریان وائی چه، په دواړو کښې عامل معنوی دے او بعض نحاة وائی چه، په مبتداء کښې عامل خبر دے او په خبر کښې عامل مبتداء دے، نو په دواړو کښې عامل لفظی شو. پس مذهب د مصنف بنا دے په مذهب د بصریانو باندې. **سوال**. ستا دا تعریف مانع نه شو، د دخول د غیرو او داخل شو په کښې مثل مضارع په دے ترکیب چه یضرب زید، څنګه چه یضرب خالی دے، که عامل لفظی نه او اسناد ئې راغلے دے، زیدته او مغائر دے، د صفت مذکوره نه. **جواب**. دلته مراد په مجرد سره اسم مجرد دے، څنګه چه بحث نحوی په موضوع د اسم کښې دے. **سوال**. ستا دا تعریف جامع نه شو، څکه چه افراد لره او خارج شو، ترے نه یضرب په دے قول کښې چه زید یضرب، څکه چه دا خو خبر دے او فعل دے لګه ته وائے چه مراد په المجرد سره اسم مجرد دے. **جواب**. دا په خبر کښې داخل دے، څکه چه مصنف به مستقبل کښې وائی چه والخبر قد یکون جملة. په المسند به کښې درے توجیهات دی. یو توجیه د شارح جامی دے، هغه وائی چه، المسند دا صیغه د اسم مفعول ده او ضمیر په کښې مستتر دے، چه هغه راجع دے مبتداء ته او هغه د اسم مفعول د پاره نائب فاعل دے او دویم په یا جار مجرور دے او یا محلا نائب دی او یا بانائب دے، فقط او "ه" ضمیر تاکید دے د پاره د هغه ضمیر مستتر چه المسند کښې دے، په دے سره مبتداء قسم اول خارج شو. **سوال**. اسناد خو متعدی کیږی مفعول ته بنفسه، نو راوړلو د باء ته په کښې ضرورت نشته. **جواب**. اسناد متضمن دے معنی د وقوع لره او وقوع فعل لازمی دے، نو څکه ده باء د تعدیة راوړله. پس تقدیر د عبارت به داشی چه 'ما یوقع به الاسناد اما الی المبتداء' ـــــ دویمه توجیه دا ده چه المسند دا صیغه د اسم مفعول ده او که به ورلره نائب فاعل دے ـــــ دریمه توجیه دا ده چه دلته ما باء په معنی د الی سره ده یعنی المسند الیه ـــــ خو په دے درے واړو توجیهات کښې توجیه د شارح جامی بهتره ده، څکه چه المجرد په منزله د جنس شی چه مبتداء او خبر معلوم په کښې داخل دی، خو چه ما ئے اوویل المسند به په دے سره احتراز راغے د قسم اول د مبتداء نه او په المغائر للصفة المذکورة سره احتراز راغے، د مبتداء قسم ثانی نه. پس په کلام د شارح جامی کښې ته

ده اَوْ تاسیس اولیٰ دے د تاکید نه ځکه چه تاسیس مفید دے د پاره د فائدے جدیدے ' بخلاف د تاکید نه چه په هغه کښے فائده جدیده نشته اَوْ بنا په دے لوړ توجیهن سره المغایر للصفة المذکورة ما قبلها مستدرک دی ' ځکه چه قسم ثالث د مبتدا په المسند به سره خارجه شوی دے ' خو صفوی والی چه دلته کښے المغایر للصفة المذکورة د پاره د تاکید دے ۔

# درس نمبر ۱۰۵

## واصل المبتدا التقدیم

(په دے عبارت سره مصنف د مبتدا خاص احکام بیانوی) اولیٰ ماینبغی اَوْ راجح په مبتدا کښے تقدیم د مبتدا ده ' په خبر باندے په وخت د عدم د مانع کښے ' ځکه چه مبتدا معال ده ' په ذات باندے اَوْ خبر دال دے په صفت باندے اَوْ ذات متقدم وی په صفت باندے۔ **سوال**. دا دلیل خو واچوی ' تقدیم د فاعل په فعل باندے ' ځکه چه فاعل دلالت کوی ' په ذات باندے اَوْ فعل دلالت کوی ' په صفت باندے۔ حالانکه د فاعل په باره کښے دا وائی چه ' والاصل ان یلی الفعل۔

**جواب**. اصل په فاعل کښے تاخیر په دے وجه دے چه التباس د مه راشی د مبتدا سره۔

**سوال**. عکس به ئے کړے وے؟ **جواب**. که چرے تقدیم د فاعل اوکړو ' په عامل باندے (یعنی دا خبر په کښے اصل اوګرځو) نو په دغه صورت کښے تقدیم د معمول راشی ' په عامل باندے اَوْ په مبتدا اَوْ په خبر کښے که چرته تقدیم د خبر راشی ' نو دا خبر دے ' دا ځکه چه مبتدا په خبر کښے عامل نه ده ۔ اَوْ بل د تقدیم د مبتدا د پاره په خبر باندے څو وجوهات دی ـــ **اَوّلَه وجه**:- مبتدا دال ده ' په ذات باندے اَوْ خبر دال دے په وصف باندے اَوْ ذات مقدم وی ' په وصف باندے ـــ **دوَیمه وجه**:- مبتدا محکوم علیه ده اَوْ خبر محکوم به دے اَوْ محکوم علیه مقدم وی ' په محکوم به باندے ـــ **دریمه وجه**:- مبتدا مثبت له ده اَوْ خبر مثبت دے اَوْ مثبت له اصل دے اَوْ مثبت فرع ده (یعنی مثبت فرع د مثبت له ده) اَوْ اصل مقدم وی ' په فرع باندے ـــ **څلورمه وجه**:- مبتدا په منزله د موصوف ده اَوْ خبر په منزله د صفت دے اَوْ موصوف مقدم وی ' په صفت باندے ـــ **سوال**. د اصل نه ظاهر متبادر معنیٰ ما ده چه په معنیٰ د قانون اَوْ د قاعدے سره راځی ' چه هر کله دا په معنیٰ د قانون اَوْ د قاعدے شو ' نو لیکل ما ده چه د قانون مخالفت نه اَوْ نه کړے شی۔ حالانکه په بعض ځایونو کښے مبتدا موخره ده اَوْ خبر مقدم دے ' لکه په دے قول کښے چه فی الدار زید۔ دلته کښے زید مبتدا موخره ده۔ **جواب**. اصل په معنیٰ د راجح ماینبغی اَوْ اولیٰ سره دے۔

**سوال**. نه منو وائے چه ماینبغی اَوْ اولیٰ په مبتدا کښے تقدیم دے ' نو بیا په دے ترکیب کښے فی الدار رجل کښے تقدیم د مبتدا ممتنع دے۔ **جواب**. موږ وئیلی دی چه اصل په مبتدا کښے تقدیم دے ' په وخت د عدم د مانع کښے اَوْ دلته کښے مانع موجود دے ' ځکه چه که چرته موږ تقدیم د رجل راوړو ' نو لازمیږی نکارت د مبتدا اَوْ دا ناجائز دے ' ځکه چه په مبتدا کښے شرط دا دے چه دا به معرفه وي۔ ...

**ومن ثَمَّ جاز فی دارہ زید وامتنع صاحبها فی الدار**

او د دې وجې د وجه اصل نه چه راجع لره ماینبغی په مبتدا کې تقدیم دے په خبر باندې سابق دے، د ترکیب «فی داره زیدٌ» دلته زید مبتدا مؤخر دے او ضمیر د «ه» دے ته راجع دے، لو دلته لرکه اضمار قبل الذکر لازم دے لفظاً خو رتبتاً نه دے لازم، ځکه چه مرتبه د مبتدا مقدم ده په خبر باندې او ممتنع دے، د ترکیب چه «صاحبها فی الدار» ځکه چه دلته اضمار قبل الذکر لازم دے، لفظاً او رتبتاً دواړه۔ د صاحبها ضمیر راجع دے الدار ته، چه دا مؤخر دے لره خبر دے او مرتبه د خبر مؤخر ده، د مبتدا نه۔ پس دلته کښې اضمار قبل الذکر لازم، لفظاً او رتبتاً دواړه۔ پس د دې نه دا قاعده معلومه شوه چه الحاق د ضمیر د مبتدا په خبر پورې جائز دے او الحاق د ضمیر د خبر په مبتدا پورې نه دے جائز۔ **سوال**۔ ومن ثم سره مصنف تفریع کړې په اصل مذکور باندې، لیکن دا تفریع نه ده صحیح، ځکه چه په اصل مذکور کښې دا خبره ده، چه مبتدا بشتمه وی په خبر باندې او دې چه کوم مثال ذکر کړے دے، په هغې کښې مبتدا مؤخر ده او حکم چه د جواز کړے دے او چه کوم مثال کښې مبتدا مقدمه ده، په هغې کښې ئې حکم د امتناع کړے دے، نو دا تفریع په دې اصل نه کیږي، بلکه چه عکس یې کړے وے۔ **جواب**۔ دا تفریع په دې نه ده، چه واصل المبتدا التقدیم، بلکه دا تفریع ده په مفهوم باندې چه کوم مستفاد ده د دې نه، هغه دا چه مرتبه د مبتدا مقدمه ده، د مرتبې د خبر نه۔

**وقد یکون المبتدا نکرة اذا تخصصت لوجه مّا.**

او کله کله به وی مبتدا نکره، اګرچه اصل په مبتدا کښې تعریف دے ځکه اُمور د امورو، په کلام د عربو کښې هغه حکم ورد دے، په امور معلومه معینه باندې، خو په هغه صورت کښې چه تخصیص اُوشی، د نکرې په یو وجه د وجوه د تخصیص سره، نو بیا صحیح دے ابتدائیت د دې، ځکه چه په تخصیص سره دا نکره قریبه کوځي امعرفې ته، او نکره د قریب د شي لره حکم د هغې شي وی۔

# درس نمبر ۱۰۶

فائده :- بهرحال کښې دا تنوین د پاره د عموم دے او دا «ما» د پاره د تاکید راغلې دے یا «ما» صفت دے د پاره د وجه یعنی بوجهٍ مّا، بوجهٍ ای وجه من الوجوه، یعنی په کوم یو شي سره تخصیص د مبتدا راشي، نو د دې نه دا خبره هم معلومه شوه چه ما تن کوم حالونه ذکر کړي دي، په دې کښې حصر نشته، بلکه د دې نه علاوه نور هم حالونه شته، چه په هغه سره تخصیص د نکرې ما حُی، مثلاً کله کله په جار مجرور سره تخصیص د نکرې راځي او بیا ابتدائیت د هغوئ صحیح کیږي، لکه په دې آیت کښې چه «قتال فیه کبیر» دلته قتال مبتدا ده او تخصیص ئې راغلې دے، په فیه جار مجرور سره یا لکه «ومغبة للفجر خیر» په دې کښې هم جار مجرور سره تخصیص د نکرې راغلې دے۔

**مثل ولعبد مومن خیر من مشرك**

په دې مثال کښې عبد نکره ده او تخصیص یې راغلې دے، په صفت سره، ځکه چه عبد مطلق غلام ته

وپیژني کہ مومن وي اَوْ کہ کافر وي، خو چہ هرکله توصیف د ده راشي په مومن سره، نو په ده کښې تخصیص پیدا شو، یعنی قلت د شرکاء په کښې راشي۔ پس دا قریب شو معرفې ته، نو ځکه حُکم د عین معرفې سره اَوْ ابتدائیت د ده صحیح دے۔

## ارجل فی الدار ام امرأة

په دے مثال کښې رجل هُم مبتداء دہ اَوْ نکره دہ اَوْ امرأة هم مبتداء دہ اَوْ نکره دہ، خو تخصیص پکښې راغلې دے، په علم د متکلم سره، په دے شان سره چہ متکلم عالم دے، په دے خبره باندې چہ په دار کښې احدهما د رجل اَوْ د امرءے نه موجود دے، خو تپوس کوي د تعین۔ **سوال**. مبتداء خو یا امرِ لفظي دے اَوْ علم د متکلم امرِ ذهني دے، نو ځکه دے ته به صحیح ---- شي تخصیص د امرِ لفظي په امرِ ذهني سره اَوْ مخکښې **سوال** دا دے چہ علم د متکلم فقط متکلم ته دے، نو په نسبت سره متکلم ته تخصیص راغې اَوْ مخاطب ته خو تخصیص حاصل نه شو۔

**جواب**. د دواړو سوالونو جواب دا دے چہ دلته امرِ ذهني مؤول دے، په تاویل د لفظي سره یعنی ای من الامرین معلومین الذین فی الدار۔

## وما احدٌ خیر منك

دا بل مثال دے د نکرے مخصصے۔ دلته احدٌ مبتداء دہ اَوْ دا نکره دہ، خو تخصیص پکښې شوے دے، په دے چہ نکره هرکله واقع شي په سیاق د نفي، نو فائده کوي عموم اَوْ نکره من حیث نکره وضع شوې دہ د پاره د فرد مبهم اَوْ د پاره د فرد منتشر غیر معین۔ اَوْ دلته تخصیص په تعمیم سره شوے دے، خو **سوال** وارد یږي چہ په مابین د تخصیص اَوْ د تعمیم کښې منافات دے، نو په تعمیم سره څنګه تخصیص راغې. **جواب**. تخصیص په دوه معنیٰ باندې راځي، یو قلة شرکاء اَوْ قطع شرکت اَوْ بل په معنیٰ د دفع د ابهام اَوْ دلته تخصیص په معنیٰ د دفع د ابهام سره دے اَوْ په مابین د دفع د ابهام اَوْ د تعمیم کښې څه منافات نشته۔ **سوال**. نکره به وي مبتداء به واقع شوے وي اَوْ په سیاق د نفي کښې به نه وي، لکه دا قول د حضرت عمر رضی الله تعالیٰ عنه چہ "تمرة خیرٌ من جرادةٍ"۔ **جواب**. عموم اَوْ نکره عامه دہ چہ په اداة سره وي اَوْ که په مجاز اَوْ قصد سره وي۔ دلته کښې اګرکہ په اداة سره نه دہ، لیکن په قصد اَوْ مجاز سره دہ، یعنی دا عموم په طریقے د قصد سره حاصل شوے دے اَوْ نکره چہ واقع شي په مقابله د نکره کښې، نو عموم پیدا کوي۔ **سوال**. نکره چہ واقع شي په سیاق د نفي کښې، نو ولې عموم پیدا کوي؟ **جواب**. نکره چہ کله واقع شي په سیاق د نفي کښې، نو اراده کولے شي په دے سره نفي د مفهوم، اَوْ نفي د مفهوم راځي په انتفاء ---- اَوْ نفي د هر فرد سره۔ **سوال**. نکره چہ کله واقع شي په سیاق د اثبات کښې، نو ولې پیدا کوي تخصیص۔ **جواب**. ځکه چہ نکره کله واقع شي په سیاق د اثبات کښې، نو اراده کولے شي په دے سره اثبات د مفهوم اَوْ اثبات د مفهوم راځي په وجود د یو فرد سره۔ لہ

---

نہ نکره چہ واقع شي په سیاق د اثبات کښې الا اراده کولے شي په دے سره اثبات د مفهوم لکه مثلاً انسانٌ بود نو مه په سل رُنځ

**درس نمبر ۱۰۷:-** په دے حکله کښے یو ضابطه ده، هغه دا چه دا نکره به خالی نه وی، یا به واقع شوے وی په سیاق د نفی اؤ یا به واقع وی په سیاق د اثبات کښے، که چرے واقع وی په سیاق د نفی، نو بیا به خالی نه وی یا به په کښے قصد د عموم وی لګو یا به نه وی، که چرته قصد وی اؤ که نه وی، په دواړو صورتونو کښے د دے ابتدائیت صحیح دے اؤ که چرته واقع شوے وی په سیاق د اثبات کښے، نو بیا به خالی نه وی، یا به په کښے قصد د عموم وی اؤ یا به نه وی، که چرته قصد د عموم په کښے وی، خو ابتدائیت یے صحیح دے اؤ که چرته قصد د عموم په کښے نه وی، نو بیا به خالی نه وی یا به مخاطب ته فائده تامه حدیده مصححه ورکوی یا نه، که چرته مخاطب ته فائده تامه جدیده مصححه ورکوی، خو ابتدائیت یے صحیح دے اؤ که نه ورکوی، نو نه دے صحیح۔

**شرّ اهرّ ذاناب** دا بل مثال دے، د پاره د مبتداء چه نکره وی اؤ تخصیص یے راغلے وی۔ ځکه شرّ مبتداء ده اؤ نکره ده، تخصیص یے راغلے دے، په صفت مقدرسره، چه هغه مستفاد دے د تنوین نه، چه تنوین دلته کښے د پاره د تعظیم راغلے دے۔ تنوین چه څنګه د پاره د تنکیر راځی، نو هم دغه شان د پاره د تعظیم هم راځی، لکه په قرآن پاک کښے فرمائی «كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ» دلته ما تنوین د پاره د تعظیم دے، یعنی کتاب عظیم، نو په شرّ کښے هم تنوین د پاره د تعظیم دے، تقدیر به داشی چه "شرٌّ عظیم اهرّ ذاناب" ما یوه وجه شوه، دوهمه د تخصیص په طریقه سره دغه دا شرّ فاعل معنوی دے، ځکه چه دے بدل راغلے دے، د اهرّ د ضمیر نه چه هغه فاعل معنوی دے، پس دا ترکیب چه شرّ اهرّ ذاناب دے، دا په معنا د ما اهرّ ذاناب الّا شرّ دے۔ **سوال**۔ په ما اهرّ ذاناب الّا شرّ کښے خو دلالت د حصر اؤ تخصیص موجود دی، دلته په شرّ اهرّ ذاناب کښے خو دلالت د حصر اؤ تخصیص نه دی موجود؟ پس دلته تخصیص نه دے حاصل شوے **جواب**۔ دلته کښے تقدیم د ما حقه التاخیر راغلے دے اؤ تقدیم ما حقه التاخیر پیدا کوی، حصر اؤ اختصاص لره، ځکه چه شرّ اهرّ ذاناب په اصل کښے اهرّ ذاناب شرٌّ وو، نو شرّ با مشخوره خو چه تقدیم یے راغلو اؤس دے حصر اؤ اختصاص پیدا کوو۔ پس دلته شرّ دا بدل دے، اؤ مبدل منه هغه ضمیر د فاعل دے، په اهرّ کښے۔ **سوال**۔ شرّ بدل اؤ فاعل معنوی څنګه له وائے؟ بلکه فاعل یے لفظاً، نقط۔ **جواب**۔ په دے صورت کښے لازمیږی تقدیم د فاعل په فعل باندې اؤ دا ناجائز دے۔

**سوال**۔ په دے جواب باندې دا دے، چه بیا خو تقدیم د بدل هم په مبدل منه باندې ناجائز دے، نو دا یوځلے مقدم کړے دے، بلکه دلته یو بل نقصان هم دے، هغه دا دے چه تقدیم د بدل په عامل د مبدل منه راغلے

---

(هلته د بل طرح نه) ــــ ماهیت دے، چه کله یو فرد انسانی موجود شی، په نفس الامر کښے، نو اراده کولے شی په هغه سره مفهوم چه انسان دے اؤ نکره چه کله واقع شی په سیاق د نفی کښے، نو اراده کولے شی په دے سره نفی د مفهوم اؤ نفی د مفهوم راځی، بیلنډر د جمیع افرادو سره، لکه بالعرض والمحال په جمیع ارض باندې تمام افراد انسانی ختم شی، نو دا نفی د مفهوم راغله چه انسان دے پس تعبیر به د دغه نه داسے اوکړے شی چه ثبوت د کلی راځی په ثبوت د یو فرد سره اؤ انتفاء د کلی راځی په انتفاء د جمیع افرادو سره۔ (ح۔ ز۔ م۔ س)۔

ـت. **جواب**. بدل مرتبه د بدلیت نه قطع کړے شوے، لهٰذا هغه بدل او مبدل منه یو شان نه شول.

**سوال**. د هغه شان شيء هم ته فاعل او مَنَه او بیانیه قطع کړه، د فاعلیت نه. **جواب**. مبدل منه بغیره بدل نه راتلے شي او بدل الغیر د فاعل نه نه شي راتلے. زه کوم داخیل چې بناح په دوه قسمه دے، یعنی اعراز کله په بناح معتاد سره وي او کله په بناح غیر معتاد سره وي. بناح معتاد په دوه قسمه دے، یو خیر سره او دویم شر سره او بناح غیر معتاد صرف یو قسم دے، چې هغه بناح شر دے. **سوال**. تخصیص ستا په بناح معتاد کښې صحیح کیږي، ځکه چې هلته دوه قسمه دي، لهٰذا یو قسم چې په دوه قسمونو کښې خاص شي. دا صحیح دے، مګر تخصیص ستا په بناح غیر معتاد کښې نه صحیح کیږي، ځکه هلته کښې صرف یو قسم دے، لهٰذا په یو قسم کښې څنګه تخصیص اوشي. **جواب**. دلته کښې تخصیص په بناح غیر معتاد کښې هم صحیح دے، ځکه چې شر یو عظیم دے، بل حقیر دے، لهٰذا د شر تخصیص راغلے دے، په شر عظیم کښې نه چې په حقیر کښې. پس عبارت به داسې شي، چې "شرٌ عظیمٌ لاحقیرٌ اهرّ ذا نابٍ".

## درس نمبر ۱۰۸

**وفي الدار رجلٌ** دا بل مثال دے، د هغه نکره، چې مبتدا واقع شوې وي او تخصیص یې راغلے وي، دلته رجلٌ مبتدا ده او تخصیص راغلے دے، ځکه چې تقدیم د ما حقه التاخیر فائده کوي، حصر او اختصاص لره. هر کله چې في الدار اول ذکر شو، لهٰذا دے نه دا معلومه شوه، چې دوي نه پس تخصیص ذکر کیږي، په صحیح وي، کوم د هغه محکوم علیه او صحیح وي استقرار د هغه په دار کښې. پس چې کله یې رجلٌ ذکر کړو، لهٰذا صحیح دے، استقرار د ده په دار کښې ګویا دا رجل موصوف دے، په صفت د حکم په ده باندې په استقرار في الدار کښې.

**وسلامٌ علیك** دا بل مثال دے چې نکره مبتدا واقع شوې وي او تخصیص یې راغلے وي. دلته د وے نکره تخصیص راغلے دے، په علم د متکلم سره. دا ترکیب په اصل کښې داسې وو، چې "سلمتُ سلاماً علیك"، دا سلاماً مفعول مطلق دے او تاکید دے د پاره د اول سلام او د مؤکد او مؤکد حکم یو وي. پس فعل فاعل (سلمتُ) حذف کړے شو. پس پاتے شو سلاماً علیك بیا معمل اوکړے شوه نصب نه رفع ورته، د پاره د قصد د دوام او استمرار، لهٰذا د سلاماً علیك په ځائې باندې سلامٌ علیكَ پاتے شو.

---

لـه. دا په دې چې کوم تحقیق د بدل اکمیل منه اوشو، دا مذهب د امام سکاکي دے او په نزد د شیخ عبدالقاهر جرجاني اثره دې بحث ضرورت نشته. هغه وائي چې دلته کښې بغیر د وے تکلفاتو نه هم تخصیص راغلے دے، ځکه چې تقدیم د مسند الیه په مسند فعلي باندې مفید د حصر او اختصاص دے. دلته کښې تقدیم د شر په مسند فعلي چې اهرّ دے، راغلے دے. پس د ده په نزد باندې تخصیص موجود شو. ۱۲ (رضاني)

**سوال**۔ جمله اسمیه خو دی او دوام او استمرار به په کښې نه وی، لکه زیدٌ قائمٌ، نو بیا خنګه وائے چه عدول وکړے شو، د جملے فعلیه نه جملے اسمیه ته، د پاره د دوام او استمرار۔ **جواب**۔ مطلق جمله اسمیه ...... دلالت نه کوی په دوام او استمرار باندې، بلکه هغه جمله اسمیه دلالت کوی چه هغه معدوله شوې وی د جملے فعلیه نه۔ **سوال**۔ جمله اسمیه خو دی او دلالت به کوی په دوام او استمرار باندې او حالانکه دا به معدوله شوې نه وی، د جملے فعلیه نه، لکه الله ربّنا، محمّد نبیّنا وآدم ابونا۔ **جواب**۔ مراد په جملے اسمیه سره چه معدوله وی، د جملے فعلیه نه دا دے چه بغیر د تعین د شارع نه وی لو دلته په دے کښې سره د تعین د شارع نه دوام او استمرار راغلے دے۔ **سوال**۔ جمله اسمیه به وی، دلالت به کوی په دوام او استمرار باندې نه به په کښې عدول وی، د جملے فعلیه نه او نه به په کښې د شارع نه تعین د دوام او استمرار موجود وی، لکه الارض تحتنا السماء فوقنا وغیره۔ **جواب**۔ شارع عام دے، حقیقتاً وی که حکماً۔ دلته کښې اګرکه حقیقتاً نه دے، لیکن حکماً دے، ځکه چه دا زمونږ مشاهده ده چه الارض تحتنا والسماء فوقنا دے۔ دلته کښې یوه ظاهطه او قاعدۀ اکثریه ده، هغه دا چه د کومے جملے اسمیه مبتدا او جزء اوّل مصدر وی، نو هغه به معدوله وی، د جملے فعلیه نه۔ **سوال**۔ په دے مقام کښې دے تکلفات بعیده ته څه ضرورت دے، بلکه دا سے به یے وئیلی وو چه دا معیار د صحت د ابتدائیت په افادے باندې دے، چه یو شے مخاطب ته فائده ورکوی، نو د هغې ابتدائیت صحیح دے او که مخاطب ته فائده نه ورکوی، نو نه دے صحیح۔ **جواب**۔ دا تکلفات بعیده نه دی، بلکه تحقیقات او تدقیقات دی، تحقیق دے ته وائی چه د یو مدعی د پاره دلائل راوړی او تدقیق دے ته وائی چه د دلائلو د پاره دلائل راوړے شی۔

## درس نمبر ۱۰۹:-

**سوال**۔ خبر خو اسم مجرد دے، د عوامل لفظیه و نه، نو اکار دا ده چه خبر دِ جمله هُم نه وی۔ پس مصنف **جواب** اوکړو او دے وئیل چه:-

**والخبر قد یکون جملة** | او خبر کله کله جمله واقع کیږی او جمله عامه ده، جمله اسمیه وی او که جمله فعلیه وی، ځکه چه جمله من حیث هی هی مستقله بنفسها ده او مربوطه نه ده د غیر سره، ځکه چه حکم خنګه په مبتدا باندې په مفرد سره کیږی، دغه شان په جمله سره هم کیږی او اودا چه خنګه په مفرد سره حاصلیږی، دغه شان په جملے سره هم حاصلیږی۔ بعض علماء وائی چه جمله انشائیه خبر نه واقع کیږی، ځکه چه د دوی په نزد انشائیه په خپله نه ده ثابته، نو بل شے به خنګه ثابت کړی، خو بیا به دوی ته **سوال** وارديږی چه زیدٌ اضربه، جائز دے۔ دلته کښې اضربه خبر دے او جمله انشائیه ده۔ **جواب** دا دے چه دلته په دے کښې تاویل شوے دے، یعنی زیدٌ مقولٌ فی حقه اضربه۔ دلته کښې مصنف قد یکون وئیلی دی او قد چه کله په فعل مضارع داخل شی، نو فائده د تقلیل کوی۔ د دے نه دا خبره معلومه شوه، چه اصل په خبر کښې افراد دے او فصل په خبر کښې افراد لره د دے وجه نه دے چه مطابقت راشی به ...

د رکنیَن د جمله کښې چې هغه مبتداء او خبر دے۔ دوئمه وجه دا ده چې خبر قسم دے د محکوم به او محکوم به قسم دے، د اسم نه اسم قسم دے، کله چې نه او د کلمې په مفهوم کښې افراد مأخوذ دے، په دے وجه باندې اصل په خبر کښې افراد دے۔ دریمه وجه دا ده چې خبر کله جمله وي نو لابدي وي په کښې د عائد نه او احتیاج سبې وي، عائد نه په خلاف د دے نه چې خبر مفرد وي، په هغه کښې بیا احتیاج عائد ته نشته، نو عدم احتیاج اولٰی دے د احتیاج نه.

## مثل زید ابوه قائم وزید قام ابوه

دا اوله مثال د هغې جملې دے، چې دا جمله اسمیه وي او خبر واقع شوې وي، ځکه چې زید مبتداء ابوه مضاف او مضاف الیه مبتداء ثانی او قائم خبر، مبتداء سره د خبر نه دا جمله اسمیه خبر شوه د پاره د مبتداء اول چې زید دے، مبتداء سره د خبر نه جمله اسمیه شوه۔ دا بل مثال د هغې جملې دے، چې دا جمله فعلیه وي او خبر واقع شوې وي، د پاره د مبتداء ځکه زید مبتداء، قام فعل، ابوه مضاف او مضاف الیه دا فاعل شو د پاره د فعل۔ فعل سره د فاعل نه دا جمله فعلیه خبر شو د پاره د زید چې مبتداء دے۔ مبتداء سره د خبر نه جمله اسمیه شوه۔

## فلا بد من عائد

دلته کښې دا فا جزائیه ده او شرط مقدر دے، تقدیر د عبارت به داسې شي چې اذا کان الخبر جملة والجملة من حیث هي مستقلة بنفسها غیر مربوطة بغیرها فلا بدّ من عائد، یعني چې هر کله خبر جمله واقع شي او جمله من حیث هي دا مستقله بنفسها ده او رابطه یې څه سره نه وي او د خبر رابطه خو د مبتداء سره وي، نو لابدي شو په کښې د یو عائد نه، چې هغه رابطه پیدا کړي د دے خبر د مبتداء سره او عائد په څلور قسمه دے، یو ضمیر دے، لکه په دے پورته مثالونو کښې چې ذکر شو، زید قام ابوه یا زید ابوه قائم۔ دا "ه" ضمیر عائد دے۔ دوئم وضع د اسم ظاهر په ځائے د ضمیر باندې، لکه الحاقة ما الحاقة، دلته دا دوئم الحاقة لګول شوے چې هم ذکر شوے دے، یعني الحاقة ما هي، ځکه چې یو شے ذکر شي اول اسم ظاهر، نو بیا دویم دوباره ارجاع د ضمیر کیږي۔ دریم الف لام عائد واقع کیږي، لکه نعم الرجل زیدٌ، څلورم چې دا عائد تفسیري وي د پاره د مبتداء، لکه قل هو الله احد۔

## وقد یحذف

او کله کله دا عائد حذف کیږي، په وخت د وجود د قرینه کښې، په دے عبارت سره مصنف دفع د توهم کوي۔ سوال۔ ته خو وائې چې خبر کله جمله واقع شوے وي، نو لابدي ده په کښې د عائد نه۔ زه به درته اوښایم چې خبر به جمله وي او عائد به په کښې نه وي، لکه البرّ الکرّ بستین درهما، یا السمن منوان بدرهم، نو دلته کښې خبر جمله واقع ده او په دے کښې عائد نشته۔ پس مصنف جواب او کړو چې "وقد یحذف" یعني کله کله دا عائد حذف کیږي په وخت د وجود د قرینه کښې، نو دلته عائد حذف دے په دواړو کښې۔ پس تقدیر به داسې شي، چې البرّ الکرّ منه بستین درهما او السمن منوان منه بدرهم، او ... قرینه ... بیع او مشتري خبرے دي۔

# درس نمبر ۱۱۰

**وما وقع ظرفا فالاکثر علی انه مقدر بجملة.**

او هغه واقع شی خبر هغه شے چه هغه محتاج وی متعلق ته، برابره خبره ده چه ظرفِ زمان وی که ظرفِ مکان وی او که جار مجرور وی۔ پس اکثر نحاة چه بصریان دی، په دے مذهب بانډی دی چه دا به مؤل شی، په فعل سره یعنی متعلق ددے ظرف به فعل وی۔ بحث شه چه مخکښے ذکر د هغه خبر وو، چه هغه یا مفرد وو، یا به جمله وه یقیناً او دا د هغه خبر بیان دے، چه مبهم وی، یعنی یقیناً دا خبره نه وی معلومه، چه خبر مفرد دے او که جمله ده۔ دلته د ظرف نه مونږ تعبیر او کړو په هغه شی سره چه هغه محتاج وی، د یو اعتراض د دفع .......

د اعتراض ـ **سوال** ۔ د ظرف نه به یا ظرفِ زمان اخلے او یا ظرفِ مکان او یا جار مجرور، که ظرفِ مکان اخلے نو خارج شو تری نه ظرفِ زمان او جار مجرور، او که چرته جار مجرور اخلے، نو خارج شو تری نه ظرفِ زمان او ظرفِ مکان او که چرے مشترک واره اخلے نو لازمیږی عموم د مشترک او دا باطل دے۔ **جواب** ۔ مونږ د ظرف نه مراد هغه شے اخلو چه هغه محتاج وی متعلق ته۔ برابره خبره ده چه ظرفِ مکان وی که ظرفِ زمان وی او که جار مجرور وی۔ د فالاکثر نه مراد بصریان دی، نو **سوال** واردیږی چه بصریون خو قلیل دی او د هغوی نسبت تعبیر بفالاکثر سره ولے او کړو؟ **جواب** ۔ په دے کښے اشاره ده قوت د مذهب د بصریانو ته چه دا مذهب قوی او اکثر دے۔ **سوال** ۔ خبر خو مقدر نه وی ملفوظ وی، نو تا ولے دا اوویل فالاکثر علی انه مقدر بجملة او بل سوال دا واردیږی چه د مقدر د پاره خو صله نه راځی، نو ده مصنف دا ولے اوویل چه بجملة؟ **جواب** ۔ د دواړو سوالونو نه دا دے، چه ملبتہ مقدر مؤول دے، په تاویل د مجعول شوے۔ پس اعتراض وارد نه شو او د تاویل د پاره صله هم راځی۔ **سوال** ۔ د بصریانو په نزد خو متعلق د ظرف فعل دے جمله نه ده، نو بیا تا ولے دا اوویل چه مقدر بجملة؟ **جواب** ۔ دلته کښے ذکر د جملے مستلزم او مراد تری نه فعل د قبیلے د ذکر د کل دے او مراد تری نه جزو دے، ځکه چه فعل محتاج دے، فاعل او اوداوهم چه بیلګه شی، نو جمله تری نه جوړیږی۔ زیاتوه دا خبره چه په متعلق د ظرف کښے اختلاف دے، په مابین د بصریانو او کوفیانو کښے۔ بصریان وائی چه متعلق د ظرف فعل دے، ځکه چه فعل اصل دے په عمل کښے، د دے د پاره دوه دلیلونه دی یو دلیل نقلی دے او دوهم دلیل عقلی دی۔ دلیل نقلی دا دے چه فعل وضع شوے دے د پاره د عمل۔ پس دے اصل و ګرځیدو په عمل کښے۔ دلیل عقلی دا دے چه فعل ډیر محتاج دے او چه کوم شے ډیر محتاج وی، نو هغه ډیر مؤثر وی، نو فعل ډیر مؤثر شو او چه ډیر مؤثر شو، نو اصل شو په عمل کښے۔ دوهم دلیل عقلی دا دے، چه په فعل کښے نسبت دے او نسبت فاعل غواړی او فاعل محتاج دے علامی ته او علامه د کعمار د فعل دے۔ کوفیان وائی چه متعلق د ظرف اسم دے، ځکه چه دا جار مجرور په اعتبار د متعلق سره واقع دے، په مقام د خبر کښے او اصل خبر کښے افراد دے او دا نه صحاحسلیږی، مګر په اسم سره، هر کله چه متعلق د ظرف د نزد د دوی یو نزه، بصریانو بانډی رد دے، نو دا مثل به عام طور سره د افعال عامه نحوی او د افعال عامه دا حلول دی چه شاعر دی په شعر کښے ذکر کړی دی:

ے افعال عامه نزد ارباب عقول — کون است و ثبوت است و وجود است و حصول

دَ دیے نه علاوه افعال خاصه پیدے هُم تعلق راتلے شی، خو هغه به په قرینے د مقام سره وی۔ پس په هر کله بصریان متعلق فعل را اوباسی، نو بیا به ئے په کان یو دے متعلق کوے یا په وجد یو دے یا ثبت اَو حصل یو دے اَو کوفیان به متعلق کوی، نو یا کائنٌ یو دے یا موجودٌ یو دے اَو یا ثابتٌ اَو حاصل یو دے۔

## درس نمبر ۱۱۱

**اذا كان المبتدأ مشتملا على ماله صدر الكلام**

په هغه وخت کښے چه وی مبتدا مشتمله د قبیلے د اشتمال دَ دال نه په مدلول باندے، په هغه معنیٰ باندے چه ثابت وی هغه لره په اعتبار دَ معنیٰ مطابقی سره صدارت د کلام، نو ځکه ځائے دَ خبر معلومه شوه چه اصل په مبتدا کښے تقدیم دے۔ او دا په دے عبارت سره موجبات دَ تقدیم د مبتدا لره د تلخیص دَ مبتدا یا الذی، لفظ دَ ما عبارت دے د معنیٰ نه۔ صدارت دَ کلام په هغه ځیزونو لره واجب دے، اوّل استفهام، دوئم قسم، دریم نفی، څلورم تمنی، پنځم ترجی، شپږم ضمیر شان، اووم لام ابتدائیه، اتم شرط، نهم تعجب دے۔ دوی صدارت دَ کلام غواړی، دَ یاره دَ دے چه دَ اوّل وهلو نه دَ کلام دَ نوعیت پته اولګی اَو که چرته دوی موخر کړے شی، نو بیا به ذهن دَ مخاطب مشوش شی۔

**مثل من ابوك**

لکه من ابوك دلته کښے تقدیم د مبتدا په خبر باندے واجب دے ځکه کچیرے تقدیم واجب نه شی، دَ مبتدا په خبر باندے نو فوت به شی صدارت، ځکه چه من صدارت دَ کلام غواړی۔ **سوال** مته خو دا ئے چه په هغه وخت کښے چه مشتمله وی مبتدا په هغه معنیٰ باندے چه هغے لره ثابت وی صدارت دَ کلام، نو دلته خو مَنْ مشتمل نه دے، په صدارت دَ کلام باندے، بلکه دے خو بیخپله صدر دَ کلام دے۔ **جواب**۔ مراد دَ اشتمال نه اشتمال دَ قبیلے دَ دال دے په مدلول باندے یا دلته مراد دَ دلالت نه دلالت مطابقی دے۔ پوهه شه چه دلته په من ابوك کښے اختلاف دے، په مابین دَ جمهورو اَو په مابین دَ سیبویه کښے۔ جمهورو وائی چه، ابوك مبتدا موخره ده اَو من خبر مقدم دے، ځکه چه ابوك معرفه ده اَو اصل په مبتدا کښے تعریف دے لکه من نکره ده، نو دا خبر مقدم دے، ځکه چه اصل په خبر کښے تنکیر دے اَو اصل په خبر کښے تنکیر په دے وجه باندے دے چه په مبتدا اَو په خبر کښے درے ځیزونه وی، اوّل مبتدا، دوئم خبر اَو دریم نسبت دے، په مابین دَ مبتدا اَو دَ خبر کښے۔ پس چه کله خبر هُم معلوم وی اَو نسبت هُم معلوم وی، نو مخاطب ته فائده نه ورکوی اَو چه نسبت معلوم وی اَو خبر نه وی معلوم، نو مخاطب ته فائده ورکوی، په دے وجه جمهورو وائی چه ابوك مبتدا موخر اَو من ورلره خبر مقدم دے، خو جمهورو په مذهب باندے، دا مثال مطابق نه دے دَ ممثل سره۔ سیبویه وائی چه مَنْ مبتدا ده اَو ابوك خبر دے، هغه وائی چه من هُم معرفه دے، ځکه چه دَ دے تعبیر اغلب دے، دَ زیدٌ ابوك ام عمروٌ ام بکرٌ نه۔ پس دَ دے لنډ تعبیر اکثر په من سره اَو دا خو لوئ اعلام دی، نو من هُم معرفه اَو

علاوه اوکړی شو' جمهور جواب ورکوي' سیبویه ته چه' ابوك بلغه' د تاویل نه معرفه ده آو تا په کښې تاویل کړې ده آو په تاویل کښې تکلف ته ضرورت وي- لېس چه په کوم بوشي کښې تکلف آو تاویل نه وي' هغه اولیٰ دے' د هغه نه چه' په کښې تکلف وي، خو سیبویه جواب کوي' چه دلته مابل لپاره اصل سره معارض کړے شي' هغه ما چه صدارت په بیا فوت شي' چونکه مصنف په مذهب سیبویه بانډې دے' په دے وجه ئې دا مثال ذکر کړو-

**اوکانا معرفتین** آؤ یا ری دا دواړه، مبتدا او خبر معرفه په دے شان سره چه نه وي'

قرینه په کون د احدهما باعینہ مبتدا او په آخر باندې خبر- دا بل حالت دے' د تقدیم د مبتدا په خبر باندې وجوبا- د قرینه قید سره سره ځکه کېښودو' چه اعتراض وارد نه شي' په ابوحنیفهؒ ابو یوسفؒ باپه بنونا بنوابنا ئیو باندې- دلته ابوحنیفهؒ او ابویوسفؒ مبتدا او خبر دی او دا دواړه معرفه دی لیکن دلته کښې ابویوسفؒ مبتدا مؤخر دے او ابوحنیفهؒ خبر مقدم دے' ځکه چه قرینه موجوده ده چه صفت تشبیه دَ آدنی دَ اعلیٰ سره او دا لمعنیٰ مقصد دے او دلته تقدیم واجب دے' د مبتدا په خبر باندې' د دے وجه نه چه التباس د مبتدا رانه شي' د خبر سره-

**اومتساویین نحو افضل منك افضل منی** آؤ یا وي مبتدا او خبر مساوي په نفس تخصیص کښې نه په قدر او مقدار د تخصیص کښې- د نفس تخصیص قید سره سره کېښودو' د پاره د دفع د اعتراض- **سوال**. فلا رجل صالح افضل منك- دلته فلا رجل صالح مبتدا ده' تخصیص ئې دوه ځله شوے دے او افضل منك' خبر دے' تخصیص ئې یو ځل راغلے دے' نو د دے چه په مقدار د تخصیص کښې سره مساوي نه دي او دلته کښې تقدیم د مبتدا په خبر باندې واجب دے- **جواب**. چه مساوي وي' دا دواړه مبتدا او خبر په نفس تخصیص کښې نه په مقدار د تخصیص کښې- لهٰذا افضل منك افضل منی د' دا برابر دي' په نفس تخصیص کښې' ځکه چه جانب د مبتدا کښې هم صیغه د اسم تفضیل ده او په جانب د خبر کښې هم او دلته تقدیم د خبر په مبتدا په دے وجه باندې واجب دے چه التباس رانه شي، د مبتدا د خبر سره-

# درس نمبر ۱۱۲

**اوکان الخبر فعلاً له مثل زید قام وجب تقدیمه** آؤ یا وي دا خبر فعل د پاره د مبتدا' یعنی خبر فعل واقع شوے وي' په دے صورت کښې تقدیم د مبتدا واجب دے' په خبر باندې د پاره د دے چه التباس رانه شي' د مبتدا د فاعل سره مثلاً هم دے ترکیب کښې چه زیدٌ قامَ' زید مبتدا ده او قام خبر دے- اوس که چرے موږ لوړ اولو چه' قامَ زیدٌ او ترکیب ئې اوکړو چه زید مبتدا مؤخره شي او قام خبر مقدم شي' نو التباس راځي' د مبتدا د فاعل- ... ترکیب ئې ... چه قام فعل دے او فاعل ئې زید دے- **سوال**. التباس د مبتدا د فاعل سره په صورت د ... کښې راځي'

# درس نمبر ۱۱۳

**او كان مصححاله مثل فی الدار رجل**

اَوْ يا وى دا خبر مصحح اَوْ تصحيح كوونكے دَ پاره دَ مبتدا، په دے شان سره چه دَ دۀ ابتدائيت پرے صحيح كيږى، لكه په دے مثال كښے رجل مبتدا دے اَوْ فى الدار خبر مقدم دے، نو دلته واجب دے، تقديم دَ خبر په مبتدا باندِ، دَ پاره دَ دے چه لانه شى نكارت دَ مبتدا، څنګه رجل نكره دے، خو په تقديم دَ ماحقه التنكير سره په كښے تخصيص پيدا شو.

**او لمتعلقه ضمير فی المبتدا**

اَوْ يا ثابت وى، دَ پاره دَ متعلق دَ خبر ضمير په مبتدا كښے چه هغه راجع وى، دے متعلق وته اَوْ مراد په متعلق سره جزء اَوْ سه مسد دے، چه هغه تالع وى، دَ خبر اَوْ منتج وى، تقديم دَ ما په خبر باندِ لكه :-

**علی التمرة مثلها زبدا**

علی حار التمرة مجرور جار سره دَ مجرور نه متعلق شو په ثابت لهِ ته ملحوظ مقدم شو اَوْ مثلها كښے مثل مضاف اَوْ ها مضاف اليه، مضاف سره دَ مضاف اليه مميز اَوْ زبدًا تميز مميز سره دَ تميز نه دا مبتدا مؤخر دے. دلته تقديم دَ خبر په مبتدا باندِ واجب دَ دَ پاره دَ دے چه اضمار قبل الذكر لازم نه شى لفظًا اَوْ رتبتًا اَوْ اضمار قبل الذكر لفظًا اَوْ رتبتًا باطل دے. دلته ها كا ضمير راجع دے ثمرة ته. **سوال**. دَ دے تركيب په شان خو ما تركيب هم دے، على الله عبده متوكل على الله جار مجرور متعلق دے، په خبر پورے چه متوكل، نو دلته خو تقديم دَ خبر په مبتدا ؤ دے راغلے. ليكن ما وهله چه دلته هم تقديم مجرى دے، دَ خبر په مبتدا باندِ. **جواب**. مونږ وئيلى دى چه مراد په متعلق سره جزء اَوْ سه مسد دے، چه دے تالع وى، دَ خبر په دا سره طبيعت سره چه ممتنع وى تقديم دَ دۀ په خبر باندِ لكه په دے تركيب كښے چه على الله عبده متوكل دے، تقديم دَ متعلق په خبر باندِ جائز دے.

**او كان خبرا عن انّ مثل عندى انك قائم**

اَوْ يا وى خبر دَ مبتدا، خبر دَ انّ يعنى انّ سره دَ اِسم اَوْ دَ خبر نه مبتدا واقع شوے وى، نو په دے صورت كښے تقديم دَ خبر په مبتدا باندِ واجب دے، لكه عندى انك قائم، دلته كښے عندى خبر مقدم دے اَوْ انك قائم انّ سره دَ اِسم اَوْ دَ خبر نه با مبتدا مؤخر دے. **سوال**. تا اووئيل چه او كان خبرا عن انّ، نو دا انّ مبتدا واقع شوے دى لكه اِسم دَ هغه په خبر وى، نو دا نه صحيح كيږى، ځكه چه ان حرف دے اَوْ حرف مبتدا نه واقع كيږى اَوْ كۀ چرته انّ سره دَ اِسم نه خبرا اخلے نو خروج دَ بحث نه بلل، ځكه چه بحث نعوذ په مبتدا اَوْ په خبر كښے دے. **جواب**. دلته مراد په او كان خبرا من انّ سره دا دے، چه ان سره دَ اِسم اَوْ سره دَ خبر نه مبتدا واقع شوے وى، په دے مقام كښے تقديم دَ خبر په مبتدا باندِ واجب دے، دَ پاره دَ دے چه التباس رانه شى، دَ انّ، دَ اِنّ سره، ځكه چه انّ حلل معمول ا ے په تاويل دَ مُفرد

نه کوځي، (پس د عندي انك قائم نه موښ دا ايسے تعبير کولے شو' عندي تحقق قيامك) اؤ محرك وجه د تقدم د خبر په مبتداء باندې په دے ځائے کښې دا ده، چه په ابتداء کښې متکلم په دې رو خبره د مخاطب سره کوي اؤ مخاطب هم متوجه نه دې' نو التباس راځي د اَنَّ د اِنَّ سره نو چه هر کله متکلم عندي انك قائم اُعلاني' نو مخاطب هم متوجه شو، اؤ متکلم هم په نوره خبره شروع کړې وي۔

**وَجَبَ تَقدِيمُهُ** دلته وجب تقديمه جزاء ده' د پاره د شرط چه مخکښې مصنف وئيلي دي چه " اذا تضمن الخبر الخ' يعني واجب دے' په دغه مواضع مذکوره کښې تقديم د خبر په مبتداء باندې لوؤ وجوهات د تقديم موښ ذکر کړل۔ **سوال**. د دے شلورو ځايونو نه علاوه نور هم دوه ځايونه داسے دي' چه هلته کښې تقديم د خبر واجب دے' په مبتداء باندې چه يو خبر واقع وي۔ لپس د اِنَّمَا نه اؤ يا واقع شوے وي' خبر پس د الا اؤ ما نه' يعني ما قائم الا زيد' نو تا ولے دا بقيه دوه ذکر نه کړل۔ **جواب**. مصنف يا دا قياس کړے دے' په فاعل باندې' يعني په ذکر د فاعل کښې د دوي ذکر راغلے دے اؤ يا داخل دي' په ماله صدر الکلام کښې متقدم

**وَقَدْ يَتَعَدَّدُ الْخَبَرُ مِثْلُ زَيْدٌ عَالِمٌ عَاقِلٌ.** اؤ کله کله خبر متعدد وي' اگر چه مخبر عنه واحد وي' ځکه چه خبر حکم وي اؤ کله حکم کولے شي' په يو شي باندې احکام متعدده سره' چه هغه لوؤ صفات متعدده وي۔ دلته قد داخل دے' په فعل مضارع باندې' لوؤ فائده کوي' تقليل لره' يعني اصل په خبر کښې هغه وحدت دے' خو تعدد د خبر هم کله کله راځي۔ **سوال**. تعدد د خبر خو اقل نه دے' خو چه چرته مبتداء وي' هلته به خبر وي' لونه ځکه وائے چه اقل دے' تعدد د خبر۔
**جواب**. مراد په تعدد د خبر سره دا دے چه مخبر عنه يو واحد وي' لوؤ خبر يې متعدد وي۔ تعدد د خبر په دوه قسمه دے' چه لفظاً اؤ معناً دواړه تعدد وي' اؤ يا هغه دے چه لفظاً وي اؤ معناً نه وي' چه تعدد لفظاً وي يا اؤ معناً نه وي' لکه " هذا حلوٌ حامضٌ"۔ دلته اگر که لفظاً تعدد دے' خو معناً نه دے، ځکه چه حلو' دا تعبير دے' د "هذا امزٌّ" نه، يعني دا مرتبه ده، مابين د حموضت اؤ حلاوة کښې اؤ چه چرته تعدد لفظاً وي لوؤ معناً نه وي' نو هلته ترك د حرف عاطفه اولی دے اؤ چه چرته لفظاً اؤ معناً دواړه تعدد وي' نو هلته جواز د امرين دے' يعني ترك هم اؤ اثبات هم' ليکن راوړل د حرف عطف اولی دے' د ترك نه۔ **سوال**. چه هر کله تعدد د خبر لفظاً اؤ معناً دواړه وي' نو حرف هم راوړلے کيږي اؤ ترك يې هم جائز دے' نو مصنف هغه مثال يې ذکر نه کړو' چه په کوم کښې حرف عطف راوړلے شي' بلکه هغه مثال يې اوړے چه' ترك د حرف په کښې وي۔
**جواب**. مثال د هغه چه په هغه کښې حرف عاطفه موجود وي' هغه ظاهر وو اؤ چه کوم کښې حرف عطف نه وي' په هغه کښې خفاء وه' په دے وجه يې دا مثال راوړو۔ دوئم جواب دا دے چه خبر کله په حرف عطف سره راشي' نو دا تابع اؤ تاکيد وي۔ پس دا خبر نه شو۔ دريم جواب دا دے چه' مصنف دا مثال د پاره د دفع د توهم ذکر کړو' متوهم به دا توهم کولو' چه مبتداء کله متعدده وي' نو هلته حرف عطف راوړل واجب دي۔

کنې چې چیرته خبر متعدد وي، نو هلته په ګڼو راوړلو کې د حرفِ عطف راوړل واجب وي. پس مصنف د پاره د دفع کولو د دغه اعتراض دا مثال راوړو، چې په کښې حرفِ عطف نه وي راغلی، چې معلومه شي چې دلته خبر په دې کښې شان د خبر په شان د مبتدا نه دے.

## درس نمبر ۱۱۲

**وقد یتضمن المبتداء معنی الشرط فیصح دخول الفا فی الخبر** او کله کله مبتدا متضمن وي معنیٰ د شرط لره. پس صحیح دے دخول د فا په خبر کښې، ځکه چې مبتدا په منزله د شرط شو او خبر په منزله د جزا د شرط لره، او په جزا کښې فا راوړلے کیږي.

نو هلته به هم په خبر کښې فا راوړلے شي، د دې نه مخکښې چې مصنف رحمه الله احکام د مبتدا او د خبر ذکر کړل، په هغه کښې مبتدا هسې امر زائد او خبر په حرف زائد نه وو مشتمل، او اوس هغه ځائے ذکر کوي چې مبتدا مشتمله وي په امر زائد او خبر مشتمل وي په حرف زائد باندې. پس دے مثال چې وقد یتضمن المبتدا معنی الشرط. د معنی الشرط اضافت بیانی ده. اضافت بیانی هغه ته وائي چې مضاف الیه بیان راغلے وي د پاره د مضاف. د معنی الشرط معنیٰ په نزد د ابن حاجب شارح جامی رحمه الله دا ده چې: کون الاول سببا للثانی، یعنی اوّل جز چې سبب وي د پاره د ثاني، خو په دې باندې **سوال** وارديږي چې وما بکم من نعمة فمن الله. دلته خو جز اوّل سبب د پاره د ثاني نه دے او بیا دا چې مبتدا متضمنه معنیٰ د شرط لره نه ده او بالوجود د دې نه په خبر کښې چې فمن الله ده فا راغلے ده. **جواب**. کون الاول سببا للثاني عام دے، چې اوّل سبب وي د پاره د ثاني او که حکم د اوّل سبب وي د پاره د حکم د ثاني، نو هلته هم حکم د اوّل سبب دے د پاره د حکم د ثاني او شیخ رضي والي چې د معنی الشرط معنیٰ دا ده چې کون الثاني لازما للاول. برابره خبره ده چې اوّل سبب وي د پاره د ثاني لکه ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود او که ثاني سبب وي د پاره د اوّل لکه ان کان النهار موجودا فالشمس طالعة او که دا دواړه معلولین د بل علت د پاره وي لکه ان کان النهار موجودا فالعالم مضئ. دلته دا دواړه معلولین دي د پاره د طلوع د شمس. **سوال**. متکلم چې یا قصد د معنیٰ د شرط کړے وي په مبتدا کښې لو یا به ئې نه وي کړے، که چیرته قصد ئې کړے وي، بیا خو راوړل د فا واجب دي او که نه وي کړے نو بیا راوړل د فا ممتنع دي. **جواب**. خبره نوعیه په نفسِ تضمن د مبتدا کښې ده معنیٰ د شرط لره. قطع نظر د قصد د متکلم نه چې متکلم قصد کړے وي او که نه ئې وي کړے.

**وذالک الاسم الموصول بفعل او ظرف** دا مبتدا چې متضمنه وي معنیٰ د شرط لره چې دا اِنځم وي، هغه اسم چې هغه موصول وي په فعل سره یا په ظرف سره، یعنی صله د دغه اسم یا فعل راغلې وي او یا ظرف راغلې وي او یا دا مبتدا هم متضمنه وي معنیٰ د شرط لره اسم وي، هغه اسم چې هغه موصوف وي په موصول سره. او اوس په هغه صورت کښې چې مبتدا متضمنه

وی، معنیٰ د شرط لره. هغه اسم وی، هغه اسم چه هغه موصول وی، په فعل یا په ظرف سره. برابره خبره ده چه دا موصول صریحی وی او که تقدیری. مثال لکه 'الزانیة والزانی، فاجلدوا کل واحد منهما'. دلته الف لام په معنیٰ د موصول دی یعنی 'الزانیة اللتی تزنی، والزانی والذی یزنی'.

**مثل الذی یاتینی او فی الدار فله درهم**

دا مثال د هغه دے چه موصول صریحی وی لو صله یې فعل وی. دلته 'الذی موصول یاتینی'. فعل ضمیر په کښې مستتر هغه یې فاعل. ن وقایه، ی مفعول به. فعل سره د فاعل او د مفعول به نه دا جمله فعلیه صله شوه، د پاره د موصول، موصول سره د صلې نه مبتداء، فلهٗ دا خبر مقدم او درهم دا مبتداء موخره. مبتدا موخره سره د خبر مقدم نه دا جمله اسمیه خبر شو، د پاره د مبتداء، مبتداء سره د خبر نه جمله اسمیه شوه. دلته الذی موصول دے او صله یې 'یاتینی' فعل راغلی دے، دا متضمن دے معنیٰ د شرط لره او 'الذی فی الدار فله درهم' دا مثال د هغه دے چه صله ظرف راغلے وی، الذی موصول، فی جار، الدار مجرور. جار سره د مجرور نه دا متعلق شو په ثبت پورې. ثبت فعل ضمیر په کښې مستتر هغه فاعل فعل سره د فاعل او د متعلق نه دا جمله فعلیه صله شوه، د پاره د الذی موصول سره د صلې نه مبتداء او فله درهم جمله اسمیه دا خبر شو.

**سوال**. زه به درته او ښایم چه مبتداء به وی متضمن به وی معنیٰ د شرط لره او په خبر کښې به دخول د فا وی او سره د دے نه به مبتداء اسم موصول نه وی چه صله یې یا فعل راغلے وی او یا ظرف، لکه ان الموت الذی تفرّون منه فانّه ملاقیکم. دلته الموت مبتداء دے او موصول په فعل یا ظرف سره نه دے. **جواب**. عبارت د مصنف په تقدیره معطوف سره دے، تقدیره عبارت به داسې شی چه یا وی دا مبتداء چه متضمن وی معنیٰ د شرط لره. اسم داسې اسم چه موصوف وی، په موصول سره. پس دلته کښې الموت دا مبتداء ده او اسم دے چه صفت یې په الذی موصول سره راغلے دے، ترکیب به داسې شی، الموت موصوف، الذی موصول، تفرّون فعل ضمیر په کښې مستتر دے چه انتم دے، هغه یې فاعل منه جار مجرور، جار سره د مجرور نه دا متعلق شو په فعل تفرّون پورې، فعل سره د فاعل او متعلق نه دا صله شو، د پاره د موصول، موصول سره د صلې نه دا صفت شو د پاره د موصوف، موصوف سره د صفت نه دا مبتدا او فانه ملاقیکم دا جمله اسمیه خبر، مبتدا سره د خبر نه جمله اسمیه او دلته اشتراط په وصل یا په وصف سره د دې د پاره نه دے چه مشابهت د شرط سره متاکد او قوی او کړې شي.

## درس نمبر ۱۱۵

**او النکرة الموصوفة بهما**

او یا وی دا مبتداء چه متضمن وی معنیٰ د شرط لره نکره اسم چه هغه نکره وی او صفت یې راغلے وی، په فعل سره یا په ظرف سره.

**سوال**. ستا دا قاعده منتقضه شوه په دې ترکیب باندې چه کل غلام رجل یاتینی فله درهم، یا کل غلام

رجلٌ في الدار فله درهم - دلته غلام مبتداء دى او موصوف نه دى، په فعل يا په ظرف سره او باوجود دے نه يئ په خبر كښې فا راغلى ده. **جواب**: دلته معطوف حذف دے او تقديرى عبارت ئې داسے شى چه "او النكرة الموصوفة بهما او الاسم المضاف الى النكرة الموصوفة بهما" چه يا داسے اسم وى چه اضافت ئې راغلے وى نكرے ته او يا داسے نكرے صفت فعل يا ظرف ته راغلے وى۔

**مثل كل رجل ياتيني او في الدار فله درهم** دا دواړه مثالونه د هغه وى چه مبتدا نكره وى او صفت ئې راغلے وى، په فعل سره يا په ظرف سره، لومړے "كل رجل ياتيني فله درهم" رجل مبتدا ده او نكره ده او صفت ئې راغلے دے، په فعل سره. د هغه مثال "كل رجل في الدار فله درهم" رجل موصوف دے او في الدار ورله صفت دے. موصوف سره د صفت نه مبتدا "فله درهم" ورله خبر شو، مبتدا سره د خبر نه جمله اسميه شوه. زه كوم داخبره چه دلته قول اته صورتونه جوړيږى، خلور به اول قسم كښې، او خلور په دويم قسم كښې. د اول قسم سره موږ معطوف مقدر كړے دے او دويم قسم سره هم معطوف مقدر دے. اول صورت دا دے چه مبتدا اسم موصول او صله ئې فعل وى، لكه "الذي ياتيني فله درهم" دويم صورت دا دے چه مبتدا اسم موصول وى او صله ئې ظرف وى، لكه "الذي ياتيني فله درهم". دريم صورت دا دے چه مبتدا موصوفه وى، په موصول سره او د دے موصول د پاره صله فعل وى، لكه "الرجل الذي ياتيني فله درهم". څلورم صورت دا دے، چه مبتدا موصوفه وى، په موصول سره او د دے موصول د پاره صله ظرف وى، لكه "الرجل الذي في الدار فله درهم". دا څلور صورتونه د اول قسم شو او په دويم قسم كښې اول صورت دا دے چه مبتدا نكره وى او موصوفه وى، په فعل سره، لكه "كل رجل ياتيني فله درهم". دويم صورت دا دے، چه مبتدا نكره وى او موصوفه وى په ظرف سره، لكه "كل رجل في الدار فله درهم". دريم صورت دا دے چه مبتدا اسم وى او مضاف وى، نكرے ته، چه هغه نكره بيا موصوفه وى، په فعل سره، لكه "كل غلام رجل ياتيني فله درهم". څلورم صورت دا دے چه مبتدا اسم وى او مضاف وى، نكرے ته او دا نكره موصوفه وى، په ظرف سره، لكه "كل غلام رجل في الدار فله درهم".

**وليت ولعل مانعان بالاتفاق** ليت او لعل چه دا دواړه حرفونه وى، د حروف مشبهه بالفعل نه، دوى منع كوى، د دخول د فاء لره، په خبر باندے په اتفاق د نحويانو سره. په دے عبارت سره مصنف د دفع د **سوال** كوى. سوال دا دے، چه تا خو وئيل چه مبتدا متضمن او كړى، معنى د شرط لره، نو بيا دخول د فا صحيح وى، په خبر كښې او دلته به دے تركيب كښې چه "ليت الذي ياتيني له درهم" يا "لعل الذي ياتيني له درهم". دلته خو فا نه ده راغلى. مصنف **جواب** اوكړو، په دے عبارت سره چه "ليت ولعل مانعان" ځكه چه ليت او لعل زائل كوى، مشابهت د مبتداء او د خبر د شرط او د جزاء سره، ځكه چه موږ راوړو، د پاره د انشاء او شرط جزاء (جمله شرطيه) دا راځى، د پاره د خبر او په مابين د انشاء او د خبر كښې منافات دے، په دے وجه باندے بالاتفاق

دخول د فا په د لیت لو د لعل کښې ممتنع دے۔ **سوال**۔ باب د علمت او کان هم مانعان دي لو څه وجه، چه مصنف خاص کړې په ذکر سره لیت او لعل۔ **جواب**۔ مصنف لیت او لعل خاص کړې په ذکر سره، په نسبت سره د نورو حروف مشبه بالفعل ورته او باب د علمت او کان خو حروف مشبه بالفعل نه دي۔

**وألحق بعضهم ان بهما** مراد د بعض نه سیبویه دے او ملحق کړې دے، بعض فضلائو ان لعل پورې ان، لکه چه څنګه لیت او لعل مانعان دي، دغه شان ان هم مانع دے، د دخول د فا د په خبر کښې۔ دلته اختلاف دے، په مابین د جمهورو او د سیبویه کښې۔ سیبویه وائي چه ان هم مانع دے، د دخول د فا د په خبر کښې او جمهور وائي چه ان مانع نه دے، د دخول د فا د په خبر کښې۔ د سیبویه د پاره دوه دلیله دي، یو دلیل عقلي دے او دویم دلیل نقلي دے، دلیل عقلي دا دے چه ان راځي د پاره د تحقیق او جمله شرطیه مشتمله ده په تردد باندې او په مابین د تحقیق او د تردد کښې منافات دے او دلیل نقلي دا دے چه په قرآن پاک کښې راغلي دي، چه ان الذين امنوا وعملوا الصالحات كانت لهم جنت الفردوس۔ دلته د ان په خبر (چه كانت دے) فاء نه ده راغلې۔ د جمهورو د طرف نه سیبویه ته جواب د دلیل عقلي نه دا دے چه ان اګر که د تحقیق، لکه چه په شرط کښې تردد وي، نو هغه محکم کوي او که چرته په جزاء کښې تردد وي، نو هغه محکم کوي او دلیل نقلي نه جواب دا دے چه دلته دا قاعده وجوبي نه ده، بلکه جوازي ده او جمهور په خپل دلیل کښې وائي چه ان الموت الذي تفرون منه فانه ملاقيكم۔ دلته د ان په خبر کښې فاء راغلې ده۔ سیبویه جواب ورکوي چه دلته خبر د ان فانه ملاقيكم نه دے، بلکه هغه مقدر دے، چه هغه لا ينفعكم الفرار دے، یعني ان الموت الذي تفرون منه لا ينفعكم الفرار فانه ملاقيكم۔ جمهور ورته وائي چه دا تکلف دے، بیا ورته په دلیل کښې جمهور وائي چه ان الذين امنوا وعملوا الصلحت فلهم اجرهم۔ دلته د ان د پاره خبر فلهم دے او فاء ورباندې راغلې ده۔ **سوال**۔ بعض غالو خو ان هم ملحق کړې دے، په لیت او په لعل پورې، نو هغه ولې ذکر نه کړو؟ **جواب**۔ قائل د ان هغه سیبویه دے او هغه چونکه امام د علم نحو دے، په دې وجه باندې د هغه قول قوي دے او د هغه د قول اعتبار شته دے او د ان قائل ضعیف دے لو د هغه قول لره اعتبار نشته، خو که مذهب د سیبویه دے او یا د بعضو نحویو مذهب، هغه د نصیح لغت سره موافقت نه خوري، د ان مثالونه خو تیر شو او صحیح دے، ان چه فاء راځي په خبر کښې، لکه واعلموا انما غنمتم من شيء فان لله خمسه دلته په فان باندې فاء راغلې ده۔

## درس نمبر ۱۱۶

**وقد يحذف المبتدا لقيام قرينة جوازا** او کله کله حذف کولے شي مبتدا په خاطر د وجود د قرینې کښې (برابره خبره ده چه دا قرینه لفظیه وي که عقلیه وي، حالیه وي که مقالیه وي) په حذف جوازي سره، په دېنه مقام کښې په حذف د مبتدا کښې دوه مذهبه دي، یو مذهب ضعیف دے او بل مذهب قوي دے۔ مذهب ضعیف دا دے چه د مبتدا محذوف بالکل باطل دے،

له قرینه وی لکه ئے ووی حکه چه مبتدا رکن اصیل او رکن رکین دے یعنی مبتدا مقصود بالذات دے او خبر مقصود بالذات نه دے، په دے وجه ده هغه د مبتدا حذف جائز دے چه هغه رکن اصیل نه دے، هُم د هغه وجه ده چه مبتدا نه وی لو خبر به مُوږ نه وی او مذهب قوی دا دے چه حذف د مبتدا جائز دے، حکه چه کلام د عربو په دے باندے شاهد دے۔ ملته چونکه په فعل مضارع باندے قد داخل شوے دے، دا فائده کوی تقلیل۔ د دے نه ماخوذ معلومه شوه چه اصل په مبتدا کښے هغه ذکر دے، په لقیام کښے په لام باندے دا **سوال** وارد یږی چه ظاهر متبادر د لام نه ملحوظ لام تعلیلیه دے، هر کله چه تعلیلیه شو لو بیا وجود د علت مستلزم دے وجود د معلول لره، وجوباً به نو لکا رداده چه په وخت د وجود د قرینه کښے حذف وجوبی شی او ته خو وائے چه جوازاً۔ **جواب**۔ ملته دا لام تعلیلیه نه دے، بلکه لام وقتیه دے، لکه په دے قول د باری تعالیٰ کښے "اقم الصلوٰة لدلوك الشمس" الایة۔ او یا دویم جواب دا دے چه ملته دا لام تعلیلیه دے، خو علت په دوه قسمه دے، یو علت د جواز دے او دویم علت د وجوب دے۔ ملته د علت نه مُراد علت جواز دے نه علت د وجوب۔ د قیام نه مُراد وجود دے یعنی په وخت د وجود د قرینه کښے۔ قرینه والی، امر دال علی تعین الشیُ ته۔ برابره خبره ده چه حالیه وی که مقالیه وی، لفظیه وی که عقلیه وی جوازاً۔ دا مفعول مطلق دے یعنی دا صفت واقع شوے دے، د پاره د موصوف محذوفه چه هغه مفعول مطلق دے۔ **سوال**۔ چه جوازاً مفعول مطلق شی لو مفعول مطلق هغه ته وائی چه فعل په هغه باندے مشتمل وی۔ د قبیلے د اشتمال د کل نه په جز باندے او دلته خو فعل چه یحذف دے، دا مشتمل نه دے په جوازاً باندے۔ **جواب**۔ جوازاً دا صفت واقع شوے دے، د پاره د مفعول مطلق محذوفه چه هغه حذفاً دے او حذفاً مفعول مطلق بیا حذف شوے دے او د دے په ځائے جوازاً او درولے شوے دے۔ **سوال**۔ صفت خو محمول وی په موصوف باندے او چه هر کله جوازاً حمل شی په حذفاً باندے لو ظاهر خو حمل د صرف وصف راځی په ذات باندے۔ **جواب**۔ جوازاً مصدر مبنی للفاعل دے، دا به الکوځی په تاویل د جائزاً سره، ای حذفا جائزاً او حمل د صرف وصف خو په ذات مع الوصف باندے روا دے۔

## درس نمبر ۱۱۷

**کقول المستهل الهلال والله** | لکه دا مقوله د لیدونکی د هلال شوه چه هغه رفع د صوت لکوی په دے باندے چه الهلال والله۔ ملته غرض د مستهل تعین د شے دے، لکل په اشاره سره او بیا ورد سره حکم دے په هلالیة، د هغه شی سره مستهل په اصل کښے هغه کس وائی چه هغه پیدا شی لو پیدا کیدو سره چغه لګوی او ملته ترینه نه مُراد هلال لیدونکے دے او د قول نه مُراد مقوله۔ او س ملته به دے مقوله کښے مبتدا حذف ده چه هغه هذا ده لو قرینه دا باندے حالیه ده۔

**سوال**۔ ملته خه قرینه ده چه مبتدا محذوف ده، بلکه دا هم کیدے شی چه خبر حذف وی، لکه "الهلال والله هذا"۔ **جواب**۔ قرینه دا ده چه ملته غرض د مستهل تعین د شی دے، اولاً په اسم اشاره سره لو بیا حکم دے، په

هلالیت د شي باندې نه اولاً حکم شوی، په هلالیت سره اوبیا اشاره ده تعین د شي نه. **سوال**. اتمام د سوال څخه په الهلال باندې دلته ولې، او والله قسم ته څه ضرورت وو. **جواب**. عادت د مستهلین دا دی چې هغوی والله ذکر کوي او یا دا چې والله یې د پاره د تعین د رفع ذکر کړو، ځکه چې که چرته والله یې نه ذکر کولی، نو بیا خو دا مفرد وو او په دې به یې وقف کړی وو او په حالت د توقف کې بېخي نه ښکاریده چې دا مرفوع دی که منصوب دی، ځکه چې د نصب احتمال هم په کې شته، چې دا مفعول اوګرځي د پاره د رأیتُ، یعني رأیتُ الهلال. پس والله یې د پاره د تعین د رفع ذکر کړو. **سوال**. د مبتدا حذف خو په دوه قسمه دی، یو وجوباً دی او دوېم جوازاً دی، نو مصنف ولې یو قسم (چې جوازاً دی) ذکر کړو او وجوباً یې ذکر نه کړو. **جواب**. حذف د مبتدا وجوباً قلیل او نادر دی کالعدم دی، په دې وجه یې ذکر نه کړو، ځکه چې مبتدا په دوه ځایونو کې وجوباً حذف کیږي، یو په افعال مدح کې او بل په هغه ځای کې چې نعت د نعتیت نه قطع شوې وي.

**مثل خَرَجْتُ فاذا السبعُ** دلته کې خبر د السبع د پاره حذف شوې دی، په حذف جوازي سره ځکه چې دلته کې قرینه موجوده ده، هغه دا ده چې اذا مفاجاتي دی او دا اکثراً داخلیږي په جمله اسمیه باندې او حل دا دی چې دلته مدخول د اذا جمله نه ده بلکه مفرد دی، نو پته اولګیده چې دلته کې خبر د اذا مفاجاتي محذوف دی، چې هغه موجودٌ یا واقف دی یا دا چې اذا مفاجاتي دلالت کوي په وجود باندې او که دلته ذکر نه وو، نو معلومه شوه چې هغه حذف دی. **سوال**. خرجت فاذا السبع کې خرجت دا معطوف علیه فا حرف عاطفه او اذا معطوف دی او معطوف حمل وي په معطوف علیه باندې او دلته دا حمل نه صحیح کیږي ځکه چې خرجت جمله فعلیه ده او معطوف حرف دی. **جواب**. دلته معطوف هغه فاجئتُ دی چې پټ اومتعلق دی د اذا مفاجاتي نه، یعني خرجت ففاجئتُ السبع او یا دلته دا فا زائده ده.

**وَوجوباً فیما التزم في موضعه غیره** دا عطف دی په جوازاً باندې. تقدیري عبارت به دا شي چې "وقد یحذف الخبر لقیام قرینة وجوباً" یعني کله کله حذف کیږي خبر د مبتدا په حذف وجوبي سره، د وجه د وجود د قرینې او د سد مسد نه، په هغه ترکیب کې چې په هغې کې التزام کړی شوی وي، په ځای د خبر د غیر د خبر، یعني په ځای د خبر غیر د خبر راوړل شوی وي او دا ځای خالي نه وي، کما سیجیئ إن شاء الله تعالی. **سوال**. په فیما کې دا ما د څه نه عبارت دی؟ که د ځای نه عبارت ولګوله، نو ظرفیة د شي لازمي د پاره د نفس خپل او دا باطل دی، او که عبارت یې ولګو د ترکیب نه، نو ما موصوله دی او موصول محتاج وي عائد ته په خبر کې او دلته په صله کې هلته نشته، نو دا هم نه صحیح کیږي. پس خلاصه دا شوه چې ما که بیخي عبارت واخلو د ځای نه، نو هم نه صحیح کیږي او که د ترکیب نه یې واخلو، نو هم نه دی صحیح، خو دلته بل یو ضمني **سوال** پیدا کیږي، چې په فی موضعه غیره کې دا ضمیرونه راجع دي، نو د ترکیب نه دا وائي چې په صله کې ضمیر نشته. **جواب** دا دی چې دا ضمیر راجع نه دی، ما موصول

وته، بلکه دا راجع دی خبر وته - پس د اصل اعتراض نه - **جواب** دا دے چه دلته دا مَا عبارت دے، د ترکیب نه لوَ کهٔ شو ولگیږي دا موصوله دے اَؤ ضمیر به صله کښې نشته، لو معنی والی چه دلته عبارت به تقدیر سره دے - اصل به داسې شی چه "فیما التزم فیه فی موضعه غیره" یا دلته دا ما موصوفه هم صحیح کیږی اَؤ مَا مصدریه حینیه هم صحیح کیږی، یعنی فی وقت التزم غیر الخبر فی موضع الخبر۔

## درس نمبر ۱۱۸

**مثل لولا زید لکان کذا** (دا هغه خلوتی خانونه کی کوی) دا اَتَله خامسه دے، مراد د دے نه هغه ترکیب دے چه لولا ملتفل شو شوی، یه مبتدأ باندې اَؤ به جمله د خبر باندې جواب د لولا راغلی وی، لو دلته کښې حذف د خبر واجب دے، د وجه د قرینې نه اَؤ د سد مسد نه - قرینه دلته لولا دے، حکه چه لولا راځی، د پاره د انتفاء د ثانی د وجه د وجود د اَوّل نه، لکه "لولا علیٌّ لهلك عمر" - دلته عدماً هلاکت د عمرؓ د وجه د وجود د علیؓ نه دے، لو قرینه وجود د لولا دے اَؤ سد مسد دلته قیام د جواب د لولا دے، به ځائے د خبر باندې - دا مذهب د بصریانو دے، چه د زید د پاره خبر محذوف دے - فَرّاء وائی چه دلته کښې زید مرفوع دے به بناء د فاعلیت اَؤ فعل د ده حذف دے، حکه چه لو داخلیږی به فعل - هو دلته چه دلته فعل موجود نه وی لو معلومه شو چه فعل محذوف دے، هغه وجد دے، یعنی لولا وجد زیدٌ لو د بصریانو د طرف نه جواب دا دے چه، کله چه دلته کښې فعل حذف وی لو بکار دا وه چه تفسیر ئې وروستو راغلے وے، حکه چه چرته فعل حذف وی، لو د هغې تفسیر وروستو راغلی وی، لکه "وان احدٌ من المشرکین استجارك" - دلته استجارك دا تفسیر راغلے دے، د هغه استجارك نه چه کوم د إنْ نه وروستو حذف کړے شوے دے اَؤ دلته څو تفسیر د فعل محذوف نه دے راغلے اَؤ اخفش وائی چه دلته لولا مسند دے، حکه چه د دے نه فهم کیږی معنی د وجود اَؤ زیدٌ مسند الیه دے، خو بصریان دوئ ته جواب ورکوی چه لولا حرف دے اَؤ حرف خو مسند نه واقع کیږی - **سوال** ۔ تاسو وائے چه لولا به کوم مبتدأ داخل شی، لو د هغې خبر به وجوباً حذف شوی، لو به دے قول د امام شافعیؒ کښې چه "ولولا الشعر بالعلماء یزری، لکنت الیوم اشعر من لبید" - د لولا د مبتدأ خبر محذوف نه دے، بلکه ذکر دے - **جواب** ۔ دا حذف د خبر به هغه ځائے کښې دے چه چرته کښې خبر د افعال عامه نه وی، لکه وجود شو، حصول شو، کون شو اَؤ یا ثبوت اَؤ دلته خبر د افعال عامه نه نهٔ دے، بلکه د افعال خاصه نه دے، پوره قطعه دا ده۔

ولولا الشعر بالعلماء یزری ... لکنت الیوم اشعر من لبید!!
ولولا خشیة الرحمٰن عندی ... جعلت الناس کلهم عبیدی

**ومثل ضربی زیدا قائماً** دا دویم خامسه دے، د مواضع اربع نه چه چرته حذف د خبر واجب دے - مراد د دے نه هغه ترکیب دے، چه

مبتدا مصدر وي۔ برابره خبره ده که تاویلاً مضاف وي، فاعل ته یا مفعول ته اګر یا دواړو ته او د دغه نه وروستو
حال راغلی وي، که د فاعل نه وي که د مفعول نه وي، که د دواړو نه وي او یا دا مبتدا اسم تفضیل وي چې نسبت
یې راغلی وي، مصدر ته صراحتاً وي که تاویلاً او دا مصدر مضاف وي، فاعل ته یا مفعول ته او یا دواړو ته او کړې شو
د دغه نه حال واقع شوې وي یا د فاعل نه یا د مفعول نه یا د دواړو نه۔ مثال د هغې چې مبتدا مصدر صریحي وي او اضافت
یې راغلې وي، فاعل ته او وروستو حال راغلې وي، د فاعل نه، لکه ذهابي راجلاً۔ دلته کښې ذهاب مصدر دے اضافت
یې یاء د متکلم ته راغلې وي، چې هغه فاعل دے او راجلاً د دې فاعل نه حال واقع شوے دے۔ مثال د هغې چې مبتدا
مصدر صریحي وي، اضافت یې مفعول ته راغلې وي او وروستو حال د دې مفعول نه واقع شوے وي، لکه ضربُ زیدٍ قائماً۔
دلته مصدر اضافت راغلې دے، مفعول ته او قائماً حال واقع شوے دے د مفعول نه۔ مثال د هغې چې مبتدا مصدر
صریحي وي او اضافت یې فاعل او مفعول ته راغلې وي او وروستو د هغې نه حال راغلې وي یا د فاعل او یا د مفعول
نه، لکه ضربي زیداً قائماً۔ دلته قائماً یا حال دے، د یاء د متکلم نه چې فاعل دے او یا د زیداً نه چې مفعول دے۔
مثال د هغې چې مبتدا مصدر صریحي وي او اضافت یې فاعل او مفعول دواړو ته راغلې وي او وروستو حال د دواړو
نه واقع شوې وي، لکه ضربي زیداً قائمین۔ دلته کښې قائمین د فاعل او د مفعول د دواړو نه حال واقع شوے دے۔

**درس نمبر ۱۱۹:-** مثال د هغې چې مبتدا مصدر تاویلي وي او نسبت یې راغلې وي، فاعل
ته او وروستو د فاعل نه حال واقع شوې وي، لکه اَنْ ذهبتُ راجلاً۔ دلته راجلاً حال واقع دے، د فاعل نه
او مبتدا مصدر تاویلي ده۔ مثال د هغې چې مبتدا مصدر تاویلي وي او نسبت یې راغلې وي، مفعول ته او
وروستو حال راغلې وي، د مفعول نه، لکه اَنْ ضرب زیداً قائماً۔ دلته قائماً حال دے، د زیداً نه او مبتدا
مصدر تاویلي ده۔ مثال د هغې چې مبتدا مصدر تاویلي وي او نسبت یې فاعل او مفعول دواړو ته راغلې وي
او وروستو حال واقع شوې وي یا د فاعل نه او یا د مفعول نه، لکه اَنْ ضربتُ زیداً قائماً۔ دلته قائماً حال
واقع دے یا د فاعل نه چې "تُ" دے او یا د مفعول نه چې زید دے او مبتدا مصدر تاویلي ده۔ مثال
د هغې چې مبتدا مصدر تاویلي وي او نسبت یې راغلې وي، فاعل او مفعول دواړو ته او وروستو حال د دواړو
نه راغلې وي، لکه اَنْ ضربتُ زیداً قائمین۔ دلته قائمین حال د فاعل او د مفعول د دواړو نه راغلې دے او
مبتدا مصدر تاویلي ده۔ مثال د هغې چې مبتدا مصدر صریحي وي او اضافت وته د اسم تفضیل راغلې
وي او د مبتدا نسبت فاعل ته شوې وي او وروستو حال واقع شوې وي، د فاعل نه، لکه اکثرُ ذهابي
راجلاً۔ دلته کښې اکثر اسم تفضیل دے او اضافت یې راغلې دے، مبتدا ته، چې مصدر صریحي دے او د
مصدر نسبت فاعل ته راغلې دے او وروستو راجلاً حال واقع شوې دے، د فاعل نه۔ مثال د هغې چې
مبتدا مصدر صریحي وي او اضافت وته د اسم تفضیل راغلې وي او د مبتدا نسبت مفعول ته شوې وي
او ... حال واقع شوې وي، د مفعول نه، لکه اکثرُ ضربِ زیدٍ قائماً۔ دلته د اکثر اسم تفضیل نسبت

او لرې افتراق ئې دے، مبتداء ته، چې مصدر صریحي دے او د مبتداء نسبت راغلے دے مفعول ته او وروستو قائماً حال دے، د مفعول نه. مثال د هغه چې مبتداء مصدر صریحي وي او اضافت وشي د اسم تفضیل راغلے وي او د مبتداء نسبت فاعل او مفعول دواړو ته شوے وي او وروستو حال راغلے وي، یا د فاعل نه یا د مفعول نه، لکه «اکثر ضربي زیداً قائماً». دلته د اکثر اسم تفضیل نسبت راغلے دے، مبتداء ته چې مصدر صریحي دے او بیا د مبتداء نسبت راغلے دے، فاعل او مفعول دواړو ته او وروستو قائماً حال واقع شوے دے، یا د فاعل نه یا د مفعول نه. مثال د هغه چې مبتداء مصدر صریحي وي او نسبت او اضافت وشي د اسم تفضیل راغلے وي او بیا مبتداء مضاف وي فاعل او مفعول دواړو ته او وروستو حال راغلے وي، د فاعل او مفعول دواړو نه، لکه «اکثر ضربي زیداً قائمین». دلته د اکثر اسم تفضیل نسبت راغلے دے، مبتداء ته، چې مصدر صریحي دے او د مبتداء اضافت راغلے دے، فاعل او مفعول دواړو ته او وروستو قائمین حال واقع شوے دے، د دواړو نه. مثال د هغه چې مبتداء مصدر تاویلي وي او اضافت وشي د اسم تفضیل راغلے وي او بیا د مبتداء نسبت فاعل ته شوے وي او وروستو حال راغلے وي، د فاعل نه، لکه «اکثر ان ذهبت راجلاً». دلته د اکثر اسم تفضیل نسبت راغلے دے، مبتداء مصدر تاویلي ته او د هغه بیا اضافت راغلے دے، فاعل ته او وروستو د فاعل نه حال واقع شوے دے چې راجلاً دے. مثال د هغه چې مبتداء مصدر تاویلي وي او نسبت او اضافت وشي د اسم تفضیل شوے وي او بیا د دې مبتداء، چې مصدر تاویلي دے، نسبت ئې راغلے وي مفعول ته او وروستو حال راغلے وي د مفعول نه، لکه «اکثر ان ضربت زیداً قائماً». دلته کښې د اکثر اسم تفضیل نسبت راغلے دے، مبتداء مصدر تاویلي ته او د مبتداء نسبت راغلے دے، مفعول ته او وروستو د مفعول نه قائماً حال واقع شوے دے.

مثال د هغه چې مبتداء مصدر تاویلي وي او نسبت وشي د اسم تفضیل شوے وي او د دې مبتداء چې مصدر تاویلي دے، نسبت ئې راغلے وي، فاعل او مفعول دواړو ته او وروستو حال راغلے وي یا د فاعل نه او یا د مفعول نه، لکه «اکثر ان ضربت زیداً قائماً». دلته د اکثر اسم تفضیل نسبت راغلے دے، مبتداء ته، چې مصدر تاویلي دے او د دې مبتداء نسبت فاعل او مفعول دواړو ته راغلے دے او وروستو حال یا د فاعل نه راغلے دے او یا د مفعول نه. مثال د هغه چې مبتداء مصدر تاویلي وي او نسبت وشي د اسم تفضیل شوے وي او د مبتداء نسبت راغلے وي، فاعل او مفعول دواړو ته او وروستو حال واقع شوے وي، د دواړو نه، لکه «اکثر ان ضربت زیداً قائمین». دلته د اکثر چې اسم تفضیل دے، نسبت راغلے دے، مبتداء ته چې مصدر تاویلي دے او د هغې نسبت بیا فاعل او مفعول دواړو ته راغلے دے او وروستو قائمین حال واقع شوے دے، د فاعل او مفعول دواړو نه. اوس دلته په «ضربي زیداً قائماً» کښې حذف د خبر دے وجوباً، د وجه د وجود د قرینې او د سد مسد نه. هر چې دے نو وجود د قرینې، نو هغه دا چې دلته مبتداء راغلې ده او خبر ورله نشته او مبتداء بغیر د خبر نه نه راځي او هر چې دے سد مسد هغه اقامت د حال دے، په مقام خبر

باندې - زَيْد كې داخبره چې دلته دَ ضربي زيداً قائماً ' په ترکیب کښې اختلاف دے - بصریان وائي چې ' دا په اصل کښې داسې وه '
ضربي زيداً حاصل اذا كان قائماً '. حاصل خبر دے او اذا كان ظرف متعلق دے په حاصل پورې او قائماً حال دے.
پس دلته متعلق دَ ظرف چې حاصل دے ' هغه حذف شو نو باقي پاتے شو ' ضربي زيداً اذا كان قائماً ' - پس دَ هغې نه ظرف
چې ' اذا كان ' دے ' هغه هم حذف شو نو قائماً حال په ځائے دَ خبر او دريدو ' نو ' ضربي زيداً قائماً ' شو ' په وجه دَ ترکیب
باندې **سوال** وارديږي چې ' اے بصريانو ! تاسو دَ خپل مذهب نه خلاف اوکړو ، ځکه چې ستاسو په نزد خو متعلق
دَ ظرف فعل دے او دلته خو متعلق دَ ظرف چې هغه حاصل دے ' اِسم دے ' دا خو نه دے ' مګر مذهب دَ کوفيانو
**جواب** . بعض ځايونه داسې دي ' چې هلته دَ بصريانو او دَ کوفيانو په نزد بالاتفاق متعلق دَ ظرف اِسم دے او
په هغه ځايونو کښې يو ځائے دا دے او دويم جواب دا دے ' چې دَ بصريانو په نزد اولی دا دے ' چې متعلق دَ ظرف به
فعل وي ' سره دَ جواز دَ تعلق نه په اِسم پورې - دَ بصريانو په دے ترکیب باندې شيخ رضي **اِعتراض**
کړے دے ' هغه دا دے ' چې بصريانو هلته دَ ډيرو تکلفاتو ارتکاب کړے دے ' يو تکلف خو دا دے ' چې حرف شرط او
فعل شرط يې دواړه حذف کړي دي ' چې اذا كان دے او بل دا چې دلته يې كان تامه اخستے دے او اصل په كان کښې
كان ناقصه دے ' نه تامه - **جواب** . دَ اولني تکلف نه دا دے چې حذف دَ حرف شرط سره دَ فعل شرط نه دَ ا
کثير او شائع دے ، لکه څنګه موږ ويلي دي ' فلا بدّ من عائدٍ ' او دلته مو نږ ويلي وو چې دالجزاء ' . دَ پلاه شرط محذوف
او شرطيه دا دے چې ' اذا كان الامر كذالك ، نو دلته حرف شرط او فعل شرط دواړه حذف شوي دي او دَ دويم تکلف
نه جواب دا دے ' چې دا خبره منو چې اصل په كان ناقصه او كان تامه کښې كان ناقصه دے ' بلکه دواړه برابر دي ' يا دا چې
كان تامه اصل دے ' په نسبت سره دَ كان ناقصه ' ځکه چې كان تامه محتاج نه دے ' خبر ته او كان ناقصه محتاج دے '
او غير محتاج اصل وي ' په نسبت سره دَ محتاج ته او يا دا چې په كان ناقصه کښې اختلاف دے - نحاة وائي چې فعل دے '
او منطقيان وائي چې حرف دے ' نو كان تامه اصل او ګرځيدو په نسبت سره دَ كان ناقصه ته - ع " ميں الزام ان کو دیتا
تھا قصور اپنا نکل آیا - او دَ شيخ رضي په نزد باندې اصل دَ ضربي زيداً قائماً دا دے ' چې ' ضربي زيداً يلابسني قائماً ' که چرته
قائماً حال واقع شوے وي ' دَ فاعل متکلم نه او که چرته قائماً حال واقع شوے وي ' دَ زيداً نه ' نو تقدير به داسې شي
چې ' ضربي زيداً يلابسه قائماً ' - دلته کښې خبر يلابس دے او ضمير دَ متکلم يا زيداً دا ذو الحال دے او قائماً حال دے '
نو ذوالحال حذف شو ليکن حذف دَ ذو الحال جائز او واقع دے ' نو پاتے شو ' ضربي زيداً يلابس قائماً ' بيا دا چې فعل
يلابس چې عامل دے ، هغه حذف شو او حذف دَ عامل دَ ذو الحال هم واقع دے - پس داسې شو عبارت چې
' ضربي زيداً قائماً ' خو په دے باندې دا اِعتراض واردېږي ' چې په دغه صورت کښې حذف دَ افعال خاصه راځي '
حالانکه افعال خاصه نه حذف کيږي ، بلکه افعال عامه حذف کيږي -

**درس نمبر ۱۲۰:-** او دَ کوفيانو په نزد باندې - اصل دَ ضربي زيداً قائماً هغه دا دے چې ضربي
زيداً قائماً حاصل ؟ دے - دلته کښې قائماً دَ متعلقاتو دَ مبتدا نه دے او حاصل خبر دے ' بيا خبر حذف شو ' خو په دغې

بانږ اعتراض راځي چې ولې کښې مبتدا بے خبره پاتے شی لکه د متعلق د مبتدا، شان به شان د مبتدا دے او دویم دا چه ولے کښې تقييد د مبتدا راغلے دے، چه قائماً د متعلقاتو د مبتدا نه او ګرځی نو مبتدا هغه عموم ختم شو نو سد مسد به جمله د خبر ګرځېدلے، د اخفش په نزد بانږ اصل د ضربي زيداً قائماً: هغه دا دے چه ضربي نه بيا ضربه قائماً دے، قائماً دا حال واقع شوے دے د ضربه د ضمير نه او ضربه خبر دے بيا دا حذف شو، ځکه چه حذف د هغه شی چه هغه د جنس د مذکورېدو، هغه اولیٰ دے، خو په دے دا اعتراض وارد ېږی چه ولې حذف د عامل ضعيف راغلے دے، سو د بقاء معمول نه ځکه چه ضرب مصدر دے او د عامل ضعيف دے چه ذی ئې عمل کولے شی او چه حذف وی نو عمل ئې نشی کولے ولې کښې حذف شو او سوال دا قائماً چه بقی دے او د بعض مذاهب دا دے چه ضربي زيداً قائماً دا مبتدا او خبر ورته نشته. ولے دا مذهب بديهي البطلان دے، ځکه چه مبتدا بغير د خبر نه نه راځي۔

**وكلُّ رجلٍ وضيعتُه** په ضيعت صنعت حرفه او کسب ته وائي. دا دويم جمله دے د هغه ځايونو نه چه کومے کښې حذف د خبر وجوباً راغلے وی، مراد په دے ترکيب سره هغه مبتدا ده چه مشتمل وی، عين د هغه په معنیٰ د مقارنت باندې او په دے بانږ عطف د يو شی راغلے وی په واو سره او هغه واو په معنیٰ د مع سره وی او د معطوف اقامة راغلے وی په ځائے د خبر باندې نو تقدير د عبارت داسے دے چه كل رجلٍ مقرونٌ مع ضيعته. ولے کښې حذف د خبر واجب دے، د ځيه د وجود د قرينے او د سد مسد نه. قرينه دا وجود د قرينے هغه واو په معنیٰ د مع سره دے، ځکه چه دا دلالت کوي په معنیٰ د مقارنت باندې لکه صحيح دے، سد مسد هغه اقامت د معطوف دے په ځائے د خبر باندې۔ **سوال**. ضيعته به يا عطف ولے په مبتدا باندې او يا به ئې عطف وائے په هغه ضمير باندې چه کوم په خبر کښې دے که عطف ئې وائے په مبتدا باندې نو ضيعته مقدم شو متبناً. پس دے د متعلقاتو د مبتدا نه او ګرځيدو او اقامت د مبتدا به جمله د خبر باندې نه شی راتلے او که چرے عطف ئې وائے په ضمير د خبر باندې، نو دا ځکه نه صحيح کيږي، چه عطف په ضمير مرفوع متصل باندې هله صحيح کيږي چه تاکيد ئې اوشی په ضمير منفصل سره او دلته خو تاکيد نه دے راغلے۔ **جواب**. دا عطف دے په مبتدا باندې او کله ته وائي چه تقدیم د ضيعته راغلے متبناً، نو جواب دا دے، دلته اګر که تقدم متبناً راغلے دے لیکن ذکراً مؤخر دے۔ پس اقامت د د به جمله د خبر باندې صحيح شو او يا دا عطف دے په ضمير د خبر باندې او کله ته وائي چه، دلته کښې تاکيد د ضمير مرفوع متصل په منفصل سره نه دے راغلے، نو جواب دا دے چه، دلته تاکيد راغلے، په ضمير ــــ منفصل سره اصل عبارت دا دے، چه كلُّ رجلٍ مقرونٌ هو وضيعته. بيا مؤكد حذف شوے دے، نو ورسره تاکيد هو حذف شو۔

**سوال**. دا ضمير په ضيعته کښې يا به ئې راجع وائے کل ته چه مضاف دے او يا به ئې راجع وائے رجل ته چه مضاف اليه دے که راجع ئې وائے کل ته، نو فساد په معنیٰ کښې راځي چه هر سړے د هر سړي په کار پورے مقرون دے او که راجع کوے ئې، رجل ته، نو دا خو مضاف اليه دے او مقصود بالغرض په مضاف او مضاف اليه کښے، مضاف وی، نه مضاف اليه۔ **جواب**. دلته دا ضمير راجع دے، مضاف ته چه كل دے او په معنیٰ کښے اګرچه په

ظاهره فساد راځي دے لیکن په حقیقت کښې په کښې فساد نشته، یعنی هر یو سړے به خپل هر کار لوپ پیوست او مقرون دے۔

**لعمرك لأفعلنّ كذا** دا ځای هم ځائے دے، د هغه مواضعو نه چه په کښې حذف د خبر واجب وی، د وجه د وجود د قرینې او د سد مسد نه۔ هر چه دے وجود د قرینې هغه مجرد قسم دے او هر چه دے سد مسد هغه اقامت د جواب د قسم دے په ځائے د خبر باندې، مراد په دے ترکیب سره هغه ترکیب دے، چه مبتدا مقسم به وی او جواب د قسم په ځائے د خبر واقع وی، نو اصل عبارت داسے دے، 'لعمرك قسمی لأفعلنّ كذا'، نو 'لأفعلنّ كذا' دا جواب د قسم دے او راغلے دے په ځائے د خبر باندې۔ دلته کښې د عمر نه مراد ژوند دے او د عمر ماعادت وو، چه په عمر باندې به ئې قسم کولو (مقابل د زید او بکر نه دے)۔

## درس نمبر ۱۲۱

**خبر انّ واخواتها** بعض د جنس مرفوع یا د مرفوعاتو نه هغه خبر د انّ او د هغه د اشباهو د امثالو دے، چه انّ كانّ لكنّ لیت او لعلّ دی چه دے ته حروف مشبه بالفعل وائی۔ اصل عبارت داسے دے، چه منه یا منها خبر انّ واخواتها۔ **سوال**۔ اخوات خو په ذوی العقل کښې راځی او انّ یا انّ وغیره خو ذوی العقول نه دی، نو دوی ته څنګه نسبت د اخوت شوے دے؟ **جواب** دلته مراد د اخوات نه اشباه او امثال دی۔ **سوال**۔ بلکه چه خبر ان وامثالها ئې ویلی وے، یا خبر انّ واشباهها ئې ویلی وے؟ **جواب**۔ چه څنګه په اخواتو کښې مشابهت وی، نو هغه رنګ د دے حروفو په مابین کښې هم مشابهت دے، په عمل کښې په دے وجه ورباندې اطلاق د اخواتو اوشو۔

**هو المسند بعد دخول هذه الحروف** دا خبر به مسند وی نومی آخوته۔ پس د دخول د دے وجه خروځنه، مراد په دخول سره ایجاد د دوی دے د پاره د ایراث د اثر د دوی په اسم او په خبر کښې۔ برابره خبره ده چه اثر لفظاً وی که تقدیراً که محلاً وی، په خبر د حروف مشبه بالفعل کښې دوه مذهبه دی، یو مذهب د کوفیانو دے او بل مذهب د جمهورو مخالف کوفیانو والو، چه عامل د خبر د حروف مشبه بالفعل هغه معنوی دے حروف مشبه بالفعل عمل صرف په اسم خپل کښې کړے دے او په خبر کښې نه شی کولے، ځکه چه دا حروف دی او عمل د حرف ضعیف دے۔ دوی صرف په یو شی کښې عمل کولے شی او په دوؤ کښې نه شی کولے او جمهور نحاة والی دوی په اسم او په خبر خپل دواړو کښې عمل کولے شی او کوی ئې، ځکه چه د دوی مشابهت د فعل سره لفظاً او معناً دواړه او فعل خو عامل قوی دے، نو دوی هم قوی عامل اوګرځیدل، لفظاً مشابهت ئې د فعل سره دے، چه څنګه په فعل کښې ثلاثیه او رباعیه دے۔ دوی هم ثلاثی او رباعی دی او چه څنګه په فعل کښې ادغام کیږی او د الحاق د کاف خطابی او د نون وقایه کیږی، نو د هغه شان په دوی کښې هم ادغام شوے دے۔

وریسې الحاق د کاف خطابي او د نون وقایه کیږي او صحیح دے، معنا مشابهت، لو هغه داده چې د إنَّ او أنَّ معنیٰ تحقق او تحقیق دے - دغه شان د کأنَّ معنیٰ تشبیه او د لکنَّ استدراک او د لیت معنیٰ ده تمنی وغیره - زده کړه دا خبره چې د فعل د پاره دوه عمله دي، یو عمل اصلي دے او دویم عمل فرعي دے - عمل اصلي داده چې مرفوع به مخکښې وي او منصوب به وروستو وي --- عمل فرعي داده چې منصوب به مخکښې وي او مرفوع به وروستو وي، او چونکه دا حروف مشبه بالفعل فرع دي د فعل نو دې له هم عمل فرعي ورکړے شو - **سوال** - ستا تعریف جامع او مانع نه دے ځکه چې د خپلو افرادو نه خارج شو ځکه چې نه یقوم هم دے ترکیب کښې چې ان زیداً یقومُ ابوهُ، په دے شان سره، چې یقوم مسند دے او خبر د انَّ نه دے، خبر د ان صرف یقوم نه دے بلکه دا قول یقوم ابوه دے - دویم سوال دا دے چې کله په ان یا ان مخففه باندې ما کافه داخل شي نو هغه د خپل عمل نه منع شي او ورکوي اسناد دے هغه مسند د دوی - دریم سوال دا دے چې ان یا انَّ چې مخففه او کړے شي، د مثقل نه نو هغه منسوخ کول جائز دي - **جواب**. مراد به مسند سره هغه اسماء دي چې هغه مسند وي، دوی نه، خو دا جواب ضعیف دے ځکه چې لازمیږي استعمال د یو قول چې بعد هذه الحروف دے --- دویم جواب دا دے چې مراد به مسند سره اسم مسند دے، ولې دا جواب هم ضعیف دے ځکه چې په هغه صورت کښې چې خبر جمله واقع شي، نو بیا احتیاج دے هغې ته تاویل ته د اسم او خبر ځکه جمله داخل او کله مفرد - پس اولی په جواب کښې دا دے، چې مراد په دخول سره ایراد د دعوی دے، د پاره د ایراث د اثر د دعوی به اسم کښې او خبر کښې - برابره خبره ده چې لفظاً وي که تقدیراً وي، که محلاً وي او ډکلمه کښې په ان زیداً یقومُ ابوهُ کښې، ایراث د اثر لفظي دے محلاً او په دے لوبه دواړو صورتونو کښې دوی اثر نه دے کړے، په دے وجه هغه د دعوی خبر نه دی - **سوال** هو المسند بعد دخول هذه الحروف، د دے نه معلومیږي چې یا ټول حروف مشبه بالفعل به داخلیږي په جمله باندې او یو به یې اسم کړي او بل به یې خبر شي، حالانکه اجتماع د دے ټولو حروف مشبه بالفعل خو په جمله باندې محال دے - **جواب** دا دے چې ماتن کښې عبارت کښې تقدیر دے، هغه دا چې، اصل عبارت داسې دے 'هو المسند بعد دخول احد هذه الحروف'.

**مثل ان زیداً قائمٌ** دلته کښې ان حرف دے، د حروف مشبه بالفعل نه، زیداً یې اسم دے او منصوب دے او قائمٌ یې خبر دے، چې مرفوع دے، لکه دې شعر کښې په دے قطعه کښې حروف مشبه بالفعل راجمع کړي دي (مرتب)

انَّ بأنَّ کأنَّ لیت لکنَّ لعلَّ — ناصب اسم اند ورافع در خبر ضد ما ولا

**سوال**. ماتن خو مخکښې د تلو د ان نه خبر وو او مسند وو، نو ته خو دا ګے چې هو المسند بعد دخول هذه الحروف، دا خو نه شو، ځکه اسناد د مسند او اسناد د مسند باطل دے - **جواب**. دلته د اسناد نه مراد اسناد جدید دے.

**وامره کامر خبر المبتداء** او حکم او شان د خبر د انَّ او اخواتو د دے په شان د حکم کښې

نسبت اردے لہٖ اقسامو ته احکامو اؤ په شرائطو کښې . په اقسامو کښې داسې چه څنګه خبرد مبتدا مفرد اؤ جمله واقع کیږی اؤ ضمیر شان خبر د حروف مشبه بالفعل هم مفرد اؤ جمله واقع کیږی یا نکره اؤ معرفه راځی، دغه شان خبرد دے حروفو هم معرفه اؤ نکره راځی اؤ په احکامو کښې داسې چه څنګه د خبر د مبتدا مفرد یا متعدد راځی یا مذکر اؤ مؤنث یا مذکور اؤ محذوف وی، دغه شان خبرد دے حروفو هم . راځی اؤ په شرائطو کښې داشان چه خبر د مبتدا که جمله وی، نو لابدی دی په کښې د عائد نه، دغه شان په خبر د دوی کښې هم .

## درس نمبر ۱۲۲ :- دلته کښې افراد اؤ جمله یا التعریف اؤ تنکیر د اقسامو د خبرونه اوګرځول شو ځکه چه په دے سره مستقل نوع حاصلیږی اؤ په واحد والی یا تثنیت اؤ جمعیت دغو سره مستقل نوعه نه حاصلیږی نو دا ځکه په دے وجه د اقسامو د خبرونه اونه ګرځول . سوال . ته خو وائے چه امره کامرخبر المبتدا، نو د خبر د مبتدا نه بعض دا احکام ضروری، چه تقدیم د خبر په مبتدا باندې واجب دے، لکه "این زید" این خبر مقدم دے اؤ زید مبتدا مؤخر دے . اؤس که په دے باندې ان داخل شی اؤ تقدیم د خبر په دے کښې واشی، نو دا خو نه دے صحیح . جواب . امر د خبرد ان په شان د خبر د مبتدا دے، ولے په وخت د عدم د مانع کښې اؤ دلته کښې مانع موجود دے، هغه دا چه ان د پاره د تحقیق اؤ د یقین راځی اؤ این د پاره د استفهام راځی، چه هغه مفید د شک دے، نو په دغه صورت کښې اجتماع د نقیضینو راځی اؤ دوئم جواب دا دے، چه امر د خبر د ان په شان د خبر د مبتدا دے . پس د لفظ د هغه نه چه دا خبر د ان دے نو دلته این د ان خبر نه دے .

**الا فی تقدیمه** خو امر د خبر د ان په شان د خبر د مبتدا نه دے، په تقدیم د خبر د ان کښې په اسم باندې، ځکه چه په دغه صورت کښې باطلیږی، عمل فرعی د دے حروفو، په دغه وخت کښې مرفوع مقدم شی اؤ منصوب به مؤخر شی، دا خو عمل اصلی د فعل دے اؤ دے حروفو لره خو عمل فرعی ورکړے دے .

**الا اذا کان ظرفاً** یعنی لا یجوز تقدیمه فی جمیع الاحوال الا اذا کان ظرفاً نو جائز نه دے تقدیم د خبر د ان په اسم د ان باندې، مګر په هغه وخت کښې چه دا خبر ظرف وی نو په هغه وخت کښې تقدیم د خبر د ان په اسم باندې جائز دے، ځکه چه بنا د ظروفو په توسع باندې ده، جائز دی په دے کښې هغه چه جائز نه دی، په غیر کښې اؤ یا مثال د ظروفو په شان د محارمو دے .
سوال . دلته مستثنیٰ منه واحد دے اؤ مستثنیٰ دوه راغلی دی، بغیر د حرف عاطفه نه اؤ دا نلیاً ده . جواب . د الا اذا کان ظرفاً د پاره مستثنیٰ منه هغه مقدر دے . اصل عبارت به داسې شی چه "لا یجوز تقدیمه فی جمیع الاحوال الا اذا کان ظرفاً" . اؤس که چرته اسم د ان معرفه وی اؤ خبر ظرف وی، نو تقدیم د خبر په اسم د ان باندې جائز دے، لکه "ان الینا ایابهم"، نو دلته کښې ایابهم دا اسم د ان

دے اگر معرفه وه او الینا ظرف دے او خبر دے، نو دلته کښې تقدیم جائز دے او که چرته اِسم دَاِنَّ نکره وے او خبر ظرف وی، نو تقدیم دَ خبر پر اِسم باندې واجب دے، لکه " ان من الشعر لحکمة وان من البیان لسحرا". دلته لحکمة او لسحرا دا اسمونه دَ اِنَّ دی او معرفه نه دی، بلکه نکرے دی او من الشعر او من البیان دا خبرونه دی دَ اِنَّ او ظروف دی - په هغو تعریف کښې لابدی وی، دَ جنس دَ فصل نه، نو په تعریف دَ خبر دَ اِنَّ واخواتها کښې هو المسند دا په منزله دَ جنس دے، تمام مسندات په کښې داخل دی، خو مراد په مسند سره مسند بالذات دے، چه توابع پرے نه خارج شی او بعد دخول هذه الحروف دا په منزله دَ فصل دے، خارج شو پرے نور مسندات سوا دَ خبر دَ اِن وغیره نه -

# درس نمبر ۱۲۳

## خبر لا التی لنفی الجنس

بعض مرفوع الوی نه یا بعض دَ جنس مرفوع نه، هغه خبر دَ لا دے، چه استعمالوی هغے لره عرب په خپلو محاوراتو کښې، چه هغه کائن دے، دَ پاره دَ نفی دَ صفت دَ جنس، نفی دَ صفت دَ جنس عام دے، که بالذات وی او که په واسطه سره وی، چه مستلزم وی، نفی دَ صفت دَ جنس لره- **سوال**- خبر دَ لا لنفی الجنس ولے مرفوع او گرځیدو؟ **جواب**۔ یا خو دَ لا مشابهت راغلے دے، دَ فعل منفی سره، لکه چه څنګه فعل منفی په نفی دلالت کوی، نو دا شان دے هم دلالت کوی، په نفی باندې، لو مرفوع او گرځیدو، دَ پاره دَ فعل، لوځ له خالق عمل فرعی ورکوو، دَ فعل او یا دا چه، دَ دے مشابهت راغلے دے، دَ اِنَّ سره لفظا او معناً هم دے لفظا، نو چه څنګه دَ لا اول حرف مفتوح دے، نو دَ اِنَّ هم اول حرف مفتوح دے او معنوی مشابهت دا دے، چه اِنَّ راځی، دَ پاره دَ تاکید دَ اثبات او لا راځی، دَ پاره دَ تاکید دَ نفی، نو دا لا حمل کړے شو په اِن باندې دَ وجه دَ علاقے دَ تضاد لوځ دَ وجه دَ حمل دَ لو نقیض نه په بل نقیض باندې او علاقه دَ تضاد هم لو نسبت دے- پس لا له هم عمل دَ اِنَّ ورکړے شو، دَ التی دَ پاره به صله دا راشی، چه "استعملوها العرب فی المحاورات" لا لنفی الجنس به متعلق شی په کائنٌ پورے۔ **سوال**۔ "لا رجل قائمٌ" کښې خو نفی دَ جنس نه ده راغلی، بلکه نفی دَ صفت دَ قیام راغلی ده او دا تعریف خو داسے لګی چه دا راځی، دَ پاره دَ نفی دَ جنس۔ **جواب**۔ دلته په عبارت کښې حذف دے، اصل عبارت دا دے، چه "لا التی لنفی الجنس"۔ **سوال**۔ په لا رجلَ موجودٌ کښې خو نفی دَ صفت نه ده راغلی، بلکه دَ عین جنس راغلی ده۔ **جواب**۔ نفی دَ صفت دَ جنس عام دے، چه بالذات وی که بالواسطه وی (چه مستلزم وی، نفی دَ صفت دَ جنس لره)۔ دلته کښې اګرچه نفی بالذات دَ صفت خو نه ده راغلی، ولے بالواسطه راغلے ده۔

## وهو المسند بعد دخولها

او دا خبر دَ لا التی لنفی الجنس دَ دے اسناد به راغلے وی، شی آخوته، پس دَ دخول دَ دے نه او مراد په دخول سره ایراد دَ دے دے،

پر اسم آو په خبر باندې د پاره د ایراث د اثر د مه په اسم آو په خبر کښې. هو المسند په منزله د جنس دے آو داخل شو په کښې تمام مسندات آو بعد دخولها دا فصل دے په دیے سره تمام مسندات بیرته نه خارج شو سیوا د خبرد لانه آو مراد په مسند سره مسند بالذات دے د پاره د دیے چه خارج شی بیرته نه لوازم. دلته کښې سوال پیدا کیږی چه ستا دا تعریف جامع نه شو خپلو افرادو لره آو خارج شو بیرته نه یقومُ په دیے ترکیب چه لا رجلَ یقوم ابوهُ، ځکه چه دلته کښې د یقوم اسناد را غلے دے آو خبر نه دے، بلکه خبر خو دلته کښې یقوم ابوهٗ ټول دے، جواب دا دے چه دلته کښې مراد په مسند سره اسم مسند دے آو یقوم خو فعل دے، وَلٰکِن دا جواب ضعیف دے آو بل جواب دا دے چه مراد په دخول سره ایراد د مله دے. پر اسم آو په خبر د مه باندې د پاره د ایراث د اثر د مه پر اسم آو په خبر کښې آو دلته کښې اثر د مه را غلے دے په یقوم کښې، بیا سوال دا پیدا کیږی چه خبر د لا خو منکښې د رالیو د لانه هو مسند دی، لو دلته کښې خو لازمیږی اسناد د مسند آو دا باطل دے. جواب دا دے، چه دلته کښې مراد د اسناد نه اسنادِ جدیده دے.

# درس نمبر ۱۲۴

**مثل لا غلام رجلٍ ظریف فیها** دلته کښې لا د پاره د نفی د جنس دے لا غلام مضاف رجلٍ مضاف الیه. مضاف سره د مضاف الیه ملا اسم د لا شو. ظریفٌ دا اول خبر شو آو فیها دویم خبر یعنی خبر بعد خبر دے. **سوال.** فیها را وړلو ته څه ضرورت وو؟ مثال خو په «لا غلام رجلٍ ظریفٌ» باندې هم پوره کیږی. **جواب.** فیها ئې د دیے وجه نه راوړلو چه لازم نه شی کذب په نفی د ظرافت کښې د جنس غلام د رجل نه آو دویم جواب دا دے چه فیها کښې اشاره ده چه خبر د لا څکه غیر ظرف راځی لو د غه شان ظرف هم راځی. مثال د هغه چه خبر غیر ظرف وی لکه «لا رجل قائمٌ» آو مثال د هغه چه خبر ظرف وی لکه «لا رجل فی الدار». **سوال.** مصنف ولے عدول اوکړو؟ د مثال مشهور نه چه «لا رجل فی الدار» دے. **جواب.** مصنف عدول اوکړو د مثال مشهور نه، ځکه چه په مثال مشهور کښې توهم د خبر آو د نعت آو د صفت سره، ځکه چه دا پته نه لګیږی چه فی الدار صفت دے، د اسم د لا چه رجل دے آو که خبر د لا دے، ځکه چه اعراب د فی الدار خو محلی دے لو لو توهم د التباس وو د خبر د صفت سره. **سوال.** لا رجل ظریف فیها کښې ئې ولے وو غلام را وړلو ته ضرورت نه وو. **جواب.** په دیے کښې هم توهم د التباس د خبر وو د صفت سره، ځکه چه ویل چه ظریفٌ صفت دے، د پاره د رجل آو اعرابیه ظریف به اعراب د محل د رجل وی چه هغه رفع دے. لو غلام ئې مدمسره ذکر کړو چه ظریفٌ دا خبر دے آو صفت د رجل نه دے آو دلته دا فیها خبر بعد خبر دے آو صفت یا متعلق د ظریف د پاره نه دے، ځکه چه که چیرے متعلق شی په ظریف پورے، نو لازمیږی تقید د ظریف په دار آو عدم د ظرافت د باطل دے.

**ویحذف کثیراً** آو خبر د لا د نفی جنس ډیر حذف کیږی په حذف کثیر سره خو په هغه وخت

کیږي چه کله خبر د افعالِ عامه نه وي او که چیرته د افعالِ خاصه نه وي، نو بیا بغیر د قرینې نه حذف د هغې باطل دے. لا یے لنفي جنس ده لالت کوي په نفي او نفي، تقاضا د اثبات کوي، نو چه چرته د دغې خبر منفي، نو معلومه شوه چه خبر د دغې محذوف دے، لکه لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ کښې. ملته کښې اصل عبارت دا دے: لا اِلٰهَ موجودٌ لَوْ اِلَّا اللّٰهُ استثنا لغوي، د ضمیر د موجودٌ نه. او دا دلته کښې د جمهورو مذهب دا دے، چه لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ په اصل کښې لا اِلٰهَ موجودٌ اِلَّا اللّٰهُ دے او په نزد د سکاکي باندې اصل دا دے اللّٰهُ اِلٰهٌ. پس دا هغه نه المقدم کړې شو په اَللّٰه باندې څکه چه تقدیم د ملحقه التاخیر فائده کوي حصر او اختصاص لره، بیا وروسته باندې ادولت د حصر لحاظ شو نو لا اله الا اللّٰهُ ترے جوړ شو.

**وَبَنُوْتَمِیْمٍ لَایُثْبِتُوْنَه**

او بنو تمیم خبر د لا نه ثابتوي. دا دوے ډیر معنی دي. اول معنی دا ده چه بنو تمیم خبر د لا خو هیڅ وخت ثابتوي نه، یعني حذف کوي یے په حذف وجوبي سره. خو په دے معنی باندې **سوال** دا را دیږي چه حذف د خبر د لا خو وجوبي نه دے، بلکه هغوي څالونو کښې ذکر دے، لکه لا رَجُلٌ قَائِمٌ. خو بني تمیم د دے نه **جواب** کوي، چه دلته خبر د لا موجودٌ دے او قائم صفت د رجل دے. دوېمه معنی دا ده چه بنو تمیم د سره خبر د لا منی نه، خو په دے باندې **سوال** راځي چه هر کله خبر د لا نشته، نو دا خو به مفرد بیا شي او استعمال د مفرد الترتیب کلا مرد عرب کښې محذوش دے او بل دا چه لا اله الا اللّٰه به جمله تامه نه شي، نو دا به مفیده هلره د واحدنیت او نه کړي، خو بني تمیم د دے نه **جواب** کوي، چه هغوي وائي چه لا دا اِسم فعل دے، او مرستوه د دے نه فاعل رافلي دے، نو دا جمله تامه شوه او مقید د فائده شوه، لیکن د دے نه جواب دا دے چه اِسم فعل بیرحال اِسم وي او لا خو حرف دے.

# درس نمبر ۱۲۵

**اِسم ما و لا المشبهتین بلیس**

بل قسم د مرفوعاتو نه هغه اِسم د ما او لا دے، هغه ما او لا چه مشابهه وي په عمل کښې د لیس سره په نفي کښې او په دخول د دوے کښې په اِسم باندې. دلته کښې هم منعقد دے یعني بعض د جنس مرفوع نه، هغه اِسم د ما او لا دے. نو دو کښې داخبر چه دلته کښې اختلاف دے، په مابین د بنو تمیم او د حجازیین کښې. بنو تمیم وائي چه ما او لا عمل نه کوي، د دوئ د پاره یو دلیل نقلي دے او بل دلیل عقلي دے او د حجازیین د پاره هم دوه دلیله دي، یو دلیل نقلي دے او بل دلیل عقلي دے. هغوي وائي چه ما او لا عمل کوي. د بنو تمیم دلیل نقلي دا دے، یو شاعر وائي چه:-

- ومهفهف کالغصن قلت له انتسب فاجاب ما قتل المحب حرامُ

ملته محه د استدلال په دے طریقه سره دے، چه ما قتل المحب حرامُ یے ویلي دي، که چرته ما عمل کړے وے، نو بیا به قتل المحب مضاف، مضاف الیه اِسم د ما او حراما به خبر وو، هلے دلته د حراما په ځائے باندې حرامٌ شاعر ویلي دي، اوس نو معلومه شوه چه ما عمل نه کوي. د شعر معنی دا ده چه ډیر کله یو معشوق چه هغه نازک

په شان د شاخ ما هغه ته او وېيل چې خپل نسب بيان کړه، نو هغه ماته په جواب کښې او وېيل چې قتل د عاشق حرام نه دے، چې محبوب خپل عاشق لره قتلوي، نو دا حرام نه دي۔ په دې شعر کښې يو سوآل صريحي دے او دويم ضمني دے، د غه شان يو جواب صريحي دے او دويم جواب ضمني دے۔ سوآل صريحي دا دے چې عاشق پلې محبوب ته والله چې ماته خپل نسب بيان کړه او سوآل ضمني دا دے چې که چرته تا ماته خپل نسب بيان نه کړو نو زه به مړ شم۔ جواب صريحي دا دے چې ما قتل المحب حرام۔ او جواب ضمني دا دے چې زما تعلق او نسبت د قبيلې د بني تميم سره دے۔ دلته کښې د سوال صريحي جواب ضمني راغلے دے او د سوال ضمني جواب صريحي لفظ دے د بني تميم دليل عقلي دا دے، چې ما او لا حروف دي او دوئ به هله عمل کوي، چې اختصاص د دوئ يو نوع سره راشي او د دوئ اختصاص د يو نوع سره نشته دے، په دې وجه دوئ عمل نه کوي۔ د حجازيينو دليل نقلي دا دے چې په قرآن پاک کښې راغلي دي 'ماهذا بشراً او ما هن امهاتهم'۔ دا دے په دې دواړو آيتونو کښې ما عمل کړے دے۔ بشراً او امهاتهم منصوب دي، چې د اخبر واقع شوي دي، د باره د ما امهاتهم ما جمع مؤنث ده او دا په حالت د نصب کښې تابع ده د حالت جري او دليل عقلي د حجازيينو دا دے، چې د دوئ مشابهت راغلے دے د ليس سره، چې ليس فعل دے او د نفي د پاره راځي، دغه شان ما هم د پاره د نفي راځي، په دې وجه باندې يعنې د مشابهت د وجه نه دوئ عمل کوي۔ خو په دې دليل باندې **سوآل** وارد يږي چې حروف مشبه بالفعل خو هم د وجه د مشابهت د فعل سره عمل کوي، نو هغوئ له عمل فرعي ورکړے شو، او دلته دوئ ته عمل اصلي ورکړے شو، دا ولې؟ **جواب** دا دے چې د حروف مشبه بالفعل مشابهت د فعل سره قوي دے، يعنې لفظاً او معناً دواړه دي او فعل خو عامل قوي دے، په مرتب او غير مرتب دواړو کښې عمل کوي، نو دوئ هم د مشابهت د وجه نه په غير مرتب کښې عمل کوي، ځکه چې د دوئ مشابهت د فعل سره قوي دے او که ما او لا مشابهت صرف د يو فعل سره دے۔ هغه فعل هم ضعيف دے، ځکه چې هغه فعل ليس دے، د هغه نه گردان د ماضي مضارع اسم فاعل او اسم مفعول نه کيږي او دا مشابهت هم ضعيف دے۔ ځکه چې معنوي مشابهت نشته دے، چې ليس هم د نفي د پاره راځي او ما او لا هم، ليکن لفظي مشابهت نشته دے، د دغه وجه نه دوئ له عمل اصلي ورکړے شو، چې دوئ په مرتب کښې عمل کوے شي او په غير مرتب کښې نه شي کولے او حجازيينو بنو تميم ته جواب ورکوي، چې ستاسو دليل نقلي نه دے صحيح، ځکه چې دا شعر خو ستاسو د بني تميم د شاعر دے، نو دا نه دا، مگر مصادرة على المطلوب او موږ خو تاسو ته دليل د قرآن پاک نه پيش کړے دے، هغه هم نه قرارت شاذه نه دے بلکه قرأت متواتره دے او حجازيين د بني تميم د دليل عقلي نه جواب ورکوي، چې اختصاص د دوئ په يو نوع پورې راغلے دے، چې هغه اسم دے، نو ليس هم عمل کوي او که تاسو وايئ چې داخو په فعل هم داخليږي، لکه په فعل مضارع باندې، نو جواب دا دے، چې کوم ما او لا په مضارع يا په فعل داخليږي، هغه مشابهه د ليس سره نه دي۔

# درس نمبر ۱۲۶

**وهو المسند اليه بعد دخولهما** اَوْ دا اِسم د مَا اَوْ لَا المشبّهتين بليس، دا هغه اسم دے چه اسناد ورته شوے، ځکه ته د شي آخر. پس دا داخلیدو د دے مَا اَوْ لَا نه. وهو المسند اليه په منزله د جنس دے، داخل شو په کښې تمام مسند اليه اَوْ مُراد په مسند اليه سره مسند اليه بالذات دے اَوْ په بعد دخولهما سره بېرته نه خارج شو تمام مسند اليه، سیوا د مسند اليه د مَا اَوْ د لَا نه.

**سوال.** مَا اَوْ لَا خو چه کوم جمله باندې داخليږي، نو په هغه کښې خود مخکښې نه مسند اليه موجود وي، کمبتدا اسناد د مسند اليه اَوْ دا باطل دے. **جواب.** مُراد دلته په اسناد سره اسناد جديد دے.

**مثل ما زيد قائمًا ولا رجل افضل منك** دلته دا مَا مشبه بليس دے، اِسم مرفوع خبر منصوب غواړي. زيد يې اِسم دے اَوْ قائمًا يې خبر دے، هغه شان لَا مشبه بليس رَجُلٌ يې اِسم اَوْ افضل منك دا يې خبر شو. دلته د لَا دپاره اِسم نکره راغلی دے، ځکه چه لَا عمل نه کوي، مګر په نکره کښې، ځکه چه مشابهت د لَا د ليس سره ضعيف دے اَوْ ليس راځي د پاره د نفي حالي اَوْ لَا راځي د پاره د نفي مطلق اَوْ د مَا دپاره اِسم معرفه راغلی دے، ځکه چه دے عمل په معرفه اَوْ نکره دواړو کښې کوي، د ده مشابهت د ليس سره قوي دے، ځکه چه ليس راځي د پاره د نفي حالي اَوْ مَا هم راځي د پاره د نفي حالي.

**وهو في لا شاذ** اَوْ عمل د ليس په لَا کښې شاذ اَوْ قليل دے، ځکه چه مونږ مخکښې اُوویل چه ليس راځي د پاره د نفي حالي، نو دے په معرفه اَوْ نکره دواړو کښې عمل کوي اَوْ لَا صرف نکره کښې عمل کوي لکه په معرفه کښې نه کوي، لکه په دے شعر کښې چه:-

چه ليس راځي د پاره د نفي حالي، نو دے په معرفه اَوْ نکره دواړو کښې عمل کوي اَوْ لَا صرف نکره کښې عمل کوي لکه په معرفه کښې نه کوي، لکه په دے شعر کښې چه:-

> من صدّ عن نيرانها فانا ابن قيس لا براحُ[1]

ترجمه:- کوم څوک اعراض کوي، د اور د حرب نه نو زه ځوی د قیس یم مالره تجال نشته.

(وهو في لا شاذ) يعني عمل د ليس په لَا کښې شاذ دے، د دے نه معلومه شو چه راځي چه ليس په لَا کښې عمل کوي خو قليل، حالانکه نيست خو په لَا کښې عمل نه کوي. **جواب.** اصل معنی دا ده چه الحاق د لَا په ليس کښې په عمل کښې قليل دے، يا دوهم جواب دا دے چه هو ضمير راجع دے مشابهت ته يعني مشابهت د لَا د ليس سره قليل دے. (اَوْ في په معنی د مع سره شي). پس معنی د عبارت به دا شي چه ما اشبه د ليس سره د لَا نه شاذ دے.

---

[1] البراح اى لا براح لي ولا يجوز ان تكون لنفى الجنس لانه اذا كانت لنفى الجنس لايجوز فيما بعدها الرفع بالوجه التكرير (الفصيح بلا تكرير).

# اَلْمَنْصُوْبَاتُ

**درس نمبر ۱۲۷:** سوال کله چه مصنفؒ فارغ شو د بیان د مرفوعاتو نه، نو شروع یې اوکړه په بیان د منصوباتو کښې. **سوال:** مصنفؒ ولې مقدم کړو بحث د منصوباتو په مجروراتو باندې. **جواب:** منصوبات کثیر دي، په نسبت سره مجروراتو ته، او "العزة للتكاثر" او یا دا چې منصوبات مشتمل دي په نصب باندې او مجرورات مشتمل دي په جر باندې او نصب خفیف دے، په نسبت سره جر ته، لو د وجه د خفت نه یې منصوبات مقدم کړل او یا دا چې منصوبات قریب دي، مرفوعاتو ته، ځکه چې اول فعل وي، بیا فاعل او بیا مفعول راځي، نو یا د وجه د کثرت یا د خفت او یا د قربت نه یې مقدم کړل. ددۀ کښې ماخبره چه دلته درې بحثونه دي، اول بحث په اعراب د المنصوبات کښې دے ——— دویم بحث په الف لام کښې ——— دریم بحث په صیغه د المنصوبات کښې دے ——— پس اول بحث په اعراب د المنصوبات کښې دے، نو دا بیا یا معرب والے یا مبني، که چرې مبني والے، نو بیا دا واجب دے چې مبني اوګرځي په سکون سره، ځکه چې اصل په بناء کښې سکون دے او دا مبني په دې وجه والو چې په دۀ باندې عامل نۀ دے راغلے او که چرې معرب یې والے، نو رفع په کښې هم جائز ده، په دې شان سره چې دا مبتدا اوګرځي او خبر یې محذوف شي، تقدیر به دا شي، "المنصوبات هذه" او یا دا خبر دے او مبتدا یې محذوفه ده، تقدیر به دا شي، "هذه المنصوبات" او نصب یې هم جائز دے، چه دا به مفعول واقع شي، تقدیر به دا شي، "لما فرغنا من المرفوعات فلنشرع المنصوبات" او دلته نصب تقدیري دے ځکه جمع په الف او په تاء سره په حالت نصبي کښې تابع د حالت جري وي او یا دا چې، دلته جر هم صحیح دے، تقدیر به دا شي چه "بحث المنصوبات هذا" نو دلته مضاف او خبر هم حذف شوي دي. یا دا چې "هذا بحث المنصوبات"، چه دلته کښې مبتداء او مضاف د المنصوبات حذف دي. دویم بحث په الف لام د المنصوباتُ

---

(حاشیة لمبر نښ نه) ... ولا تکرار في البیت کما قال عبد الرحمٰن جامیؒ - (م-ص)

کړے ده، نو دا الف لام حرفی دی، اِسمی نه دی. **سوال**: الف لام چه کله داخل شی په اِسم فاعل یا اِسم مفعول باندې نو دا په معنیٰ دَ "الذی یا التی" موصول سره وی او موصول قسم دے دَ اِسم نه، نو ښکاره دا ده چه دا الف لام اِسمی او کرځی، چه دا داخل شی په مفعول باندې، چه منصوبات دے. **جواب**: الف لام په معنیٰ دَ الذی یا التی سره هلته کیږی چه اِسم فاعل یا اِسم مفعول په معنیٰ دَ حال یا استقبال سره وی او دغه اِسم داسې چه غلبه دا سمیت نه وی راغلے، په وصفیت باندې او دلته دغه شرط مفقود دی، ځکه چه دلته اِسم مفعول نه په معنیٰ دَ حال دے او نه په معنیٰ دَ استقبال دے او غلبه داسمیت هم په وصفیت راغلی ده، ځکه چه منصوبات اوس دَ یو خاص نوع نوم دے. پس دا الف لام اِسمی نه شو بلکه دا حرفی دی او دا الف لام حرفی خو په څلور قسمه دی، جنسی، استغراقی، عهد خارجی او عهد ذهنی، نو دلته الف لام عهدی هم صحیح کیږی او معهود به یې سره مختلف دے چه دَ عُمکینه ویلی دی "والنوعه رفع ونصبٌ وجرٌ" او یا دا چه دلته کیدے الف لام جنسی دی. **سوال**: الف لام جنسی خو په جنس داخلیږی او په جنس کښې مفرد او جمع لحاظ برابر دی، ولې جمع راوړه؟ **جواب**: چه کله الف لام جنسی داخل شي په جمع باندې، نو باطلوی جمعیة او مراد ترې هغه سره جنس او دلته یې جمع په دے وجه راوړه، چه اشاره راشی کثرت دَ انواعُ منصوباتو ته. دغه بحث په صیغه دَ منصوباتو کښې دے. **سوال**: منصوبات به یا جمع دَ منصوبة وي او یا دَ منصوبٌ. که جمع یې دَ منصوبة وي نو دا خو صحیح دے، ولې دلته دَ منصوباتو دَ پاره موصوف اِسم دے او اِسم خو مذکر دے، نو مطابقت راغلی، په مابین دَ موصوف او دَ صفت کښې او که چرے دا جمع منصوبٌ وي، نو منصوب خو مذکر دے او جمع دَ مذکر به الف او تا سره نه راځی او حال دا دے، چه دلته یې جمع په الف او تا سره راغلی ده؟ **جواب**: دا جمع دَ منصوبةٌ دَ که نه وي، چه مطابقت نه راځی، په مابین دَ موصوف او دَ صفت کښې، نو مونږ وایو چه دلته موصوف اِسم نه دے، بلکه کلمه ده او کلمه خو مؤنث ده او یا دا جمع دَ منصوبٌ ده او که نه وي، چه دَ منصوب جمع خو په الف او په تا سره نه راځی، نو مونږ وایو چه دا جمع خلاف القیاس ده او یا دا چه منصوب مذکر لا یعقل دے او مذکر لا یعقل مشابهه دے، مؤنث سره، نو دَ مؤنث جمع خو په الف او تا سره راځی، نو دَ دے جمع هم په الف او تا سره راغله.

# درس نمبر ۱۲۸

**هو ما اشتمل علی علم المفعولیة[1]** دا جنس منصوبات چه دلالت کوی په هغه باندې جمع دَ یې دَ دلالت دَ جمع نه په جنس باندې، دا مخکښې اِسم دے، چه مشتمل وی دَ قید دَ مشتمل موصوف نه په صفت باندې په علامه دَ کېدلو دَ شی باندې مفعول. **سوال**: هو ضمیر چه ته راجع دے یا به یې راجع وائی منصوبات ته، نو مطابقت نه راځی په مابین دَ راجع او مرجع کښې او یا به یې راجع کوے منصوب ته، نو لازمیږی "اضمار قبل الذکر". **جواب**: هو ضمیر راجع دے منصوب ته او که ته وائی چه اضمار قبل الذکر لازمیږی، نو مونږ وایو

---

[1] ای علامة کون الاسم مفعولاً حقیقیاً او حکماً وهی اربع الفتحة والکسرة والالف والیاء کما قال الشارح جامی ۱۲۰ (م-س)

په اضمار قبل الذکر نه لازمیږي ځکه چه "ما" قبیلے د دلالت د جمع نه دے، په مفرد باندې. **سوال** په دے صورت کښې لازمیږي تعریف د فرد او تعریف خو د افرادو نه کیږي، بلکه تعریف د ماهیت کیږي. **جواب**: "ما" د قبیلے د دلالت د جمع نه دے، په جنس باندې او جمع په جنس باندې هم دلالت کوي، یا داچه هو ضمیر راجع دے منصوبات ته او که ته وائے چه مطابقت رانغے په مابین د ضمیر او مرجع کښې، نو مونږ وایو چه ما تلعد د جضمیر کله مانٔ شي، په ملابین د خبر او د مرجع کښې، نو رعایت د خبر اولیٰ دے، نو مونږ دلته رعایت کړے دے، په دغه مونږ منکر دے. "ما" عبارت دے نه اسم نه، په دیے سره دا **سوال** دفع شو چه ضربت زیداً کښې "دال" مشتمل دے په علامے د مفعولیت باندې او لیکن مفعول نه دے، نو مونږ **جواب** اوکړو چه "ما" عبارت دے، د اسم نه او "دال" خو حرف دے. زه کوم ماخبره اشتمال په څلور قسمه دے، اول اشتمال د کل دے په جزء باندې. دویم اشتمال د موصوف دے په صفت باندې. دریم اشتمال د محل دے په حال باندې او څلورم اشتمال د ظرف دے په مظروف باندې. **سوال**. ظاهره متبادر د اشتمال نه اشتمال د کل دے په جزء باندې، لو که چرے دلته مونږ دا معنیٰ واخلو، نو اعراب بالحرکة به تریے نه خارجیږي.

**جواب**. مراد د اشتمال نه اشتمال د موصوف دے په صفت باندې (علم په معنیٰ د علامې باندې دے).

**سوال**. مصنف دلے وَلے اُونه ویل چه "هو ما اشتمل علی علم المفعول"، نو دا به متن سره مناسب وو ځکه چه بناء د متونو په اختصار باندې وي. **جواب**. نصب علامه د ذات د مفعول نه ده، بلکه علامه د وصف د مفعول ده، په دے وجه یے مفعولیة اُوئیلے. **سوال**. نو بیا به یے دا سے ویلي وو چه هو ما اشتمل علی علم النصب.

**جواب**. په دے صورت کښې لازمیږي دور، ځکه چه دے تعریف د منصوب کوي او منصوب د نصب نه اخوځ دے، په دے وجه باندې دور لازمیږي.

## درس نمبر ۱۲۹

**فَمِنْهُ الْمَفْعُوْلُ الْمُطْلَقُ** پس یو جزء د جنس ما اشتمل نه مفعول مطلق دے. هر کله چه مصنف فارغ شو د تعریف نه، نو شروع یے اوکړه، په تفصیل کښې. پس مُصنّف چه "فمنه المفعول الخ" **سوال**. دا ضمیر به یا راجع کوے، حدث او یا به راجع کوے محدود ته، که راجع کوے یے حدث ته په دے صورت کښې دَوه قبح او دَوه حسن دي او که چرے محدود ته یے راجع کوے، نو هم په کښې دوه قبح او دوه حسن دي، چه محدود ته یے راجع کړو، نو دَوه قبح دا دي، چه مرجع به بعید شي او دَویم قبح دا دے چه مرجع بمعنیٰ اُکوځي او یو حسن دا دے چه ضمیر به راجع شي، ما هو المقصود ته او دویم حسن دا دے، چه انتشار د ضمائرو به نه راځي او چه راجع شي حدث ته، نو یو قبح دا ده چه ضمیر به ما هو المقصود ته راجع نه شي او بله قبح دا ده چه انتشار د ضمائرو راځي او یو حسن په کښې دا دے، چه مرجع به قریب اُوګرځي او دویم حسن دا دے چه مرجع به صریح شو.
پس ارجاع د ضمیر دواړو ته صحیح ده او مونږ په معنیٰ کښې ضمیر حدث ته راجع کړے دے. دلته مَن راغلے دے او

ـــــــــــــــــــــــــــ
ځ حقي وي، دا خبره چه د قسم تفصیل په اوائلو د مرفوعاتو کښې ذکر شوے دے او دلته بیا ذکر ز نوره په تېل کړے

مِن اِبتدائیہ پہ دوہ قسمہ دے، یو من ابتدائیہ اتصالیہ دے او بل من ابتدائیہ غیر اتصالیہ دے، من ابتدائیہ اتصالیہ ہغہ دے چہ پہ مقابلہ کښے یې الیٰ راغلے وی، لکہ سِرتُ مِن البصرۃ الی الکوفۃ او من ابتدائیہ غیر اتصالیہ ہغہ دے چہ پہ مقابلہ کښے یې الیٰ نہ وی راغلے۔ پس دلتہ دا من ابتدائیہ غیر اتصالیہ دے، یا دا من تبعیضیہ دے۔

**سوال.** مفعول مطلق یې ولے مقدم کړو؟ پہ نورو مفاعیلو باندې **جواب.** مفعول مطلق مقید نہ دے، پہ قید کښے دَ لہ، دَ معہ یا دَ فیہ سرہ، لو دغہ پہ منزلہ دَ مفرد او گرځیدو او نور مفاعیل پہ منزلہ دَ مرکب شو او مفرد مقدم وی پہ مرکب باندې او تقدیم[1] جواب دا دے چہ دا اصل دے، پہ نسبت سرہ نورو مفاعیلو تہ اگر دا نور مفاعیل فرع دی لکہ اصل متعدی پہ فرع باندې او دې اصل پہ دې وجہ باندې دے چہ دا عام دے، دَ فعل لازمی او متعدی دواړو نہ راځی۔

**سوال.** مفعول مطلق خو ہم مقید دے، پہ قید دَ اطلاق سرہ، لو نو څنگہ وائې چہ دا مقید نہ دے۔

**جواب.** دا قید کلا قید دے، ځکہ چہ پہ دے څہ فائدہ نہ دہ مرتب۔

**وھو اِسم مافعلہ فاعل فعلٍ مذکورٍ بمعناہ**

او دا مفعول مطلق اِسم دَ ہغہ حدث دے، حدث عام دے حقیقتاً وی کہ حکماً، چہ کړے وی دے حدث لرہ فاعل دَ فعل مذکور یعنی چہ دَ ہغہ حدث قائم وی پہ فاعل پورې، چہ صحیح وی اسناد کړے فعل فاعل وتہ او اسناد عام دے، ایجاباً وی کہ سلباً او مذکور عام دے، مطابقۃً وی کہ پہ ضمن دَ فعل کښے وی۔ فعل عام دے لفظاً وی کہ تقدیراً، کہ حقیقتاً وی کہ شبہہ فعل وی، ہغہ فعل مذکور چہ مشتمل وی پہ معنیٰ دَ مفعول مطلق باندې دَ قبیلے دَ اشتمال دَ کل نہ پہ جزء باندې، ما ہغے نہ چہ اتحاد یې وی پہ معنیٰ کښے، پہ بمعناہ سرہ احتراز راغے دَ مفعول لہٗ نہ، ځکہ چہ ما فعلہ فاعل فعلٍ مذکور دے، لیکن بمعناہ نہ دے ځکہ چہ مشتمل نہ دے پہ معنیٰ دَ فعل مذکور باندې، لکہ ضَرَبتُہٗ تادیباً۔ دلتہ پہ تادیباً باندې ضرب فعل مشتمل نہ دے، او پس دلتہ مونږ تعمیم او کړو پہ حدث کښے چہ حدث عام دے حقیقتاً وی کہ حکماً، دا د پارہ دَ دفع دَ اِعتراض۔ اِعتراض دا وارد یږی چہ تربا او جندلا دا سرہ دَ ہغے نہ چہ مفعول مطلق واقع کیږی لیکن حدث نہ دے، ځکہ چہ معنیٰ دَ دوئ تراب او حجر دی، لو جواب دا دے چہ دا حدث دے حکماً، تو حدث عام شو حقیقتاً وی او کہ حکماً، ځکہ چہ دا دَ ہماوہ پہ ہلاکت سرہ، لو دا پہ منزلہ دَ ہغے قول سرہ او گرځیدو دَ ہلکت ہلاکا "تراب والحجر۔

## درس نمبر ۱۳۰:

مونږ چہ کوم تعلیمات کړی دی، دَ ہغے فوائد بیانیږی پہ شکل دَ سوالونو جوابونو کښے **سوال** دا وارد یږی چہ ستاسو دا تعریف جامع نہ شو، ځینی افرادو لرہ او خارج پریږدی نہ مفعول مطلق پہ دے ترکیبونو کښے چہ مَلَتَ موتاً، شرف شرفاً او جسم جسامۃً، ځکہ چہ فاعل دَ دے دَ انفعالونو دا فعل نہ دے صادر شوے دا دَ قبیلے دَ ما فعلہ فاعل فعل مذکور نہ دی۔ **جواب.** مراد پہ قیام دَ فعل سرہ دا دے چہ قیام دَ فعل پہ فاعل وی، فاعل پورې او دلتہ خو قیام دَ مات، شرف او جسم پہ فاعل پورې راغلے دے، لو دا داخل دی پہ تعریف کښے۔ **سوال.** ستا دا تعریف جامع نہ شو ځینو افرادو لرہ او

---

[1] او دا بل توجیہ دہ۔۔۔ شو لیکن دا مال نہ دے، پہ تکرار باندې ځکہ چہ دا توضیح دَ عمل دَ منصوباتو او دغہ ځکہ لوضیح دَ عمل دَ مرفوعاتو دہ۔ س م ۔س۔

خارج شو ترې نه مفعول مطلق په دې ترکیب کښې چه ماضربتُ ضرباً؛ ځکه چه دلته تیار د فعل په فاعل - - - پورې نه دې لغوًا بلکه نفي شوې دې - **جواب**. مراد په قیام سره صحت د اسناد دې - برابره خبره ده چه ایجاباً وي او که سلباً وي -

**سوال**. ستا تعریف مانع نه شو ځکه افرادو له او خارج شو ترې نه مفعول مطلق د دې ترکیب چه ضُرِبَ په صیغه د مجهول سره، ځکه چه دلته خو د قبیلې د ما فعله فاعل مذکور نه دې - **جواب**. فاعل عام دې حقیقتاً وي او که حکماً - دلته کښې اګرکه فاعل حقیقتاً نه دې خو حکماً؛ په دې شان سره چه دا مفعول ما لم یسم فاعله حکماً فاعل دې. **سوال**. بنا د متولغه اختصار ده لو وله اسم - زیات کړې شو یعنی ماتن اوې دې چه هو اسم، بغیر د اسم نه شو هم معنی صحیح کیده - **جواب** . اسم یې ځکه زیات کړې بیا بله په معنی باندې هو اطلاق د مفعول مطلق کیدلو او د مفعول مطلق خو د قبیلې د الفاظ نه دې، نه د قبیلې د معنی نه - **سوال** . ظاهر متبادر د فعل نه مراد معنی اصطلاحي ده چه حدث دې نسبت دې او زمانه ده لو زمانه او نسبت خو قابل د ذکر نه دی لو نه ځکه واځ فاعل فعل مذکور - **جواب**. مراد په فعل سره معنی لغوي ده چه حدث دې، فقط -

**سوال**. ستا دا تعریف جامع نه شو ځکه افرادو له او خارج شو ترې نه مفعول مطلق په دې ترکیب کښې چه ضُرِبتُ ضرباً، ځکه چه حدث دلته نه دې مذکور - **جواب** . مذکور عام دې مطابقتاً وي که تضمناً، لو دلته په ضمن د فعل کښې دې - **سوال**. تعریف د مفعول مطلق و جامع او نه ګرځید د خپلو افرادو له او خارج شو ترې نه نضرب الرقاب، ځکه چه دا مفعول مطلق دې او فعل یې نه دې ذکر شوې -

**جواب** . فعل عام دې لفظاً وي که تقدیراً، دلته اګرکه لفظاً نه دې ذکر لیکن تقدیراً ذکر دې، تقدیراً فعل په سیاق شي چه فاضربوا ضرب الرقاب - **سوال** . ستا دا تعریف جامع نه شو ځکه افرادو له او خارج شو ترې نه مفعول مطلق په دې ترکیب کښې چه انا ضاربٌ ضرباً؛ ځکه چه دلته فعل نه لفظاً ذکر دې او نه تقدیراً -

**جواب**. فعل عام دې، حقیقتاً وي که شبه فعل وي - دلته ضاربٌ صفت دې، دا شبه فعل دې [1]

# درس نمبر ۱۳۱

به معناه باندې **سوال** وارد دې چه ظاهر متبادر خو دا ده چه دا بمعناه متعلق دې په فعل پورې، لو په معنا به دا شي چه دا مفعول مطلق به یا په معنی د فعل سره وي او کیا به په دا فعل په معنی د مفعول مطلق سره وي او دا معنی صحیح نه ده، ځکه چه د فعل او د مفعول په مابین کښې تغاير دې په دې شان سره چه فعل کل دې او دا مفعول مطلق ورله جزء دې؛ **جواب** . دا بمعناه متعلق دې په مشتمل پورې چه فعل مشتمل وي په مفعول مطلق باندې د قبیلې د اشتمال د کل نه په جزء باندې، لو ځکه په مابین کښې اتحاد الخ، بلکه تغاير په کښې متحقق شو - **سوال** . ستا دا تعریف د مفعول مطلق مانع نه شو د دخول د غیرونه او داخل شو په کښې مفعول به، په دې ترکیب کښې چه کرهتُ کراهتي - دلته کراهتي مفعول به دې او صادقیږي په دې باندې تعریف د مفعول

---

[1] په تعریف د مفعول مطلق کښې په غیر نتائج منقوض دی، دغه ګوله ترکیب تمام داخلیږي په تعریف د غلامه ما یرد فتدبر ۱۲ ( م-س) -

مفعول ـ **جواب**: د دې ترکیب د پاره دوه اعتبارونه دي، یو اعتبار د مفعول به دے او بل اعتبار د مفعول مطلق دے، نو په اعتبار د مفعول مطلق سره دا مانع ادګرځي او د مفعول به کښې داخلیدل نه شو.

**سوال**: ستاسو وئیل چې د مفعول مطلق نه مخکښې به فعل راځي او نه به مخکښې فعل نه وي بلکه مصدر به وي، لکه ضرباً ضرباً ـ **جواب**: مصدر په حین د عامل کښې متوسل دی، په فعل سره او دا سره د ان مقدره، نو تقدیر به داسې شي چې ان ضربت ضرباً.

**وقد یکون للتاکید والنوع والعدد**

او کله کله راځي مفعول مطلق د پاره د تاکید او د پاره د نوع او د پاره د عدد، نو دا مفعول مطلق په درې قسمه شو، مفعول مطلق تاکیدي، نوعي او عددي، وجه د حصر په دې درې کښې دا ده چې دا مفعول مطلق به خالي نه وي یا به په مفهوم د فعل کښې زیادت وي په مفهوم د فعل باندې او یا به نه وي، که نه وي نو دا مفعول مطلق تاکیدي دے او که وي نو بیا به خالي نه وي یا به دا زیادت د پاره د نوع وي یا د پاره د عدد وي ـ که چرته د نوع د پاره وي نو مفعول مطلق نوعي دے او که چرته د عدد د پاره وي نو مفعول مطلق عددي دے، مثالونه د درې واړو د پاره ماتن ذکر کړي ـ

**نحو جلست جلوساً وجِلسةً وجَلسةً**

، ما جلست جلوساً مثال د مفعول مطلق نوعي دے یعنی جلست نوعاً من الجلوس او جلست جِلسةً: دا مثال د مفعول مطلق عددي دے، یعنی جلست مرةً واحدةً په فتح د جیم سره دا د پاره د مرت راځي، لکه شاعر وائي الفعلة للمرة والفِعلة للحالة ـ

**فالاول لا یثنی ولا یجمع بخلاف اخویه**

پس اول قسم چې مفعول مطلق تاکیدي دے نه تثنیه کیږي او نه یې جمع راځي، ځکه چې دے دلالت کوي په صرف ماهیت باندې، چې صرف محض وي، د دلالت نه په تعدد باندې او تثنیه او جمعیت چونکه دلالت کوي په تعدد باندې ـ پس د دوئ په مابین کښې منافات دے، په خلاف د دې دوه نورو دواړو قسمونو نه، ځکه چې دوئ دلالت نه کوي په محض ماهیت باندې چې محض اوي، د تعدد نه ـ

**وقد یکون بغیر لفظه نحو قعدت جلوساً**

او کله راځي دا مفعول مطلق مغایر د فعل خپل نه لفظاً، وقد یکون نه دا معلومه شوه چې د دوئ په مابین کښې په اکثره توګه کښې مغایرت نه وي، دا مغایرت به یا په حسب د مادې سره وي او کله به په حسب د باب سره وي، مغایرت په اعتبار د مادې سره دے نو وائي چې مفعول مطلق د یو مادې نه راغلي وي او فعل یې د بلې مادې نه راغلي وي، لکه قعدت جلوساً جلوساً مفعول مطلق دے ـ د دې ماده جیم لام او سین ده او فعل یې قعدت دے، چې ماده یې قاف عین او دال ده او مغایرت په اعتبار د باب سره دے نو وائي چې د مفعول مطلق باب جدا وي، د باب فعل نه، لکه انبته الله نباتاً ـ دلته کښې نباتاً مفعول مطلق دے او باب یې ثلاثي مجرد دے او فعل یې انبت دے چې د ثلاثي

مجرد دے او فعل یې انبت دے چه د ثلاثي مزید فیه دے (یعنې د باب افعال نه دے)۔ **سوال** ظاهر متبادر د ضمیر د للفظه نه فعل مُراد دے، یعنې راجع دے فعل ته، چه فعل ته راجع شي، نو معنی نه صحیح کیږي، معنی به داشي چه کله وي دا مفعول مطلق بغیر د فعل نه او داخو منافي دے، استاد د مُصنّف قول سره چه تاسو بیان کړي دي چه مفعول مطلق نه مُصنّف به فعل دي، نو د معلومه په مابین کښې منافات شو۔ **جواب**۔ ضمیر په معنی د مغایرت سره دے، نو معنی به داشي چه کله راشي دا مفعول مطلق مغایر د فعل خپل نه لفظاً۔ زه کوم داخبره چه په دے مقام کښې اختلاف دے، په مابین د سیبویه او د جمهورو نحاتو کښې۔ سیبویه وائي چه مفعول مطلق مغایر د فعل خپل نه نه راځي، ځکه چه هغه به نو باندې مطابقت شرط دے، په مابین د مفعول مطلق او د فعل د هغه کښې او چه کوم ځائے کښې مغایرت راغلے دے، نو هغه به کښې تاویل کوي، نو د تعددت جلوساً دا به کوي، چه تعددت وجلست جلوساً، نو دا جلوساً مفعول واقع شوے دے د جلست نه او انبته الله نباتاً کښې دا به تقدیر راوباسي، چه انبته الله انبت نباتاً۔ او س دا د راغ مجرد دي او دلیل د سیبویه دادے، چه مفعول مطلق هغه ته وائي، چه فعل مشتمل وي، په هغه باندې د قبیلې د اشتمال د کل نه په جزء باندې او چه کله مغایر شي، نو اشتمال د فعل به راننه شي په دې باندې۔ جمهور نحاة وائي چه مذهب د سیبویه ضعیف دے، عقلاً او نقلاً دواړه، عقلاً خو په دې وجه ضعیف دے، چه په دے کښې تقدیر راغلے دے او تقدیر خلاف الاصل هے او نقلاً خو په دې وجه ضعیف دے، چه دومره ځائونو کښې فعل او مفعول مغایر وي او داسې ځائونه چه په کښې تاویل نه شي کیدے، لکه ولا تضروه شیئاً یا حلفت یمیناً، نو شیئاً او یمیناً مفعول مطلق واقع شوي دي او مغاير دي د فعل نه او تقدیر او تاویل هم په کښې نه کیږي، ځکه چه دا جامد وي او جمهور جواب کوي، د دلیل د سیبویه نه چه اشتمال د فعل په مفعول مطلق باندې عام دے لفظاً وي که معناً او لفظاً یا عام دے، بالذات وي که بالواسطه۔ د معناً مثال خو لکه قعدت جلوساً شو، چه د دواړو معنی یوه ده او په انبته نباتاً کښې اشتمال لفظي دے خو بالواسطه دے، ځکه چه انبت مشتمل دے، په خپل مصدر باندې چه انباتاً دے او انباتاً مشتمل دے په نباتاً باندې۔ سیبویه[1] به ولا تضروه شیئاً کښې تاویل کوي، په دې شان سره چه شیئاً په معنی د قلیلاً سره دے او دا صفت دے د پاره د موصوف محذوف نه چه ضراراً دے، نو تقدیر به داسې شي چه ولا تضروه ضراراً قلیلاً۔ پس د ضراراً مفعول مطلق شو او مغایرت[2] د فعل خپل نه شو۔

---

[1] سیبویه چونکه د نحویانو امام دے او د تاویل د روانی خو کلاوړ دي نو په ترکیب کښې باوجود د ترکیب چه متعذر هم، تکلف به هغه په عند المحو د متّل دے، په دے شان سره کما ذکره استاذي المحترم الفا او مراد په جمهور سره عبد الحق غوره الاکثر کوچنی د مه دي چه قضی به ملا کړے دے، چه امام سیبویه باندې په حاشیه د شرح جامي کښې په دے قول د باري تعالی سره چه ولا ینقصونه شیئاً دا په تاویل د نصراً قلیلاً سره درست نه دے، ځکه چه ان الاصل عدم التنقیص ان التغییر لا یجری في مثل قوله تعالی ولا ینقصونه شیئاً ای نصراً قلیلاً۔ (حرمین)

[2] اقول لا یخفی علیك ان التعبیر في قوله تعالی بخلاف الاصل ولکن المعناه حینئذ تصح باعتبار الموصوف المقدمو الحاصة المنقس علی سیبویه۔ (م-س)

# درس نمبر ۱۳۲

**وقد يحذف الفعل لقيام قرينة جوازاً**

او کله حذف کیږي شي فعل د مفعول مطلق په وخت د قیام او د وجود د قرینې کښې. جواب خبره مه چه قرینه حالیه وي او که مقالیه وي، په حذف جوازی سره، په الفعل کښې الف لام عهدي دی او معهود په دے سره مفعول مطلق دے لو د جوازاً صفت ده د پاره د مفعول مطلق محذوف منصوب حذف ناصب، او جوازاً په تاویل د حیات اسره دے او مکمل تفصیل یئے خو مخکښې تېر شویدے "فلا نعیدها".

**كقولك لمن قدم خير مقدم**

لکه دا قول ستا د پاره د هغه چا چه راشی د سفر نه او ستا رته اووائے چه خیر مقدم، دلته کښې حذف د فعل د مفعول مطلق راغلی دے، په حذف جوازی سره د وجې د وجود د قرینې نه، چه هغه حال د قادم دے. **سوال**. مفعول مطلق خو هغه ته وائی چه فعل مشتمل وي په هغه باندې د تبیلے د اشتمال د کل نه په جزء باندې او دلته خو فعل نه دے مشتمل چه هغه قدمت دے په خیر باندې او دوئیمه خبره دا ده چه مفعول مطلق خو مصدر وی او دلته خو خو مصدر نه دے، بلکه صیغه د اسم تفضیل ده، او په دواړو تقدیرونو سره مفعول مطلق نه صحیح کیږي. **جواب**. په دے باندې اطلاق د مفعول مطلق شوے دے مجازاً په اعتبار د موصوف محذوف سره یا په اعتبار د مضاف الیه سره، چه موصوف یئے حذف شی، نو تقدیر به داشي چه قدمت قدوماً خیر مقدم، او چه په اعتبار د مضاف الیه سره شی نو مضاف الیه د دے خو مقدم مصدر میمی دے.

**ووجوباً سماعاً**

دا عبارت عطف دے مخکښې په جوازاً باندې یعنی وقد یحذف الفعل حذفاً واجباً سماعیاً یا حذفاً واجباً سمعیاً. او حذف وجوبی سماعی دے او بل حذف وجوبی قیاسی دے، حذف وجوبی سماعی هغه ته وائی چه د یو قاعدے او ضابطې ماتحت نه وي، بلکه د عربو نه سماع باندې موقوف وي او حذف وجوبی قیاسی هغه ته وائی چه، په هغه کښې یو قاعده او قانون لوه مخلوی. پس کله کله حذف کیږي عامل ناصب د مفعول مطلق چه فعل دے، په حذف وجوبی سماعی سره.

**مثل سقياً ورعياً وخيبةً وجدعاً وحمداً وشكراً وعجباً**

لکه سقیاً نو د دے عامل ناصب چه فعل دے هغه حذف دے، په حذف وجوبی سره، چه سماع یئے د عربو نه راغلی ده، چه هغوي دا مفعول مطلق بغیر د فعل نه ذکرکوي. پس تقدیر د عبارت داسے دے چه سقاك الله سقياً، او دغه شان رعياً په اصل کښې رعاك الله رعياً دے او خيبتاً ره معنی د ناوالی کیدو، بلندون) دا په اصل کښې وخاب خيباً او جدعاً (پوزے یا غوږ او شونډے وغیره پریکولو والی). په اصل کښې وجدعے جدعاً او حمداً په اصل کښې حمدت حمداً. شكراً په اصل کښې شكرت شكراً او عجباً کښې عجبت عجباً دے.

**سوال** مشغولے چه د معنی سره خپل افعال نه ذکرکیږي او نه به درته اومنایم چه، دے سره به افعال خپل ذکر وي، لکه شكرت شكراً، او حمدت حمداً. **جواب**. په دے کښې حذف وجوبی د افعال په کلام د فصحاو کښې دے،

اَوْ ذکر دَ افعالو دَ دے سره په کلام دَ غیر نصحاء کښے دے اَوْ توهّم جواب دا دے چه دَ دے دَ افعالو وجوب دَ حذف په هغه وخت کښے دے چه سره دَ لام نه وی اَوْ دلته خو ورسره لام نشته، په دے وجه باندے ذکر دَ فعل خپل ورسره راغلے دے۔ **سوال.** دا مثالونه مطابق نه دے دَ ممثل سره، ځکه چه کوم مثالونه ذکر کړی دی دوی خو ئم بغیر دَ لام نه دی۔ **جواب.** الغرض اکثر دلته کښے ذکر نه دے، خو مراد دَ دے نه مذهب دَ متقدمینو دے، اَوْ په متاخرینو کښے دَ شیخ رضی مذهب دلته کښے لوه ضابطه ده، هغه دا ده چه، هر هغه مفعول مطلق چه ذکر شی پس دَ فعل نه اَوْ هغه مفعول مطلق دَ باره دَ نوع اَوْ دَ بیان دَ عدد نه وی اَوْ مضاف وی، فاعل یا مفعول ته۔ برابره ده که دَ لام سره وی که بغیر دَ لام سره وی، نو په هغه صورت کښے حذف دَ فعل واجب دے اَوْ دا قید چه مفعول مطلق دَ باره دَ عدد یا دَ نوع نه وی، دَ باره دَ دے چه خارج شی ترینه دا ترکیب وقد ملکوا مکرم، اَوْ وسعی لها سعیها، نو دَ شیخ رضی په نزد باندے هم قیاس او کړے شو اَوْ دلته حذف واجب دے، دَ وجه دَ وجود دَ قرینے اَوْ دَ سد مسد نه قرینه په کښے نصب دَ معمول دے اَوْ سد مسد قیام دَ معمول دے په ځائے دَ عامل باندے۔

**وقیاساً** دا عطف دے په سماعاً باندے یعنی کله کله حذف دَ عامل ناصبه دَ مفعول مطلق راځی په حذف وجوبی قیاسی سره، یعنی چه دَ هغه حذف وجوبی دَ یو قاعدے دَ لاندے وی۔

**فی مواضع** په څو ځایونو کښے چه هغه ځایونه مشهور دی اَوْ کثیر الاستعمال دی، دا مطلب نه دے چه ګنی حصر راغلے دے په دے مواضع مذکوره کښے، دا معنیٰ دَ پاره دَ دفع دَ سوال اووے۔

**سوال.** مصنفؒ چه کوم ځایونه ذکر کړی دی په دے کښے خو حصر نه دے صحیح، ځکه چه دَ دے نه علاوه په نورو ځایونو کښے هم حذف وجوبی قیاسی راغلے دے، لکه په توبیخ کښے په دے ترکیب کښے چه انت قعوداً والناس قیاماً، دلته دَ قعوداً دَ پاره فعل حذف دے چه قعدتٙ دے، نو دا دَ دے مذکوره مواضعو نه علاوه دے۔ پس مونږ او وئیل **جواب** کښے چه حصر په دے مواضع کښے نه دے مقصود، بلکه دا اکثر الاستعمال دے۔

**منها ما وقع مثبتا بعد نفی او معنی نفی داخل علی اسم لایکون خبراً عنه.** بعض دَ هغه مواضعو نه موضع دَ هغه مفعول مطلق دے، چه واقع شوے وی مثبت پس دَ نفی یا دَ معنیٰ دَ نفی نه، هسے نفی یا معنیٰ دَ نفی چه داخله وی په اسم باندے، چه نه وی خبر دَ هغه نه۔ **سوال.** ما به یا عبارت وی، دَ مفعول مطلق نه اَوْ یا به یے عبارت وی دَ موضع نه اَوْ په دواړو تقدیرونو سره معنیٰ نه صحیح کیږی، ځکه چه که چرے عبارت شی، دَ مفعول مطلق نه، نو حمل یے په منها نه صحیح کیږی، ځکه چه معنیٰ به دا سے شی چه بعض دَ هغو مواضعو نه مفعول مطلق دے، نو مفعول مطلق خو موضع نه دے اَوْ که عبارت شی، دَ موضع نه، نو بیا وروباندے حمل دَ مثبتاً نه صحیح کیږی، ځکه چه موضع خو مثبت نه واقع کیږی۔ **جواب.** ما عبارت دے دَ مفعول مطلق نه اَوْ عبارت په حذف سره دے منها موضع ما وقع۔ **سوال.** ستا دا قول مشتمل دے په تناقض باندے، ځکه چه ته وائے چه مفعول

مطلق به مثبت وی اؤ بیا فائدہ چه پس د نفی یا د معنیٰ د نفی نه وی، لو دا خو نه دے، مګر تناقص ځکه چه پس د نفی مثبت نه شی پاتے کیدے، بلکه منفی به وی ۔ جواب ۔ د مثبت د پاره دوه معنے دی ، یو مثبت هغه چه منفی نه وی او دویم په دے معنیٰ چه ما اُرید اثباته او دلته کښے دویمه معنیٰ مراد ده ۔

# درس نمبر ۱۳۳

:- د مثبت معنیٰ موجب دا اوکړو چه ما ارید اثباته ، لو په دے معنے سره مطابقت هم راغے په مابین د مثال او د ممثل کښے ۔ دلته مصنف اووے چه داخل علیٰ اسم په دے سره احتراز راغے، د هغه نه چه داخل وی په فعل باندې، ځکه چه ....... په دغه صورت کښے عامل ناصب نه حذف کیږی لو چه لا یکون خبرا عنه او وئیل نو په دے سره احتراز راغے د خبر نه، د پاره د دے، که چرے خبر شی نو بیا به دے موضوع وی لو بیا حذف د فعل د به واجب نه دے او بل دا چه که چرته دا خبر شی، لو لازم به شی کلا د موصوف حذف په ذات باندې ۔ سوال ۔ د لا یکون خبرا عنه قید راوړلو ته ضرورت نشته ځکه چه مفعول مطلق خو لو خبر نه شی کیدے ۔ جواب ۔ دا په نسبت سره نیت د متکلم ته دے، ځکه چه په دے کښے احتمال د خبر هم دے ، لو دا قید یے په دے وجه اولګولو چه مفعول مطلق خبر نه وی ۔

**اووقع مکررا** یا به وی دا مفعول مطلق مکرر واقع شوے ، لو په دغه وخت کښے حذف د فعل د ده به وجوبا قیاسا راځی ۔ سوال ۔ تا به دا ته اووئیل چه مفعول مطلق به مکرر راغلے وی او سره د دے نه به حذف د فعل د ده نه وی راغلے ، لکه قول د باری تعالیٰ دے چه کلا اذا دُکَّتِ الارض دکًّا دکًّا ۔ دلته مفعول مطلق چه دکا دے مکرر راغلے دے او حذف د فعل یے نه دے راغلے ۔ جواب ۔ مراد په مفعول مطلق سره هغه دے چه واقع شوے وی په موضع د خبر کښے او خبر نه وی ۔ پس دلته حذف د فعل راغلے دے، د وجه د موجود د قرینے او د سد مسد نه هر چه قرینه هغه نصب د معمول دے او هر چه د سد مسد هغه تکرار د مفعول دے یا اقامت د مفعول مبتدے په ځائے د خبر باندې ۔

**نحو ما انت الا سیرا و ما انت الا سیر البرید** دلته کښے سیرا واقع شوے دے ، پس د نفی نه او حذف د عامل د دغه فعل د تسیر دے راغلے ، لو اصل د تقدیر عبارت به داسے شی چه ما انت الا تسیر سیرا او ما انت الا سیر البرید کښے اصل عبارت به داسے شی چه ما انت الا تسیر سیرا کسیر البرید ۔ سوال ۔ مثال د مطابق نه دے د ممثل سره ځکه چه مثال ود استثناء راغلے دے او ممثل د مفعول مطلق دے ۔ جواب ۔ ما استثناء نه ده، ځکه چه په استثناء کښے عموما مستثنیٰ د جنس د مستثنیٰ منه نه وی او دلته کښے سیرا د جنس د انت نه نه دے ۔ سوال ۔ د پاره د توضیح د ممثل خو یو مثال هم کافی دے لو تا دوه مثالونه ولے راوړل ؟ جواب ۔ دلته کښے دا یو مثال د نکره د پاره او بل مثال د معرفه دے ، یا دا یو مثال د مفرد دے او دا بل مثال د مضاف دے ۔ دلته په ما انت الا سیر

سیراً کسیر البرید' کښې قرینه نصب د مفعول مطلق دے او سد مسد اقامت د معمول دے' په ځائے د عامل بانږ.

**وانما انت سیراً وزید سیراً سیراً**

دا مثال د هغے دے' چه مفعول مطلق واقع شوے وی' پس د معنی د نفی نه' ځکه چه انما په معنیٰ د ما او د الا سره دے تقدیر د عبارت به داسے شی' چه 'انما انت تسیر سیراً'؟ د دلته کښې قرینه هم نصب د مفعول مطلق دے او سد مسد قیام د معمول دے' په ځائے د عامل بانږ' زیدٌ سیراً'، دا مثال د ما وقع مکرراً دے' په اصل کښې داسے دے' 'زیدٌ یسیر سیراً سیراً'؟. دلته کښې قرینه نصب د مفعول مطلق دے او سد مسد تکرار د مفعول مطلق دے' یا اقامت د معمول دے' په ځائے د عامل بانږ. **سوال** . 'منها ما وقع'، دا یو ضابطه او قانون دے' نو پکار داوه' چه دا دواړه دِ په جدا جدا منها کالوسره ذکر کړے وے' نو ولے یې یو منها کښې راوړل؟ **جواب** . په دے دواړو کښې یو خبره مشترکه ده، هغه دا ده' چه' په دواړو کښې مفعول واقع شوے دے' په موضع د خبر کښې' خو خبر نه دے.

## درس نمبر ۱۳۴

**منها ما وقع تفصیلا لاثر مضمون جملة متقدمة**

بعض د هغه مواضع نه' چه حذف د مفعول مطلق د عامل په کښې راځي' هغه موضع دے' د مفعول مطلق چه واقع شوے وی' تفصیل د پاره د اثر مطلب د جمله' چه هغه متقدمه وی' په مفعول مطلق بانږ' نو په دے ځائے کښې به حذف د فعل د مفعول مطلق راځي' په حذف وجوبي قیاسی سره' دلته دا ما عبارت دے' د مفعول مطلق نه او موضع به دے سره راځي' مراد په تفصیل سره بیان د انواع محتمله دے او مراد په اثر سره غرض مطلوبه دے' مراد په مضمون د جملے سره هغه مصدر دے' چه مضاف وی یا فاعل وته او یا مفعول ته مضاف له' په دغه قسم کښې ماده' چه ذکر شوی بوه جمله استفهامیه لکه خبریه' چه متضمنه وی' مصدر له' چه مطلوب وی په هغے سره شته فوائد او اغراض په الفاظو د مصادرو' چه هغه مفعول مطلق واقع شوی وی، وروستو د دغه جملے نه پس واجب دے' حذف د افعال ناصبو د دے په حذف وجوبي قیاسی سره' چه 'تفصیلا لاثر مضمون' یې اوویے' په دے سره احتراز راغے د هغه نه' چه تفصیل د مضمون د جملے وی او اثر نه وی' لکه 'زیدٌ یسافر سفراً، قریباً او بعیداً'؟ او چه جملة یې اوویے' په دے سره احتراز راغے د مفرد نه' لکه' لزید سفر اما یصح صحةً واما یغتنم اغتناماً'، او متقدمة یې په دے وجه اوویل' چه تفصیل به متقدم د تفصیل د شی په شی بانږ.

**مثل فشدوا الوثاق فاما منا بعد واما فداءً..**

دلته کښې 'شدوا الوثاق' ما جمله ده' له مضمون. جمله هد 'شدوا الوثاق' دے؛ یعنی اضافت د مصدر راغلے دے مفعول ته' غرض مطلوبه د شد والوثاق نه هغه یا احسان دے یا فدیه ده، نو الله تعالیٰ دلته بیان د کثرة انواع محتمله اوکړه- پس دلته منّاً مصدر مفعول مطلق دے او د غه شان فداءً هم مفعول مطلق دے، د دوی عامل حذف دے، ځکه چه مخکښې د دے نه جمله ذکر شوی ده' چه هغه دال ده' په مصدر بانږ. د دے

کې حذف واجب دے، د وجے د وجود د قرینې اؤ د سد مسد نه. قرینه نصب د معمول دے او سد مسد اقامت د جملې دے یا اقامت د معمول دے په ځائے د عامل باندې. اوس تقدیر د عبارت داسے شی چه فشدوا الوثاق فاما تمنون منا واما تفدون فداءً۔

**ومنها ما وقع للتشبيه علاجاً بعد جملة مشتملة على إسم بمعناه وصاحبه**

اؤ بعض د هغه مواضع نه چه حذف د فعل اؤ عامل د مفعول مطلق په کښے راځی په حذف وجوبی قیاسی سره، هغه موضع د هغه مفعول مطلق دے چه واقع شوے وی، دا مفعول مطلق مشبه به په حال د کونړه د هغه مفعول مطلق کښے چه مال وی په دغه فعل باندې، چه هغه د افعال جوارح نه وی یعنی دے مفعول مطلق واقع شوے وی، د یو فعل د افعال جوارح نه[1] چه واقع وی دا مفعول مطلق پس د جملې نه، هغه جمله چه مشتمله وی په اسم باندې هغه اسم چه کائن وی په معنی د دے مفعول مطلق باندې چه مشتمله وی، دا جمله په صاحب د دے مفعول مطلق باندې، نو دلته کښے په حذف د فعل راځی، په حذف وجوبی قیاسی سره، للتشبيه سره احتراز راغے، د دے ترکیب نه چه مررت به فاذا له صوتٌ صوتٌ حسنٌ، ځکه چه دلته کښے صوت ثانی دا مفعول مطلق نه دے، بلکه بدل دے د اول نه په علاجاً سره احتراز راغے، د دے ترکیب نه مررت به فاذا له علمٌ علم الفقهاء یا داچه فاذا له زهدٌ زهداً، دا مشبه دے لیکن د افعال جوارحو نه نه دے، په بعد جملة سره احتراز د دے ترکیب نه راغے چه صوتُ زیدٍ صوتُ حمارٍ، ځکه چه دلته کښے تیرے نه شوے جمله مشتمله په بمعناه سره احتراز راغے، د دے ترکیب نه چه مررت بزيدٍ فاذا له صفتٌ صوتُ حمارٍ ځکه چه صفت په معنی د صوت سره نه دے، په صاحبه سره احتراز راغے، د دے ترکیب نه چه مررت بالبلد فاذا له صوتٌ صوتَ حمارٍ ځکه چه صاحب د صوت بلد نه دے۔

## درس نمبر ۱۳۵

**نحو مررت فاذا له صوت صوت حمار**

دلته صوت حمار مفعول مطلق واقع شوے دے مشبه به اؤ مفعول مطلق دے، د افعال جوارحو نه، پس د جملې نه چه فاذا له صوتٌ ده اؤ دا مشتمله ده په صاحب د صوت باندې، چه له هم دے. دلته حذف د فعل واجب دے، په

[1] اعلم ان الافعال على ضربين فالاول يسمى بالقلوب كالظن والشك واليقين وغيرهم والثاني بالجوارح كصوت وغيره لايقال بالاعضاء مطلقا لعدم الصدور الاصلت منهم والجوارح من الجراحة ولوشئ الصوت الصادر منهم في الطلب كالتوبيخ والتبشير ونحوهما وان كان يظهر اثره في الجوارح فهو في قطعة ۱۲۔

| | |
|---|---|
| په ظاهره که هر سړی حمایه نه غښی کے | دا احسان دے، عذاب نه دے |
| که د امریکې شوربه هم د یو خښې | دا عذاب دے، عقاب نه دے |

حذف وجوبي قياسي سو ځکه چې د وجود د قرينې او د سد مسد نه علاوه ئې وجود د قرينې څخه نصب د معمول دے، او څرګند دے، حقه اقامت د جملې دے يا اقامت د معمول دے په ځائے د عامل باندې۔ پس تقدير به داسې شي چې مررتُ به فاذاله صوتٌ يصوت صوت حمارٍ۔ **سوال**: نه منو دا خبره چې صوت حمارٍ دا مفعول مطلق دے ځکه چې شرط په مفعول مطلق کښې دا دے چې فعل به په حروف باندې مشتمل وي د قبيلې د اشتقاق د کلمه به جزء باندې او دلته کښې خو يصوت مشتق دے په صوت د زيد باندې مثلاً نه په صوت د حمار باندې **جواب**: دا مفعول مطلق دے مجازاً، اصل عبارت به داسې وي چې مررتُ به فاذاله صوت يصوت صوتاً مثل صوت حمارٍ۔

**وصراخ صراخ الثكلى** تكلى بورې ښځې ته وائي، يعني چې ما تېر شوم په يو سړي باندې او هغه چغې وهلې د هغه ښځې په شان چې بچې يې مړه شوي وي او صراخ چغو ته وائي۔ دا بل مثال دے يعني مررتُ به فاذاله صراخٌ يصرخ صراخ الثكلى۔ دلته کښې صراخ الثكلى دا مفعول مطلق دے او فعل د دې يصرخ دے چې حذف دے په حذف وجوبي قياسي سره، او دا پسې هم تقدير داسې دے، فاذاله يصرخ صراخاً مثل صراخ الثكلى۔ **سوال**: د وضاحت د مثل د پاره خو يو مثال کافي دے، نو تا دوه ولې ذکر کړل؟ **جواب**: دا اول مثال د هغې دے چې مضاف اليه نکره وي او دويم د هغې دے چې مضاف اليه معرفه وي، نو په اول مثال کښې حمار نکره دے او په دويم مثال کښې الثكلى معرفه دے۔

**ومنها ما وقع مضمون جملة لا محتمل لها غيره** او بعضې د هغه مواضعو نه چې حذف په کښې کيږي، د عامل ناصب د مفعول مطلق په حذف وجوبي تيلي سره موضع د هغه مفعول مطلق دے چې واقع وي، دا مفعول مطلق مدلول د جملې هغه جمله چې نه وي محتمل د دې جملې د پاره غير د مفعول مطلق نه يا دې د پاره بغير د مفعول مطلق نه بل محتمل نه وي۔

**مثل له علىّ الف درهم اعترافاً** په دې کښې دوه ترکيب جوړيږي، اول دا چې له خبر مقدم شي او على وروسته متعلق شي او دويم دا چې على خبر مقدم شي او له وروسته متعلق شي او په دواړو صورتونو کښې الف درهم دا مبتداء مؤخره ده، خو په دې دواړو صورتونو کښې او ترکيبونو کښې اتفاقه ترکيب شوے دے ځکه چې په دې کښې تقدير د متعلق را بهلې دے، په متعلق باندې او يا دا ترکيب چې له خبر مقدم على حال، يعني واجباً يا ثابتاً على او الف مضاف، درهم مضاف اليه، مضاف سره د مضاف اليه نه دا مبتداء مؤخره او اعترافاً مفعول مطلق د فعل محذوف نه دے، چې اعترفت دے۔ اصل عبارت دا دے له علىّ الف درهمٍ اعترفت اعترافاً، اعترافاً مفعول مطلق دے او د مضمون د جملې دے، په دې باندې **سوال** وارديږي، چې مضمون د جملې خو هغه ته وائي چې مصدر د مشتق غير مشتق ته مضاف شي، نو دلته کښې خو چې کله داسې اوشي، نو د ثابتٌ يا د واجب د پاره مصدر ثبوت او يا وجوب دے او د دې اضافت به الف ته اوشي، نو داسې به شي وجوب يا ثبوت الف، نو اعترافاً خو مضمون او مدلول د جملې او نه ګرځيده **جواب**: مضمون د جملې په دوه قسمه دے، يو صراحتاً او دويم ضمناً۔ دلته کښې اګر که صراحتاً نه دے، ليکن ضمناً خو شته دے،

ځکه چې د علیّ نه اعتراف او لزوم ثابت شو، علیّ په اصطلاح د فقهاء کښې نص دے په لزوم کښې۔ **سوال**: ته وائے چې احتمال د غیر په کښې نشته، حالانکه په دے کښې احتمال د غیر شته دے، ځکه چې دا جمله خبریه ده او په جمله خبریه کښې احتمال د صدق او د کذب د دواړو شته دے۔ **جواب**: دا جمله خبریه نه ده بلکه جمله انشائیه ده او جمله انشائیه شرعیه ده، ځکه چې په شرع کښې د ماضی صیغې د باره انشاء راځی، لکه بعت اشتریت، وغیره او جمله خبریه په حالت د جملے انشائیه راځی او دوئم جواب دا دے چې، دا جمله خبریه ده ولے په دے کښې احتمال د کذب نشته، ځکه چې له علیّ الف درهم په دے کښې اعتراف د لزوم د الف دے، او المرء یؤخذ باقراره۔ دلته کښې حذف د فعل لفظ دے، په حذف وجوبي قیاسي سره د وجه د وجود د قرینه او د سد مسد نه، هر چې د قرینه ده نصب د مفعول دے او هر چې دے سد مسد، هغه قیام د معمول دے په ځائے د عامل باندې یا قیام د جملے دے الخ۔

**ويسمى تاكيداً لنفسه** او دے ته تاکید لنفسه وائی۔ **سوال**: تاکید خو دے ته وائی چې مخکښې ترے نه مؤکد موجود وی او دلته کښې خو مؤکد نشته۔

**جواب**: مؤکد عام دے، صریحی وی او که ضمنی۔ دلته کښې اګر که مؤکد صریحی نه دے، لیکن ضمنی دے۔

**منها ما وقع مضمون جملة لها محتمل غيره** بعض د هغه مواضعو چې حذف د فعل د مفعول مطلق په کښې کیږی په حذف وجوبي قیاسي سره، موضع د هغه مفعول مطلق دے، چې واقع شوے وی، مدلول او مضمون د جملے چې په هغه جمله کښې احتمال د غیر وی، یعنی چې په هغې کښې احتمال د غیر مفعول مطلق وی۔

**نحو زيد قائم حقاً** دا حقاً مفعول مطلق دے او واقع شوے دے مدلول او مضمون د جملے د دے جملے د باره احتمال د غیر د مفعول مطلق شته دے ځکه چې دا جمله خبریه ده او جمله خبریه احتمال د صدق او د کذب لری، یعنی چې ځنګه په کښې دا احتمال دے چې دا صادقه او حقه ده، دغه شان دا احتمال هم په کښې شته چې دا کاذبه او باطله وی۔ صدق دے ته وائی چې مخبر عنه مطابق وی د خبر سره او که خبر مطابق وی د مخبر عنه سره نو دے ته حق وائی لکه صحیح فرق دا دے، چې شائع استعمال د صدق په اقوال کښې کیږی او د حق استعمال په افعالو کښې شائع دے۔

**ويسمى تاكيداً لغيره** او دے ته تاکید لغیره وائی۔ **سوال**: تاکید خو د غیر د باره نه وی، بلکه د نفس د پاره وی، ځکه چې تاکید وائی تلفظ په واحد باندې مرتین، د دے دوه جوابه دی، **اول** جواب دا دے چې غیر په معنا د مغایر سره دے او د مغایرت نه مراد مغایرت اعتباری دے، یعنی دے ته تاکید مغایر وائی په مغایرت اعتباری سره۔ **دوئم** جواب دا دے چې لغیره کښې دا لام د پاره د تعلیل او علتیه دے، او نبایه تقدیر داسے شی، ويسمى تاكيداً لمعنى لدفع غيره۔

سوال. لو په یعنی تاکیداً لنفسه کښې د هو لامر علیه مراد کړے شی، لو بیابه تقدیر ما یے شی او ولی تاکید لدفع نفسه او دا خو صحیح نه دے. جواب. ملته به تقدیر د عبارت ما یے شی ولیعنی تاکیداً لنفسه لنفی ما یرد علینا؟ دلته کښې حذف وجوبی قیاسی دے، ځکه چه قرینه دلته کښې نصب د معمول دے او سد مسد ئې قائم معمول دے، په ځائے د عامل باندې یا اقامت د جملے متقدمې دے الخ.

# درس نمبر ۱۳۶

## منها ما وقع مثنى مثل لبيك وسعديك

او بعض د هغه مواضعو نه چه حذف د فعل د منفعول مطلق په کښې راځي، په حذف وجوبي قیاسي سره.

هغه ځائے د هغه منفعول مطلق دے چه واقع شوے وي دا منفعول مطلق تثنیه صورتاً نه حقیقتاً د پاره د تحدید کثیر او تکثیر چه مضاف وي فاعل ورته. سوال. منفعول مطلق به حقیقتاً تثنیه وي او سره د دې نه حذف د فعل به نه وي راغلے لکه ضربت ضربتين. جواب. مراد په تثنیه سره صورتاً تثنیه ده نه حقیقتاً او دلته دا ضربتين حقیقتاً تثنیه ده. سوال. نو به مونږ اومنو چه صورتاً به تثنیه وي او سره د دې حذف د دې به نه وي راغلے لکه ثم ارجع البصر كرتين. جواب. مراد په تثنیه سره صورتاً هغه تثنیه ده چه اضافت ئې یا فاعل ته راغلے وي او یا مفعول ته او دلته خو اضافت د دې فاعل یا مفعول ته نه دے راغلے. سوال. چه هر کله ورسره اضافت فاعل یا مفعول ته مراد وو نو لکار دا وه چه دا قید ئې ورسره ذکر کړے وے؟ جواب دا دے چه دائے ذکر نه کړو او اکتفاء ئې وکړه، ځکه چه مثال کښې ئې اضافت راغلے دے. سوال. مثال راځي د پاره د توضیح د ممثل پس د اتمام د ممثل نه او دلته خو اتمام د ممثل په مثال سره راغلے دے او دا نه دے نو تکلیف دے.

جواب: دا تکلیف نه دے، بلکه دا تفنن دے او په دې کښې اشارت دے مقصودیت او اهمیت د مثال ورته، لکه لبيك وسعديك. سوال. دا لبيك او سعديك به خالي نه وائے یا به ئې مصدر مجرد وائے یا مصدر د مزید. که چرے مصدر د مجرد ئې وائے نو صحیح دا، لیکن دلالت نه کوي په تکریر او تکثیر باندې چه مقصود دے او که چرته مصدر ئې وائے، د مزید نو دا کذب دے حساً، ځکه چه په دې کښې یو حرف هم مزید نشته.

جواب. دا مصدر دے د مزید او اضافه او زیادة په کښې د حرف شته، ځکه چه دا په اصل کښې دے الب لك البابين بیا ترے نه فعل چه الب دے حذف کړے شو او مصدر راغے په مقام د فعل باندې او لك د البابين نه وروستو پاتے شو. پس البابين لك شو بیا ترے نه حذف کړے شو لام (جاره) د لك نه، بیا ترے نه ساقط کړے شو نون د وجه د اضافت نه، نو البابيك شو. پس دا مصدر بیا د مزید نه منتقل کړے شو مجرد ته او با معجمه په با کښې مدغمه کړه، ځکه چه دواړه حرفونه د یو جنس نه راغلي وو، نو لبيك ترے نه جوړ شو، او دغه رنګ سعديك په اصل کښې اسعدك اسعادين وو، نو اسعد فعل ترے نه حذف شو لکه د هغه په ځائے دا مصدر راغے، نو اسعاديك شو او اضافت ئې ک ته راغے، ن په اضافت سره حذف شو او د مصدر

دَ من پځَنه موږ؛ مصدر دَ مجهولٔ نه رااخلولو، لو سعديك شو، دلته کښې حذف وجوبي قياسي دے، دَ وجې دَ وجود دَ قرينې اَوْ سد مسد نه. هَرچه دَ قرينه ده نو هغه نصب دَ معمول دے اَوْ هَرچه دے سد مسد هغه اقامت دَ معمول دے په مقام دَ عامل باندې۔ دَ لبيك معنیٰ داده چه زهٔ ستا تابعداريم اَوْ دَ سعديك معنیٰ داده چه زهٔ ستا احسان منديم۔

# درس نمبر ۱۳۷

**المفعول به هو ما وقع عليه فعل الفاعل.** مفعول به، دا مفعول په اسم دَ هغه شي دے چه متعلق وي په مدلول دَ ده پورے بالذات فعل دَ فاعل هغه فعل چه معتبر وي اسناد دَ دے فعل فاعل ته، فاعل عام دے حقيقتاً وي اَوْ که حکماً۔ هَرکله چه فارغ شو مصنفؒ دَ بيان دَ مفعول مطلق نه، نو شروع يې اوکړه په بيان دَ مفعول به کښې۔ پس ويې وئيل چه المفعول به۔ **سوال.** ستا دا تعريف جامع اَوْنهٔ کوځکه دَ خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترے نه مفعول به په دے ترکيب کښې چه "اياك نعبد" سره دَ دے نه چه "اياك" مفعول به دے اَوْ بيا هُم واقع نهٔ دے په دهٔ باندې فعل دَ فاعل۔ **جواب.** مراد په وقوع سره تعلق دے، يعني چه متعلق وي په مدلول دَ ده پورے فعل دَ فاعل۔ **سوال.** ستا تعريف دَ مفعول به مانع نهٔ شو دَ دخول دَ غيرنه اَوْ داخل شو په کښې جار مجرور په دے ترکيب کښې چه "مررت بزيد"، ځکه چه تعلق يې شته اَوْ سره دَ دے نه مفعول به نه دے۔ **جواب.** مراد په تعلق سره تعلق دے بالذات نه بالواسطه اَوْ دا خو بالواسطه دے۔ **سوال.** ستا دا تعريف دَ مفعول به مانع نهٔ شو دَ دخول دَ غيرنه اَوْ داخل شو په کښې مفعول ما لم يسم فاعله، په دے ترکيب کښې چه "ضُرِبَ زيدٌ" سره دَ دے نه چه تعلق ورلپوره بالذات دَ فعل راغلے دے، بيا هُم مفعول به نهٔ دے۔ **جواب** دا دے چه مراد په فعل سره هغه فعل دے چه اسناد يې راغلے وي فاعل ته اَوْ هغه اسناد يې فاعل ته معتبر وي اَوْ دلته کښې دا اسناد نهٔ دے معتبر۔ **سوال.** ستا دا تعريف دَ مفعول به جامع اونهٔ کوځکه دَ خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترے نه مفعول به په دے ترکيب کښې چه "اعطي زيدٌ درهماً" ځکه چه په دے کښې نهٔ دے معتبر اسناد دَ فعل فاعل ته۔ **جواب.** فاعل عام دے حقيقتاً وي که حکماً، دلته اګر که اسناد يې فاعل حقيقي ته نهٔ دے راغلے لېکن اسناد يې راغلے دے فاعل حکمي ته۔

**نحو ضربت زيداً.** زيداً دا مفعول به دے اَوْ متعلق دے ورپورے، فعل دَ فاعل بالذات اَوْ فعل دَ فاعل ضربت دے۔

**وقد يتقدم على الفعل نحو زيداً ضربت** اَوْ کله کله متقدم کولے شي، دا مفعول به په عامل ناصب باندې په وخت دَ عدم دَ مانع کښې اَوْ دا تقدم کله وجوبي وي اَوْ کله جوازي وي۔ وجوبي په هغه وخت کښې چه دا مفعول به مشتمل وي په معنیٰ دَ استفهام يا په معنیٰ دَ شرط باندې، لکه "من ضربت" اَوْ دا تقدم په دے وجه باندې دَ مفعول به راځي په فعل باندې ځکه چه فعل په عمل

کښې قوي دے، په مقدم او مؤخر او مرتب او غیر مرتب ټولو کښې عمل کولے شي۔ **سوال**: دا قاعده ستا منتوضه شوه، په دې ترکیب باندې چه 'اعجبني ان ضربت زیداً' یا 'من البر ان تکف لسانك'۔ په دې شان سره چه زیداً او لسانك ما په دې ترکیبونو کښې مفعول به واقع شوي دي او سره د دې نه تقدیم د دوئي په افعالو خپلو باندې نه دے۔ **جواب**: جائز دے، تقدیم د مفعول به په فعل باندې په وخت د عدم د مانع کښې دے، دلته خو مانع موجود دے، ځکه چه ان دلته کښې موصول حرفي دے او د دې نه وروستو صله راځي او تقدیم د صلې په موصول باندې ناجائز دے، لو معمول د صلې خو به په طریق اولیٰ سره تقدیم د صلې ناجائز وي، لکه په دې ترکیب کښې مثلاً 'اعجبني ان ضربتُ زیداً'۔ دلته کښې اَنْ موصول حرفي دے، د دې صله ضربتُ دے او زیداً چه مفعول به دے، دا معمول د ضربتُ دے، لو چه هر کله تقدیم د ضربت دلته په ان باندې ناجائز شو، لو معمول خو به په طریقه اولیٰ سره ناجائز اوګرځېدو، ځکه چه موصول حرفي مشابهه دے د موصول اسمي سره، لو چه هر کله په موصول اسمي باندې تقدیم د صلې او د معمول د صلې ناجائز دے، لو موصول حرفي هم په دغه باندې قیاس شو او دغه شان معمول د مصدر یعني چه کوم لیو اسم مفعول به د مصدر نه واقع شوے وي، د دغه تقدیم هم په مصدر باندې ناجائز دے، ځکه چه مصدر په حین د عمل کښې مؤول وي په تاویل د فعل سره د اَنْ نه، ځکه چه دلته کښې هم بیا تقدیم د معمول د صلې راځي په موصول باندې۔

## درس نمبر ۱۳۸

**وقد یحذف الفعل لقیام قرینة جوازاً** | او کله حذف کیږي عامل ناصب د مفعول به په وخت د موجود د قرینې کښې قرینه عامه ده، حالیه وي که لفظیه وي، په حذف جوازي سره۔ دلته کښې په الفعل کښې الف لام عهدي دي، مراد او معهود په دې سره مفعول به دے او لقیام کښې دا لام یا وقتیه دے او یا تعلیلیه دے، په علت جوازي سره او جوازاً دا صفت دے د موصوف چه دغه مفعول مطلق واقع شوے دے، دغه حذفاً دے او جوازاً به په تاویل د جائزاً سره شي، د پاره د دې چه حمل د مصدر وصف په ذات راتلے شي۔ مثال د قرینې حالیه، لکه یو سړے مکې ته روان دے او ته ورته اووائے چه 'مَکّةَ، مَکّةَ'، نو دلته کښې حذف د عامل ناصب د مفعول به راغلے دے، د وجه د موجود د قرینې حالیې نه، چه هغه تریدُ دے یعني تریدُ مکّةَ او مثال د قرینې لفظي مصنف ذکر کړے دے۔

**کقولك زیداً لمن قال من اضرب** | په مثل د قول ستا چه دلته زیداً مفعول به دے او حذف د عامل ناصب د دې راغلے دے، د وجه د موجود د قرینې نه چه هغه سوال د سائل دے۔ دلته کښې عامل ناصب د مفعول به په سوال کښې موجود دے، په دې وجه باندې په جواب کښې راوړلو ته ضرورت نشته، ځکه چه 'المذکور في السوال کالمعاد في الجواب'، لنو

تقديريږ يا اوګوځئ، چه اضرب زيداً۔

**ووجوباً في اربعة مواضع** وجوباً دا عطف دے په جوازاً، يعني ويحذف الفعل حذفاً واجباً، او حذف کيږي عامل ناصب د مفعول به په حذف وجوبي سره په دے مواضعو اربعه کښې په طريقه د کثرت سره او ما سيوا د دے مواضعو نه په طريقه د قلت سره۔ پس حصر په دے څلورو مواضعو کښې مانعه۔ **سوال**. حصر ستا د حذف وجوبي په دے څلورو مواضعو کښې باطل دے، ځکه چه مثله په دے څلورو مواضعو کښې حذف راځي، لو دغه شان نور ځايونه هم دي، لکه په صورت د اغراء کښې، مثلاً "اخاك اخاك"، دا مفعول به دے او حذف د عامل ناصب د دے راغلے دے، په اصل کښې دا دے "الزم اخاك" يا "الزم اخاك"، يا په صورت د مدح کښې، مثلاً "الحمد لله الحميدَ"۔ دلته الحميدَ منصوب او مفعول به دے، د دے عامل حذف شوے دے، چه هغه اعني دے يا په صورت د ذم کښې، مثلاً "اعوذ بالله من الشيطن الرجيمِ"۔ دلته الرجيم منصوب او مفعول به دے او حذف د عامل ئے راغلے دے، يا په صورت د ترحم کښې، مثلاً "مررت بزيد المسكينَ"۔ دلته المسكينَ منصوب مفعول به دے او حذف د عامل ئے راغلے دے، چه اعني دے، لو دا دے د څلورو ځايونو علاوه دا صورتونه هم موجود دي۔ پس حصر ستا باطل دے، په مواضع اربعه کښې۔ **جواب** دا دے چه دا اربع مواضع د دے د کثرت نه دي، نه د وجه د حصر نه۔

**الاول سماعي نحو امرأً ونفسه وانتهوا خيراً لكم** الاول دا صفت دے او موصوف ئے حذف دے، يعني الموضع دے، سماعيٌ منسوب بسوي سماع، يعني د عربو نه سماع د دے داسے راغلي دا، چه قياس لره په دے کښې دخل نشته او بحث د سماعي ئے مقدم کړو په قياسي باندي، ځکه چه دا اقل دي د قياسي نه او قليل مقدم وي په کثير باندي، په نحو امرأً ونفسه کښې امرأً مفعول به دے او عامل ناصب د دے حذف شوے دے، په حذف سماعي سره۔ اصل عبارت دا دے چه "اترك امرأً ونفسه"۔ **سوال**. ونفسه يا تاکيد دي د پاره د امرأً لو يا به دا عطف وي په ضمير د اترك باندي، که چرته کښې دا تاکيد شي، لو نه صحيح کيږي، ځکه چه فصل راځي په مابين د مؤکد او د مؤکد کښې او که چرته عطف شي، لو هم نه صحيح کيږي، ځکه چه په ضمير مرفوع متصل باندي عطف هله روا دے چه کله د هغه تاکيد په ضمير مرفوع منفصل سره راغلے وي او دلته کښې تاکيد ئے نه دے راغلے په ضمير مرفوع منفصل سره۔ **جواب**. دا تاکيد دے د پاره د امرأً او که ته وائے چه فصل راځي په مابين د مؤکد او د مؤکد کښې، لو نه وايو چه دا واؤ په معنی د مع سره دے، لو تقديري به دا سے شي چه اترك امرأً مع نفسه او يا دا چه فصل په مابين د مؤکد او مؤکد کښې راغلے دے، لکه په قرآن پاک کښې الله تعالی فرمائي چه "كلا سوف تعلمون ثم كلا سوف تعلمون" او يا دا چه، دا عطف دے په ضمير د اترك باندي او تاکيد د ضمير مرفوع متصل راغلے دے، په ضمير مرفوع منفصل سره تقديراً، لو اصل عبارت به دا رنګ شي چه "اترك امرأً هو

نفسه وانتهوا خیرالکم" - دا بل مثال دے، دلته کښے خیرا مفعول به دے او حذف د عامل ناصب د دے دپاره دے چه "اقصدوا" دے، یعنی "واقصدوا خیرلکم" - **سوال**. نه منو مونږ چه د خیراً دپاره عامل ناصب حذف دے، بلکه عامل د دے خو ذکر دے چه هغه "وانتهوا" دے - **جواب**. "وانتهوا" عامل ناصب د خیراً دپاره نه صحیح کیږی، ځکه چه په دغه صورت کښے فساد لازمیږی په معنیٰ کښے - معنیٰ به دا شی چه ځان منع کړئ تاسو د خیر نه، چه هغه توحید د الله تعالیٰ دے او الله تعالیٰ خو د خیر نه څوک منع کوی نه، نو معلومه شوه دا خبره چه د دے دپاره عامل ناصب "واقصدوا" دے - "انتهوا یا معشر النصاریٰ عن التثلث (حیث قلتم ان الله ثالث ثلاثة) - واقصدوا خیرالکم وهو التوحید -

## درس نمبر ۱۳۹

**اهلاً وسهلاً** اهلاً مفعول به دے او د دے عامل ناصب چه فعل دے هغه حذف شوے دے، په حذف وجوبی سماعی سره، ځکه چه عرب د دے سره فعل نه ذکر کوی، اهلاً په اصل کښے "اتیت اهلاً" دے، د اهلاً دپاره دوه معنے دی، یو به معنیٰ د قربت او اقارب سره راځی او بل به معنیٰ د تعبیر آه د عبارت سره راځی، چه په معنیٰ د قربت سره شی، نو مفعول به کیدل یے صحیح دی، یعنی "اتیت الاقارب لا الاجانب" او چه کله په معنیٰ د تعبیر سره شی، نو مفعول به کیدل یے ترهغه نه صحیح کیږی او دا به مفعول به صحیح شی چه دا مبنی للمفعول اوګرځی او بیا دا صفت واقع شی، د پاره د موصوف محذوف - پس تقدیر به دا شی چه "اتیت مکانا ماهولا او سهلا" - نو سهل هغه ځکے ته وائی چه هواره وی، د دے په مقابله کښے حزناً دے، چه هغه سخته ځکے ته وائی، د دوهم دپاره عامل ناصب هغه وطئت دے، یعنی "وطئت سهلاً" - زده کړه دا خبره چه د "اهلاً وسهلاً" الفاظ انډ دی او دا میلمه ته کوربه وائی -

**الثانی المنادیٰ وهوالمطلوب اقباله** بل موضع د هغه مواضع اربعه نه چه حذف د عامل ناصب په کښے د مفعول به راځی، هغه منادیٰ دے او منادیٰ هغه اسم دے چه مطلوب وی توجه د متکلم د ده، توجه عامه ده، بقلبه وی که بوجهه وی، که حقیقتاً وی که حکماً او که مسئول بالاجابة وی - هر کله چه فارغ شو مصنف د حذف د عامل ناصب د مفعول به نه وجوباً سماعاً، نو اوس یے شروع اوکړه په هغه کښے چه حذف د عامل ناصب د مفعول به راغلے وی وجوباً قیاساً، لیکن دے دلیل چه "الثانی" . دا صفت دے او د هر صفت دپاره لابدی ده د موصوف نه، د دے دپاره موصوف الموضع سته یا الباب دے، "نداء" آواز کولو ته وائی، منادِی آواز کوونکی ته وائی، منادیٰ آواز کړے شوی ته وائی - منادیٰ به هغه حرفونو ته وائی چه په هغے سره بل څوک رابللے کیږی - منادیٰ په **لغت** کښے نداء کړے شده ته وائی او په **اصطلاح** کښے "وهوالمطلوب اقباله" ته وائی - **سوال**. ستا دا تعریف د منادیٰ جامع نه شو ځکه افراد ولو او خارج شو ترے نه هغه منادیٰ چه حاکی وی په مابین د منادیٰ

او منادیٰ کښې۔ **جواب**۔ توجه عامه ده ' بقلب وي که بوجهه وي۔ **سوال**۔ تعریف د منادیٰ د جامع نه شو ځکه افرادو لره او خارج شو ترې نه منادیٰ په دې ترکیب کښې چه یاجبال ' یا سماء ' یا ارض، ځکه چه دا منادیٰ نه بقلبه ده او نه بوجهه۔ **جواب**۔ بوجهه او بقلبه عام دے ' حقیقتاً وي که حکماً ۔ دلته کښې اګر که حقیقتاً نه ده ' لیکن حکماً خو ده، ځکه چه دے نازل شوے دے ' په منزله د هغه چاچه ' په هغه کښې صلاحیت د نداء وي۔

**سوال**۔ ستا دا تعریف د منادیٰ جامع نه شو خپلو افرادو لره او خارج شو ترے نه یاالله، ځکه چه دا منادیٰ بوجهه ده او نه بقلبه ده، ځکه چه الله تعالیٰ لره وجه او قلب نشته دے او دا نه حقیقتاً او نه حکماً ده۔ **جواب**۔ مراد په طلب د توجه سره مسئول الاجابة دے۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف د منادیٰ مانع او نه ګرځېدو د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې مندوب۔ ندبه په **لغت** کښې ژړا او ‌ګړېدل او په **اصطلاح** کښې مندوب هغه معنی ته وائي چه په هغه باندې ژړا کیږي او په هغه باندې واه داخل شوے وي، لو حکماً دے هم داخل شو په منادیٰ کښې، ځکه چه دے هم نازل دے ' په منزله د ' من له صلاحیت النداء ' باندې۔ **جواب**۔ مندوب نه دے داخل، ځکه چه د مندوب توجه نه وجهاً مقصود وي او نه قلباً ' بلکه په هغه باندې ' چه ' وا ' داخلیږي ' د پاره د اظهار د غم او د حزن وي او بل جواب دا دے چه که چرے دا منادیٰ وے، نو په ده به ' واه ' نه داخلېدلے، ځکه چه واه د حرف نداء نه نه دے۔

## درس نمبر ۱۴۰

**بحرف نائب مناب ادعو** | په دا سے حرف سره چه قائم وي ' په مقام د ادعو باندې۔

**سوال**۔ منادیٰ منصوب ده ' په وجه د حرف نداء سره، نو دا خو د فیما نحن فیه د قبیلے نه نه شو ځکه چه عامل د دے محذوف نه شو بلکه موجود شو۔ **جواب**۔ په دے کښې درے مذهبه دي، اول د سیبویه مذهب دے، دوئم د مبرد او دریم مذهب د ابوعلی فارسي۔ د سیبویه په نزد باندې فعل حذف دے او حرف نداء ' د هغه قائم مقام دے او عمل حرف کړے دے او د ابوعلی فارسي په نزد باندې عمل حرف نداء کړے دے او عامل محذوف نه دے او دا حرف نداء اسم فعل دے او اسم فعل عمل کوي ' فرق په مابین د مذهب د سیبویه او د مبرد کښې دا دے چه په نزد د سیبویه باندې عامل محذوف دے ' چه فعل دے او د مبرد په نزد باندې فعل محذوف دے او عامل حرف نداء دے او د ابوعلی په نزد باندې هم عامل محذوف نه دے او نه دلته فعل محذوف دے او په نزد د مصنف باندې مختار مذهب د سیبویه دے۔

**لفظاً او تقدیراً** | په حال د کون د دے منادیٰ کښې ' چه لفظاً وي که تقدیراً وي۔

**سوال**۔ نصب د لفظاً او تقدیراً به حال معنوي ' یا به منصوب وي ' بنابر مفعول مطلق د مطلوب نه یا د نائب نه او یا به حال وي ' د اقباله د ضمیر نه او په دے کښې یو هم نه دے صحیح،

هَرچِه دے اوّل' چه دا منعول مطلق واقع شی' دَ مطلوب نه ، لو منعول مطلق خو دِے ته والیٔ' چه فعل مشتمل وی' په هغه باندِ دَ قبیلے دَ اشتمال دَ کُل نه په جزء باندِ اَوُ دلته خو مطلوب په لفظاً یا تقدیراً باندِ نه دے مشتمل بلکه مشتمل دے' په طلباً باندِ اَوُ هَرچِه دے دَوِیم' چه دے منعول مطلق واقع شی' دَ نائبِ نه، لو دا هُوره دے صحیح، ځکه منعول مطلق دِے ته والیٔ' چه فعل مشتمل وی' په هغه باندِ' دَ قبیلے دَ اشتمال دَ کُل نه په جزء باندِ اَوُ دلته خو نائبُ مشتمل نهٔ دے' په لفظاً اَوُ تقدیراً باندِ' بلکه نائبُ مشتمل دے' په نیاباً باندِ اَوُ هَرچِه دے حال' لو حال خو هغه دے' چه حمل کیږی' په ذوالحال باندِ اَوُ دلته حمل نهٔ دے صحیح، ځکه چه لازمېږی حمل دَ صرف وصف په ذات باندِ اَوُ دا باطل دے۔ جواب. دا منعول مطلق واقع شوے دے' دَ مطلوب نه اَوُ کهٔ ته وائے چه منعول هغه ته والیٔ' چه مشتمل وی' فعل په هغه باندِ دَ قبیلے دَ اشتمال دَ کُل نه' په جزء باندِ اَوُ دا نهٔ دے مشتمل' په لفظاً اَوُ تقدیراً باندِ' لو مونږ وایُو' چه دا مفعول مطلق دے مجازاً اَوُ دا صفت واقع شوے دے' دَ پاره دَ منعول مطلق محذوفه' چه هغه طلباً دے اَوُ لفظاً اَوُ تقدیراً۔ دا بیا په تاویل دَ لفظیاً اَوُ تقدیریاً سره کړځېدلی دی' دَ پاره دَ دِے چه حمل دَ صرف وصف رانهٔ شی' یا په تاویل دَ ملفوظاً اَوُ مقدراً سره کړځېدلی دی اَوُ یا وایُو په جواب کښے چه دا منعول مطلق واقع شوے دے' دَ نائبُ نه اَوُ کهٔ ته وائے چه منعول مطلق خو هغے ته والیٔ چه فعل په هغے باندِ مشتمل وی' دَ قبیلے دَ اشتمال دَ کُل نه' په جزء باندِ اَوُ دلته کښے خو نائبُ مشتمل نه دے' په لفظاً اَوُ تقدیراً باندِ، لو نو که وایُو' چه دا منعول مطلق دے مجازاً، ځکه چه دا صفت واقع شوے دے' دَ پاره دَ مفعول مطلق محذوفه، چه هغه نیاباً دے' بیا لفظاً اَوُ تقدیراً په تاویل دَ لفظیاً اَوُ تقدیریاً سره کړځېدلی دی' دَ پاره دَ دِے چه حمل صحیح شی' یا دا مؤول دے' په تاویل دَ ملفوظاً اَوُ مقدراً سره، یا نیابت به مضاف کړو' لفظی اَوُ تقدیری ته۔ سوال. طلب خو یو امرِ معنوی دے' په هغه نسبت دے' په مابین دَ طالب اَوُ دَ مطلوب کښے ، لو دَ دِے تقسیم څنګه صحیح کیږی' لفظی اَوُ تقدیری ته؛ جواب. توصیف دَ طلب په لفظی اَوُ تقدیری سره دا صفت بحاله نهٔ دے' بلکه صفت متعلق دے' چه هغه له دَ طلب ده۔ سوال. توصیف دَ نیابت په لفظی اَوُ تقدیری سره نهٔ صحیح کیږی' ځکه چه نیابت خو نسبت دے، په مابین دَ نائبُ اَوُ دَ منوب کښے اَوُ نصب امرِ معنوی دے' لو تقسیم دَ دهٔ لفظی اَوُ معنوی ته نهٔ صحیح کیږی۔ جواب. توصیف دَ نیابت په لفظی اَوُ تقدیری سره دا صفت بحاله نه دے، بلکه صفت بحال متعلق دے، چه دا صفت دَ پاره دَ آلے دَ نیابت دی' بیا جواب دَ اصل سوال نه دا دے' چه دا حال واقع شوے دے دَ ضمیر دَ اقباله نه اَوُ کهٔ ته وائے' چه حمل نه صحیح کیږی' لو مونږ وایُو چه' دا مؤول دے' په تاویل دَ ملفوظاً اَوُ مقدراً سره۔ پس تقدیر به دا دے شی' چه هو المطلوب اقباله بحرف نائبُ مناب ادعو ملفوظاً او مقدراً۔ سوال. حال خو بیانوی هیئت دَ فاعل اَوُ یا دَ منعول اَوُ دَ اقباله ضمیر خو نهٔ فاعل دے اَوُ نهٔ منعول دے۔ جواب. دا بناء دے' په یو قانون باندِ هغه دا چه' کوم یو مضاف الیه قائمقام کړځېدے

شي لره صحيح دي واقع كيدل د حال د هغه - اوس مثال د هغې چه منادیٰ ملفوظه وي لكه ’يا زيد‘ ند منادیٰ مقدره مثال لكه ’الا يا اسجدوا‘ يعني ’الا يا قوم اسجدوا‘ ـ مثال د حرف نداء ملفوظ لكه ’يا داؤد انا جعلناك‘ او مثال د حرف نداء مقدره لكه ’يوسف اعرض عن هذا‘ اي يا يوسف اعرض عن هذا.

**وبني على ما يرفع به** | او مبني كولے به شي د امنادیٰ پس د دخول د حرف نداء نه په هغه حرف او حركة باندې چه مرفوع كولے شي په دغه حرف او حركة سره دا منادیٰ مخكښې د دخول د حرف نداء نه - هر كله چه مصنف نارغ شو د بيان د حقيقت د منادیٰ نه لو شروع يئے اوكړو په بيان د حكم د منادیٰ كښې - نو ته كړه دا خبره چه منادیٰ په څلور قسمه ده، ځكه چه دا منادیٰ به خالي نه وي يا به معرب وي يا به مبني وي مكه مبني وي، لو بيا به خالي نه وي يا به مبني وي په فتحه سره يا به مبني وي په ضمه باندې كه مبني وي په فتحه سره دا قسم اول د منادیٰ دے كه مبني وي په ضمه سره، لو دا قسم ثالث د منادیٰ شو او كه معرب وي، لو بيا به خالي نه وي يا به مجروره وي يا به منصوبه وي، كه مجروره وي، لو دا قسم ثاني د منادیٰ شو كه منصوب وي، لو دا قسم رابع د منادیٰ دے - **سوال** . ضمير په يبني كښې راجع دے منادیٰ ته او په يرفع كښې هم راجع دے منادیٰ ته، لو لازم به شي واحد هم معرب هم مبني[1] - **جواب** . په يبني كښې ضمير راجع دے منادیٰ ته او په يرفع كښې ضمير راجع دے اسم ته، ليكن دا جواب ضعيف دے ځكه چه دا مخالف دے د سياق د كلام نه[2] او بعض شارحين دا جواب كوي چه ضمير په يبني كښې راجع دے منادیٰ ته او يرفع مسند دے جار مجرور ته خو دا جواب هم ضعيف[3] دے - پس اولیٰ په جواب كښې دا دے چه په يبني كښې ضمير راجع دے منادیٰ ته او په يرفع كښې هم راجع دے منادیٰ ته، ليكن په يرفع كښې مخكښې د دخول د حرف نداء نه او په يبني كښې پس د دخول د حرف نداء نه.

## درس نمبر ۱۴

**ان كان مفرداً معرفةً** | **سوال** . بحث نو مونږ په منصوباتو كښې دے، لو ليكار دا ده چه هغه منادیٰ به يئے مقدم كړي وه، كوم چه منصوبه وي، حالانكه تا هغه منادیٰ مقدم كړو چه

---

[1] ځكه چه صيغه د يبني دال ده په بنائيت د منادیٰ باندې او صيغه د يرفع دال ده په اعرابيت د منادیٰ باندې - پس لازم شو شي واحد هم معرب هم مبني، او دا نه دے مگر اجتماع النقيضين وهو محال في كلام العرب ۱۲ (م - س) -

[2] لان السوق لبيان المنادیٰ ۱۲ (م - س) -

[3] ليكون المعنى يبنى المنادیٰ على الحركة او الحرف الذي يرفع به ويقع اعراب الرفع به ولا شك فيه الارجاع الضمير الى مطلق الاسم بعيد غير ملائم لسوق الكلام وفي هذا المقام لعتراضات مترددة كما ذكروا بعض الشارحين والاصح فيهما ما ذهب استاذي المحترم محمد ابراهيم فاني - (م - س) -

...مبنی دہ، پہ ضمہ باندے۔ جواب. دا دَ وجے دَ اِختصار نہ مصنفؒ ذکر کڑو، ځکہ چہ کلہ چہ منصوبات یئے مقدم کڑلے نو لازمیدہ تطویل بلاطائل اَو بلہ وجہ دا دہ، چہ مصنفؒ هغہ پہ مختصر طریقے سرہ ذکر کڑو، چہ ویُنصب ما سواهما۔ دلتہ اَکثرہ مراد پہ مفرد سرہ هغہ دے چہ، متابل وی دَ مضاف یا دَ شبہ مضاف (اَوَ دَ اضافت نہ مُراد اضافت لفظی دے نہ معنوی) ځکہ چہ مفرد پہ مقابلہ دَ مرکب کښے هم راځی، پہ مقابلہ دَ جُملے کښے هم راځی اَو پہ مقابلہ دَ تثنیہ اَو جمع کښے هم راځی اَو معرفہ عامہ دہ، چہ مخکښے دَ دخول دَ حرفِ نداء نہ وی کہ پس دَ دخول دَ حرفِ نداء نہ وی، نو چہ منادیٰ کلہ مفرد وی، مضاف یا شبہ مضاف نہ وی اَوَ معرفہ وی اَو نکرہ نہ وی، نو دا بہ مبنی وی، پہ ضمہ باندے۔ **سوال**. دا قسم مبنی ولے دے؟ اَو مبنی پہ ضمے سرہ ولے دے؟ **جواب**. دا قسم مبنی دے، دَ وجے دَ وقوع، دَ دے نہ پہ مقام دَ کاف اِسمی خطابی کښے اَو کاف اِسمی خطابی مشابہہ دے، دَ کاف حرف خطابی سرہ اَو کاف حرفی خو مبنی دے، نو دے هم مبنی اوګرځیدو اَو دے مبنی دے، پہ ضمہ باندے، ځکہ چہ کلہ چہ دے مبنی اوګرځی، پہ فتحے سرہ، نو التباس بہ یئے راتلو، دَ هغہ منادیٰ سرہ چہ پہ آخر کښے یئے الف راغلے وی اَو بیا هغہ الف حذف شوے وی اَو دَ هغہ پہ حرکت فتحہ اکتفاء کڑے شوی وی اَو کہ چیرتہ دا مبنی اوګرځی پہ کسرہ باندے، نو التباس بہ یئے راتلو، دَ هغہ منادیٰ سرہ چہ اضافت یئے راغلے وی، یاء دَ متکلم تہ اَو بیا دا یاء حذف شوے وی اَو اکتفاء دَ کسرہ راغلے وی، پہ حالت دَ یاء باندے۔ پس ضمہ متعین کڑے شوہ۔

**نحو یا زیدُ یا رجلُ و یا زیدان یا زیدون**

**سوال**. مثال خو راځی، دَ پارہ دَ وضاحت دَ ممثل لہ دَ وضاحت دَ پارہ خو یو مثال کافی دے۔ **جواب**. یا زیدُ مثال دَ هغہ منادیٰ دے، چہ معرفہ وی، مخکښے دَ دخول دَ حرف نداء نہ اَو یا رجلُ دا مثال دَ هغہ منادیٰ دے، چہ معرفہ دے۔ پس دَ دخول دَ حرف نداء نہ اَو دا مثالونہ دَ هغہ دی چہ مبنی وی پہ ضمہ باندے، پہ حرکت سرہ، اَو یا زیدان یا زیدون دا مثالونہ دَ هغہ دی، چہ مبنی وی پہ حرف سرہ۔ **سوال**. دلتہ خو اجتماع دَ معرفتین راغلی دہ، چہ یو یاء اَو بل زید دے۔ **جواب**. اجتماع دَ معرفتین جائز دہ، لیکن اجتماع دَ دوو دَ تعریف ناجائز دہ۔

**ویخفض بلام الاستغاثة**

اَو مجرور کولے شی، دا منادیٰ پہ وخت دَ دخول دَ لام دَ استغاثہ کښے۔ هر کلہ چہ فارغ شو مصنفؒ دَ بیان دَ بنا منادیٰ نہ، نو شروع یئے اوکڑو، پہ بیان دَ هغہ حُکم کښے چہ پہ هغے باندے منادیٰ معربہ ګرځی۔ دلتہ کښے دَ څو خیزونو پیژندل ضروری دی۔ ۱. استغاثہ. ۲. مستغاث. ۳. مستغیث. ۴. مستغاث لہ. استغاثہ، ندا کولو تہ وائی، دَ پارہ دَ مدد، مستغیث، ندا کوونکی تہ وائی، مستغاث، چہ دَ چا نہ دَ پارہ اِمداد طلب کیږی اَو مستغاث لہ، چہ دَ چا نہ امداد طلب شی، لکہ پہ دے قول کښے یا لزیدٍ لعمرٍو، دلتہ زید مستغاث دے اَو عمرو مستغاث لہ دے۔

سوال. یخفض صفت دَ یا دَ خانض ده، لو نسبت دَ دیے منادیٰ ته نهٔ ده صحیح. جواب. یخفض په معنیٰ دَ یجر سره دے. سوال. لام ئے ولے خاص کړو دَ پاره دَ استغاثے په مابین دَ نورو حروفو کښے.
جواب. لام استغاثه په اصلیت کښے لام جاره دے اؤ لام جاره دَ پاره دَ تخصیص وی مستغاث هم خاص کړے شوے وی، په خپلو اشالو کښے، دَ پاره دَ دعا، نو دوئ په مابین کښے مناسبت راغلو. سوال. لام استغاثه خو لام جاره دے اؤ لام جاره چه کله داخل شی په اسم ظاهر باندِ، نو هغه خو مکسور وی اؤ خو مفتوح دے.
جواب. دا لام مفتوح دے، دَ پاره دَ دیے چه التباس رانهٔ شی، دَ مستغاث ما مستغاث له سره، په هغه مخ کښے چه دَ مستغاث له اقامت راشی، په ځائے دَ مستغاث باندِ. سوال. التباس خو رفع کیږی، په عکس سره هم، نو عکس و ولے او نکړو؟ جواب. مستغاث واقع کیږی، په ځائے دَ کاف خطابی باندِ اؤ کله چه لام جاره پورځائے شی، دَ کافِ حرفی سره، نو هغه منصوب وی.

**نحو یالزید** دلته لام دَ پاره دَ استغاثے دے اؤ زیدٌ ئے مجرور کړے دے، ځکه چه دا په اصل کښے لام جاره دے. سوال. ولے معرب کړے شو؟ دا قسم دَ منادیٰ...... سره دَ تحقق دَ علت دَ بنائیت نه په ده کښے چه دے واقع دے، په ځائے دَ کافِ اسمی خطابی باندِ اؤ کافِ اسمی خطابی مشابهه ده، دَ کافِ حرفی سره اؤ هغه خو مبنی دے، نو یکار دا ده چه دا هم مبنی وے. جواب. لام استغاثه داخو لام جاره دے اؤ دا خواص معظمه مکبره دَ اسم نه دے، نو قوی شو، په دیے سره جهة دَ اسمیت او ضعیف شو جهت دَ مشابهت دَ حرف سره لکه دے مجرور او کړځیدو، ځکه چه لام استغاثه لام جاره دے لو جا عمل دَ جو کړی. سوال. چه څنګه منادیٰ مجرور کیږی، په لام دَ استغاثے سره، نو دغه شان مجرور کیږی، په لام دَ تهدید سره اؤ په لام دَ تعجب سره، نو هغه ئے ولے ذکر نه کړل؟ جواب. دا دواړه لامونه داخل دی، په لام دَ استغاثے کښے مثال دَ لام تهدید، لکه یالزید لاقتلنک اؤ مثال دَ لام دَ تعجب لکه یاللماء یا ماشاء چه یالدواهی، ځکه چه مهدد دَ طلب دَ استغاثے کوی، دَ مهدد نه دَ پاره دَ حاضریدلو اؤ دَ خلاصیدلو لپاره دَ خصومة نه، چه راشه چه زه دیے قتل کړم، چه دَ تکلیف دَ خصومت نه خلاص شم، اؤ دغه شان متعجب طلب دَ استغاثے کوی، دَ متعجب منه نه دَ پاره دَ حاضریدلو اؤ دَ خلاصیدلو دَ حیرانتیا نه اؤ دَ تعجب دَ پاره دویم جواب دا دے، چه منادیٰ په مثل دَ دیے قول کښے چه یاللماء اؤ یاللدواهی هغه ماء اؤ دواهی نه دی، بلکه منادیٰ دلته محذوفه ده، چه هغه قوم دے، بیا منادیٰ حذف شو اؤ اقامت دَ مستغاث له راغے، په مقام دَ منادیٰ باندِ، نو په دیے جواب باندِ. سوال وارد یږی چه دلته کښے کله حذف دَ منادیٰ راغلو اؤ اقامت دَ مستغاث له راغے، په ځائے دَ منادیٰ باندِ، نو یکار وه چه دا لام دِ مکسور وے اؤ هر کله چه دا مفتوح وو، نو دیے نه معلومه شوه چه اقامت دَ مستغاث له په ځائے دَ منادیٰ نهٔ دے راغلے. جواب. چه هر کله منادیٰ محذوفه اؤ نسیاً منسیاً او کرځیده لکه اقامت دَ مستغاث له په ځائے دَ مستغاث راغے، نو دغه کړے شو،

دهٔ لره حکم د منادیٰ کلی طور سره۔

**ولیفتح لالحاق الفها ولا لام فیه** یعنی دا منادیٰ به مبنی وی په فتحه باندې، چه کله دې سره الف د استغاثه ملحق شي او چه لام د استغاثه نهٔ وی په کښې، ځکه چه الف دا تقاضا کوی، چه زمانه دِ فتحه وی او لام دا تقاضا کوی، چه دا مدخول به مجرور وی او په مابین د دوئ کښې منافات ده او بل لازمیږی، په دغه صورت کښې اجتماع د مؤثرین نقیضین۔

**نحو یا زیداه** سوال. ولې مبنی کړے شو د قسم د منادیٰ؟ ځکه چه اصل په اسماء کښې اعراب دے او بیا مبنی په فتحه سره ولې شو؟ جواب. دا قسم مبنی کړے شو ځکه چه دے واقع دے په ځائے د کافِ اِسمی خطابی باندې او کافِ اِسمی خطابی مشابهه دے د کاف حرفی خطابی سره او هغه مبنی دے، نو دے هم مبنی اوګرځیدو او مبنی په فتحه په دې وجه اوګرځیدو، ځکه چه په آخر د دې کښې الف دے او الف تقاضا د فتحه د ماقبل کوی۔

**وینصب ما سواهما** او د دې دواړو قسمونو نه علاوه چه هغه منادیٰ مفرد معرفه او منادیٰ مستغاث ده۔ برابره خبره ده، چه هغه مستغاث په لام سره او که په الف سره وی، دا به منصوب وی (او یا دا معنیٰ "او منصوب کولے به شی، هغه منادیٰ چه بیسوا وی، د منادیٰ مفرد دے، معرفه نه او مستغاث نه. برابره خبره ده چه لفظاً وی او که تقدیراً) په شرط د دې سره چه دی معرب مخکښې د دخول د حرف ندا نه۔ سوال. مخکښې خو درے اقسام ذکر کړی شوی دی، اول منادیٰ مفرد معرفه، دوئمه منادیٰ په لام د استغاثه سره او دریمه په الف د استغاثه سره او دا ضمیر د تثنیه راجع کړے دے، چه هما دے نو مطابقت را نغے، په مابین د راجع او د مرجع کښې۔ جواب. ضمیر دلته تثنیه ته راجع دے، چه یو منادیٰ مفرد معرفه ده او بله منادیٰ مستغاثه ده مطلقاً۔ برابره خبره ده چه په الف سره وی او که په لام سره وی۔

سوال. ستا دا قاعده منقوضه شوه، په یا فتی القوم سره، ځکه چه دا ما سوا د قسمین مذکورین ده او منصوب نهٔ ده۔ جواب. نصب عام دے، لفظاً وی که تقدیراً، دلته اګرکه نصب لفظاً نشته، خو تقدیراً دے۔

سوال. دا قاعده دِ منقوضه شوه، په یا خمسة عشر سره، ځکه چه دا ما سوا د قسمین مذکورین نه ده او بیا هُم منصوبه نهٔ ده نهٔ لفظاً نهٔ تقدیراً۔ جواب. دا حکم په هغه منادیٰ کښې دے، چه معرب وی مخکښې د دخول د حرف نداء نه او دا خو معرب نه ده، مخکښې د دخول د حرفِ ندا نه۔ زموږ دا خبره چه ما سوا د منادیٰ مفرد معرفه نه څلور قسمونه دی، اول هغه ده چه مضاف وی، دوئم هغه چه شبه مضاف وی، دریم هغه چه نکره وی، څلورم هغه چه نهٔ مضاف او نهٔ شبه مضاف وی او نهٔ معرفه وی۔

## درس نمبر ١٤٢

**نحو یا عبد الله یا طالعاً جبلاً ویا رجلاً لغیر معین** مثال د منادیٰ مضاف لکه "یا عبد الله"

آؤ مثال د شبه مضاف لکه "يا طالعاً جبلاً" . شبه مضاف هغه ته وائي چه د يو اسم سره بل اسم ملحق شي او د اول اسم معنىٰ بغير د الحاق د بل اسم نه نه پوره کيږي، لکه څنګه د مضاف معنىٰ بغير د مضاف اليه نه نه تکميږي، بيا بيا بيا دا خبره ده چه دا دوېم اسم معمول د پاره د اول وي او که نه وي . مثال د هغې چه دا دوېم معمول نه وي، د پاره د اول لکه خمسة عشر، مثال د هغې چه دا دوېم معمول وي، د پاره د اول، لکه طالعاً جبلاً . دلته طالعاً شبه مضاف دے چه د ده معنىٰ بغير د جبلاً نه نه پوره کيږي او دا جبلاً معمول د پاره د طالعاً دے . سوال . صيغه د اسم فاعل خو هله عمل کوي چه اعتماد يې کړے وي په اشياء ستة باندې، چه هغه مخکښې تېرې شوي دي او دلته کښې طالعاً په هغه اشياء ستة کښې په هيڅ يو هم اعتماد نه دے کړے او دا هم اسم فاعل په معنىٰ د حال او استقبال وي لو دلته خو په معنىٰ د حال او استقبال نه دے . جواب دا کلام بنا دے په مذهب د هغه چا باندې چه هغوی وائي چه اسم فاعل بغير د اعتماد نه هم عمل کولے شي، او دوېم جواب دا دے چه دا بنا دے په مذهب د هغه چا باندې چه اسم فاعل کله اعتماد کړے وي په حرف نداء باندې، نو بيا به هم عمل کولے شي . سوال . دا قسم د منادىٰ ولے معرب کړے شو؟ پکار دا وه چه دا مبني وے، ځکه چه په دے کښې علت د بناء موجود دے چه هغه وقوع ده په ځائے د کاف اسمي خطابي باندې چه هغه مشابهة دے، د کاف حرفي خطابي سره او هغه مبني دے، پکار دا وه چه دا قسم د منادىٰ هم مبني کړے شي . جواب . معرب کړے شو دا قسم د منادىٰ، ځکه چه مضاف او شبه مضاف دا د خواص معظمه مکبر و د اسم نه دي . پس قوي شو په دے کښې جهت د اسميت او ضعيف او کمزورے شو جهت د مشابهت . سوال . دا قسم منادىٰ ولے منصوب دے؟ جواب . دا منصوب ده په دے وجه چه دا منادىٰ په حقيقت کښې مفعول به ده او مفعول به منصوب وي .

**ويا رجلا لغير معين**

دا دريم مثال د نکرے دے، دلته د الغير معين قيد د پاره د نکرے نه دے، بلکه د پاره د توضيح دے، په حال د کون د دے کښې چه دا مقوله وي د پاره د غير معين نو دا قسم د منادىٰ معرب ده، ځکه چه دا په ځائے د کاف خطابي باندې نه ده واقع، ځکه چه نکره په ځائے د معرفه نه شي راتلے او منصوبه ده، ځکه چه دا په اصل کښې مفعول به ده او مفعول به منصوب وي او مثال د رابع چه نه مفرده وي او نه معرفه وي، لکه يا حسناً وجهه ظريفاً . سوال . مصنف د دے مثالونو ذکر کول او قسمونه څلور دي، خلوم مثال ئې ولے ذکر نه کړو؟ جواب . مصنف چه هر کله د انتفاء د هر واحد د قيدينو وضاحت اوکړو، نو په دے سره مثال معلوم شو په خپله د هغې چه په هغه کښې انتفاء د قيدينو راځي، او يا دوېم جواب دا دے چه قسم ثالث مثال د پاره د رابع هم جوړيدے شي، چه يا طالعاً جبلاً سره په معين اراده کړے شي، نو دا مثال شو د قسم ثالث او چه غير معين مراد کړے شي، نو دا مثال شو د پاره د قسم رابع .

# درس نمبر ۱۴۳

**وتوابع المنادى المبنى المفردة من التاكيد** توابع د منادئ، هغه منادئ چه هغه مبنی وی، په ضمه باندې هغه توابع چه هغه مفرد وی، مفرد عام دے، حقیقتاً وی که حکماً وی، هرکله چه فارغ شو مصنف رحمه الله د بحث د منادئ نه، نو شروع یے اوکړه په بحث د توابع کښې پس د دے ویل چه 'والتوابع الخ'۔ **سوال.** د توابع د پاره خو مستقل بحث موجود دے، نو دا یے دلته ولے ذکر کړل؟ اِیکار دا دے چه دلته کښې په بحث د توابع کښې یے توابع د منادئ ذکر کړی وے؟

**جواب.** دا توابع خاص دی او هغه عام دی، دا خاص په دے وجه دی چه په دے کښې جواز د امرونو (یعنی جواز د وجهینو) دے چه هغه حمل دے په لفظ باندې او حمل دے په محل باندې، په خلاف د هغه نورو توابعو نه چه په هغې کښې صرف یوه وجه جاری ده، په المبنی کښې الف لام عهدی دی او معهود په دے سره ضمه ده، نو معنی به دا شی، چه توابع د منادئ هسے منادئ چه مبنی وی، په ضمه باندې۔ هرکله چه منادئ یے مقید کړو په قید د مبنی سره، نو په دے سره احتراز راغلو، د هغه منادئ نه چه هغه معرب وی، ځکه چه توابع د معرب توابع د لفظ دی، نو په دے کښې جواز د وجهین نشته او په ضمے سره احتراز راغے، د هغې منادئ نه، چه مبنی وی، په فتحه باندې، ځکه چه په هغې کښې تعین د نصب دے، لفظاً او محلاً او دغه شان احتراز راغے، د هغه منادئ نه، چه مجروره وی، په لام د استغاثے سره، ځکه چه هغه معربه ده او په هغې کښې جواز د وجهینو نشته دے او مفرد عام دے، حقیقی وی که حکمی وی، مفرد حقیقی هغه دے، چه مضاف نه وی او مونږ تعمیم اوکړو په مفرد کښې حقیقی او حکمی ته، د پاره د دے چه اعتراض وارد نه شی، په توابع مضافه باندې، په اضافت لفظی سره او په شبهه مضاف سره، ځکه چه دا دواړه په حکم د مفرد کښې دی، اگر که حقیقتاً مفرد نه دی۔

**من التاكيد** یعنی بعض د توابع د منادئ نه تاکید دے، دلته دا من تبعیضیه دے یا د پاره د بیان دے۔ **سوال.** دا قاعده ستا منتقضه شوه (یعنی د جواز د وجهین) په دے قول سره چه 'یا زید یا زید'، ځکه چه دلته تاکید دے او جواز د وجهین نشته، بلکه تعین د ضمے دے۔

**جواب.** مراد په تاکید سره تاکید معنوی دے، نه لفظی او دا تاکید لفظی دے۔ **سوال.** چه هرکله مراد په تاکید سره تاکید معنوی دے، نو ولے تا مقید نه کړو په معنوی سره۔ **جواب.** په تاکید کښې دوه مذهبه دی، یو مذهب د سیبویه دے او بل مذهب د نورو نحاتو۔ د سیبویه په نزد باندې جواز د وجهین په مطلق تاکید کښې دے او د نورو په نزد باندې جواز د وجهین په تاکید معنوی کښے دے او د مصنف رحمه الله په نزد باندې مذهب د سیبویه مختار دے۔

**من التاكيد والصفة وعطف البيان والمعطوف بحرف الممتنع دخول يا عليه**

يعنی بعض د توابع د منادیٰ نه تاکید دے، صفت دے، عطف بیان دے او معطوف په داسے حرف سره چه ممتنع وی دخول د یا په هغه باندې (چه هغه معرّف باللام دے) دخول د یا په هغه باندې په دے وجه باندې ممتنع وی چه اجتماع راځی د دوو شیانو د تعریف) - **سوال**. توابع د منادیٰ مفرد معرفه په پنځه قسمه دی، نو مصنف ولے بعض ذکر کړل او بعض یے ترک کړل او بعض یے مطلق ذکر کړل او بعض مقید - **جواب**. دا حکم جاری کیږی په بعضو کښې او په بعض کښې نه جاری کیږی او په بعض کښې مطلقاً جاری کیږی او په بعض کښې تقییداً جاری کیږی په دے وجه یے په دے طریقه سره ذکر کړل -

**ترفع على لفظه**

مرفوع کولے به شی، دا توابع د منادیٰ د وجه د حمل نه په لفظ باندې (یعنی په لفظ د منادیٰ باندې) - **سوال**. چه د ترفع د پاره خو صله علیٰ نه راځی، بلکه باء راځی نو تا ولے په صله کښې علیٰ راوړلو - **جواب**. علیٰ د ترفع د پاره صله نه ده، بلکه دا صله د پاره د محذوف ده چه حملاً دے، یعنی ترفع حملا على لفظه - لفظاً چونکه دا منادیٰ مبنی ده په ضمه باندې نو په تابع د دے باندې به هم ضموی (یعنی مرفوع به وی او دا منادیٰ مبنی په دے وجه ده په دے باندې یا داخل شوی ده اوس دا رفع بعینه ضمه ده او رفع یے صفت په دے وجه اووے چه تابع د منادیٰ خو معرب دے او په معرب باندې رفع راځی (او ضمه د پاره د مبنی راځی) او معرب په دے وجه دے چه یا په دے تابع باندې بالذات نه ده داخله - **سوال**. تابع د مبنی، تابع د محل وی - پس تا تابع د مبنی تابع د لفظ ولے کړو؟ **جواب**. دا قاعده جاری کیږی په هغه ځائے کښې چه چرته بنا اصل وی او دلته خو بنا د منادیٰ عارضی ده، چه هر کله ترے نه یا لرے کړے شی، نو معربه ده -

## درس نمبر ۱۴۴

**وتنصب على محله**

او توابع د منادیٰ هغه منادیٰ چه هغه مبنی وی، په ضمه باندې او هغه توابع چه مفرد وی او دا به منصوب کولے شی، د وجه د حمل نه په محل د منادیٰ باندې ځکه چه محل د دے نصب دے، بنا بر مفعولیة او مفعول خو منصوب وی، نو دا به هم منصوب وی - پس په دے کښې جواز د وجهین راغے، یو رفع او بل نصب -

**مثل يا زيدُ العاقلُ والعاقلَ**

دلته زید منادیٰ مفرد معرفه ده او مبنی ده په ضمه باندې او العاقل ورله صفت دے، که چرته دا حمل شی په لفظ د زید باندې نو مرفوع به وی، ځکه چه په لفظ د زید باندې ضمه ده او که چرے دا العاقل حمل شی په محل د زید باندې نو منصوب به وی ځکه چه محل د زید دا نصب دے، ځکه چه دے مفعول به دے او مفعول به دا منصوب وی.

مثال دَ عطف بیان لکه یا غلام بشرٌ بشراً اَو مثال دَ تاکید لکه یا تمیم اجمعون اجمعین اَو مثال دَ معطوف بالحرف چه ممتنع وی دخول دَ یا په هغه باندې لکه یا زید والحارث الحارث. دلته په دے معطوف باندې دخول دَ یا ځکه ممتنع دے چه لازمیږی اجتماع دَ آلتین دَ تعریف اَو دا روا نه دے. **سوال**. مصنفؒ ولے مثال دَ صفت ذکر کړو اَو دَ نورو ئے ذکر نه کړو لکه دَ تاکید دَ عطف بیان اَو دَ معطوف؟ **جواب**. مصنفؒ مثال دَ صفت ذکر کړو دا دَ وجه دَ شهرت نه، خو په دے جواب **سوال** واردیږی چه دَ شهرت دَ وجه نه خو لټول ګرم نه ذکر. **جواب**. دَ اصل اعتراض نه دا دے چه مصنفؒ مثال دَ صفت ذکر کړو، دا پاره دَ دفع دَ توهم دَ دا اَم ښکه چه منادٰی مفرده معرفه واخو واقع شوی ده، په ځائے دَ کاف خطاب اسمی باندې اَو کاف اسمی خو ضمیر دے اَو ضمیر موصوف نه واقع کیږی، نو مصنفؒ مثال دَ صفت راوړلو چه دفع دَ توهم دَ متوهم اَوشی چه منادٰی موصوف واقع کیږی.

## والخلیل فی المعطوف یختار الرفع

هرکله چه مصنفؒ بیان کړو تجوانه دَ وجهین په توابع دَ منادٰی مبنی په ضمه کښے نو شروع ئے اوکړو په بیان دَ اختلاف کښے چه واقع دے په دواړو وجهین کښے. پس دے دلیل چه والخلیل الخ خلیل ابن احمد نحوی دا استاذ دَ سیبویه دے لوئے دے په معطوف منکوره کښے چه معطوف وی په حرف سره اَو ممتنع وی دخول دَ یا په هغه باندې مختاره کوی رفع لره سره دَ جواز دَ نصب نه، ځکه چه دا دَ هغه په نزد باندې منادٰی مستقل ده په حقیقت کښے اَو منادٰی مفرده معرفه مبنی وی په ضمه باندې اَو دلته ده لره رفع ورکړے شوه، ځکه چه ممتنع دے دخول دَ یا په ده باندې یعنی دا منادٰی مباشر نه ده په حرف نداء سره.

## وَابُوعمرو النصب

اَو په دے صورت کښے ابوعمرو نحوی مختار کوی نصب لره سره دَ جواز دَ رفع نه، ځکه چه دَ هغه په نزد باندې دا منادٰی مستقله نه ده په حقیقت کښے ځکه چه ممتنع دے دخول دَ یا په دے باندې، نو دا به شی تابع دَ محل اَو محل دَ منادٰی مبنی خو نصب دے، ځکه چه دا په حقیقت کښے مفعول به ده، نو دا به هم منصوب وی.

## والبوالعباس ان کان کالحسن فکالخلیل

اَبُوالعباس دا کنیه ده دَ مبرد نحوی. پس دا محاکمه کړی ده په مابین دَ خلیل کښے اَو په مابین دَ ابوعمرو کښے ابوالعباس مبتداء دے اَو خبر ئے محذوف دے چه حاکم بینهما یعنی ابوالعباس فیصله په مابین دَ دوئی کښے کړی ده. دَ دے والی که چرته وی دا معطوف مذکوره په شان دَ حسن علم، چه الف لام ورباندې داخل وی اَو جائز وی انتزاع دَ الف لام دَ دغه علم نه په دغه صورت کښے، قول دَ ده په شان دَ قول دَ خلیل دے، په اختیاره رفع کښے سره جواز دَ نصب نه، فکالخلیل یعنی فقوله کقول الخلیل، ځکه چه په دے کښے امکان دَ دے خبرے دے، چه اوګرځی دا منادٰی مستقل.

**والا فكالى عمرو** آؤ كه چرته وي دا معطوف په شان د هغه علَم چه الف لام ورباندې داخل وي او جائز نه وي انتزاع د الف لام د دې نه، نو په دغه صورت کښې قول د دې په شان د قول د الحسن شو، په اختيار د نصب کښې شو د جواز د رفع نه، ځکه چه دا منادي مستقل نه دے۔

**والمضافة تنصب** او كه توابع د منادي مبني چه مضاف وي، په اضافت معنوي سره دا به منصوبيږي، ځکه چه توابع مضافه په هغه وخت کښې چه واقع شي عين منادي، نو منصوب کړې شي۔ پس کله واقع شي توابع د بدله د منادي، نو منصوب به وي په طريقې اولی سره۔ دلته کښې ذا المضافة مطلق دے په المفردة باندې۔ مثال د صفت مضافة، لکه يا زيدُ ذا الجمال مثال د تاکيد مضافه، لکه يا تيمُ كلَّهم۔ مثال د عطف بيان مضافه، يا زيدٌ اخا عمرو۔

## درس نمبر ۱۴۵

**والبدل والمعطوف غير ما ذكر حكمه كحكم المستقل مطلقاً** او حکم د بدل چه واقع شوے وي د منادي نه۔ برابره خبره ده چه مبني وي که معرب او حکم د معطوف په منادي باندې په حال د کون د معطوف کښې چه غير وي د ما ذکر نه، چه نشي ممتنع دخول د يا په هغې باندې، په دے شان چه دا نه وي ذواللام، نو حکم د هر واحد د دے دواړو هغه حکم د منادي مستقل دے۔ برابره خبره ده که مفرد وي که مضاف وي، شبهه مضاف که معرفه وي که نکره وي، ځکه چه بدل په حکم د تکرير د عامل کښې دے او په معطوف کښې حرف عطف دا قائم مقام د حرف ندا دے۔

سوال: دلته خو دوه څيزونه ذکر شوي دي چه يو بدل دے او بل معطوف دے او تاسو ضمير مفرد راجع کړے دے په حكمه کښې لېکاره دا چه تاسو ويلې وے حكمهما۔ جواب: افراد د ضمير په اعتبار د کل واحد سره دے، مثال د بدل مضاف، لکه يا زيدُ اباعبدُ الله او مثال د بدل شبهه مضاف، لکه يا زيدُ طالعاً جبلاً، مثال د بدل معرفه، لکه يا زيدُ عمرو، او مثال د بدل نکره، لکه يا زيدُ رجلاً صالحاً، او په دغه شان مثالونه د معطوف دي۔ على هذا القياس۔ سوال: تاسو وئيلي دي چه منادي مفرده معرفه به مبني وي په ضمه باندې، نو دا قاعده ستاسو منتقض شوه په يا زيدُ بن عمرو، ځکه چه دا منادي مفرده معرفه ده او سره د دے نه په دے کښې اختيار د فتحې دے، نو مصنف جواب اوکړو په دے سره چه:-

**الموصوف بابن وابنة مضافاً الى علم آخر يختار فتحه** او که هغه علم چه منادي واقع شي، هغه علم چه موصوف وي په لفظ د ابن لغيره تا ده، يا موصوف وي په لفظ د ابنة سره د تاء تانيث، چه مضاف وي دا لفظ د ابن يا ابنة بل علم ته، په دے کښې اختيار د فتحې دے ځکه چه دا قسم منادي كثير الاستعمال دے او کثرت استعمال تقاضا د خفت او د تخفيف کوي او فتحه اخف الحركات دے۔

**واذا نودي معرّف باللام** په هغه وخت کښې چه اراده اوکړے شي د ندا د معرف باللام۔

په دے عبارت سره مصنفؒ دفع د اعتراض کوی۔ **سوال** وارد یږی چه دخول د حرفِ نداء ممتنع دے په معرف باللام باندِ، حکم چه لازمیږی اجتماع د آلتینُ د تعریف، نو دا قاعده ستا منقوضه شوله په یاأیّها الرّجل ویاهذا الرّجل نو ځکه مصنف **جواب** اوکړو چه "واذا" نو دی معرف باللام چه هغه مخت کښې چه اراده اوکړے شی د نداء د معرف باللام۔

**قیل یا ایها الرجل یا هذا الرجل یا ایهذا الرجل**

په توسط د ایها یا هذا یا ایهذا سره۔ پس خلاصه د جواب داده چه دخول د حرفِ نداء په معرف باللام باندِ بالذات منع دے نه بالواسطه او دلته کښې خو واسطه موجود ده په مابین د حرفِ نداء او د معرف باللام کښې۔

# درس نمبر ۱۴۶

**والتزموا رفع الرجل**

او نحاۃ التزام د رفع د الرجل کړے دے په یا ایها الرجل کښې په دے عبارت سره مصنفؒ دفع د سوال مقدر کوی، خلاصه د **سوال** داده چه ای خو منادیٰ مفرده معرفه ده او منادیٰ مفرده معرفه خو مبنی وی په ضمه باندِ او دلته کښې الرجل ددے تابع دے او په تابع د منادیٰ مفرده معرفه کښې جواز د وجهین دے، نو بیا داده چه په الرجل کښې دواړه وجهین راشی او سره دے نه په دے کښې نحاۃ التزام کړے دے، د رفع د الرجل، نو مصنفؒ **جواب** اوکړو په دے عبارت سره چه "والتزموا رفع الرّجل"۔

**لانه المقصود بالنداء**

ځکه چه دا رجل مقصود بالنداء دے په "یا ایّها الرجل" کښې او ایها خو د پاره د توسط راوړے شوے دے ځکه دخول د حرفِ نداء په معرف باللام باندِ بالذات ممتنع دے۔

**وتوابعه**

او نحاۃ التزام د رفع کړے په توابع د الرّجل کښې، په دے عبارت سره هم مصنفؒ دفع د **سوال** مقدر کوی، هغه دا چه هرکله الرجل مقصود بالنداء اوګرځیدو نو دا خو منادیٰ مفرده معرفه اوګرځیده او په تابع د منادیٰ مفرده کښې جواز د وجهین دے، نو پکار داده چه په تابع د الرجل کښې هم جواز د وجهین وی او امر داسې نه دے، ځکه چه دلته التزام د رفع دے، نو مصنفؒ **جواب** اوکړو چه "وتوابعه"، چه په توابع د الرّجل کښې هم التزام د رفع دے۔

**لانها توابع معرب**

ځکه چه دا توابع، توابع د معرب دی او توابع د معرب توابع د لفظ وی۔

**وقالوا یا الله خاصة**

په دے عبارت سره مصنفؒ دفع دا سوال کوی، **سوال** واردیږی چه تاسو خو وائیی چه حرفِ نداء په معرف باللام باندِ بالذات نه داخلیږی، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په یا الله باندِ، چه یا حرف نداء په معرف باللام باندِ بالذات داخل دے۔ پس مصنفؒ **جواب** اوکړو په دے عبارت سره چه "وقالوا یا الله خاصة"، یعنی دا خاص دے په

اَللّٰهُ پېژندے، لکه چه بعض نور خصوصیات هُم دی، په لفظ دَ اَللّٰه کښې، چه حرفِ نِداء ورباندِ داخلیږی بالذات، په بدل دَ حرفِ نِداء کښې په آخر دَ لفظ دَ اَللّٰه کښې میم راځی، لکه "اَللّٰهُمَّ"، دا په بل اِسم کښې نه راځی، په حالتَ دَ "یا زید زیدَمْ" نهٔ شی وئیلے، چه حرفِ جرّ په باندِ داخل شی، اَوْ بیا ترې حذف شی، نو بیا یې هُم اَثَر باقی وی، لکه "فواللّٰهِ" نو چه کله ترې نه حذف شی، نو هُم اَثَر یې باقی وی، چه هغه جر دے، لکه "فَاللّٰهِ" بل خصوصیت دا دے، چه په دے کښې دا الف قطعی ګرځیدلے دے، په درج کښې نه ساقطیږی اَوْ پنځم خصوصیت دا دے، چه نزد دَ سیبویه دا موصوف نهٔ واقع کیږی اَوْ چه څرنګه کښې موصوف واقع شوے ده، نو سیبویه وائی، چه دا بدل واقع دے اَوْ یا چه دخول دَ حرفِ نِداء په هغه الف لام باندِ ممتنع دے بالذات، چه کوم الف لام عوضی نهٔ وی اَوْ دلته خو الف لام لازمًا عوضی نهٔ دی، بیا به دِے سوال وارد یږی، چه "نیا الغلامان" کښې خو الف لام لازم عوضی نهٔ دی، نو په دِے باندِ ولے الف لام داخل دی، نو جواب دا دے، چه دا شاذ دے۔

**وَلَكَ فِیْ مِثْلِ یَا تَیْمُ تَیْمَ عَدِیٍّ الضَّمُّ وَالنَّصْبُ** | اَوْ روا دے، تا دَ پاره په مثل دَ یا تیم تیم عدی کښې دا دواړه حرکتونه چه ضمه دهٔ اَوْ نصب دے، په دِے عبارت سره مصنفؒ دفع دَ سوال مقدر کوی، هغه دا چه په منادیٰ مضاف کښې خو تعین دَ نصب

دے اَوْ دلته ضمه اَوْ نصب دواړه دی اَوْ یا دا چه ته خو وئیلی، چه منادیٰ مفرد معرفه به مبنی وی په ضمه باندِ، نو ستا دا قاعده منقوضه شوه په دِے ترکیب باندِ چه "یا تیم تیم عدی"، ځکه چه دلته ضمه اَوْ نصب دواړه راغلی دی، نو جواب اوکړو، چه "ولك فی مثل یا تیم تیم عدی الضم والنصب" مراد په دِے ترکیب سره هغه ترکیب دے، چه منادیٰ په کښې مکرر وی اَوْ ثانی اِسم دِ یلی وی مجرور ته، په اضافت سره، ضمه په کښې ځکه جائز ده، چه دا منادیٰ مفرد معرفه ده اَوْ منادیٰ مفرد معرفه مبنی وی په ضمه باندِ اَوْ نصب په دِے وجه باندِ چه تیمَ اَوّل مضاف دے عدی مذکور ته اَوْ ثانی تیم دا تاکید دے دَ پاره دَ اَوّل، چه فصل راغلے دے په مابین دَ مضاف اَوْ مضاف الیه کښې، لکه دا مذهب دَ سیبویه دے، یا دا چه تیمَ اَوّل مضاف دے عدی مقدر ته، په قرینه دَ مذکور سره، لکه چه دا مذهب دَ مبرد دے۔ زده کړه دا چه، تفصیل په دِے مقام کښې دا دے، چه منادیٰ تکرار شوے مکرر وی اَوْ مضاف وی یو بل اِسم ته، نو جائز دے په دِے ضمه اَوْ نصب په اَوّل کښې سره دَ نصب دَ ثانی نه۔ هرچه دهٔ ضمه دَ اَوّل، نو دا خو په دِے وجه باندِ چه منادیٰ مفرد معرفه مبنی وی په ضمه باندِ اَوْ نصب دَ ثانی په دِے وجه باندِ چه دا منادیٰ یا مضاف دهٔ اَوْ حرفِ نِداء محذوفه دهٔ اَوْ یا تاکید دَ پاره دَ اَوّل دے څرګه چه دے نصب دَ اَوّل، نو دا خو یا بنا په دِے باندِ چه دا مضاف دے عدی مذکور ته اَوْ تیم ثانی تاکید دے، دَ پاره دَ اَوّل اَوْ یا دا مضاف دے عدی محذوف ته، چه دال دے په هغې باندِ دا مذکور اَوْ دلته مصنفؒ الضم والنصب اووئیل، لکه الضمُّ والفتحُ یې اونهٔ وئیل، ځکه چه دا معرب دے اَوْ په معرب کښې

نصب وي او فتح نه لري.

# درس نمبر ۱۴۷

**والمضاف الى ياء المتكلم يجوز فيه**

او هغه منادیٰ چې مضاف وي ياء د متكلم ته نو جائز دي په دې كښې وجوه اربعه، ځكه چې دا قسم د منادیٰ كثير الاستعمال دے او كثرت استعمال تقاضا د تخفيف كوي، نو تخفيف په كښې پيدا شو په استعمال د وجوه اربعه سره.

**ياغلامِيْ وياغلامِيَ وياغلامِ وياغلامَا وبالهاء وقفًا.**

هغه وجوه اربعه دا دي، دلته د غلام چې منادیٰ دے دې اضافة ياء د متكلم ته راغلې دے، اوّل صورت دا دے چې ياء د متكلم ساكنه شي مدوّيم داچې دا يا مفتوحه اووايو. درېيم داچې دا يا حذف كړو او د ميم داكسره دال اوګرځو، په حذف د ياء باندې. څلورم وجه داچې دا ياء په الف بدله شي او ميم له د الف د وجه نه فتحه وركړو او جائز دے الحاق د هاء په دې څلورو واړو صورتونو كښې لكه ياغلاميه، ياغلاميَه، ياغلامِه، ياغلاماه، د پاره د فرق په مابين د وصل او وقف كښې. سـوال. دا قاعده ستا منقوضه شوه په ياعدوي باندې چې دا منادیٰ مضاف ده ياء د متكلم ته او جائز نه دي په دې كښې وجهين آخرين. جواب. جواز د وجهين آخرين په هغه منادیٰ كښې دے چې مضاف وي ياء د متكلم ته چې مشهوره وي په اضافت سره ياء د متكلم ته چې دلالت اوكړي داشهرت وغيره باندې چې مغيره وي په حذف سره يا په قلب سره او په ياعدوي كښې دا اضافت مشهوره نه دے.

**وقالوا يا أبي ويا أمي ويا ابت ويا امت فتحا وكسرا**

او ويلي دي عربو چې منادیٰ مضاف وي ياء د متكلم ته او دا منادیٰ آب وي يا آم وي، نو جائز دا دي په دې كښې دا څلور وجوه چې كومې مخكښې ذكر شوې او د دې نه علاوه نورې وجهې هم جائز دي، هغه دا چې دا ياء بدله شي په تاء باندې او دا تاء به مفتوحه وي، ځكه چې دا تا بدل راغلې دے د ياء مفتوحه نه او تا مكسوره هم ويلې شي ځكه چې كسره مناسب ده د ياء سره چې دلالت اوكړي په دې خبره باندې چې دا تاء بدله راغلې ده د ياء نه.

**وبالالف دون الياء**

يعني په يا ابتا او يا امتا كښې بدل د دې ياء نه تا او الف دواړه راوړل او دا جائز دي، ځكه چې دلته كښې اجتماع په مابين د عوضين كښې جائز ده نه په ياء سره يعني بدل د ياء نه تاء او يا نه شو راوړلے، ځكه چې په دغه صورت كښې اجتماع لازميږي په مابين د عوض او معوض عنه كښې.

فائده :- او په دا تسـ ادي كښې دا وجوه په دې وجه باندې روا دي، چې دا قسم د منادیٰ كثير الاستعمال دے او كثرت الاستعمال تقاضا د خفت كوي، نو په وجوه كثيره سره په استعمال كښې په دې كښې تخفيف راغلو.

**ويا ابن أُمّ ويا ابن عمّ خاصة مثل باب يا غلامي**

په هغه وخت كښې چې منادیٰ ابن وي او مضاف وي اُمّ يا عمّ ته په حال د كون د دې اُمّ او عمّ كښې چې مضافين وي ياء د متكلم

نه جائز دي، په دے کښې هغه وجوه اربعه، چه کومے چه یا غلامی کښې جائز وی، او دغه شان په دے کښې هم حذف د یا شی او په الف او په کسره باندی اوشی. د خلاصے مطلب دا دے چه دا حکم په هغه منادی کښې نه دے جائز، چه کومے د دے په شان نه وی، برابره خبره ده، چه مضاف غیر د ابن نه وی، یعنی ابن ابن نه وی، یا خو مضاف ابن وی، لیکن مضاف الیه امر یا عم نه وی، یا وی مضاف او مضاف الیه دواړه، د دوی نه علاوه، لکه یا غلام اخی؟

**وقالوا يا ابن امّ ويا ابن عمّ**

یعنی په یا ابن امّ او یا ابن عمّ کښې دا بله وجه هم جائزه ده، چه یا بدله شی، په الف باندی او بیا دا الف هم حذف شی او اکتفاء اوکړے شی، په فتحه باندی، د وجه د کثرت استعمال، طول د لفظ او د ثقل د تضعیف نه.

# درس نمبر ۱۴۸

**وترخيم المنادى جائز وفي غيره ضرورة**

او ترخیم د منادی جائز دے۔ برابره خبره ده چه د وجه د ضرورت شعری نه وی او که نه وی او په غیر د منادی کښې۔ د وجه د ضرورت نه ترخیم روا دے او بغیر د ضرورت نه نه دے روا او کثیر الاستعمال د ترخیم د منادی نه، د غیر، ځکه چه مقصود په ندا سره دغه منادی له۔ پس منادی هغه سرعت کوی، په فوات د ندا کښې او شروع اوکړی، په مقصود کښې۔ ترخیم په لغت کښې دم بریدن ته وائی او په اصطلاح کښې "هو حذف في آخره تخفيفاً"۔ دا ترخیم حذف دے، په آخر د اسم کښې د پاره د حصول د تخفیف یعنی مقصود په دے سره مجرد تخفیف دے، نه بل څه۔ **سوال**۔ تعریف د ترخیم دے جامع نه شو ځکه چه افرادو لره او دا نه شو شاملیدے، ترخیم د غیر منادی۔ **جواب**۔ دا تعریف د مطلق ترخیم نه دے، بلکه د خاص ترخیم دے، چه هغه ترخیم د منادی دے۔

**وشرطه أن لا يكون مضافاً ولا مستغاثاً ولا جملةً**

او شرط د پاره د ترخیم په منادی کښې هغه پنځه دی، ځکه چه په کښې عدمی متعین دی او یو وجودی غیر متعین دے، اوّل شرط عدمی متعین دا دے — چه دا منادی به مضاف نه وی، ځکه چه که چرے مضاف وی، نو بیا به دا ترخیم خالی نه وی یا به په مضاف کښې ترخیم کیږی او یا په مضاف الیه کښې۔ که چرے دا ترخیم په مضاف کښې وی، نو لازمیږی ترخیم په وسط کښې او ترخیم خو په آخر کښې کیږی، نه په وسط کښې او که چرے دا ترخیم په مضاف الیه کښې وی، نو لازمیږی ترخیم په غیر د منادی کښې، ځکه چه مضاف الیه منادی نه ده، بلکه منادی خو مضاف دے — دوئم شرط عدمی متعین د پاره د ترخیم د منادی دا دے، چه دا منادی به مستغاثه نه وی، نه په لام سره او نه په الف سره۔ هر چه دا په لام سره، نو اوس د ندا، چه هغه خفض دے او یا النصب دے، دا په دے کښې نه دے ظاهر شوے، نو نه جاری کیږی په دے کښې ترخیم، چه هغه د خواص د منادی نه دے او هر چه دے مستغاث په الف سره، نو مطلوب په هغې کښې مد د صوت دے او

حذف منافي دے د ندبه صوت سره ـــــ دریم شرط عدمي متعین دادے، چه منادیٰ به جمله نه وی، ځکه چه جُمله جاری ده به مجریٰ د امثالو باندې او په امثالو کښې تغیر او تبدل نه کیږی، بقدر الامکان.

سوال. مصنف ولے شبهه مضاف او مندوب ذکر نه کړل، ځکه چه دا خو هم د شروط عدمیه و نه دی.

جواب. مصنف ذکر نه کړو شبهه مضاف، ځکه چه دے داخل دے په مضاف کښې، نو به ان لا یکون مضافاً سره شبهه مضاف هم راغلو او مندوب ئے ځکه ذکر نه کړو، چه دا د ده په نزد باندې منادیٰ نه دے، یعنی په منادیٰ کښې نه دے داخل - سوال. نه خو ولے چه د ترخیم د منادیٰ د پاره دا شرط دے، چه دا به مضاف نه وی، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په یا صاح سره، چه دا مرخم ده، د یا صاحبی نه، چه د صاحب اضافت راغلے دے یٰ د متکلم وته - جواب. دا شاذه ده والشاذ لا یعتبر.

**ویکون اما علماً زائداً علی ثلثة احرف**

او یا به وی دا منادیٰ علم ځکه چه علم مشهور وی او په حذف یا به ترخیم سره، په دے کښې اشتباه نه راځی، په جا باندې چه زائد وی دا علم په درے حروفو باندې د پاره د دے چه لازم نه شی نقصان په قدر صالح کښې، په دے عبارت سره مصنف شرط وجودی غیر متعین ته اشاره کوی، دا عطف دے په شرطه ان باندې.

**واما بتاء التانیث**

او یا به وی دا منادیٰ په تا تانیث سره بیا به نو کښې دا خبره شرط نه ده چه

• چه علم دی او مشتمل دی وی په درے حروفو باند، ځکه چه په دے کښې تا ر تانیث راغلی ده او دا د نفس کلمے نه نه ده، نو د حذف د پاره دا متعین شوه، خو شرط په کښې دا دے، چه دا به صفت نه وی، لکه فاسقه د پاره د دے چه التباس په صیغ د مذکر پورے را نه شی.

**فان کان فی آخره زیادتان فی حکم الواحدة**

که چرته وی په آخر د هغه اسم کښې چه د هغه ترخیم کړے شوے وی زیات شوی دوه حرفه د پاره د یو معنی یعنی دا دواړه حرفه د یو معنی د پاره راغلی وی - هرکله چه مصنف فارغ شو د بیان د شرائط د ترخیم نه، نو شروع ئے اوکړه په مقدار د محذوف کښې، چه څومره حروف به حذف کیږی. پس دے ویل چه فان کان دا فی حکم الواحدة متعلق دے په کائنتان پورے، په فی حکم الواحدة سره احتراز راغے د ارطاة نه، ځکه چه په دے کښې الف او تا خو معاً زیات کړے شوی دی، خو د پاره د معنی واحدی نه دی زیات کړی شوی، ځکه چه اوّل په دے کښې الف زیات کړے شو د پاره د الحاق او بیا په کښې تا ء زیاتے کړے شوه د پاره د تانیث.

**کاسماء و مروان**

لکه اسماء او مروان اسماء وزن د فعلاء دے او په دے کښې زیادت د الف او د همزه راغلے دے، معاً د پاره د معنی واحدے چه هغه تانیث دے او په مروان

کله الف او نون معاً زیاتې شوې دي، د پاره د معنی واحدې، چه هغه تذکیر دے. د هغه مثال په زیدان کښې الف او نون معاً زیات کړې شوې دي، د پاره د معنی واحدې او په زیدون کښې واو او نون معاً زیات کړې شوې دي، د پاره د معنی واحدې او په هندات کښې هم الف او تاء زیات کړې شوې دي، د پاره د معنی واحدې.

## درس نمبر ۱۴۹

**او حرف صحیح قبله مدّة و هو اکثر من اربعة احرف**

او یا وي په آخر د هغه اسم کښې چه د هغه د ترخیم اراده کړې شوې وه، داسې حرف چه هغه صحیح وي یا حقیقتاً یا حکماً، او مخکښې د هغه حرف نه مدّه زائده وي، مده دې ته وائي چه حرف علت ساکن وي او مخکښې د هغه نه حرکت موافق د حرف علت سره وي، لکه منصور، عمار، ادریس، او حال دا چه دا اسم چه په آخر د هغه کښې حرف صحیح وي، مخکښې وي د هغه مدّه اکثر د څلورو حروفونه.

**حذفتا** دا دواړه حرفونه به په دې دواړو قسمونو کښې حذف کیږي. هر چه دے په قسم اوّل کښې چه "ان کان فی آخره زیادتان الخ"، د دې وجه نه چه رفع د وضع سره موافق شي، چه وضع هم د دې دواړو حرفونو معاً وي او رفع یې هم معاً وي او هر چه دے په دې دویم صورت کښې، چه "او حرف صحیح الخ"، د دې وجه نه چه دا مثل د عوامو صحیح نه شي، چه "صلت علی الاسد وبلت عن النقد"، چه په زمري حمله کوي او د ګیدړه نه د ډېره متیازې کوي، یعني چه هر کله د حرف صحیح حذف کړو، نو حرف علت به هم ورسره حذف کړو او که چېرې حرف صحیح د حذف کړو او حرف علت د پرېښودو، نو دغه مثل بیا د عوامو لازمیږي، په دغه وخت کښې بنده د درس پوهولو کښې دا شعر اوروے:

> هو به چه تښته شي د سوبارې به تښته باکوي     زړګے چه د مینې شو لګیا سر دې پسې دوبکوه

(یعني چه حرف صحیح د حذف کړو، نو حرف علت خو به هم حذف کوے) نو به یا اسمار کښې، یا اِم به یا مروان کښې، یا مرو به یا منصور کښې، یا منص یا عمّار کښې، یا عمّ او یا ادریس کښې، یا ادر او دغه "و هو اکثر من اربعة" سره احتراز اکیږي د سعید، د ثمود او د عماد وغیره نه، ځکه چه دا اکثر د څلورو حروفو نه نه دي. **سوال**. تا خو ویلي دي "حرف صحیح"، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه، په مدعوّ او مرمیّ سره، ځکه چه په آخر د دې کښې حرف صحیح نشته دے او بیا هم دا دواړه حرفونه په کښې حذف کیږي.

**جواب**. صحیح عام دے، حقیقتاً وي او که حکماً، او په دې کښې حرف آخر اګرکه صحیح حقیقتاً نه دے ولې حکماً دے. **سوال**. ستا دا قاعده منقوضه شوه، په مختار باندې، ځکه چه په آخر د دې کښې حرف صحیح دے او ماقبل د هغه نه مدّه نه دے، سره د دې نه به په دې کښې آخري حرفونه نه حذف کیږي.

**جواب**. ملته د مدّه نه مراد مدّه زائده دے او دا مدّه اصلیه ده.

**وإن كان مركباً حذف الاسم الأخير**
اَوْ كهٔ چرته وي، هغه اِسم چه دَ هغه ترخيم غوښتل وي مركب، غير دَ مركب اضافي اَوْ اسنادي نه، نو په وخت دَ ترخيم كښې به دَ دِے نه اِسم اَخير حذف كيږي، ځكه چه دا اِسم اَخير په منزله دَ تاء تانيث دے، په عار ضولو كښې، لكه په بعلبك كښې اووائے يا بعل، اَوْ په خمسة عشر كښې اووائے، يا خمسة -

**وإن كان غير ذالك فحرف واحد**
اَوْ كهٔ چرته وي، دا اِسم سِوا دَ دِے مذكورو نه، يعني غير ما كان في آخره زيادتان، اَوْ حرفٍ صحيح قبله مدةٌ هو اكثر من اربعة احرف، نو بيا به په وخت دَ ترخيم كښې حذف كيږي، يو حرف، يعني "فالمحذوف منه حرف واحد"، دَ وجې دَ حصول دَ مقصود نه اَوْ دَ وجې دَ عدم موجب اَوْ سبب دَ حذف دَ زيادت دَ حرف واحد نه، يعني ملته څهٔ سبب اَوْ موجب نشته، چه دَ يو نه زيات حروف حذف كړو-

# درس نمبر ۱۵۰

**وهو في حكم الثابت على الاكثر**
اَوْ هغه حروف، چه هغه حذف شوے دے، دَ نحو دَ منادىٰ نه، دَ پاره دَ ترخيم، هغه په حكم دَ موجود اَوْ دَ ثابت كښې دے، بنا په اكثر استعمال باندِ- پس دا مابقي به په خپل حال باندِ وي، يعني چه هر كله حذف دَ آخر دَ منادىٰ راشي، پس دا المحذوف به نسياً منسياً نه وي، بلكه دے به منوي وي اَوْ په حكم دَ موجود كښې به وي-

**فيقال ياحارِ وياثمُو ويا كرَوَ.**
دا فاء يا دَ پاره دَ تعليل دَ، اَوْ يا دا جواب دے، دَ پاره دَ شرط محذوف، چه اذا كان الامر كذالك فيقال، اَوْ يا دا دَ پاره دَ عطف راغلي دَ، چه "ياحارِ" په اصل كښې وو، ياحارثُ- پس ثاء تر دے نه حذف كړے شو، دَ پاره دَ ترخيم، ليكن دا محذوف نسياً منسياً نه دے، بلكه دا په حكم دَ ثابت كښې دے- پس مابقي به په خپل حال باندِ پرېښودے شي، نو ياحارِ به وائي ځكه چه ځكښې تحذف دَ ثاء نه په راء باندِ كسره وه، اَوْ ياثمُو په اَصل كښې ياثمودُ وو، دال تر دے نه حذف كړے شو، دَ پاره دَ ترخيم، ليكن محذوف نسياً منسياً نه دے، بلكه دا دَ ثابت په حكم دَ دے، پس مابقي په خپل حال باندِ پرېښودے شو، كهٔ چرته دا محذوف نسياً منسياً وے، نو بيا به بيا واو په ثمو كښې په ياء بدلېدو اَوْ ميم به مونږ مكسور، وېلو اَوْ يا كروَ په اصل كښې يا كروان وو، الف اَوْ نون تر دے نه معاً حذف شو، دَ پاره دَ ترخيم، ليكن دا محذوف نسياً اَوْ منسياً نهٔ دي، بلكه دا په حكم دَ ثابت كښې دي، په دِے وجه مابقي په خپل حال باندِ پرېښودے شو، كهٔ چرته دا محذوف نسياً منسياً وو، نو بيا به واو متحرك دَ وجې دَ فتحې دَ ماقبل نه په الف باندِ بدلېدو، اَوْ اوس چونكه دا محذوف په حكم دَ ثابت كښې دے، نو دغه رنګ اعلال په كښې نهٔ شي كيدے، ځكه چه بيا التقاء دَ ساكنين راځي، چه واو په الف بدل شي اَوْ ورو هغه ورپسې الف شي، نو دا دواړه ساكن وضعي دي-

**وقد یجعل اسماً براسه** اَوْ کله کله کَرځولے شی مُنادیٰ مرخمه یا مابقی بعد الحذف اِسم مستقل یعنی محذوف نسیاً منسیا اوګرځولے شی اَوْ جاری کیږی په مابقی باندِ احکام دَ اِسم مستقل.

**فیقال یاحار یاثمی یاکرا** پس وَبه ویلے شی یا حار په حارث کښے یا حارُ حُکه چه هر کله دَ دے نه ثا حذف کړے شوه اَوْ یا نسیاً منسیاً اوګرځیده، نو دا مابقی اِسم مستقل شو چونکه دا خو مفرد دے لُو منادیٰ مفرد معرفه مبنی وی په ضمه باندِ، نو دا به ضم مضموم وی اَوْ یا ثمی په اصل کښے یا ثمودُ وو، دال ترے نه حذف کړے شو دَ پاره دَ ترخیم اَوْ دا محذوف نسیاً منسیاً شو. پس مابقی اِسم مستقل شو، چونکه دَ دے په آخر کښے واو راغلے دے اَوْ لغه چه په آخر دَ اِسم کښے راشی، نو دے بدلیږی په یا باندِ. پس واو مونږ به یا باندِ بدل کړو اَوْ دَ یا دَ مناسبت دَ وجه نه مونږ کسره ورکړو میم ته، یا ثمی شو اَوْ یا کرا په اصل کښه یاکروان وو. پس الف اَوْ نون ترے نه حذف شو معاً دَ پاره دَ ترخیم پس مابقی اِسم مستقل پاتے شو، حکه چه محذوف نسیاً منسیاً دے، بیا په کښے مونږ اعلال اوکړو، حکه چه مانع دَ اعلال نه وو موجود، چه هغه وقوع دَ ساکن دے، پس دَ واو نه، نو مونږ واو بدل کړو په الف باندِ دَ وجه دَ حرکت نه اَوْ دَ فتح دَ ماقبل نه، نو یاکرا پاتے شو.

**وقد استعملوا صیغة النداء فی المندوب** اَوْ کله کله استعمالوی عرب صیغه دَ نداء سوا ترے نه حرف ندبه دے، چه ﴿وا﴾ دہ، په مندوب کښے، چونکه تصریح یے نه کړے په یا باندِ، حُکه چه دا مشهوره دہ، په صیغے دَ نداء کښے. مندوب "الاسم الذی یندب" سما. مندوب په لغت کښے هغه مړی ته وائی چه یو کس په هغه باندِ ژړا کوی اَوْ عَدّد محاسن دَ هغه کوی، دَ پاره دَ دے خبرے چه لوئ خلق ترا معلومه شی، چه موت دَ دے میت لو حادثه عظیمه دہ، چه دا ژړا کونکی خلق معذور اوګنړی، په ژړا کښے اَوْ لوئ خلق دَ دہ سره شریک شی، په ژړا کښے، په ژړا دَ تفجع اَوْ تحسر کښے. فرق په مابین دَ منادیٰ اَوْ مندوب کښے دا دے، چه منادیٰ "هو المطلوب لقباله بحرف نائب مناب ادعو لفظاً اَوْ تقدیراً" نه والیٰ اَوْ مندوب "هو المتفجع علیه" اَوْ په یا وا والیٰ. پس یا صیغه دَ نداء دہ او مستعمل کیږی په مندوب کښے هُم دَ وجه دَ مشابهت دَ مندوب نه منادیٰ سره دَ حیثیت دَ تخصیص نه، حُکه چه هر واحد دَ دے دواړو نه مخصوص دے، په مابین دَ خپل قوم کښے لیکن مندوب مختص دے، په وا سره، دپاره دَ دے چه دا نص اوګرځی په ندبه کښے.

**المتفجع علیه بیا او وا** لو دا مندوب هغه دے، چه غم اَوْ حزن کولے کیږی په هغه باندِ په یا اَوْ وا سره. **سوال.** حکم دَ مندوب په شان دَ حکم دَ منادیٰ منصوب معرف دے، په اعراب اَوْ په بنا کښے. پس څه وجه دہ؟ چه دا نه دے داخل په منادیٰ کښے. **جواب.** مصنف رحمة الله علیه اوویے چه

**واختص بوا** یعنی مندوب ممتاز دے دَ منادیٰ نه په وا سره، لو دَ دے وجه داخل نه شو په منادیٰ کښے.

# درس نمبر ۱۵۱

**وحكمه في الاعراب والبناء حكم المنادى.** او حکم د مندوب په اعراب او بناء کښې په شان د حکم د منادی دے، څرنګه چې منادیٰ مفرد معرفه مبني وي په ضمه باندې نو دغه شان مندوب هم دے او چې کله منادیٰ مضاف وي، نو منصوب به وي، دغه شان مندوب هم دے، البته دا خبره ده چې مندوب نکره نه واقع کیږي او نه شبهه مضاف او حکم د توابع د مندوب که مفرد وي او که مضاف وي په شان د توابع د منادیٰ دے او حکم د مندوب په شان د حکم د منادیٰ په دې وجه دے چې اعراب او په بناء کښې ځکه چې هرکله په مندوب باندې حرف نداء داخلیږي نو په اعراب او په بناء کښې ورباندې هم حکم د منادیٰ جاري کړے شي.

**ولك زيادة الالف في آخره** او جائز دے ستا د پاره زیاده د الف یا قائم مقام د الف یعنې یا او واو دے په آخر د مندوب کښې، ځکه چې مطلوب په دے کښې مدد صوت دے او تطویل دے، خو که چرته مندوب مضاف وي او یا موصول وي، نو ملحق کیږي به دا الف او یا قائم مقام د دے، نو په مضاف الیه او صله پورے نه په دغه مندوب مضاف پورے[1]

**فان خفت اللبس قلت واغلامكيه واغلامكموه** که چرته ته ویریږې په زیادت سره د التباس نه چې التباس به د یو صیغه د بلے سره راشي، نو عدول به او کړې د زیادت د الف نه او د هغې په ځائے به د ماقبل د حرکت مناسب حرف راوړې، لکه 'واغلامكيه' دا واغلامك دے، په صیغه د مؤنث سره، او س که چرته مونږ دلته الف زیات کړو او 'واغلامكاه' او وایو نو التباس د مؤنث مخاطبې د مذکر مخاطب سره شو، پس مونږ د 'ك' د حرکت سره مناسب حرف چې یا دے راوړو، او 'واغلامكموه'، دا صیغه د جمع مذکر مخاطب ده چې مندوب واقع شوي ده، او س که چرته دلته زیادت د الف او کړو نو التباس به راشي د جمع مذکر مخاطب د تثنیې د مخاطب سره، لکه چې او ویلے شي 'واغلامكماه'، او س دلته د میم د حرکت سره موافق واو راوړے شو، ځکه چې په میم باندې ضمه ده.

**ولك الهاء في الوقف** او جائز دے ستا د پاره زیادت د ها په حالت د وقف کښې، د پاره د بیان د حرف مد، (یعنې د حفاظت د حرف مد) لکه واغلامكيه.

**ولا يندب الا المعروف** او ندبه به نه شي کیدلے، مګر په هغه چا باندې چې مشهور وي، یعنې یا علم وي یا غیر علم وي، خو چې مشهور وي، د پاره د دے چې دا نادبه معذور او ګڼلے شي، په خپله ندبه کښې، ځکه چې هرکله دا مندوب مشهور وي، نو نادب به څوک په نه به باندې

---

[1] ځکه چې په مابین د مضاف او د مضاف الیه کښې شدت اتصال وي، پس که چیرته راوړے شي دغه په مندوب مضاف پسے مندوب موصول کښې، نو ضعیف به شي، اتصال شدید بین المضاف والمضاف الیه ۱۰۰۱م ۲۰۰

نه ملامته کوی۔

**فلا یقال وارجلاه** دا تفریع ده په "لایندب الا المعروف" باندې او یا دا د جزائیه ده، یعنی "اذا کان الامر کذالك فلا یقال وارجلاه"، ځکه چه رجل معروف نه دے، بلکه نکره ده غیر معین او غیر معروف دے، نو سره مندوب نه شی واقع کیدے۔

**وامتنع وازید الطویلاه** او ممتنع دے دا ترکیب چه "وازیدُ الطویلاه"۔ مراد په دې ترکیب سره، هغه ترکیب دے چه الف او ها چه علامه ده د ندبے، ملحق شوی دی په صفت پورے، نو دا ترکیب ممتنع دے، ځکه چه په مابین د موصوف او د صفت کښے شدت اتصال نشته دے، لکه چه څنګه په مضاف او مضاف الیه کښے دے، یا چه کوم شدت اتصال دے په مابین د موصول او د صلے کښے، نو ملته به الف، او، ها ملحق کیږی، بصرف پورے۔ په محلٰے د وازیداً الطویلاه، بانديے وایو، وازیداهُ الطویل۔

**خلافاً لیونس** مخالفت کړے دے، په دیے کښے یونس نحوی هغه والی، چه علامه د ندبے چه الف او ها دی، دا ملحق کیږی په صفت پورے او د هغه د پاره دوه دلیلونه دی، یو عقلی او دویم نقلی دے۔ هر چه دے عقلی هغه دا دے چه یونس نحوی قیاس د دیے په مضاف، مضاف الیه باندې کوی، چه هر کله مضاف الیه باندې علامه د ندبے داخلیږی، سره د دیے نه چه په مضاف او مضاف الیه کښے مغایرت دے، بالذات او معناً، نو په صفت باندې خو به په طریق اولیٰ سره علامه د ندبے داخلیږی، ځکه په مابین د دوی کښے اتحاد بالذات دے په معنیٰ کښے دے او دلیل نقلی دا دے چه په دیے قول د عربو کښے علامه د ندبے ملحق شوی ده بصفت پورے، لکه "واجمجمتیی الشامتیناهُ"۔ جواب دلیل عقلی نه دا دے چه قیاس ستا په مضاف، مضاف الیه باندې د صفت او د موصوف نه دے صحیح، ځکه چه په مابین د مضاف او د مضاف الیه کښے شدت اتصال دے، په اعتبار د لفظ سره، چه دغه رقم اتصال په مابین د صفت او د موصوف کښے نشته، اګر چه په مابین د مضاف او د مضاف الیه کښے په اعتبار د معنیٰ سره ناقص دے، ولے غرض د نحوی په الفاظو کښے دے او په اعتبار د لفظ سره په مابین د مضاف او مضاف الیه کښے شدت اتصال دے، په نسبت سره صفت او موصوف ورته او جواب د دلیل نقلی نه دا دے، چه دا شاذ دے او "والشاذ لا اعتبار له"۔

## درس نمبر ۱۵۲

**ویجوز حذف حرف النداء الا مع اسم الجنس** او جائز دے حذف د حرف نداء د پاره د حصول د تخفیف په وخت د وجود د قرینے کښے، مګر نه دے جائز حذف د حرف نداء د هغه منادی نه چه هغه اسم جنس وی، ځکه چه بغیر د اسم جنس

قلیل الاستعمال دٔ، په نسبت سره ندا د علم وته، کهٔ چرته د یو نه د یو حرفِ ندا حذف شی، نو بیا به سړے نهٔ پوهیږی چه دا منادیٰ دهٔ، ځکه ذهن به یې ورته نهٔ خوځیږی۔

## والاشارة والمستغاث والمندوب

اَوْ د دغه شان نه به حذف کیږی حرفِ ندا د اسمِ اشارے نه، ځکه چه اسمِ اشاره په شان د اسمِ جنس دهٔ په ابهام کښے اَوْ د دغه شان د مستغاث اَوْ د مندوب نه به هم نهٔ حذف کیږی، ځکه چه مطلوب په دے دواړو کښے مد د صوت دے اَوْ حذف منافی دے د مد د صوت سره۔ پس هغه معارف چه جائز دے په کښے د حرفِ ندا لیرے کول هغه نهٔ علم دے۔ بیا ځبره دهٔ، چه بدل د حرفِ ندا نه میم مشدد راغلے دی اَوْ کهٔ نهٔ وی راغلے لکه په 'یا اَللّٰه' کښے 'اَللّٰهُمَّ' اَو بیا شی، ځکه چه په 'اَللّٰهُمَّ' کښے میم بدل د یا نه راغلے دے، ولے دا خاص دے په لفظ د 'اَللّٰه' پورے اَوْ چه بدل نهٔ وی راغلے د حرفِ ندا نه، لکه 'یوسف اَعرِض عن هذا' ـ په اصل کښے وو 'یا یوسف اعرض'۔ دویم لفظ د 'اَیٌّ' دے چه موصوف وی په معرف باللام سره، لکه 'اَیُّها الرجل' یا لکه 'اَیُّهذا الرجل' دا په اصل کښے 'یا اَیُّها الرجل' اَوْ 'یا اَیُّهذا الرَّجل' دے۔ دریم هغه دے چه مضاف وی مطلق معرفے ته، لکه 'رَبَّنا آتنا' یا لکه 'غلام زید افعل کذا'۔ دا په اصل کښے وو 'یا رَبَّنا آتنا' او 'یا غلام زید افعل کذا' وو۔ اَوْ څلورم موصولات دی، لکه 'من لا یزال محسنًا اَحْسِنْ اِلَیَّ'۔ دا په اصل کښے 'یا من لایزال محسنًا احسِنْ اِلَیَّ'۔ لَوْ هَرْ چه دی مضمرات، نو شاذه ده ندا د هغوئ۔

## نحو یوسف اعرض عن هذا وأیُّها الرجل

'یوسف اعرض من هذا' دا مثال د هغه دے چه منادیٰ علم وی اَوْ د توجه د قرینے د مقام نه حذف د حرفِ ندا راغلی دی، په اصل کښے وو 'یا یوسف او ایُّها الرجل'۔ دا مثال د هغه دے چه منادیٰ لفظ د 'ایٌّ' وی چه دا موصوف وی په معرف باللام سره، نو دلته قرینه لفظیه موجود نه دهٔ، ځکه چه 'ایُّها' دا راځی د پاره د توسط په مابین د منادیٰ معرف باللام اَوْ د حرفِ ندا کښے، نو چه دلته کښے هر کله په لفظ کښے حرفِ ندا موجود نه دهٔ، نو معلومه شوه چه حرفِ ندا حذف دهٔ چه دا په اصل کښے 'یا ایُّها الرجل' دے۔

## وشذ أصبح لیلُ وافتد مخنوق واطرق کرا

اَوْ شاذ دی دا مذکوره عبارتونه چه 'اصبح لیل افتد مخنوق واطرق کرا' دی، په دے عبارت سره مصنف دفع د سوال کوی۔ **سوال**۔ ته خو وائے چه حذف د حرفِ ندا د اسمِ جنس نه نهٔ کیږی، نو ستا دا خبره منقوضه شوه په 'اصبح لیلُ افتدِ مخنوق اَو اطرق کرا' سره، ځکه چه لیلُ مخنوق اَوْ کرا، دا په قول د عربو کښے اسمِ جنس استعمالیږی اَوْ سره د هغے د دعوے نه حذف د حرفِ ندا راغلے دے۔ **جواب**۔ دا عبارات شاذ دی اَوْ په دوی باندے به نهٔ شی قیاس کیدلے۔ اصبح لیلُ په اصل کښے وو 'اصبح یا لیلُ'۔ دا په اصل

کښې قول د هغې ښځې دے چې هغې لره امرؤالقیس طلاق ورکړے وو، د شپې نو هغې اوویل چې "اصبح لیل" که شپه زر صبا شه، یعنی "اصبح باللیل" او دا وروستو بیا ضرب المثل گرځیدلے دے د پاره د شدت د طلب د شی. "افتد مخنوق" په اصل کښې دے "افتد یا مخنوق". مخنوق هغه کس ته وائی چې د هغه مرئ هغه کښې شوی وی، په اصلیت کښې یو سړی د بل سړی په مرئ پښه ایښې وه لو وخته یې اوویل چې "ماله فدیه" یعنی ځان له ځان خلاص کړه. "اصلاق کرا" په اصل کښې وو "یا کروان". کروان تنځری ته وائی. الف او نون ترې نه حذف شوی دی، د پاره د ترخیم. دا لیوه دقوفه مرغۍ ده چې هر وخت یې سر ښکته کړے وی او دا خیال کوی چې خلک ما ته نه ښکاری، د هغه شان زړه هر جانه نه ښکارم "او کی ما شترمرغ نه په وه ویره کوی" نو چې څوک یې نیسی دا وینه وائی "اطرق کرا اطرق کرا، ان النعامة فی القری" یعنی اے تنځرے! سر ښکته کړه، په تحقیق سره شترمرغ په کلی کښې دے یعنی چا ښکار کړے دے دلو چه که دے سر ښکته کړی نو ښکاریان یې اونیسی. دا هم ضرب المثل دے، چې یو قوی سړے یو ضعیف ته امر اوکړی په القیاد سره نو په هغه وخت کښې دا ویلے شی. په ځا کښې درې شذوذه دی. یو دا چې په دے کښې حذف د حرف ندا د لفظ سره، دویم ترخیم په کښې راغلے دے او دریم: دا مرخم گرځولے شوے دے اسم بواسطه او په اسم بوا حذف نسیاً منسیاً نه راځی.

**وقد يحذف المنادى لقيام قرينة جوازاً** او کله حذف کیږی منادی په وخت په وجود د قرینے کښې۔ برابره خبره ده چې قرینه حالیه وی که مقالیه وی، په حذف جوازی سره۔ جوازاً صفت دے، د پاره د مفعول مطلق محذوفه، چې حذفاً دے، او بیا دا جوازاً مؤول دے په تاویل د جائزاً سره، د پاره د دے چې حمل د صوف وصف لازم نه شی ...

**مثل الا یا اسجدوا** دا مثال د حذف د منادی دے، دلته منادی قوم دے، نو تقدیر به دا شی چې "الا یا قوم اسجدوا" او قرینه به دے باندې دا ده چې یا حرف ندا داخله شوی ده په فعل باندې او حال دا دے چې حرف ندا په اسم باندې داخلیږی نه په فعل باندې، نو دا قرینه لفظیه ده او الا حرف تنبیه دے او که چرته الا په تشدید سره او لیسجدوا په صیغه د مضارع سره شی لکه چې دا یو قرأت دے، نو دا به د تبیهه د حذف د منادی نه وزنه کوچی.

## درس نمبر ۱۵۳

**والثالث ما اضمر عامله على شريطة التفسير.** دریم ځلے د هغه مواضع اربعه نه چې حذف د عامل ناصبه د مفعول به په کښې واجب دے په حذف وجوبی قیاسی سره، هغه مفعول به دے، چې مقدر کړے شوے وی عامل ناصب د ده په دے شرط سره چې د هغه عامل ناصب به تفسیر راځی وی په مابعد کښې، د پاره د دے چې اجتماع رانه شی په مابین د مفسَّر او د تفسیر

کړي. **سوال**. کلمه د ما به يا عبارت وائي د مفعول به نه او يا د مطلق مفعول نه، که چرته مفعول به ئې وائي نو بيا لازمېږي تعريف د من ص په عام سوه او که چرته مفعول مطلق ئې وائي، نو لازمېږي، دا خبره چې تعريف به مانع اونه ګرځي. د دخول د غير نه او داخل به شي، په کښې مفعول فيه. **جواب**. کلمه د ما عبارت دے د مفعول به نه. د مراد په کل اسم سره مفعول به مجاز دے، د قبيلې د ذکر د عام نه او اراده کړے شوے ده په وے سره خاص او يا دا چه ما عبارت دے د مطلق مفعول نه او په مطلق مفعول کښې مفعول به هم داخل دے.
**سوال**. جمع په مابين د مفسّر او تفسير کښې باطله ده، نو ځکه به دے او منبا ګم، چه جمع به راغلي وي په مابين د مفسر او تفسير کښې، لکه جاءني رجل اي زيد، مدلته جمع راغلي ده په دواړو کښې. **جواب**. مراد په مفسر يعني تفسير سره رفع د ابهام دے چه ناشي وي د محذوف نه او دلته رفع خو د ابهام راغلي ده، د مذکور نه د محذوف نه. **سوال**. په آيت کښې جمع په مابين د مفسر او د تفسير کښې راغلي ده، مثلاً اِنّي رَأَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ لِي سَاجِدِيْنَ. دلته اول رأيت مفسّر دے او دويم رأيتُ مفسِّر دے، نو جمع راغله د دواړو په مابين کښې. **جواب**. دا مفسر نه دے، بلکه دا جمله مستانفه ده او دا جواب واقع شوے دے د پاره د سائل، چه هر کله هغه اووے 'اِنّي رَأَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ' (الآية)، نو سائل تپوس اوکړو چه په کوم کيفيت دِ ليدلي دي، نو دهٔ اووے 'رَأَيْتُهُمْ لِي سَاجِدِيْنَ'، او يا دا چه رأيت کله متعدي کيږي دوؤ مفعولينو ته او کله يو مفعول ته، چه کله متعدي وي يو ته، نو دا دويم رأيتُ به د دهٔ د پاره حال وي او که چرته دا متعدي وي دوؤ مفعولينو ته، نو دا دويم رأيت به مفعول ثاني وي. **سوال**. شريطة د وزن د فعيلة دے او فعيلة کله په معنٰي د فاعل راځي او کله په معنٰي د مفعول راځي لکه دلته خو نه معنٰي د فاعل صحيح کيږي او نه د مفعول. **جواب**. شريطة په معنٰي د شرط بانډ دے لکه اضافت ئې تفسيرته بيانيه دے يعني "على شرط هو التفسير فيما بعده".

**وهو كل اسم بعده فعل او شبهه مشتغل عنه بضميره**

او دا ما اضمر عامله على شريطة التفسير، هر هغه اسم دے (يعني مفعول به دے) چه د وروستو د دهٔ نه فعل وي او يا شبه فعل وي، په دے شان سره چه هر واحد د دے دواړو نه فارغ وي د عمل نه په دے اسم کښې په سبب د تسليط د دے دواړو د عمل په هغه ضمير کښې چه راجع دے، دې اسم ونه.

**او متعلقه بحيث لو سلط عليه هو او شبهه او مناسبه**

يا متعلق د دغه اسم، يا د دے ضمير په دے شان سره چه که چرته مسلط کړې شي په معمول، نفع د دے اشتغال سره په دغه اسم باندې هغه فعل او يا شبه فعل او يا هغه چه مناسب وي، د دے فعل سره په ترادف کښې او په لزوم د نصب کښې.

**لنَصَبه** لو دا فعل یا شبهه فعل یا مناسب کړے فعل سوئ به نصب ورکوی دِ اِسم ته بنا بر مفعولیت۔ په بعدهٔ فعل اَوْ شبهه سره احتراز راغلو دَ زیدٌ الوكُ نه، ځکه چه دَ دے نه وروستو فعل یا شبهه فعل نشته دے اَوْ په مشتغل عنه بضمیره سره احتراز راغلو دَ زیدٌ ضربتُ نه، ځکه چه دلته ضمیر نشته، چه ضربتُ دَ هغهٔ په عمل مشغول شی، بحیث لو سُلط علیه، په دے سره احتراز راغلو دَ زید ذهب به نه (ځکه چه ذهب نصب نهٔ ورکوی زید لره، ځکه چه دا فعل لازمی دے)۔

**سوال**۔ ستا دا تعریف جامع اونهٔ کړځیدهٔ خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترے نه دا ترکیب چه زیداً عمروٌ ضربه او یا زیداً انت ضاربه، ځکه چه سره دَ دے چه دا دَ قبیلے دَ ما اضمر عامله نه نهٔ دی اَوْ دا تعریف وربانډِ صادِقیږی، ځکه چه دلته کښے دا فعل اَوْ شبهه فعل، پس دَ اِسم نه نهٔ دے بلکه په اَوّل ترکیب کښے اِسم پسے وروستو فعل نهٔ دے، بلکه عمرو دے اَوْ په دوّیم ترکیب اِسم پسے وروستو ضمیر دَ اَنْتَ دے۔ **جواب**۔ معنیٰ دَ بعدیت دا دهٔ، چه دا فعل یا شبهه فعل به پس دَ دے اِسم نه دَ کلام نه جزء واقع شوے وی، نه دا چه دوئ به یَلی وی دَ اِسم سره۔ **سوال**۔ دا مشتغل دَ پارهٔ چه کله صله عَنْ راشی، نو دا په معنیٰ دَ اعراض اَوْ نا روغیدو سره راځی اَوْ چه کله صله دَ با راشی نو بیا به په معنیٰ دَ تسلیط سره راځی۔ اوس کهٔ ته اَوّله معنیٰ اَخلے نو صله دَ دے به عَنْ راشی اَوْ با به نهٔ وی اَوْ که چرے دوّیمه معنیٰ اَخلے نو صله دَ دے به با راشی اَوْ عَنْ به نهٔ وی اَوْ دلته خو دَ دے صله کښے دواړه حروف راغلی دی۔ اوس کهٔ چرته دواړه مراد کړو نو بیا به اِلتزمیږی عموم دَ مشترک اَوْ دا باطل دے۔ **جواب**۔ دلته بِاشتغال هُم شته دے، چه هغه مقدره دے اَوْ دَ هغهٔ دَ پارهٔ صله با راغلی دهٔ۔ پس تقدیر به داسے شی چه مُشتغل عنه، مشتغل بضمیره، اَوّله مشتغل دَ پاره دَ فراغت دے اَوْ دوّیم دَ پارهٔ دَ تسلیط دے اَوْ دوّیم جواب دا دے چه ابن حاجب په مذهب دَ امام مالك دے اَوْ دَ هغهٔ په نزد بلاعموم دَ مشترک جائز دے اَوْ درېم جواب دا دے چه با سببیه دهٔ، یعنی بسبب العمل فی ضمیره۔ **سوال**۔ دا تعریف مانع نهٔ کرځیدهٔ، دَ دخول دَ غیر نه اَوْ داخل شوه په کښے مبتدا په دے ترکیب کښے چه زید ضربته، ځکه چه تعریف دَ ما اضمر عامله وربانډِ صادقیږی لکه حال دا دے، چه دا دَ ما اضمر عامله دَ قبیلے نه نهٔ دے۔ **جواب**۔ شرط په ما اضمر عامله کښے دا دے، چه مانع دَ عمل دَ فعل نه په اِسم کښے هغه صرف اشتغال دے په ضمیر باندِ، کهٔ چرته دا فعل یا شبهه فعل دَ دے ضمیر نه لرے کړے شی، نو دے به عمل کوی په هغه اِسم کښے اَوْ دلته خو مانع دَ عمل دَ ضربته نه په زید کښے مجرد اشتغال په ضمیر سره نهٔ دے، بلکه یو بل امر مهم هُم مانع دے، چه هغه ابتدائیت دے، ځکه چه زید مبتدا دهٔ، اَوْ په مبتدا کښے خو عامل معنوی دَ مخکښے نه موجود دے۔ اوس کهٔ چرته نعل هُم په کښے عمل وکړی نو بیا به اجتماع دَ عاملینو راشی په معلول واحد باندِ۔ **سوال**۔ دا تعریف مانع نهٔ شو، دَ دخول دَ غیر نه اَوْ داخل شو په کښے دا ترکیب چه زیداً کنتُ ایاه۔ دا دَ قبیلے دَ ما اضمر عامله نه نهٔ دے اَوْ تعریف وربانډِ صادقیږی۔ **جواب**۔ مُراد په نصب سره نصب دے بنا بر مفعولیت نه بنا بر خبریت اَوْ دلته دا بنا بر

خبریت دے نه بنا بر مفعولیت. **سوال.** مثال خو راځي د پاره د وضاحت د ممثل او د توضیح د ممثل راځي نو یو مثال واحد سو، نو دلته کښې تعدد د امثله ته څهٔ ضرورت دے؟ **جواب.** تعدد د امثله په اعتبار د تعدد د ممثلاتو سره دے.

**نحو زیداً ضربته وزیداً مررت به وزیداً ضربت غلامه** دا اولنی مثال د هغه فعل دے چې دے مشتغل دے په عمل سره په ضمیر کښې، چې ممکن دے تسلیط د ده په زید باندې بعینه. دا دویم مثال د هغه فعل دے چې دے مشتغل دے په عمل سره په ضمیر کښې، چې ممکن دے تسلیط د ده په زید باندې په اعتبار د مرادف سره، چې هغه جاوزتُ دے، ځکه چې مررت به مرادف دے جاوزت سره. دریم مثال د هغه فعل دے چې دے مشتغل وي په متعلق د یو اسم باندې، چې ممکن وي تسلیط د ده په اعتبار د لازم سره، چې هغه اهنت دے، ځکه چې ضرب د غلام د زید دا اهانت د زید دے، نو دلته ضربتُ عمل کړے دے په متعلق د زید کښې چې هغه غلام دے.

**وزیداً حبست علیه** دا مثال د هغه فعل دے چې مشتغل وي په ضمیر باندې په عمل سره، چې ممکن وي تسلیط د ده په اعتبار د لازم سره، چې هغه لابستُ دے، ځکه چې حبس د شي په شي باندې دا مستلزم دے ملابست لره.

**وینصبُ بفعل مضمرٍ یفسره مابعده** په دے مثالونو کښې زید منصوب دے په هغه فعل سره چې هغه مقدر دے او تفسیر د هغه په مابعد کښې شوے دے، چې هغه ضربتُ، جاوزتُ، اهنت او لابستُ دے. په زیداً ضربته کښې زید منصوب دے په ضربتُ سره چې هغه مقدر دے او تفسیر د هغه لره مابعد ضربتُ کړے دے، دغه شان دا نور مثالونه شو.

## درس نمبر ۱۵۴:

نو ده کړو دا خبره چې هغه اسم چې واقع دے په مقام د اضمار علی شریطة التفسیر کښې، هغه په پنځه قسمه باندې دے، اول قسم هغه دے چې مختار په کښې رفع ده سره د جواز د نصب نه. دویم هغه دے چې مختار په کښې نصب دے سره د جواز د رفع. دریم قسم هغه دے چې لازمي د رفع وي. څلورم هغه دے چې تعین د نصب وي. پنځم هغه دے چې استواء په کښې د امرین وي. اوس مصنف د هغه ذکر کوي، نو وے دلیل چې:

**ویختار فیه الرفع بالابتداء عند عدم قرینة خلافه** او مختار کړے شوې ده رفع په هغه اسم کښې چې واقع شوے دے په مقام د ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښې بنا بر ابتدائیت یعنی په کېدلو د دے سره مبتدا په هغه وخت کښې چې قرینه په خلاف د رفع باندې نه وي موجوده. **سوال.** په وخت د عدم د قرینه په خلاف د

رفع کښې، خو بيا لکه دا چه رفع مختاره نهٔ دے، بلکه واجب وي۔ جواب. مراد په عدم د قرينې نه عدم د قرينې مرجحې دے، نهٔ د قرينې مصححې، يعنې قرينې مصححې خو به دواړه موجود وي، د رفع د پاره هم او د نصب د پاره هم، خو قرينه مرجحه به د رفع د پاره وي او د نصب د پاره به نهٔ وي، لکه "زيدٌ ضربته"۔ دلته کښې قرينه مصححه د پاره د رفع چه هغه تجرد د زيد دے د عوامل لفظيه نه او وجود د حالت صلوحيت التفسير کښې په قرينه مصححه دے، د پاره د نصب، ليکن قرينه مصححه د پاره د رفع، دا مرجحه ده، د نصب نه، چه قرينه مرجحه په رفع کښې هغه سلامتيا دے د حذف نه او د تقدير نه او په صورت د نصب کښې لازمه ده حذف او تقدير، چه حذف او تقدير خلاف الاصل دے۔ حذف او تقدير په دے شان، چه زيداً ضربته کښې به مونږ وايو، چه زيداً منصوب دے او عامل ناصب د دے، چه ضربت دے او هغه حذف دے او مقدر دے۔

## او عند وجود اقوى منها كامّا مع غير الطلب۔

او يا مختار دے، رفع په هغه اسم کښې، چه واقع وي په مظان د ما اضمر على شريطة التفسير کښې په وخت د وجود د قرينې مرجحې کښې، چه هغه قوي وي د هغه قرينې مرجحې نه، چه هغه خلاف وي، د رفع نه، يعنې قرينه مرجحه د رفع قوي وي، د قرينې مرجحې د نصب نه، يعنې دلته قرينه مصححه د نصب د پاره هم وي او د رفع د پاره هم وي۔ د غه شان قرينه مرجحه د نصب هم وي او د رفع هم، خو قرينه مرجحه د رفع د اقوى وي، د قرينې مرجحې د نصب نه، لکه "امّا" چه کله په امر يا په نهي باندې داخله نهٔ وي۔ مثال به دا شي، چه "قام زيد و امّا عمرو فضربته"۔ دلته امّا په امر يا په نهي باندې نهٔ دے داخل شوے۔ او س په دے مثال کښې قرينه مصححه د پاره د رفع تجرد د عمرو دے د عوامل لفظيه نه او قرينه مصححه د پاره د نصب هغه وجود د حالت صلوحية التفسير دے او قرينه مرجحه د پاره د رفع هغه دخول د امّا دے او قرينه مرجحه د پاره د نصب هغه عطف دے جملې فعليې باندې۔ ولې دلته کښې قرينه مرجحه د رفع هغه قوي ده، په قرينې مرجحې د نصب باندې، حکه چه امّا نهٔ داخليږي، مګر په اسم باندې لکه بل په دے کښې سلامتيا ده، د حذف او د تقدير نه او په صورت د عطف کښې خو چه څنګه عطف په جملې فعليې باندې د يے فعليه اوځي، د غه شان عطف د جملې اسميې و رباندې هم واڅي او دا امّا يې مقيد کړي په قيد د غير الطلب سره، حکه چه کله چرته دے په امر يا په نهي داخل شي، نو بيا په کښې نصب اولى دے۔

## و اذا للمفاجاة

يعنې "عند وجود اقوى منها كاذا للمفاجاة"۔ يعنې هغه اسم چه واقع وي په مظان د ما اضمر عامله على شريطة التفسير کښې، هغه ذکر وي۔ پس د "اذا" مفاجاتيه نه، نو دلته کښې د ټولو صورت په شان يوه قرينه مصححه د رفع ده، بله قرينه مصححه د نصب ده۔ يوه قرينه مرجحه د رفع ده او بله قرينه مرجحه د نصب ده، خو قرينه مرجحه د رفع

اقویٰ دہ، د قرینې د مرجحې د نصب نہ، لکہ پہ دې مثال کښې چہ 'خرجتُ فاذا زیدٌ یضربہ عمروٌ' دلتہ قرینہ مصححہ د پارہ د رفع هغه تجرد د زید دے، د عوامل د لفظیہ نہ اَؤ قرینہ مصححہ د پارہ د نصب هغه وجود د سالہ صلاحیۃ التفسیر دے۔ قرینہ مرجحہ د پارہ د رفع هغه دخول د اذا دے اَؤ قرینہ مرجحہ د پارہ د نصب هغه عطف د جملې فعلیہ، پہ جملہ فعلیہ باندې۔ ولې دلتہ قرینہ مرجحہ د رفع اقویٰ دہ، د قرینې مرجحې د نصب نہ، ځکہ چہ دلتہ دخول د اذا دے چہ داخلیږی، پہ اِسم باندې اَؤ بل دا چہ دلتہ سلامتیا دہ، د حذف اَؤ د تقدیر نہ۔ **سوال.** مصنفؒ پہ باب د ظروف کښې وئیلی دی، چہ پس د 'اذا مفاجاتیہ' نہ مبتداء لازمہ دہ اَؤ دلتہ کښې وائی چہ رفع اولیٰ دہ۔ **جواب.** مراد پہ لزوم د مبتداء سرہ پہ اعتبار د غلبې سرہ دے، یعنی غلبہ د واقع کیدو د مبتداء پس د اذا مفاجاتیہ نہ۔

**ويختار النصبُ بالعطف علٰی جملةٍ فعليةٍ للتناسب.** اَؤ مختارہ کړې شوې دے نصب پہ عطف سرہ پہ جملہ فعلیہ باندې، د پارہ د رعایت د تناسب، چہ عطف د جملې فعلیې راشی، پہ جملې فعلیې باندې۔ هرکلہ چہ مصنفؒ فارغ شو، د بیان د اختیار د رفع نہ، نو شروع یې اوکړہ، پہ بیان د اختیار د نصب کښې۔ پس وې وئیل چہ 'ويختار النصبُ'۔

**سوال.** مصنفؒ ولې مقدم کړو، بیان د اختیار د رفع؟ بکار دا وہ چہ بیان د اختیار د نصب یې مقدم کړې وے، ځکہ چہ بحث د منصوباتو دے۔ **جواب.** مواضع د اختیار د رفع قلیل وو اَؤ بل دا چہ اختیار د رفع تہ شرافت حاصل دے، ځکہ چہ پہ دې کښې سلامتیا دہ، د حذف اَؤ د تقدیر نہ، لکہ 'خرجت فزیداً لقیتہ'۔ دلتہ اختیار د نصب دے، د پارہ د دې چہ عطف د جملې فعلیې راشی، پہ جملې فعلیې باندې، ځکہ چہ خرجتُ جملہ فعلیہ دہ اَؤ زیداً لقیتہ بہ هم جملہ فعلیہ شی، چہ د زید د پارہ لقیتُ عامل شی۔

**وبعد حرف النفي والاستفهام وإذا الشرطية** اَؤ اختیار د نصب دے، پس د حرف نفی نہ، لکہ 'ما زیداً ضربتہ'۔ دلتہ مصنفؒ حرف النفی یې اووئیلو، ځکہ چہ فعل نفی، لکہ لیس شو، پہ دې کښې رفع واجب دہ بنابر اسمیۃ اَؤ د حرف استفهام نہ پس اختیار د نصب دے اَؤ پس د اذا نہ، چہ منسوب دے، شرط وتہ، لکہ د استفهام مثال 'أزیداً ضربتہ'، اَؤ د اذا مثال، چہ منسوب دی شرط وتہ، لکہ 'اذا زیداً ضربتہ اضربک'، اَؤ اذا شرطیہ سرہ احتراز اوشو د اذا مفاجاتیہ نہ، ځکہ چہ د هغه حکم مخکښې تیر شوې دے۔

**وحيث وفي الأمر والنهي** اَؤ پس د حیث نہ دا عطف دے، پہ 'اذا' باندې، لکہ 'حیثُ زیداً اکرمتہ اکرمک'، اَؤ پہ امر اَؤ پہ نهی کښې دا عطف دے، پہ بعد باندې، یعنی چہ امر اَؤ نهی وروستو د دې نہ واقع شی، لکہ 'زیداً اِضرِبہ'، 'زیداً لاتضربہ'۔

**اذهی مواضع الفعل** حکه چه دا مواضع د فعل دی، لکه نفی شوه یا استفهام شو، دا ملحق کیږی په فعل پورے، د غه شان 'اذا شرطیه' او 'حیث شرطیه' دا نه داخلیږی مګر په فعل باندې (لو چه څوک د دوئ سره فعل نه وی ذکر، نو معلومه شوه چه دلته فعل مقدر دے)۔

# درس نمبر ۱۵۵

**وعند خوف لبس المفسر بالصفة** لو مختاره کیږی شرے دے نصب په هغه اسم کښې چه واقع وی په مظان د ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښې په وخت د خوف د التباس د مفسر کیدو د صفت سره۔ **سوال**۔ التباس د صفت د مفسر سره محال دے، حکه چه مفسر خو په حالت د نصب کښې دے او صفت په حالت د رفع کښې دے، نو دا دواړه څنګه شی جمع کیدے۔ **جواب**۔ مراد په مفسر سره خبر دے مجازاً، حکه چه دا خبر په حالت د نصب کښې مفسر دے۔

**مثل انا کل شیء خلقناه بقدر** مراد په دے ترکیب سره هغه ترکیب دے، کوم چه اسم په کښې منصوب وی په فعل مقدر سره، نو دے مفید وی د ........ یاره د معنی صحیح او که چرته هغه اسم چه واقع دے په مظان د ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښې، دے مرفوع وی، بنا بر ابتدائیت او د دے نه ما بعد ورله قول خبر وی، نو بنا په دے تقدیر باندې دے۔ مفید دے د یاره د معنی صحیح لو دوئم احتمال دا دے، چه دا اسم مرفوع وی، بنا بر ابتدائیت او ما بعد د دے نه چه کوم قریب وی هغه صفت وی او ورپسے تو د دے نه خبر وی، نو بنا په دے تقدیر باندې دے، مفید دے د یاره د معنی فاسدے، نو په صورت د نصب کښې احتمال د معنی فاسدے نشته او په صورت د رفع کښې احتمال د معنی فاسدے شته، نو هغه معنی چه محتمل د فساد نه وی، هغه اولی دی د هغه معنی نه چه محتمل د فساد لری۔ او س په دے مثال کښې کل شیء واقع دے په مظان د ما اضمر عامله کښې، که چرے دے له موږ نصب ورکړو، نو مفید دے د معنی صحیح او دے به منصوب اوګرځی، په فعل مقدر سره، چه خلقنا دے او ورپسے تو خلقناه ورله مفسر شوے دے او په صورت د رفع کښې، که چرے دے مرفوع شی، بنا بر ابتدائیت، نو بیا که چرے ورپسے تو د دے نه دا قول خبر شی، نو دے به مفید اوګرځی د معنی صحیح او تقدیر به دا سے شی چه 'کل شیء مخلوق لنا بقدر' کل شیء به مبتدا شی، 'مخلوق' 'لنا بقدر' به خبر شی او معنی به د غه وخت کښې صحیح وی او بل صورت د رفع دا دے، چه دا اسم به مرفوع وی، بنا بر ابتدائیت او ورپسے تو د دے نه صفت وی او بیا خبر دا خلوی، نو په دے صورت کښې معنی فاسد وګرځی، حکه چه په دغه وخت کښې به تقدیر داسے شی چه 'کل شیء هو مخلوق لنا کائن بقدر'۔ پس دلته به 'شیء' موصوف او 'هو مخلوق لنا' به ورله صفت شی او 'بقدر' به په اعتبار د متعلق سره خبر شی، او س په دغه صورت کښې التباس د مفسر د صفت سره راغلی، او دا معنی فاسده په دے وجه ده، چه په دغه صورت کښې مذهب د معتزله ثابتیږی، حکه چه سرغړوه د معنی واخلو، نو مطلب به دا شی، چه هر هغه شے چه هغه زمونږ

مخلوق دے، نو په دے کښې مخلوق صفت شو د پاره د شي، او صفت تبديږي د پاره د موصوف، نو دا به توجه نه معلومه شي چې بعض شيونه د الله تعالىٰ مخلوق دي او بعض نه دي او داخو نه ده، مګر مذهب د معتزله دے.

**فائده جديده:-** زده کړه دا خبره چې په افعال د عبادو کښې اختلاف دے په مابين د معتزلو او د اهل السنت والجماعت کښې. اهل السنت والجماعت وائي چې انسان د خپلو افعالو په خپله خالق نه دے، بلکه د دے خالق حقيقي الله پاک (تبارک وتعالىٰ عزوجل) دے او معتزله وائي چې انسان د خپلو افعالو په خپله خالق دے، ځکه چې که چرته دے په خپله د خپلو افعالو خالق نه شي، نو بيا به الله تعالىٰ جزا او سزا په څه ورکوي، نو دوي منکر دي د تقدير نه، مثلاً کرلو سړي په تقدير دا ليک دے چې دے به قتل کوي. اوس که چرته دے قتل اوکړي، نو دے قاتل شو، اوس چې الله تعالىٰ دے له سزا ورکوي، نو دوي وائي چې داخو بعينه ظلم دے، په دے وجه که سزا مستحق به دے هله کيږي، چې دے دا عمل په خپل اختيار اوکړي، نو په دے وجه دوي ځان ته اهل عدل والتوحيد وائي او بل دليل د دوي دا دے چې په قرآن کښې الله تعالىٰ فرمائيلي دي چې "فتبارک الله احسن الخالقين". ملته الله تعالىٰ خالقين راوړے، نو که چرته د الله تعالىٰ نه علاوه بل خالق نه وے، نو بيا الله تعالىٰ ولې خالقين راوړلي، نو دا به نه معلومه شوه، چې انسان د خپلو افعالو خالق دے. جواب ورته دا دے، چې ملته کښې خالقين په معنىٰ د "أَحْسَنُ الْمُصَوِّرِيْنَ" دے، نو معتزله وائي چې انسان مختار دے او ده ته په خپلو افعالو باندې کامل قدرة حاصل دے، د دوي په مقابله کښې جبريه دي، هغوي وائي چې انسان مجبور محض دے، لکه د کټه پوشان، چې څنګه کټه بے اختياره ده، دغه شان انسان هم دے.

**نکته:-** د معتزله (چې دوي ته قدريه هم وائي) او جبريه د دواړو د باره دليل د قرآن دا آيت دے، چې په يوه حصه باندې قدريه استدلال نيسي او په بله حصه باندې جبريه استدلال نيسي، هغه دليل دا دے چې "اياک نعبد واياک نستعين"، په "اياک نعبد" باندې قدريه دليل نيسي. وائي چې موږ ته په خپلو افعالو باندې اختيار دے، نو موږ ستا عبادت کوو، او که جبريه وائي چې "واياک نستعين" اے الله! موږ مجبور يو او ستا نه طلب د امداد کوو.

**حکايت:-** مولانا روم رحمه الله دا حکايت په خپل مشهور کتاب "مثنوي" کښې کړے دے، چې "يو ځل حضرت علي کرم الله وجهه ته يو سړے راغے، او تپوس ئے ترے نه اوکړو، چې انسان مختار دے، که مجبور دے، نو هغوي ورته اوفرمائيل، چې "ما يو پښه اوچته کړه" هغه ولاړ وو او يو پښه ئے اوچته کړه، بيا ئے ورته اوفرمائيل چې "دا پښه په خپل حالت دغه شان ولاړه پريږده او دا دويمه پښه اوچته کړه". هغه کوشش اوکړو، خو بله پښه ئے اوچته نه کړے شوه. حضرت علي رضي الله عنه ورته اوفرمائيل، چې "د يوے پښے د اوچتولو اختيار درته شته د دے وجه ته مختار يې او د يوے پښے سره مقابله پښے د اوچتولو اختيار درته نشته، نو د دے وجه نه مجبور يې".

**لطيفه:-** يو جبريه سړے د بل سړي باغ ته د غلا د پاره لاړو، چې ميوه غلا ئے شروع کړه، نو د باغ مالک ورباندې راغے او ورته ئے اووئيل، چې ته ولے غلا کوے، نو ده ورته اووئيل، چې نه خو ئے خبر دے...

اَللّٰه دَ کوبنه راروان کړم، ځکه چه زهٔ خو لعبود اَللّٰه دَ حکم نه یو قدم هُم نهٔ شم پورته کولے اَؤ بیا یے سنا باغ طرف ته متوجه کړم اَؤ بیا یے رَاله لاس اَوچت کړو اَؤ دَ دے میوو دَ شکولو طاقت یے را پیدا کړهٔ په دے کښے خو زما هیڅ ګُناه نِشته ـــــ هغه مالک ورته اووے، چه "سنه بصبر او کړه" هغه چوکه را واخسته اَؤ دے غل له یے راخلاصه کړه، هغه ضارب ورته اووے، چه په دے کښے خو زما اختیار نِشته، خدائے پاک زما په لاس کښے طاقت پیدا کړو اَؤ لاس یے راله چوکے ته ښکته کړو اَؤ بیا یے راله ما چوکه راکړه اَؤ بیا یے راله لاس اوچت اوکړو اَؤ چوکه یے تاله راخلاصه کړه، زما خو خپله څهٔ اِختیار نِشته، نو مونږ اَهل السنت والجماعت په "وابتغ بین ذالك سبیلا" باندے عمل کوو ـ

# درس نمبر ۱۵۶

**وليستوى الامران فى مثل زيدقام وعمرواً اكرمته.** اَؤ مساوی دی، دواړه امرونه چه رفع ده اَؤ نصب دے، یعنی اختیار په کښے د یو نشته، په مثل دَ دے ترکیب کښے مراد په دے ترکیب سره هر هغه ترکیب دے، چه عطف دَ هغه جملے را غلے وی، چه واقع دے په کښے هغه اِسم چه واقع دے په مظان دَ ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښے په بله جُمله باندِ، چه دے جملے له دوه جهته دی، یو جهت دَ اِسمیة په اعتبار دَ مبتدا سره اَؤ بل جهت دَ فعلیت په اعتبار دَ خبر سره، مثلاً "زیدٌ قام" دا اوله جُمله ده، چه د دے کل واخستے شی، نو دا کبری ده اَؤ چه جزء یے واخلے، چه "قام" دے، نو "قام" فعل دے اَؤ ضمیر په کښے مستتر دے، هغه یے فاعل دے، فعل سره دَ فاعل نه دا جمله فعلیه ده، نو چونکه "قام" جزء دے، دَ دے کل نه، نو دا صغری شوه ـ اَوس که چرته عطف دَ دے بلے جملے چه "عمرواً اکرمته" ده، په کبری باندِ راشی، نو دا تقاضا دَ رفع کوی اَؤ زید خو مرفوع دے، بنا بر ابتدائیت، عمرواً به هُم مرفوع شی، چه عطف شی په زید باندِ اَؤ چه عطف دَ دے په صغری باندِ راشی، نو بیا دا تقاضا دَ نصب کوی، ځکه چه دے به منصوب اکرمتُ په فعل سره اَؤ اکرمته به دَ دهٔ دَ پاره تفسیر اوګرځی، نو اَوس دلته رفع هم جائز ده اَؤ نصب هم، اَؤ دواړه برابر دی، یعنی یو ته څهٔ ترجیح په بل نه ده حاصله ـ **سوال** . عطف په صغری باندِ نهٔ صحیح کیږی، ځکه چه صغری مشتمله ده، په ضمیر باندِ چه راجع دے مبتدا وته اَؤ دَ هغه شان ضمیر په معطوف کښے نِشته ـ

**جواب** . ضمیر عام دے، لفظاً وی که تقدیراً ـ دلته اګر که لفظاً ضمیر نِشته، خو تقدیراً شته، نو تقدیر به داسے شی، چه زُید قام وعمرواً اکرمته عنده یا اکرمتهٔ فی داره ـ **سوال** . مناسب داده، چه دلته اختیار دَ رفع وے، ځکه چه په صورت کا رفع کښے سلامتیا ده، که حذف اَؤ دَ تقدیر نه، نو دا مرجع پیدا شو ـ **جواب** . که په یو کښے سلامتیا ده دَ حذف نه، نو په صورت دَ نصب کښے معطوف، معطوف علیه ته قریب دے، نو سلامتیا دَ حذف نه دا معارض شوه، دَ قرب دَ معطوف علیه سره ـ **سوال** . تفاوت په صغری اَؤ په کبری کښے، په قرب لږ په بعد کښے نِشته دے، ځکه چه دواړه جملے غیر مفصولے دی ـ **جواب** . عدم تفاوت په مابین دَ صغری اَؤ کبری کښے په اِعتبار دَ منتهی دَ جملتین سره دے اَؤ

په اعتبار د مبتدا د جملتین سره صغریٰ قریبه ده او کبریٰ بعیده ده۔

## درس نمبر ۱۵۷

**وَيَجِبُ النَّصْبُ بَعْدَ حَرْفِ الشَّرْطِ وَحَرْفِ التَّحْضِيضِ.**

او واجب دے نصب په هغه اسم کښې، چه واقع وي، په مثال د ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښې، چه هغه واقع وي پس د حرف شرط نه او یا واقع وي، پس د حرف تحضیض نه. د حرف شرط نه، چه وروسته واقع شي۔ برابره خبره ده چه دا حرفِ شرط صراحتاً وي او که ضمناً وي، ځکه چه حرف شرط داخليږي په فعل باندې او دا ځکه داخليږي په فعل باندې چه شرط راځي په هغه ځائے کښې چه په هغه کښې احتمال او تردد وي او احتمال او تردد نه راځي، مګر په فعل کښې۔ پس حرف شرط داخليږي په فعل باندې۔ اوس هر کله چه حرف شرط داخل وي په یو ترکیب کښې په اسم باندې، نو هلته به دا خبره معلومه شي چه دوه داخل دے په فعل باندې، خو هغه حذف شوے دے او دغه شان حروف تحضیض هم دي، چه هغه هلّا لولا لوما او الّا دي، دا داخليږي په فعل باندې او دا ځکه چه دوي وضع شوي دي د پاره د لوم او د توبیخ او دغه شان د پاره د تحریض او دا ځيزونه نه راځي، مګر په فعل کښې۔ پس دوي داخليږي په فعل باندې۔

**مِثْلُ اِنْ زَيْداً ضَرَبْتَهُ ضَرَبَكَ وَاَلَّا زَيْداً ضَرَبْتَهُ.**

"ان زيدا ضربته ضربك" دا مثال د حرف شرط دے چه داخل دی په اسم، نو دلته واجب دے، نصب د زيد، ځکه چه دے منصوب دے بنا په فعل مقدر او وجه ئې دا ده چه ان داخليږي په فعل باندې او دلته داخل دے په اسم۔ پس معلومه شوه دا خبره چه دلته فعل حذف دے، نو تقدیر د عبارت به داسې شي چه "ان ضربت زيداً ضربته ضربك" او "الّا زيداً ضربته" دا مثال د حرف تحضیض دے۔ دلته حرف تحضیض داخل دے په اسم باندې، نو معلومه شوه چه دلته فعل حذف دے، ځکه چه حرف تحضیض په فعل داخليږي۔ پس تقدیر د عبارت به داسې شي چه "الّا ضربت زيداً ضربته"۔

**وَلَيْسَ اَزَيْدٌ ذُهِبَ بِهِ مِنْهُ فَالرَّفْعُ**

په دې عبارت سره مصنف دفع د یو سوال کړي۔ **سوال:** تاسو مخکښې وئیلي دي چه هغه اسم چه واقع وي په مثال د ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښې، نو چه کله هغه اسم واقع شي پس د حرف استفهام نه، په هغه کښې اختیار د نصب دے، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې ترکیب سره چه "ازيدٌ ذهب به"، ځکه چه دلته زيد واقع دے، پس د حرف استفهام نه او سره د دې نه دلته تعین د رفع دے او اختیار د نصب نشته، نو مصنف **جواب** اوکړو چه دا ترکیب د باب ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر د قبیله نه نه دے۔ پس دلته لازمه ده. او دا په دې وجه د ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر نه نه دے، چه شرط په ما اضمر عامله کښې دا دے چه مفسر به ممکن التسلیط وي او دلته دا فعل ممکن التسلیط نه دے، ځکه چه دا فعل لازم دے، نو

دے اِسم لره نصب بنا بر مفعولیت نهٔ شی ورکولے۔ **سوال**. دَ ذهب په ځائے دِ اُذهب فعل متعدی کړے شی، لو دے په وړله نصب ورکړی۔ **جواب**. اُذهب فعل مجهول دے، دَ دهٔ نه پس به اِسم مرفوع وی، بنا بر مفعول ما لم یسم فاعله۔ **سوال**. دَ دِے سره بل مناسب فعل راواخله او په دِے زید بانډِے ئے داخل کړه، چه نصب وړله ورکړی، مثلاً لکه 'یلابس' شو۔ **جواب**. مُراد په مناسب سره هغه دے، چه مرادف وی، دَ فعل سره او یا لازم وی، دَ فعل سره، سره دَ اِنعقاد نه په مسند الیه کښے او حالته اِنعقاد په مسند الیه کښې نشته۔

## وکذالك کل شیءٍ فعلوه فی الزُّبُر

په دِے عبارت سره مصنفؒ یو شبه لرے کوی۔

**سوال**. تاسو وئیلی دی، چه هغه اِسم چه واقع وی، په مظان دَ ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښے، چه موجود شی په دِے کښے دَ دهٔ قرینه مصحح، چه هغه دَ جانبین نه وی، خو قرینه دَ رفع اقوی وی، دَ قرینه دَ نصب نه، نو هغه کښے اِختیار دَ رفع دے، نو دا قاعده منقوضه شوه، په دِے مشهوره ترکیب سره کچه 'کل شیءٍ فعلوه فی الزُّبُر'، ځکه چه دا دِے قبیلے نه نهٔ دے او سره دَ دِے نه په دِے کښے اِختیار دَ رفع نهٔ دے، بلکه تعین دَ رفع دے۔ **جواب** او کړو مصنفؒ په دِے قول سره، 'وکذالك کل شیءٍ فعلوه فی الزُّبُر'، چه دا ترکیب هم دَ ځکښے ترکیب په شان دَ ما اضمر عامله دَ قبیلے نه نهٔ دے، ځکه چه په ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر کښې، شرط دا دے، چه وی به مفسر ممکن التسلیط او دلته دا فعل ممکن التسلیط نهٔ دے ځکه چه که چرته دا فعل موخر په اِسم بانډِے داخل کړو، یعنی 'فعلوه کلَّ شیءٍ'، او داوائیو نو معنیٰ کښے فساد لازمیږی، ځکه چه زُبُر عمل دَ افعالُ دَ عبادُ نهٔ دے، بلکه دا فعل دَ کوامِ کاتبین دے، یعنی په دغه صحیفو کښے کتابت کوامِ کاتبین کوی، په دلیل دَ دِے قول دَ باری تعالیٰ 'وکل صغیرٍ وکبیرٍ مستطرٌ' (په بعضو عبارت کښے کلُّ دا هغه اِسم دے، چه واقع دے، په مظان دَ ما اضمر عامله علیٰ شریطة التفسیر کښے)

## ونحو الزانیة والزانی فاجلدوا کل واحدٍ منهما

په دِے عبارت سره مصنفؒ دفع دَ سوال کوی۔ **سوال** دا دے، چه هغه اِسم چه واقع وی، په مظان دَ ما اضمر عامله علیٰ شریطة التفسیر کښے، چه دَ هغه نه وروستو امر او یا نهی راشی، نو په هغے کښے اِختیار دَ نصب وی، دا قاعده ستا منقوضه شوه، په دِے ترکیب سره، چه 'الزانیة والزانی فاجلدوا' الآیة، ځکه چه دلته 'الزانیة والزانی' ذکر دی، په مظان دَ ما اضمر عامله علیٰ شریطة التفسیر کښے، او دَ دویٔ نه وروستو امر راغلے دے، چه 'فاجلدوا' دے، نو بکار دا چه په دِے کښے هم اِختیار دَ نصب وے، نو جواب او کړو مصنفؒ په دِے عبارت سره چه 'نحو الزانیة الخ'۔ دلته په دِے کښے تعین دَ رفع په دوه وجه بانډِے دے، چه دَ قراء سبعهؒ اتفاق په دِے بانډِے دے، چه دا مرفوع دی او په قراءة شاذه کښے دا منصوب راغلے دے۔ پس مخالفت دَ دوے ضابطے نه دَ استثناء دَ باره لا لکه، ځکه که چرته دَ ضابطے موافق عمل کوی، نو لازمیږی، مخالفت دَ قراء سبعهؒ دَ اتفاق نه پس متعین شو رفع.

## الفاء بمعنی الشرط عند المبرّد

په فاجلدوا کښے دا فاء په معنیٰ دَ شرط بانډِے، په وړه

ابوالعباس مبرد، ځکه چه په الزانية کښې الف لام په معنیٰ د اللتی سره دے لکه زانیه به په تاویل د تزنی سره شی، او دا به مبتدا او ګرځی به متضمن د معنیٰ د شرط لره او فاء به جزائیه راشی دغه شان په الزانی کښې هم، او هر کله چه دا فاء جزائیه شوه، نو دا عمل نه کوی یعنی مابعد د دے عمل نه کوی په ماقبل کښې ـ پس فاجلدوا او امکن التسلیط نه شی ځکه چه مسه ویوستو دے، د فاء نه، او شرط په ما اضمر عامله کښې دا دے چه دا به ممکن التسلیط وی۔

**وَجُمْلَتَانِ عِنْدَ سِيْبَوَيْهِ** او په نزد د سیبویه بانډې دا دوه جملے مستقلے دی، په دے شان سره چه الزانیة او الزانی مبتدا سره مضاف حذف دے او خبر یے هم حذف دی، نو تقدیر به دا دے شی، چه حکم الزانیة والزانی فیما یتلی علیکم، دا یو جمله مستقله شوه او فاجلدوا کل واحد منهما دا بله جمله شوه، جمله مستقله تفسیر واقع شوی ده، د پاره د ماقبل جملے، نو دا فاء د سیبویه په نزد زائده ده او د پاره د تفسیر لغوی ده او یو جمله په بله جمله کښې عمل نه شی کولے، نو ملته فاجلدوا په ماقبل کښې عمل نه شی کولے نو دا ممکن التسلیط نه شو ـ پس شرط د ما اضمر عامله په کښې موجود نه شو، نو دا د قبیلے د ما اضمر عامله نه نه شو۔

**وَإِلَّا فَالْمُخْتَارُ النَّصْبُ** او که چرته دا سے نه وی، لکه چه ځنګه مبرد وائی چه دا فاء د پاره د شرط ده او یا لکه چه ځنګے سیبویه وائی چه دا دواړه جملے مستقلے دی، نو مختاره نصب دے، ولے دا نه دے صحیح، ځکه چه په دغه وخت کښې لازمیږی، مخالفت د اتفاق د قراء سبعه نه د یه وجه دا چه معنی یا په مذهب د مبرد حمل کوؤ او یا په مذهب سیبویه بانډې۔

## درس نمبر ۱۵۸

**الرَّابِعُ التَّحْذِيرُ وَهُوَ مَعْمُولٌ بِتَقْدِيرِ اتَّقِ** څلورم ځائے د دغه مواضع اربعه نه چه حذف د عامل ناصبه د مفعول به په کښې راځی، د وجه د موجود د قرینے او د سد نه چه حذف وجوبی قیاسی سره، دغه موضع د تحذیر دے ـ قرینه دلته کښې نصب د معمول دے او سد مسد دلته کښې اقامت د معمول دے په ځائے د عامل بانډې ـ نو دغه کښې ماخوذ چه تحذیر په لغت کښې تعویف عن الشیء وتبعید عنه ته وائی او په اصطلاح د نحاتو کښې هو معمول بتقدیر اتق دا هغه اسم دے چه دے منصوب واقع شوے وی، په اتق سره چه هغه مقدر وی ـ **سوال** ـ معمول صیغه د اسم مفعول ده لو دا ذات مع الوصف دے او هو ضمیر راجع دے تحذیر ته چه هغه مصدر دے او مصدر صرف وصف دے نو حمل د ذات مع الوصف راغلے، په صرف وصف بانډې او دا باطل دے ـ **جواب** ـ مراد په تحذیر سره لغوی تحذیر نه دے بلکه اصطلاحی دے او په اصطلاح کښې تحذیر دا اسم دے د ایاک او د الزاعو د مفعول به نه۔

**سوال** ـ ستا دا تعریف مانع او منه کی حنیدو د دخول د غیره نه او داخل شو په کښې هغه ضمیر مرفوع چه مستتر دے په اتق کښې، ځکه چه دغه خو هم معمول د اتق دے ـ **جواب** ـ مراد په معمول سره د نصب دے او ضمیر چه مستتر دے په اتق کښې هغه ضمیر د رفع دے ـ **سوال** ـ تقدیر به ځنګه عمل کوی، ځکه چه دے خو عمل نه

شي كړي ـ **جواب** ـ دلته په عبارت کښې قلب اؤ تاويل دے ـ قلب داسے چې "وهو معمول بالتق مقدرا" اؤ تقدير يې "مؤثر شي په متعد اسره اؤ مسه به متأثر شي د اتق نه"، فاندفع الاعتراض كما ورد.

**تحذيراً مما بعده**

تحذيراً يا منصوب دے بناء په دے باندې چې دے مفعول مطلق دے، د پاره د فعل مقدر چې حذر دے اؤ يا دا مفعول له دے، د پاره د فعل محذوف چې هغه ذكر دے بناء په اوّل تقدير به معنیٰ داسے شي چې "يحذر ذالك المعمول تحذيراً مما بعده" اؤ بنا په دويم تقدير به معنیٰ داشي چې "ذكر ذالك المعمول تحذيراً مما بعده".

**او ذكر المحذر منه مكرراً**

اؤ يا ذكر د محذر مكرر دى ـ دا دويمه نوعه اؤ قسم د تحذير دے اؤ دا عطف دے په تحذيراً باندې ـ **سوال** ـ عطف د "او ذكر المحذر منه" په "تحذيراً مما بعده" باندې نه صحيح كيږي، ځكه چې تحذيراً مفرد دے اؤ "ذكر المحذر منه" دا جمله ده اؤ عطف د جملې په مفرد باندې غير صحيح دے ـ **جواب** ـ دلته دا عطف صحيح دے ځكه چې په جانب د معطوف عليه کښې حذر اؤ ذكر فعل مقدر دے، تقدير به داسے شي چې "حذر تحذيراً" يا دا چې "ذكر لك تحذيراً" ـ **سوال** ـ عطف په حذر اؤ يا په ذكر باندې هم نه دے صحيح، ځكه چې په جانب د معطوف عليه کښې ضمير راجع دے معمول ته، اؤ په معطوف کښې داسے ضمير نشته اؤ حالانكه حكم د معطوف اؤ معطوف عليه يو وي ـ **جواب** ـ دلته ذكر د عائد مقدر دے، هغه به داسے شي چې "او ذكر المحذر منه من نوعه" ـ دويم جواب دا دے چې كلكه حكم د معطوف عليه اؤ د معطوف جدا وي، لكه "رب شاة وسخلتها"، نو دلته دخول د رب ممتنع دے په معطوف باندې ـ دريم جواب دا دے چې دلته ضمير ته ضرورت نشته، ځكه چې وضع د ظاهر راغلې ده، په ځائے د ضمير باندې ـ **سوال** ـ په تعريف د تحذير کښې تالفظ د "او" راوړے دے اؤ دا راغلې د پاره د تشكيك اؤ تشكيك منافي دے د تعريف سره ـ **جواب** ـ دا د پاره د تشكيك نه دے، بلكه دا د پاره د تنويع دے ـ

**ضابطه**

اوس نه كړه دا خبره چې تحذير كله محذوف وي، نو شرط په دے کښې ذكر د محذر منه دے، د پاره د ايقاظ اؤ د تنبيه د مخاطب اؤ چې تحذير كله محذف منه وي، نو شرط پکښې تكرار د محذر منه دے اؤ چې تحذير كله محذوف وي، نو محذر منه به يا اِسم صريحي وي اؤ يا به اِسم تاويلي وي، كه چرته اِسم صريحي وي، نو بيا به دا يا مذكور وي په واؤ سره اؤ يا په مِنْ سره اؤ كه چرته اِسم تاويلي وي، نو بيا به دا يا مذكور وي په واؤ سره يا په مِنْ سره اؤ يا په تقدير د مِنْ سره ـ

**مثل اياك والاسد**

دا په اصل کښې وو "اتق نفسك من الاسد والاسد من نفسك"، نو د جانب د معطوف نه من نفسك حذف كړے شو اؤ اكتفاء اوكړے شوه په هغه اسے باندې چې كوم په جانب د معطوف کښې ذكر دے، بيا تقدير د عبارت داسے شو چې "اتق نفسك والاسد"، بيا

حذف کړے شی اتق، دَ وجے دَ ضیقت دَ مقام نه، نو باقی پاتے شو، نفسك والاسد. بیا نفس هم حذف کړے شی براے تخفیف، ځکه چه دا نفس خو راوړے شوے وو دَ پاره دَ فصل په مابین دَ ضمیر دَ فاعل او دَ مفعول کښے ځکه چه قاعده ده، په هغه فعل کښے چه هغه دَ افعال قلوب نه نه وی، نو په هغه کښے چه ضمیر دَ فاعل او دَ مفعول راشی، چه هغه راجع وی شئ واحد ته، نو دَ دواړو په مابین کښے دَ فصل دَ پاره نفس راوړلے شی، نو چه هر کله اتق حذف کړے شو، نو نفس هم ورپسے حذف کړے شو، اوس پاتے شو، ك والاسد، نو بیا په ځائے دَ ضمیر منصوب متصل موږ ضمیر منفصل راوړلو، نو ایاك والاسد شو. دا مثال دَ هغه دے، چه تحذیر په کښے محذر وی او محذر منه اسم صریح وی او مذکور وی په واؤ سره.

# درس نمبر ۱۵۹

## وایاك وان تحذف

دا مثال دَ هغه دے، چه تحذیر په کښے محذور او محذر منه اسم تاویلی وی او مذکور وی په واؤ سره. دلته کښے دا اسم تاویلی دے، ځکه چه په دے فعل باندے ان داخل دے او دا به په تاویل دَ مصدر سره کیږی.

سوال. مخکښے مصنف دَ تحذیر په تعریف کښے دَ تحذیر دوه قسمه ذکر کړل، نو پکار دا ده چه دا لو مثال دِ دَ اول قسم شی، او دا دویم مثال دِ دَ دویم قسم شی، حالانکه اول مثال خو دَ قسم اول دَ پاره صحیح کیدے شی، خو دا دویم مثال دَ دویم قسم دَ پاره نه صحیح کیږی[2]

جواب. دا دواړه مثالونه دَ قسم اول دی، ځکه چه قسم اول په دوه قسمه دے، یو هغه دے چه محذر منه په کښے اسم صریح وی، او بل هغه دے چه محذر منه په کښے اسم تاویلی وی. او س دلته دا دویم مثال دَ پاره دَ تحذیر دَ دویم قسم نه شی صحیح کیدے، ځکه چه دَ تحذیر دویم قسم دا دے، چه تحذیر په کښے محذر منه وی او تکرار دَ محذر منه راغلے وی، په دے مثال کښے نه تحذیر دَ محذر منه سره او نه تکرار دَ محذر منه راغلے دے. سوال. دَ وضاحت دَ ممثل دَ پاره خو یو مثال کافی وو، دوه مثالونه یے ولے راوړل؟ جواب. دلته دوه قسمه دی، یعنی ممثل دوه دی، نو مثالونه یے هم دوه راوړل. سوال. عطف دَ اسد په ایاك باندے نه صحیح کیږی، ځکه چه تقدیر[3] په دغه صورت کښے دا دے، چه ایاك والاسد، یعنی اتق نفسك من الاسد والاسد من نفسك (اتق الاسد من نفسك)،

---

[1]. په حذف وجوبی قیاسی سره، نو دغه لپاره نفس هم حذف کړے شه، لانه فصل بین ضمیر المتصل والمنفصل. ۱۲ (م.س)

[2]. ځکه چه قسم ثانی دَ تحذیر خو هغه دے، چه په هغه کښے تکرار دَ محذر منه راغلے وی او دلته تکرار نشته او بل دا چه په دے کښے تحذیر محذر منه هم دے. ۱۲ (م.س)

[3]. قاعده دا ده چه عامل دَ معطوف په معطوف علیه کښے مقدم وی نو تقدیر به داسے شی کما ذکر استاذی المحترم. ۱۲ (م.س)

نو القاء دَ اسد دَ نفس نه متعذر ده. **جواب.** دا اطلاق مبالغتاً دے، لو په حقیقت کښے القاء دَ اسد دَ نفس نه، القاء دَ نفس ده، دَ اسد نه (مُراد په نفس سره نفس انسانی دے).

**والطریق الطریق** | دا مثال دَ تحذیر دَ دوئم قسم دے، چه تحذیر کښے محذر منه وی، او تکرار دَ محذر منه راغلے وی، نو تقدیر به دا سے شی، چه "اتق الطریق".

**سوال.** تقدیر دَ اتق په اوّلنی قسم دَ تحذیر کښے نه دے صحیح، ځکه چه دا فعل لازمی دے او فعل لازم عمل دَ نصب په مفعولیت سره نه کوی او تقدیر دَ بعّد په دوئم قسم دَ تحذیر کښے نه دے صحیح، ځکه چه معنیٰ دَ دوئم مثال (دَ تحذیر دَ قسم ثانی چه الطریق الطریق دے) به دا شی، چه "اتق النفس عن الطریق" دا نه چه "بعّد الطریق عن النفس". **جواب.** په تعریف دَ تحذیر کښے به موږ ترمیم اوکړو، هغه دا دے، چه "وهو معمول بتقدیر اتق وبعّد"، نو بعّد به لعض افرادو دَ قسم اوّل دَ تحذیر کښے او په بعض افرادو دَ تحذیر دَ قسم ثانی کښے مقدر کیدے شی، لکه "بعّد نفسك من الاسد والاسد من نفسك" او لکه "نفسك نفسك" یعنی "بعّد نفسك"، او مقدر کیږی "اتق" په بعض افرادو دَ دوئم قسم دَ تحذیر کښے لکه "اتق الطریق" (په "الطریق الطریق" کښے). **سوال.** تقدیر دَ اتق په دوئم قسم کښے نه دے صحیح، ځکه چه اتق فعل لازم دے او فعل لازم نصب بنابر مفعولیت نه شی کولے. **جواب.** تقدیر دَ اتق په بعض افرادو دَ دوئم قسم کښے دا دَ باب دَ حذف دَ ایصال نه دے. حذف ایصال وئیلے شو ته ولے چه په فعل لازمی، چه هرکله هغه متعدی کړے شوے وی، په حرف جر سره لو بیا دا حرف جر حذف کړے شی او نصب په خپل حال باندې باقی پاتے شی، نو دے ته حذف ایصال وائی. **سوال** دا راځی، چه تقدیر دَ اتق مو په اوّل قسم دَ تحذیر کښے دَ قبیلے دَ حذف ایصال نه اوګرځی. **جواب.** حذف ایصال دا لو امر سماعی دے، په دے باندې بل شئ نه شی قیاس کیدے. **سوال.** "نفسك نفسك" دا دوئم قسم دَ تحذیر نه دے، ځکه چه دوئم قسم دَ تحذیر ځی دا دے، چه تحذیر محذر منه او تکرار دَ محذر به راغلے وی لو دلته خو تحذیر محذر دے، نه محذر منه. **جواب.** "نفسك نفسك" په اصل کښے دا دے، چه "بعّد نفسك مما یوذیك من العجب والتکبر"، خو په دے جواب باندې **سوال** وارد یږی، چه بنا په دے تقدیر هم نفسك محذر دے. **جواب.** نفسك اګرکه محذر دے، لیکن دے محذر منه دے، په اعتبار دَ لازم سره، ځکه چه عجب او تکبر ورسره لازم دی. **سوال.** "ایاك والاسد" دا دَ تحذیر دَ افرادو نه دے، ولے دے خارج دے دَ دواړو قسمونو دَ تحذیر نه، نو ستا دا تعریف دَ تحذیر جامع نه شو، په اوّل قسم کښے، ځکه چه شرط په اوّل قسم کښے دا دے، چه تحذیر به محذر وی او اسد خو محذر منه دے او په قسم ثانی کښے په دے وجه نه دے داخل، چه شرط په قسم ثانی کښے دا دے، چه تکرار به دَ محذر منه راغلے وی او دلته تکرار دَ محذر منه نه دے راغلے.

جواب: کهٔ چرته داد تعریف د تحذیر نه اوځی، نو په دے کښے څهٔ نقصان نشته دے، ځکه چه دا تابع د تحذیر دے۔

**وتقول ایاك من الاسد** دا مثال د هغه دے چه تحذیر په کښے محذر وی اؤ محذر منه اسم صریحی وی اؤ مذکور وی، په مِنْ سره۔

**ومن ان تحذف** دا مثال د هغه دے چه تحذیر په کښے محذر وی اؤ محذر منه اسم تاویلی وی، په مِنْ سره، "ایاك وان تحذف" دا قول قول د حضرت عمر رضی الله عنه دے فرمائیلی چه "ایاك وان تحذف الارنب بالعصا"۔ حذف په معنیٰ د ولی سره دے۔

**وایاك وان تحذف بتقدیر من** دا مثال د هغه دے چه تحذیر په کښے محذر وی، اؤ محذر منه اسم تاویلی وی اؤ بیا مذکور وی، په تقدیر د من سره۔ دلته من مقدر دے، په دے وجه باندے چه مِنْ حرف جار دے اؤ حذف د حروف جاره سره د ان وغیره نه دا قیاسی دے، نو ځکه معنیٰ دا خبره کړی وه چه محذر منه اسم صریحی وی، په هغه کښے به یا مذکور وی، په واؤ سره اؤ یا به مذکور وی، په مِنْ سره اؤ چه کله تاویلی وی، نو یا به مذکور وی، په واؤ یا په مِنْ سره اؤ یا په تقدیر د مِنْ سره۔

**ولا تقول ایاك الاسد لامتناع تقدیر من.** اؤ دا سے نه شی ویلے چه "ایاك الاسد"، چه من مقدر کړے شی، ځکه چه په اسم صریحی کښے تقدیر د من ممتنع دے۔
سوال: صحیح دا خبره ولے کیدے شی چه دلته کښے حرف عطف حذف شوے وی۔ جواب: حذف د حروف جاره سره د ان وغیره نه خو قیاسی دے لیکن حذف د حرف عطف شاذ دے۔

## درس نمبر ۱۶۰

**المفعول فیه هو ما فعل فیه فعل مذکور** بعض د منصوبات نه یا د جنس منصوب نه، هغه مفعول فیه دے۔ دا مفعول فیه هغه اسم دے چه کړے شوے وی، په دے کښے هغه فعل چه ذکر وی، ځکه چه د ده نه اؤ مذکور عام دے، مطابقاً وی که تضمناً، لفظاً وی که تقدیراً اؤ حقیقتاً وی که شبه فعل وی، دا تعمیمات چه مونږ په تعریف کښے اوکړل، دا د پاره د دفع د اعتراضاتو۔ سوال: ظاهر متبادر د فعل نه فعل اصطلاحی مراد دے، چه لفت دے اؤ حدث دے اؤ زمانه ده اؤ قایل د پاره د ذکر فقط حدث دے، نو ما قول ستاسو صحیح کیږی، چه "ما فعل فیه فعل مذکور"۔ جواب: دلته کښے مراد د فعل نه فعل لغوی دے، چه حدث دے۔ سوال: هر کله چه فعل سره مراد فعل لغوی دے، نو ستاسو دا تعریف مانع وُنه کړهٔ شُو،

خپلو افرادو لره اَوْ خارج شوے نه دے ترکیب لکه 'ضربتُ یوم الجمعة'، ځکه چه حدث په دے کښې ذکر نه دے۔ جواب۔ مذکور عام دے، مطابقةً وی که تضمناً۔ دلته کښې اگر که مطابقةً نه دے خو تضمناً دے، ځکه چه ضربتُ متضمن دے، معنیٰ د حدث لره، چه ضرب دے اَوْ د مطابقة مثال به داشی، چه 'ضربی یوم الجمعة'۔ سوال۔ ستا دا تعریف جامع نه شو، خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو، ترے نه دا ترکیب، چه 'یوم الجمعة ضربتُ فیه'، ځکه چه دلته مخکښې فعل نه دے مذکور، نه مطابقةً اَوْ نه تضمناً۔ جواب۔ فعل عام دے، لفظاً وی که تقدیراً۔ دلته کښې اگر که لفظاً نه دے، ولے تقدیراً ذکر دے۔ تقدیر د عبارت دا دے، چه 'ضربت یوم الجمعة ضربت فیه'، اَوْ دا وروستو فعل د تفسیر د هغه محذوف واقع شوے دے۔ سوال۔ ستا دا تعریف جامع نه نه کو ځکه چه خپلو افرادو لره اَوْ خارج شو ترے نه دا ترکیب، چه 'انا ضاربٌ یوم الجمعة'، ځکه چه دلته فعل نه لفظاً دے اَوْ نه تقدیراً۔ جواب۔ فعل عام دے، حقیقتاً وی که شبه فعل وی۔ دلته اگر که حقیقتاً فعل نشته، خو شبه فعل موجود دے، چه 'ضاربٌ' دے۔ سوال۔ ستا دا تعریف مانع او نه گرځیدو، د دخول د غیرونه اَوْ داخل شو، په کښې مفعول به، په دے ترکیب کښې، چه 'شهدتُ یوم الجمعة'، ځکه چه یوم الجمعة اسم دے، چه فعل فیه فعل مذکور چه شهود دے اَوْ شهود د یوم الجمعة نه دے، بلکې یوم الجمعه ده۔ جواب۔ قید د حیث په کښې معتبر دے، یعنی 'مفعول فیه هو ما فعل فیه فعل مذکور' د دے حیث نه چه فعل مذکور په دے کښې شوے دے، نه دا چه ملتبع دے په ده باندے فعل۔ سوال مونږ کله قید د حیث مراد دے، نو بیا ذکر د مذکور ته ضرورت نشته۔ جواب۔ دا یئے راوړو، یاد دونماسه

**من زمان او مکان** دا مِنْ د پاره د بیان د ما راغلے دے، چه هغه ظرف زمان دے، اَوْ یا مکان دے۔

**وشرط نصبه تقدیر فی** اَوْ شرط د نصب د ده تقدیر د لفظ د فی دے، فی راځی د پاره د ظرفیة لکه دا فی به حکم مقدر وی، که چرته دا لفظاً وی، نو بیا به دا مجرور یکوی اَوْ مصنف دلته کښې شرط نصب اود دے اَوْ شرط یئے او نه ویل، ځکه چه په دے کښې اختلاف دے۔ بعض وائي، چه چرته فی مذکور وی، نو هغه مفعول فیه نه دے، بلکې جار مجرور دی اَوْ بعض وائي، چه که مفعول فیه کښې فی مذکور وی، نو بیا هم هغه مفعول فیه دے، ولے منصوب به نه وی۔

**وظروف الزمان کلها تقبل ذالك** اَوْ ظروف زمان برابره خبره ده، چه مبهم وی که محدود دی، معرفه دی اَوْ که نکره وی۔ دوئ ټول تقدیر د فی قبلوی، هرچه دے ظرف زمان مبهم چونکه دے جزء دے، د فعل نه، لږ دے

مشابهه اوګرځیدو د مفعول مطلق سره په اتصال د فعل کښې بالذات، نو دے به هم متصل وی د فعل سره بے د واسطے د فی نه اؤ هر چه دے ظرف زمان محدود، نو هغه حمل کړے شوے دے په ظرف زمان مبهم باندې، د وجه د اشتراک نه په ذات کښې چه دواړه زمانی دی۔

**وظروف المكان ان كان مبهما قبل ذالك والا فلا.**

اؤ ظروف مکان که چرته مبهم وی، نو هغه قبلوی تقدیر د فی، ځکه چه دے حمل شوے دے په ظرف زمان مبهم د وجه د اشتراک نه په وصف کښې اؤ که چرته ظرف مکان مبهم نه وی، بلکه محدود وی، نو بیا دا تقدیر د فی نه قبلوی، "والا فلا" یعنی "ان لم یکن ظرف المکان مبهما فلا یقبل تقدیر فی"، ځکه چه دے د ظرف زمان سره نه په ذات کښې اشتراک لری اؤ نه په وصف کښې۔

**سوال**۔ ظرف مکان محدود، دا نه حمل که په ظرف مبهم باندې اؤ تقدیر د فی د په کښې راشی، د وجه د اشتراک د دوئی نه په ذات کښې۔ **جواب**۔ ظرف مکان محدود په ظرف مکان مبهم باندې نشی حمل کېدے، ځکه چه په دغه صورت کښې لازمیږی استعاره د مستعار نه، ځکه چه ظرف مکان مبهم په خپله د وجه د حمل نه په ظرف زمان مبهم باندې تقدیر د فی قبلوی، نو په ده به بل شئ څنګه حمل کړے شی۔

## درس نمبر ۱۶۱

**وفسر المبهم بالجهات الست**

په دے عبارت سره مصنف تفسیر د ظرف مکان مبهم ذکر کوی، نو وے وئیل چه "وفسر المبهم" تفسیر د ظرف مکان مبهم کړے شوے دے په جهات ستة سره، چه هغه یمین دے، شمال دے، قدام دے، خلف دے، فوق دے اؤ تحت دے۔ دلته دا مبهم د اصفت واقع شوے دے د یو داسے موصوف محذوف، چه مکان دے، یعنی "فسر المکان المبهم"، قدام یا خلف یا مثلاً فوق یا تحت وغیره دا په یو غیر معین مکان دلالت کوی۔

**وحمل عليه عند، ولدى وشبههما لابهامهما.**

اؤ حمل کړے شوی دی په ظرف مکان مبهم باندې لفظ د عند، د لدی اؤ د دوے سره چه کوم الفاظ مشابهه دی، لکه دون شو اؤ یا سوا، د وجه د ابهام نه په دوئی کښې یعنی دوئی کښې شراکت راغلو په وصف د ابهام کښې د ظرف مکان مبهم سره، په دے عبارت سره مصنف دفع د سوال کوی۔ **سوال** دا راځی چه، تاسو وئیلی دی چه ظرف مکان که چرته مبهم وی لو د مبهم تفسیر په جهات ستة سره کړے دے، نو په دے کښې به تقدیر د فی وی، نو دا قاعده ستاسو منتقضه شوه په لفظ د عند اؤ د لدی سره، ځکه چه ګورو دا تفسیر په جهات ستة سره نه کیږی اؤ بیا هم

تقدیر دَ فی دے، لہٰ مصنف جواب اوکړو اَوْ وئے ویل چہ وحمل علیہ الخ. چہ څنګہ چہ ظرف مکان کښے ابہام دے، نو په دیے الفاظو کښے هم ابهام دے، لوَ وجے دَ مشابهت دَ دوئی نه په ابهام کښے داحمل کړے شو، په ظرف مکان مبهم باندے.

**ولفظ مکان لکثرته** اَوْ دَ غه شان حمل کړے شو په ظرف مکان مبهم باندے لفظ دَ مکان دَ وجے دَ کثرت استعمال نه، ځکه چه کثرت استعمال تقاضا دَ خفت کوی لَوْ نصب هم اَخف دے، په دیے عبارت سره هم مصنف دفع دَ سوال کوی. سوال دا دے چه په ظرف مکان مبهم کښے به تقدیر دَ فی وی. دا قاعده ستا ماته شو، په لفظ دَ مکان سره ځکه چه دے محدود دے اَوْ بیا هم په کښے تقدیر دَ فی دے، لہٰ مصنف جواب اوکړو چه لفظ دَ مکان هم حمل کړے شوے دے په ظرف مکان مبهم باندے دَ وجے دَ کثرت نه ځکه چه څنګه په جهاتو سته کښے کثرت استعمال دے.

**ومابعد دخلت علی الاصح** اَوْ مابعد دَ دخلتُ نه چه کوم اسم راغلے وی، هغه به منصوب وی، په تقدیر دَ فی سره، بنا په مذهب اصح باندے نه په غیر اصح سره، په دیے عبارت سره مصنف دفع دَ دخل مقدر کوی. سوال دا دے چه ستا خو طے چه ظرف مکان مبهم کښے به تقدیر دَ فی وی. دا قاعده ستا منقوضه شو، په دخلتُ الدار سره، ځکه چه مابعد دَ دخلتُ نه ظرف مکان محدود دے اَوْ بیا هم په کښے تقدیر دَ فی دے، لہٰ جواب اوکړو مصنف، په دیے قول سره چه مابعد دخلتُ نه به هغه اسم منصوب وی، ځکه چه دے مفعول فیه دے، اَوْ په علی الاصح سره مصنف اشاره اوکړه اختلاف ته، په دا قسم اسم کښے چه دیے مذهب اصح دے. هغه وائی چه دا مفعول فیه دے اَوْ بل مذهب غیر اصح دے. هغوی وائی چه دا مفعول به دے، په دَ دَ مذهب اصح باندے چه هرکله دا مفعول فیه اوګرځیدو نو دَ هغوی په نزد باقاعده دیے کښے فی مقدر دے اَوْ دا منصوب دے، دَ وجے دَ کثرت استعمال نه. سوال. خلاصه دَ مفعول فیه دا دے چه دَ دے په وسیله دَ فعل نه راځی، چه دَ هغه اتمام شوے وی، په مفعول به باندے اَوْ ملته خو اتمام دَ دخلت په دار راغلے دے، په دخلت الدار کښے، لو دَ دیے نه دا خبره معلومه شو، چه دا مفعول به دے اَوْ مفعول فیه نه دے. جواب. دا خبره لا نه په فعل لازم کښے نه ده، بلکه په فعل متعدی کښے ده اَوْ دا ملته کښے منقول فعل لازمی دے. سوال. بعضے دَ خواصو دَ مفعول فیه نه دا ده، چه دَ فعل نسبت مکان خاص ته هم کیږی اَوْ مکان عام ته ئے نسبت صحیح دے، لکه لیدلے وایی، چه زهٔ دارالعلوم ته تلے یمه، دارالعلوم مکان خاص دے اَوْ دا هم ویلی شی، چه زهٔ اکوړی ته تلے وومه، چه دا یو مکان عام دے، په اکوړی کښے دارالعلوم اَوْ غیره دَ دارالعلوم دواړه لوشامل دے اَوْ فعل دَ دخول په نسبت سره دار ته دا شان

نه دے نو معلومه شوه، چه دا مفعول به دے او مفعول فيه نه دے۔ **جواب.** دا حکم په هغه فعل کښے دے، چه نه وی معتبر په مفهوم د هغه کښے نقل د خارج نه داخل ته او د داخل نه خارج ته او دلته معتبر په مفهوم د دخول کښے نقل دے، د خارج نه داخل ته۔

**وينصب بعامل مضمر وجوباً على شريطة التفسير** او دا مفعول فيه به منصوب وی په فعل مقدر سره برابره خبره ده چه اوروسته د هغه عامل مقدر تفسير راغلے دی که نه وی راغلے، لکه "يوم الجمعة"۔ دا منصوب دے په عامل مقدر سره، ځکه چه دے واقع دے په جواب د سوال د متى صمت کښے او دلته تفسير د دے فعل يا د دے عامل په مابعد کښے نه دے راغلے او دا حذف چه راغلے دے، د وجے د قرينے نه، چه هغه سوال د سائل دے، ځکه چه مذکور في السوال کالمعاد في الجواب وی، يا لکه "يوم الجمعة صمت فيه"۔ دا مثال د هغه دے، چه عامل د مفعول فيه مقدر وی او په مابعد کښے تفسير راغلے دے، اصل عبارت دا دے، چه "صمت يوم الجمعة صمت فيه"۔

## درس نمبر ١٦٢

**المفعول له هو ما فعل لاجله فعل مذكور.** بعض منصوبات نه مفعول له دے، دا هغه اسم دے، چه شے وی، د پاره د قصد د تحصيل د ده يا د وجے د وجود د ده نه هغه فعل چه د ده نه مخکښے مذکور وی، مذکور عام دے، مطابقتاً وی که تضمناً، لفظاً وی که تقديراً وی، حقيقتاً وی که شبه فعل وی۔ **سوال.** تاسو چه کوم احکام ذکر کوے، دا خو مدلول احکام دی او مفعول له د قبيلے د منصوباتو نه دے او منصوبات خو الفاظ دی، چه دال معنی۔ **جواب.** نحاة کله کله احکام د مدلول په دال باندے جاری کوی او يا جواب دا دے، چه دلته عبارت په تقدير سره دے، چه "ما فعل لاجل مدلوله فعل مذكور"۔ **سوال.** اجله خو په دوه معنو سره راځی، يو معنی حقيقی ده، چه هغه علت دے او بله معنی مجازی ده، چه معلول دے، نو که چرته اوله معنی اخلو حقيقی، نو دويم مثال نه صحيح کيږی او که چرته دويمه معنی مجازی اخلو، نو اول مثال نه صحيح کيږی او که چرته دواړه اخلو، نو جمع لازميږی په مابين د حقيقت او د مجاز کښے۔ **جواب.** دلته اوله معنی حقيقی مراده ده، چه علت دے او که ته وائے چه دويم مثال نه صحيح کيږی، نو جواب دا دے، چه علت په دوه قسمه دے، يو علت غائيه، دويم علت مؤثره، نو اول مثال د علت غائيه دے او دويم مثال د علت مؤثره دے او يا دا چه دلته دواړه معنے مراد دی۔ که ته وائے چه جمع راځی په مابين د حقيقت او د مجاز کښے، يعنی "عموم المجاز" راځی، نو جواب دا دے، چه د دے نه مراد ابتداء دے۔

**د قيوداتو فوائد** **سوال.** زه به درته اووايم چه مفعول له به وی او مخکښے به ترے

فعل نه وي ذکر، لکه په دے قول کښے چه تادیباً په جواب د هغه چا کښے چه اووائی "لم ضربت زیداً" هغه اووائی چه "تادیباً". جواب. فعل عام دے لفظاً وي که تقدیراً، او دلته اګر که لفظاً فعل نه دے ذکر ولے تقدیراً ذکر دے، ځکه چه "مذکور فی السوال کالمعاد فی الجواب". سوال. دا به درته اوښایم چه مفعول له به وي او هلته به ترے نه فعل نه لفظاً وي او نه تقدیراً، لکه "انا ضاربٌ زیداً تادیباً".

جواب. فعل عام دے حقیقتاً وي او که شبه فعل وي، دلته کښے اګر که حقیقتاً فعل نشته لیکن شبه فعل خو شته دے، چه صیغه د اسم فاعل ده، په تعریف د جامعیت او منعیت کښے چه مصنف ؒ فعل مذکور اوغیړلو، لوبه کښے سره لحقوق ئے د فاعل (مصنف) نه، په دے ترکیب کښے چه "المجبنی التادیب" ځکه چه دلته فعل نشته دے ذکر. سوال. نو منم داخبره چه په دے سره فعل نه دے ذکر بلکه فعل ورسره "فی الجملة" ماغلے دے - جواب. مراد په مذکور سره مذکور دے معه، یعني چه د ده سره یعني دے ورسره په ترکیب کښے واقع وي -

**مثل ضربته تادیباً** دا مثال د هغه دے چه د پاره د قصد د حصول د ده فعل کړے شوے وي، یعني ما ضرب د پاره د حصول د تادیب راغلے وي.

**قعدت عن الحرب جبناً** دا مثال د هغے دے چه د وجه د وجود د هغه نه فعل ظاهر شوے وي، لکه ما تعود د ونجه د وجود د جبن نه راغلے دے -

**خلافاً للزجاج فانه عنده مصدر** خلاف ثابت دے زجاج لره، ځکه چه دا د هغه په نزد بانده مصدر دے. سوال. خلافاً نحو مفعول مطلق دے لو دا قاعده ده، چه مفعول مطلق هغه ته وائی چه فعل په هغه بانده مشتمل وي، د تیلے د اشتمال د کل نه په جزء بانده او دلته خو دا سے فعل نشته، چه مشتمل وي په خلافاً بانده. جواب. فعل عام دے، لفظاً وي که تقدیراً او دلته کښے فعل اګر که لفظاً نشته، خو تقدیراً پشته، چه هغه یخالف دے.

سوال. مصدر خو هغه ته وائی چه فعل په ده بانده مشتمل وي، د تیلے د اشتمال د کل نه په جزء بانده، او چه هر کله تادیباً مصدر او ګرځی، په دے ترکیب کښے چه "ضربته تادیباً"، لو ضرب مشتمل نه دے په تادیب بانده، او د غه شان په "قعدت عن الحرب جبناً" کښے هم قعود مشتمل نه دے په جبن بانده.

جواب. اشتمال اعم دے، صریحاً وي که تاویلاً، لو دلته اګر که صریحاً نه دے، خو تاویلاً دے، لو د "ضربته تادیباً" ترکیب او تاویل به داشي، چه "ادبته بالضرب تادیباً" او د "قعدت عن الحرب جبناً" تاویل به داشي، چه "جبنت فی القعود عن الحرب جبناً" او یا جواب دا دے، چه صحت د تاویل د لوع په بله لوع بانده دا نه اوبا سی، شي لره د حقیقت نه، لکه صحیح کیږي تاویل د حال په ظرف سره، لو په دے تاویل سره حال د خیل حقیقت نه نه اوځي -

**وشرط نصبه تقدیر اللام** اَوْ شرط دَ نصب دَ مفعول له هغه تقدیر دَ لام دے، ځکه چې کله چې لفظاً لام ذکر شي، نو په دې سره لازمیږي چې به مفعول له باندې اَوْ کله چې تقدیر دَ لام رانهٔ شي، نو بیا به ترې نه علیت معلوم نهٔ شي، کوم چې شرط دے، دَ پاره دَ مفعول له۔

## درس نمبر ۱۶۳

سوال۔ چه ځنګه لام راځي، دَ پاره دَ تعلیل، لو داسې خو مِنْ هُم راځي، دَ پاره دَ تعلیل باءَ هُم دَ پاره دَ تعلیل راځي اَوْ فِي هُم راځي، مثال دَ مِنْ، لکه په دې قول کښې دَ الله تعالیٰ چه "لو انزلنا هٰذا القرآن علیٰ جبل لرأیته خاشعاً متصدعاً مِنْ خشیة الله" اَوْ مثال دَ باء، لکه "فبظلم من الذین هادوا" اَوْ مثال دَ فِي، لکه په دې حدیث کښې "انّ امرءة دخلت النار في هرّةٍ"[۱]، نو بیا ولې مصنف خاص کړو، لام دَ پاره دَ تعلیل په ذکر سره۔

جواب۔ لام غالب الاستعمال دے، په تعلیلاتُ دَ افعالُ کښې اَوْ تقدیر دَ مِنْ اَوْ دَ باءَ اَوْ دَ فِي غالب نهٔ دے، په تعلیلاتُ دَ افعالُ کښې، په دې وجه باندې يې لام خاص کړو، په ذکر سره۔

**وانما یجوز حذفها اذا کان فعلاً لفاعل الفعل** اَوْ په تحقیق سره جائز دے، حذف دَ لام په هغه وخت کښې چې وي دا مفعول له حدث نهٔ عین دَ پاره دَ فاعل دَ فعل۔

**المعلل به** هغه فعل چې هغه معلل وي، یعنی تعلیل يې راغلے وي، په دې سره اوګرځي دَ فعل نهٔ حدث دے، عین نهٔ دے۔ پس په دې سره احتراز راغلے، دَ دې ترکیب نه چه "جئتك للسمن"۔ دلته کښې دا سمن حدث نهٔ دے، بلکه عین دے، اَوْ چه دا يې اووئیل چه "لفاعل الفعل المعلل به"، نو په دې سره احتراز راغے، دَ هغه نه چه دا فعل وي، دَ پاره دَ غیر دَ ځانه لکه دا ترکیب چه "جئتك لمجیئك ایای" اَوْ دَ دې عبارت مطلب دا دے، چه فاعل دَ مفعول له اَوْ فاعل دَ هغه فعل، چه کوم عامل دے، هغه به واحد وي۔

**ومقارناً له في الوجود** اَوْ دا فعل مذکور به دَ دې مفعول له سره مقارن وي، په وجود کښې یعنی زمانه به دَ دواړو یوه وي، لهٰذا په دې سره احتراز راغے، دَ هغه نه چه زمانه يې مقارنه نهٔ وي، لکه په دې ترکیب کښې چه "اکرمتك الیوم لوعدي بذلك امس" اَو په مفعول له کښې دا درې شرائط په دې وجه باندې کېښودے شول، چه په دې شرائطو سره دے مشابهه کړي۔

---

[۱] "في هرّة"۔ ای لهرّة، په دے حدیث شریف کښې یوه واقعه نه اشاره ده، چه یوه ښځې پیشو دَ ولږې نه وژلې ده، نو هغه ښځې به سبب اَوْ علت دَ هلاکت دَ هرّې باندې جهنمي شو "اللهم لا تجعلنا منها" ۱۲ (م۔س)۔

دَ مصدر سره، نو سره متعلق کیږی یعنی تعلق یې دَ فعل سره راځی بلا واسطه اَو یا به دَ فعل زمانه جزء دَ ده دَ زمانے نه. **سوال**. ته خو وائے چه دَ فعل اَو دَ مفعول له فاعل به یو وی، نو بیا هغه ځائے کښې به تقدیر دَ لام وی، نو دا قاعده ستا منقوضه اوګرځید چه په دے ترکیب سره چه "ان اتاه الله الملك" ځکه چه دلته دَ دواړو فاعل یو نه دے، ځکه چه دَ ملك فاعل نمرود دے لو دَ آتاه فاعل الله دے اَو په اصل کښې دا داسے وو چه "لاجل ان آتاه الله الملك"؟ **جواب**. دا قانون چه کوم موږ ذکر کړو دا په مصدر صریحی کښې دے نه په مصدر تاویلی کښې اَو دلته دا مصدر صریحی نه دے بلکه تاویلی دے. **سوال**. پکار ده چه دَ "وانما یجوز حذفها" په ځائے تاصوف "وانما یجوز حذفه" ویلے وے نو په عبارت کښې به خو اختصار هم راغلے وو اَو مطلب به یې هم ادا کړے وو اَو په یجوز کښې به ضمیر تقدیر ته راجع ګرځیدلے وو، لو معنیٰ به یې صحیح وکړی وه. **جواب**. مصنف صوف په یجوز باندِ اکتفاء اونه کړو اَو ورسره یې حذفها هم ذکر کړو ځکه چه تقدیر ویلے شی حذف اَو اسقاط ته په لفظ کښې، نه په نیت کښې اَو حذف مطلق اسقاط ته وائی. برابره خبره ده چه سره دَ بقاء نه وی یا به نیت کښې اَو که نه وی، لو که چرته صرف یجوز یې ویلے وے، نو بیا به متوهم دا وهم کولو چه تقدیر دَ لام دا مطلب دے چه لام خو به حذف وی په لفظ کښې، ولے په نیت کښې به مشروط وی اَو ملحوظ به نه دے.

# درس نمبر ۱۶۴

**المفعول معه** بعضے دَ منصوباتو نه مفعول معه دے. دلته څلور امور ذکر کیږی. اول معنیٰ لغوی دَ مفعول معه، دویم معنیٰ اصطلاحی، دریم ترکیب دَ المفعول معه، څلورم فرق په مابین دَ مفعول معه لو دَ معطوف کښې مفعول معه په لغت کښې مصاحبت ته وائی اَو په اصطلاح کښې ورله مصنف په خپله تعریف ذکر کړے دے اَو ترکیب به یې دَ سوال اَو دَ جواب په شکل اوکړو.

**سوال**. په معه کښې ضمیر چرته راجع وائے یا به یې راجع کړے الف لام ته لو یا به یې راجع کړے منعول ته که چرته الف لام ته یې راجع کړے، نو لازمیږی اضمار دَ حرف اَو که چرته راجع کړے یې منعول ته نو لازمیږی معیت دَ شئ دَ پاره دَ نفس خپل اَو دا باطل دے. **جواب**. دا ضمیر راجع دے الف لام ته اَو که ته وائے چه لازمیږی اضمار دَ حرف، نو موږ وایو چه دا الف لام اسمی دے چه په معنیٰ دَ الذی سره دے، نو تقدیر به داسے شی چه "الذی فعل معه". **سوال**. دَ فعل دَ پاره منعول مالم یسم فاعله څه شے دے؟ **جواب**. دَ دے دَ پاره مفعول مالم یسم فاعله معه دے. **سوال**. منعول مالم یسم فاعله خو مرفوع وی لو دا خو منصوب دے. **جواب**. مع حرف دے اَو دے مبنی دے په فتحه باندِ، ولے دا جواب ضعیف دے، ځکه چه که چرته دا حرف وی، لو حرف خو مفعول مالم یسم فاعله نه واقع کیږی، ځکه چه حرف نه مسند واقع کیږی اَو نه مسند الیه. پس صحیح جواب دا دے چه دا دَ قبیلے دَ ظروفو لازم النصب.

نه دے، نو کهٔ چرته دے واقع شي، به حالت د رفع باندې، نو هم منصوب وي، لکه په دې آیت کښې "لقد تقطع بینکم". دلته ما بین فاعل دے او لازم النصب دے، په دې وجه منصوب دے او حیا ویلي دي چه دا د قبیلې د "وقد حیل بین العیر والنزوان" نه دے، یعنې مفعول مالم یسم فاعله په دې ترکیب کښې مصدر د فعل مجهول دے، چه د حیل د پاره حیلولة مصدر دے او بین ظرف دے او دلته هم مصدر د فعل مجهول مالم یسم فاعله دے او معهٔ ودلیه ظرف دے، لیکن دا مخکښې جواب قوي دے، ځکه چه هغه موافق دے د قرآن سره. او س فرق په ما بین د مفعول معه او معطوف کښې دا دے چه د واؤ نه پس چه کوم اسم ذکر شي او که د فاعل یا د مفعول نه بعد راغلے وي او د زمانه او د مکان کښې متحد وي، نو دا به مفعول معه وي، معطوف به نه وي، ځکه چه په معطوف کښې د زمان یا د مکان اتحاد شرط نه دے، لکه "لو ترك الناقة وفصیلها لرضعها"، یعنې که چرته اوښه او د هغې بچے په خپل حال پرېښودے شي، نو بچے به ترې نه پي واخلي، نو اوس په دې ترکیب کښې وفصیلها معطوف نه دے، ځکه که چرته دلته اتفاقا د زمانے او د مکان راننه شي، نو بیا به ترے نه بچے پي نه شي اخستلے.

## درس نمبر ۱۶۵

**هو مذکور بعد الواو لمصاحبة معمول فعل لفظا**

دا مفعول معه هغه دے، چه ذکر شوے وي، پس د واؤ نه چه دا واؤ په معنی د مع سره وي، د پاره د مصاحبة د معمول د فعل سره. برابره خبره ده، چه په صدور کښې وي، لکه په وقوع کښې (یعنې برابره خبره ده، چه دا معمول د فعل فاعل وي او که مفعول وي). مثال د صدور لکه "استوی الماء والخشبة" او مثال د وقوع، لکه "کفاك وزیدا درهم". بعض نحاة وائي، چه مفعول معه به د فاعل سره په مصاحبة کښې راځي او د مفعول سره به نه راځي، خو مصنف[2] په دې مخالفینو باندې رد او کړو او وې ویل، چه "لمصاحبة معمول فعل الخ" یعنې معمول یې او ویل. معمول عام دے، که فاعل وي که مفعول وي، بعد له دې چه مصنف[2] او ویل، نو په دې سره د نورو قولونو مخالفینو نه احتراز راغے "لفظا". برابره خبره ده، چه دا فعل مذکور وي، په لفظ کښې او یا مقدر وي، یعنې دے په نظم د کلام کښې راغلے وي او معنا یعنې دا فعل نه لفظا ذکر وي او نه تقدیرا، بلکه د نحوي او د مفهوم د کلام نه معلومیږي. سوال. ستا دا تعریف مانع او نه گرځیده

---

[1]. وفی بعض الحواشی ان هذا الرای شریف جداً الخ لجعل ما هو محط الفائدة قائماً بمقام الفاعل والخلوة عن تکلف ضمیر یرجع الی المصدر واقامة المصدر المؤکد مقام الفاعل مع ان اکثر النحاة علی انه لایجوز اصلاً ومن السوانح توجیه الثالث وهو ان معه متعلق بمحذوف هو فاعل والظرف قائم مقامه تقدیره الذی فعل کائن معه ای مع الفعل فی الظرف فاعل مجازاً کما انه خبر مجازاً فی نحو زید فی الدار فیه تامل مد لانا عصامه" - ۱۲ (۲-س) -

دَ دخول دَ غير نه، ځکه چه داخل شوی په کښې معطوف په مثل دَ دې ترکيب کښې چه جاءني زيدٌ وعمرٌو' او ضربت زيداً وعمرواً'، ځکه چه دا مذکور دې پس دَ واؤ نه اَؤ مصاحب دې، دَ معمول دَ فعل سره په صدور کښې اَؤ په وقوع کښې سره دَ دې نه چه دا مفعول معه نه دې۔ جواب. مراد په مصاحبت دَ معمول دَ فعل سره اشتراک دَ دهٔ دې، دَ معمول دَ فعل سره په وقوع اَؤ په صدور کښې سره دَ اتحاد دَ زمان اَؤ دَ مکان نه، لکه سرت وزيداً ولو ترکت الناقه وفصيلها لرضعتها'۔ سوال. شمول دَ مفعول معه دَ معمولات دَ فعل نه نهٔ دې صحيح، بلکه دا منصوب دې په واؤ سره لکه چه څنګه په دې باندې تصريح کړې دَهٔ شيخ عبدالقاهر جرجاني۔ جواب. کلام دَ مصنف بنا دې په مذهب دَ جمهورو باندې۔ سوال. ولې وضع کړې شو واؤ په ځائې دَ مع باندې؟ جواب. دوئ کښېنوؤ واؤ په ځائې دَ مع باندې ځکه چه دَ مختصر دې دَ مع نه۔ سوال. چه څنګه واؤ مختصر دې، دغې طرح فا هم مختصره ده، نو دا ولې په ځائې دَ مع باندې وضع نه کړه؟ جواب. اصل دَ دې واؤ، هغه واؤ دَ عطف دې، چه په معنی کښې معنی دَ جمعيت ده، چه هغه مناسب ده، دَ معيت سره۔

**فان كان الفعل لفظاً وجاز العطف فالوجهان.**

پس که چرته دا فعل ملفوظ وی اَؤ جائز وی عطف نو بيا دوه وجه جائز دی، يعنی رفع اَؤ نصب۔ دلته دا فا دَ پاره دَ تفصيل ده، لَؤ دَ فعل نه مراد هغه فعل دے، چه قصد کړې شوے وی، په دهٔ سره مصاحبت دَ مفعول معه دَ معمول سره لَؤ دلته دا کان تامه دے اَؤ ناقصه هم صحيح کيږی، که چرے تامه شی، نو لفظاً به دَ دے دَ پاره تميز شی اَؤ که چرته غير تامه شی، نو لفظاً به حال شی اَؤ ما به مؤول شی، په تاويل دَ ملفوظاً يا لفظياً سره، په جاز العطف کښې جواز په معنی دَ امکان خاص سره دے، يعنی واجب هم نه دے اَؤ ممتنع هم نهٔ دے

فائده:- امکان خاص اَؤ امکان عام، دا منطقی اصطلاحات دی۔ امکان خاص والی، سلب دَ ضرورت دَ جانبينو نه۔ دَ جانبين نه مراد جانب دَ وجود اَؤ جانب دَ عدم دی، يعنی نه ئې وجود ضروری وی اَؤ نه ئې عدم لَؤ امکان عام والی سلب دَ ضرورت دَ جانب مخالف دَ حکم نه۔ مثال دَ امکان خاص لکه والی "زيدٌ كاتبٌ بالامكان الخاص" يعنی نه ورله کتابت ضروری دے اَؤ نه ورله عدم کتابت ضروری دے اَؤ مثال دَ امکان عام لکه "زيدٌ كاتبٌ بالامكان العام" يعنی عدم کتابت دَ زيد ضروری نه دے، لَؤ کتابت ورله ضروری وی که نه وی۔ امکان عام ته امکان عام په دې وجه والی چه دے ممکن ممتنع اَؤ واجب ټولو لره شامل دے لَؤ امکان خاص مختص دے په يو نوعه پورے، "وجاز العطف" اَؤ جائز وی عطف په معمول دَ فعل باندې دَ هغه شی چه هغه ذکر وی، پس دَ واؤ نه، "فالوجهان" يعنی "فالوجهان جائزان" يعنی عطف هم جائز دے، ځکه چه دلته کښې مانع نشته دَ عطف نه اَؤ نصب هم جائز دے،

چې دے مفعول معه اوګرځي۔

**مثل جئت انا وزيدٌ وزيداً** زيدٌ مرفوع وئيلے شي بنا په دے بانو، چه دے عطف شي په ضمير مرفوع متصل باندې او عطف په ضمير مرفوع متصل باندې جائز دے، چه کله تاکيد د هغه راشي په ضمير مرفوع منفصل سره او زيداً منصوب هم جائز دے، چه دا مفعول معه شي۔

**والا تعيّن النّصب** اى وان لم يجز العطف تعين النّصب، ځکه چې په دغه صورت کښې عطف نه صحيح کيږي۔ پس متعين شو نصب بنا بر مفعوليت۔

**مثل جئت وزيداً** په دے ترکيب کښې نصب جائز او متعين دے او عطف نه شي کيدے، ځکه چې تاکيد يې نه دے راغلے په ضمير مرفوع منفصل سره، نو ملته سيوا د مفعول معه نه بله وجه نشته، چه د هغې په شي جوړ نه۔

**وان كان معنًا وجاز العطف تعين العطف** او که چرته دا فعل معنوى وى په دے شان سره چه نه په لفظ کښې موجود وى او نه تقديراً وى، بلکه د نحوى لګو د مفهوم د کلام نه معلوميږي او جائز وى عطف، نو متعين دے عطف۔ جائز وى عطف په دے معنى سره چه لو مانع نه وى موجود، د عطف نه او متعذر وى نصب۔ ملته دا جاز په معنى د امکان عام سره دے۔ سوال۔ چه هر کله تا "تعيّن النصب" او وئيل، نو جاز العطف ته ضرورت پاتے نه شو، ځکه چه د دے ذکر او عدم دواړه برابر دى۔ جواب۔ په دې کښې اشاره ده، دے خبرے ته چه په معنى د امکان عام سره دے يعنى ممتنع به نه وى او واجب به وى۔

**نحو مالزيدٍ وعمروٍ** يعنى اى شئ حصل لزيدٍ وعمروٍ؟ او عطف په دے کښې ځکه متعين دے، چه په دے کښې عامل لفظى دے، چه هغه لام جاره دے، ځکه چه دا په حکم د تکرير د عامل کښې دے، نو پس نشته دے حاجت کرځولو د دے ته معمول د عامل معنوى ځکه چه حمل په عامل ضعيفه باندې په وخت د وجود د عامل قويه کښې ناجائز دے بغير د ضرورت د اعيه نه، او علامه زمخشرى فرمائي، چه ملته عطف مختار دے او متعين نه دے۔

**والا تعيّن النّصب** يعنى که چرته عطف نه وى، نو بيا متعين دے نصب، يعنى دا به د مفعول معه په وجه باندې منصوب وى ځکه چه ملته کښې عطف متعذر دے۔

**مثل مالك وزيداً وماشانك وعمرواً** په دے ترکيبونو کښې عطف ناجائز دے، او متعين دے نصب او عطف په دے وجه ناجائز دے چه لا نميري، عطف په مجرور باندې بغير د اعادى د جر نه او دا ناجائز دے، په اول ترکيب کښې،

اَوْ په وجه دَ دویم ترکیب کښې "ماشانك وعمروا" کښې کۀ چرته عطف کوو په شانك باندې نو لازمیږی خلاف دَ مقصود دَ متکلم، ځکه چه مقصود تپوس دے دَ شان اَوْ دَ حال دَ مخاطب اَوْ دَ عمرو نه، نۀ دا چه تپوس دَ شان دَ مخاطب اَوْ دَ ذات دَ عمرو نه۔

**لان المعنى ما تصنع**

په دې مثالونو کښې فعل معنوی دے، ځکه چه معنیٰ دا ده چه "ما تصنع" په دې سره کړیا مصنف دفع دَ سوال کوی۔ **سوال** دا دے چه "لام" خو جدا مے اَوْ دَ دې دَ پاره متعلق پکار دے، نو دۀ **جواب** اوکړو چه "لان المعنى ما تصنع"۔ **سوال**. دلیل دَ مصنف دا دلیل دے په معنویة دَ فعل باندې اَوْ حالانکه مدعیٰ نۀ دہ ذکر شوی۔ **جواب**. دا دلیل دے دَ پاره دَ مدعیٰ مقدرے، نو تقدیر به داشی چه "انما حکمنا بمعنویة الفعل فی هذه الامثلة لان المعنى ما تصنع"۔ **سوال**. دا دلیل خو مطابق نۀ دے دَ مدعیٰ سره، ځکه چه مدعیٰ دا ده چه معنویة دَ فعل په دې دریے واړو مثالونو کښې ده اَوْ دلیل دلالت کوی په معنویت دَ فعل په آخرنو مثالونو کښې فقط۔ **جواب**. عبارت دَ مصنف په تقدیر دَ معطوف سره دے، تقدیر به داسې شی چه "ما تصنع وما یماثله ای ما یصنع"۔

# درس نمبر ۱۶۶

**الحال ما يبين[1] هيئة الفاعل او المفعول به**

یعنی حال هغه لفظ دے چه بیانوی هیئة دَ فاعل یا دَ مفعول به دَ دې حیثیت نه چه دا فاعل دے اَوْ دَ دې حیثیت نه چه دا مفعول به دے اَوْ دا عام دے حقیقتاً وی اَوْ حکماً۔ هر کله چه مصنف فارغ شو دَ بیان دَ مفاعیلو نه، نو شروع یې اوکړو په بیان دَ ملحقاتو دَ مفاعیلو کښې۔ پس وئیل یې چه "الحال ما يبين هيئة الفاعل الخ"۔ اول به دَ حال معنیٰ لغوی ذکر کوو اَوْ بیا معنیٰ اصطلاحی، نو په **لغت** کښې حال په دوه[2] معنیٰ باندې راځی، یو معنیٰ دَ کیفیت اَوْ دَ صفت سره اَوْ دا معنیٰ لغوی یې قول[3] اَوْ اَلْقاب ده اَوْ په **اِصطلاح** کښې په مختلفو اصطلاحاتو سره دَ دې مختلف معنی شوی دی۔ په اصطلاح دَ نحاتو کښې حال په معنیٰ دَ "ما يبين هيئة الفاعل او المفعول به" باندې راځی، په اصطلاح دَ صرفیانو کښې زمانه حال ته وائی، په اصطلاح دَ اهل معانی اَوْ بلاغت کښې حال هغه امر دے چه دے باعث وی په متکلم باندې په ایراد دَ خصوصیت زائده باندې په کلام کښې، یعنی دَ مقتضی الحال مطابق خبره کول، لکه یو سړے خالی الذهن دے، یعنی دَ هغۀ ذهن کښې نۀ شک وی اَوْ نۀ اَنکار نو دَ هغۀ دَ پاره زیدٌ قائمٌ

---

[1] ورد علیه النقض المشهور ان هذا التعریف لا یصدق علی قائماً فی قولك ضربت زیداً قائماً ابوه لان قائماً یبین هیاة الاب وهو لیس من قبیل الفاعل او المفعول به فجاب الشارحین بان الحال ما یبین هیاة الفاعل او المفعول به او ما هو متعلق بهما۔ ۱۲.

کافی دے، بل سړے چې دَ هغه په ذهن کښې په باره دَ قیام دَ زید کښې شک دے، نو دَ هغه دَ پاره صرف زیدٌ قائمٌ ډیرے کافی، بلکه دَ هغهٔ دَ شک دَ ازالے دَ پاره به ورسره ادواة دَ تحقیق اَؤ دَ تاکید راوړے، لکه ته ماؤلئے چې "اِنَّ زیداً قائمٌ" اَؤ چې یو سړے مُنکر وی، دَ قیام دَ زید نه، نو دَ هغهٔ دَ پاره به ما سے ادوات راوړے، چې په هغے سره دَ هغه انکار ازاله اوکړی، نو وائے به چې "واللّٰه اِنَّ زیداً لَقائمٌ" اَؤ په اصطلاح دَ منطقیانو کښې حال عبارت دے دَ عوارض غاتیه نه، په اصطلاح دَ حکماء کښې حال عبارت دے، دَ هغه نه چې په مبل ځین کښې سرایت کوي دَ متکلمین په اصطلاح کښے هغه ته وائی چې واسطه وی په مابین دَ موجود اَؤ دَ معدوم کښې اَؤ په اصطلاح دَ صوفیانو کښې حال عبارت دے دَ کیفیت دَ نفس نه چې تعبیر ترے نه کوی، په قبض اَؤ بسط سره۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف نه دے صحیح، ځکه خو نه درته اوښایم، چې حال به مې اَؤ هیئت به یې دَ فاعل یا دَ مفعول نه وی بیان کړے، لکه په دے ترکیب کښې "آتیك والشمس طالعة"، په دے ترکیب طالعة حال واقع شوے دے، دَ الشمس نه اَؤ حال دا دے چې دا نه فاعل دے اَؤ نه مفعول دے۔ **جواب**۔ خبر زموږ په حال مفرده کښے دے، نه په مرکبه کښے، نو پوهه شه پس دَ دوے نه حال په دوه قسمه دے، یو حال مرکبه اَؤ دوئم حال مفرده۔ حال مرکبه هغه ته وائی چې حال په کښے جمله واقع شوے وی۔ برابره خبره ده، چې جمله فعلیه وی که جمله اسمیه وی اَؤ حال مفرده په اووه قسمه دے، حال محققه، مقدره، مترادفه، متداخله، موطئه، منتقله اَؤ موکده۔ حال محققه هغه ته وائی، چې فی الحال ثابت وی، دَ پاره دَ نفع الحال، مثلاً "جاءنی زیدٌ راکباً"۔ مقدره دے ته وائی چې حال دَ ذو الحال دَ پاره فی الحال ثابت نه وی، بلکه په فرض دَ فارض سره وی[1]، لکه په دے آیت کښې "فادخلوها خالدین"، نو دلته کښې خالدین دا حال واقع دے، لیکن خلود دَ دخول په وخت کښے نه دے، بلکه په بعد کښې به وی اَؤ دا یې فرض کړے شی۔ حال مترادفه دے ته وائی، چې ذو الحال یو وی اَؤ احوال ترے نه متعدد راغلی وی، لکه "جاءنی زیدٌ راکباً عاقلاً آکلاً ضاحکاً مبشّراً جمیلاً نهلوّجاً"۔ حال متداخله دے ته وائی، چې "ذو الحال" هم متعدد وی، لکه دَ یو ذو الحال دَ پاره حال راغلی وے، په هغه کښې ضمیر وی، هغه ذو الحال واقع شوی وی اَؤ دَ هغه سره بیا حال راغلے وی، لکه "سر راشداً مهدیاً مثلاً"۔ حال موطئه دے ته وائی، چې دے په خپله مقصود نه وی اَؤ توطئه اَؤ تمهید وی، دَ پاره دَ بل، لکه "انزلناه قرآناً عربیاً"، نو قرآن حال دے اَؤ دَ

---

[1] یا په اعتبار دَ معتبر سره وی، کما فی قوله تعالیٰ فادخلوها خالدین فان خلودهم الجنة لیس فی حال دخولهم بل فی حال تقدیر الخلود لهم ۱۲۰ (م-س-ن)۔

ثم لعلکم ان الحال قسم الی ثمانیة اقسام فهذ التقسیم باعتبار الهیأة الفاعل او المفعول لان الهیأة لعمّ من ان یکون هیئة نفسه نحو جاءنی زیدٌ راکباً او متعلقه نحو جاءنی زیدٌ راکباً ابوه ولعمّ من ان یکون محققة فمثاله کمثل الاول ومقدرة فمثاله کالخلود فی قوله تعالیٰ: واعمّ من ان یکون دائمة او غیر دائمة فالاول الموکدة والثانی المنتقلة واعمّ من ان یکون نفس (نوٹ په بل رخ)...

پاره د توطئې اَوْ د تمهيد راغلې دے، د عربيًا اَوْ حال مؤكده وے ته وائي چه نه منتقل كيږي، دا حال د ذوالحال نه لازم، لكه جاءني زيد معطوفًا. حال منتقله هغه ته وائي چه دے منتقل كيږي، د ذوالحال نه، لكه جاءني زيد راكبًا. مصنف اووے په تعريف د حال كښے، چه مايبيّن هيئة الفاعل، نو په دے سره احتراز راغے د تميز نه، ځكه چه تميز هيئت د فاعل نه بيانوي، بلكه د ذات د فاعل يا د مفعول به نه بحث كوي اَوْ چه اضافت د هيئت راغے فاعل يا مفعول به ته، نو په دے سره احتراز راغے، د صفت د مبتدا نه، په مثل د دے تركيب كښے چه زيد ن العالم اخوك، ځكه چه دے بيانوي هيئت د غير فاعل اَوْ مفعول به. سوال. تعريف د حال مانع اونه ګرځيدو، د دخول د غير نه اَوْ داخل شو په كښے صفت د فاعل يا د مفعول په مثل د دے تركيب كښے چه جاءني زيدٌ راكبٌ يا رأيت زيداً راكبًا، ځكه چه دغه هم بيانوي هيئت د فاعل اَوْ د مفعول به. جواب. قيد د حيثيت مراد دے، په تعريف كښے، يعني حال بيانوي هيئت د فاعل يا د مفعول به. د دے حيثيت نه چه فاعل، فاعل دے اَوْ مفعول به مفعول به دے اَوْ شك نشته چه صفت خو بيانوي هيئت د فاعل يا د مفعول به، ولے د دے حيثيت نه نه چه دا فاعل دے اَوْ يا مفعول به دے.

سوال. ستا دا تعريف د حال جامع نه شو خپلو افرادو لره، ځكه چه خارج شو ترے نه هغه حال چه واقع شوے وي، د مفعول مطلق نه، لكه ضربت الضرب شديدًا، اَوْ د دغه شان خارج شو ترے نه حال د مفعول معه نه په دے تركيب كښے، چه جئت وزيدًا راكبين، اَوْ خارج شو ترے نه حال د مضاف اليه نه، لكه په دے تركيب كښے بل نتبع ابراهيم حنيفًا، يا ايحب احدكم ان ياكل لحم اخيه ميتًا، په دے ټولو تركيبونو كښے حال راغلے دے، ولے هيئت د فاعل يا د مفعول به نه بيانوي اَوْ نه خو ولے چه حال بيانوي هيئت د فاعل يا د مفعول به. جواب. مراد په فاعل اَوْ مفعول به سره عام دے، حقيقتًا وي اَوْ كه حكمًا. پس داخل شو په كښے حال د مفعول مطلق نه، ځكه چه دے مؤول دے، په تاويل د حديث الضرب شديدًا سره اَوْ دغه شان داخل شو په كښے هغه حال چه راغلے وي د مفعول معه نه، ځكه چه دا مفعول معه به خالي نه وي، يا به مصاحب وي، د معمول د فعل سره، په صدور كښے اَوْ يا به مصاحب وي د معمول د فعل سره په وقوع كښے، كه اَوَّل وو نو فاعل شو اَوْ كه دويم وو، نو مفعول شو اَوْ دغه شان داخل شو په كښے حال د مضاف اليه نه، ځكه چه مضاف به يا فاعل وي اَوْ يا به مفعول وي، چه كله مضاف حذف كړے شي اَوْ اقامت د مضاف اليه د هغه په ځائے باندې راشي، لكه په دے تركيب كښے چه بل ملّة ابراهيم حنيفًا، ابراهيم، مضاف اليه دے اَوْ حنيفًا، د دهٔ حال واقع دے. اوس چه كله معنی ملّة حذف كړو اَوْ د دهٔ په ځائے باندې ابراهيم قائم كړو، نو هم معنی صحيح ده اَوْ چونكه ملّة مفعول وو، نو دا به هم مفعول شي يا ما بل تركيب دے چه ايحب احدكم ان ياكل لحم اخيه ميتًا، نو لحم مضاف اليه دے اَوْ ميتًا د دهٔ نه حال واقع دے. اوس چه دے په ځائے د مضاف چه هغه لحم دے

---

حاشية د ښر رُجوع نه) ... الهيادة التركيبية. نحو جاءني زيدٌ والشمس طالعة فان الهيادة حالية تدل على مقارنة الفاعل بطلوع الشمس او

مع جوهر الكلام نحو التركيب في مثال الاول فتامل وتدبر. (م.س).

کېښودے شی لو هُم معنیٰ صحیح کیږی اَوْ بل جواب داچا کړے دے، چه دلته کښې ییبین صیغهٔ دَ مجهول ده اَوْ هیئته ورلوه مفعول مالم یسمّ فاعله دے اَوْ به متعلق دے، په ییبین پورے، لو تعل مثامل به کښې داخل شو لو تخصیص ئے به مفعول به پورے او الفلق وَلے دا جواب ضعیف دے، دَ دریو وجونه اَوَّله وجه دا ده، چه بُعد راغلے دے، په مابین دَ متعلق اَوْ دَ متعلَّق کښې- دَ دویمه وجه دا ده چه، دا عبارت مخالف دے، دَ مشهور عبارت اَوْ نسخے نه ځکه چه مشهوره عبارت خو ییبینُ صیغه دَ معلوم ده اَوْ دَ دریمه وجه دا ده چه، په دے تاویل سره خو به دَ مفعول معه اَوْ دَ مفعول مطلق دَ حال تاویل اوشی، ولے دَ مضاف الیه دَ حال تاویل نه کیږی- **سوال**. تعریف دَ حال ستا جامع نه شو، خپلو افرادو لره اَوْ خارج ستو توے نه هغه حال، چه واقع وی، دَ فاعل اَوْ مفعول به دواړو نه، لکه ضرب زیدٌ عمرواً راکبین؛ اَوْ نه خوماځے چه، حال به یا دَ فاعل نه واقع وی اَوْ یا دَ مفعول به نه- **جواب**. اَوْ دَ پاره دَ مانعة الخلو دے اَوْ دَ مانعة الجمع دَ پاره نه دے-

## درس نمبر ۱۶۷:

**سوال**. تاسو خو ویلی دی، چه مضاف فاعل وی اَوْ یا مفعول وی اَوْ صحیح وی، حذف دَ مضاف اَوْ اقامت دَ مضاف الیه په ځائے کښې هغه باندې، لو دَ هغه نه حال واقع کېدے شی، لو دا قاعده منقوضه شوه، په دے ترکیب سره، چه اِنَّ دابِرَ هٰؤلاءِ مقطوع مصبحین، ځکه چه مصبحین حال واقع شوے دے- دَ هٰؤلاءِ نه چه مضاف دے، سره دَ دے نه دلته کښې صحیح نه دے حذف، دَ مضاف اَوْ اقامت دَ مضاف الیه په ځائے دَ مضاف باندې- **جواب**. دلته کښې اگر که حذف دَ مضاف نه دے صحیح، وَلے مضاف جزء دے، دَ مضاف الیه نه، لو دا په منزله دَ شئ واحد اوګرځیدل- پس حال واقع کېدل دَ مضاف الیه نه بعینه حال واقع کېدل دی، دَ مضاف نه- **سوال**. حال خو یا واقع کیږی، دَ فاعل نه اَوْ یا دَ مفعول به نه اَوْ "دابر" خو نه فاعل دے اَوْ نه مفعول بلکه دا اِسم دَ اِنَّ دے- **جواب**. "دابر" په دے ترکیب کښې مفعول مالم یسمّ فاعله دے، په اعتبار دَ هغه ضمیر سره چه مستتر دے، په مقطوع کښې اَوْ هغه مفعول مالم یسمّ فاعله دے اَوْ دابر دَ هغه دَ پاره مرجع دے-

**لفظاً اَو معناً** دا فاعل به یا لفظی وی اَوْ یا به معنوی وی اَوْ دغه شان دا مفعول به یا لفظی وی اَوْ یا به معنوی وی- فاعل لفظی اَوْ مفعول لفظی دِے ته وائی، چه فاعلیة دَ فاعل اَوْ مفعولیة دَ مفعول په اعتبار دَ لفظ اَوْ دَ منطوق دَ کلام سره وی اَوْ بیا دا ملفوظ عام دے، حقیقتاً وی اَوْ که حکماً وی اَوْ فاعل معنوی یا مفعول معنوی هغه ته وائی، چه مستفاد وی، دَ فحوی دَ کلام نه اَوْ په نظم دَ کلام کښې دے، نه لفظاً وی اَوْ نه تقدیراً-

**مثل ضربت زیداً قائماً** دا مثال دَ لفظی دے، چه ملفوظ حقیقی وی- دلته کښې فاعلیة دَ "تا" اَوْ مفعولیة دَ "زیداً" دا په لفظ اَوْ منطوق دَ کلام کښې

دی۔ دلته تړیتو نه حال واقع شوے دے، دَ "تا" نه هُم صحیح کیږی اَوْ دَ زید نه هُم۔

**زید فی الدار قائماً** دا مِثال دَ لفظی دے، چه ملفوظ حکمی وی، دلته قائماً حال واقع شوے دے، دَ هغه ضمیر نه چه هغه مستتر دے، په ظرف کښے اَوْ ضمیر مستتر دا ملفوظ دے حکماً، نو دلته قائماً حال دَ زید نه نه دے واقع شوے، ځکه چه زیدٌ خو مبتدا دهٔ، بلکه دَ هغه ضمیر نه دا حال واقع شوے دے، چه کوم په متعلق دَ فی الدار کښے دے، یعنی په حصل یا ثابت کښے، چه کوم ضمیر دے، دا قائماً دَ هغے نه حال واقع شوے دے۔

**وهذا زیدٌ قائماً** دا مثال دَ معنوی دے، ځکه چه مفعولیة دَ زید په اعتبار دَ هغه معنیٰ سره دے، چه هغه مستفاد دهٔ، فحویٰ دَ کلام نه، چه هغه تنبیه اشاره نهٔ دهٔ او لفظی په نظم دَ کلام کښے چه هغه اشیرُ دے اَوْ اُنبّهُ دے، په هذا کښے، ها په معنیٰ دَ انبه شو اَوْ ذا په معنیٰ دَ اشیرُ شو۔

**وَعَامِلُهَا الْفِعْلُ اَوْ شِبْهُهٗ اَوْ مَعْنَاهُ** اَوْ عامل دَ دوے حال به یا فعل وی، ځکه چه دے اصل دے په عمل کښے، لکه ضربت زیداً قائماً، اَوْ یا به شبهِ فعل وی۔ شبهِ فعل هغه ته وائی چه دے عمل کوی په شان دَ فعل، لکه اِسم فاعل، اِسم مفعول، صفتِ مشبّه، اِسم تفضیل اَوْ مصدر وغیره شو، لکه زید ذاهبٌ راکباً، زید مضروبٌ قائماً، زید حسنٌ ضاحکاً؛ لَوْ ضربی زیداً قائماً وغیره شو۔ فائده کړه دا خبره چه په فعل معنوی کښے اِختلاف دے په مابین دَ مصنف اَوْ په مابین دَ شارح کښے۔ مذهب دَ مصنف دا دے، چه عامل معنوی هغه دے، چه هغه لو حصه وی په لفظ کښے۔ برابره خبره دهٔ چه مقدّره وی، په نظم دَ کلام کښے اَوْ یا مستفاد وی، دَ فحویٰ دَ کلام نه، اَوْ مذهب دَ شارح دا دے، چه عامل معنوی هغه ته وائی چه مستفاد وی، دَ فحویٰ دَ کلام نه بغیر دَ تقدیر اَوْ دَ تصریح نه په دهٔ بلفظ په نظم دَ کلام کښے۔ او س په "زید فی الدار قائماً" کښے تنازع دهٔ، په نزد دَ مصنف په دے کښے عامل معنوی دے اَوْ په نزد دَ شارح په دے کښے عامل لفظی دے۔

**ان تکون نکرة وصاحبها معرفة غالباً** اَوْ شرط دَ پاره دَ حال دا دے، چه دے به وی نکره، ځکه چه مقصود دَ حال نه هغه تقید دے، دَ هغه حدث چه منسوب دے، ذوالحال ته۔ پس دا حاصلیږی، په نکره سره، پس حاجت نشته دے، معرفے ته اَوْ یا دا چه حال په منزله دَ خبر دے اَوْ اصل په خبر کښے تنکیر دے اَوْ ذوالحال به معرفه وی، ځکه چه دا محکوم علیه دے اَوْ اصل په محکوم علیه کښے تعریف دے غالباً، یعنی په غالب استعمال کښے به ذوالحال معرفه وی، یا په غالبُ او قالو کښے به ذوالحال معرفه وی۔ سوال۔ په کلام دَ مصنف کښے تضاد دے، ځکه چه شرط هغه ته وائی، چه تخلف دَ هغے نه نهٔ وی جائز، یعنی شرط تقاضا دَ عدم تخلف اَوْ غالباً تقاضا دَ جواز دَ تخلف کوی، نو په کلام دَ مصنف کښے منافات راغلو۔ جواب۔ غالباً قید دے

دَ پاره دَ شرط نهٔ دے، بلکه ما تبند سره دَ پاره دَ اشتراط، یعنی په اکثرو مواقعو دَ حال کښې به ذوالحال معرفه وي، بیا دَ دے څو الوونه - یو هغه چې ذوالحال په کښې نکره موصوفه وي، لکه جاءني رجلٌ من بني تمیم فارساً، اَؤ یا مُغنی وي دَ تعریف نه په شان دَ اغنا دَ معرفے دَ وجه دَ استغراق دَ دے نه، لکه را قول دَ الله تعالیٰ فیها یفرق کل امرٍ حکیمٍ امراً من عندنا دلته امراً حال واقع شوے دے کل امر نه اَؤ یا واقع وي، دا ذوالحال په حیز دَ استفهام کښې، یعنی دَ استفهام نه وروستو راغلے وي، لکه هل اتاك رجلٌ راکباً، یا تقدیم دَ حال راغلے وي په ذوالحال باندې، لکه جاءني راکباً رجلٌ، اَؤ یا واقع وي حال پس دَ الا نه، لکه ماجاءني رجلٌ الّا راکباً، نو په دے څو الوونو کښې به ذوالحال معرفه نهٔ وي اَؤ دَ دے نه علاوه په نورو څو الوونو کښې معرفه وي۔

# درس نمبر ۱۶۸

| وَاَرسلها العراك ومررت به وَحدهٗ ونحوه مُتَاَوَّلٌ. |
| --- |

په دے عبارت سره مصنفؒ دفع دَ سوال مقدر کوي۔

سوال - تاسو ووئیل چې شرطها ان تکون نکرة، یعنی حال به نکره وي، نو ستاسو دا قاعده منتقضه شوه په دے ترکیب سره چې ارسلها العراك، ځکه چې دلته العراك حال واقع شوے دے سره دَ دے نه دا معرفه ده اَؤ دغه شان په دے ترکیب کښې چې مررت به وحدهٗ - دلته وحده حال دے سره دَ دے نه چې معرفه ده، ځکه چې اضافت یے راغلے دے لوَ په مثل دَ دے، لکه فعلت جهدك، ځکه چې جهدك حال واقع دے اَؤ معرفه ده په سبب دَ اضافت سره، نو مصنفؒ جواب اوکړو چې دا ترکیبونه متاول دي یعنی په دوی کښې تاویل راغلے دے په دوه طریقو سره، یو دا چې دا مصادر راغلي دي دَ پاره دَ افعال محذوفه، نو تقدیر به دا سے شي چې ارسلها تعترك العراك او مررت به ینفرد وحده او فعلت تجهد جهدك۔ پس دا افعال سره دَ خپلو مصادرو جملے او ګرځیدلے اَؤ جمله مِن حیث الجملة دا په قوت دَ نکرے کښې وي اَؤ دَ دویم تاویل دا دے چې دا ظاهر کښې اګر که معرفے دي، لیکن په حقیقت اَؤ معنیٰ کښې نکرے دي، نو تاویل به دا سے شي چې ارسلها معترکة مررت به منفرداً او فعلت مجتهداً وَاَرسلها العراك۔ دا په اصل کښې دَ لبید شعر دے اَؤ په دے کښې شاعر دَ حمار وحشي صفت بیانوي اَؤ قول شعر دا دے:-

> وَاَرسلها العراك ولم یذدها ولم یشفق علی نغص الدخال

په ارسل کښې ضمیر راجع دے، حمار وحشي ته اَؤ دَ ها نه مراد ماده دَ حمار ده، چې په عربي کښې اتان ورته وائي اَؤ جمع یې اُتُن راځي اَؤ عراك په معنیٰ دَ ازدحام او ګڼه سره راځي۔ عراك په اصل کښې دَ اوښو جنګ ته وائي را اَؤ په اردو ژبه کښې ورته کندھوں کا جگڑا وائي اَؤ په هجوم اَؤ ازدحام کښې هُم اوښے جنګیږي، لم یذد په معنیٰ دَ نه منع کولو سره دے اَؤ نغص چې پوره تنده مات نهٔ کړي یعني

اُوبهٔ ورنهٔ خښي اوٓ وخال ورته ووائی چه یو اوبن لرے اوبهٔ اخښی اوٓ بیا دَ اُوبو نه نیمګړے وتړلے شی اوٓ بیا اُوبو له راوستے شی، چه په هغه کښے دَوه تړی اوبنان موجود وی اوٓ اُوبهٔ پرته نه هغوی وخښی۔ دَ شعر پوره معنیٰ دا دهٔ چه اوٓ اولیږه حمار وحشی خپلو مادو له، په دے حال کښے، چه هغه کښے دے اوٓ ورئ له منع نهٔ کړے اوٓ دے وَنهٔ ویریدو په نهٔ څښلو دَ اُوبو باندِ دَ دوئ۔

**سوال.** ارسال خو په ذوی العقول کښے متصور کیږی، نو دَ حمار وحشی نه به څنګه ارسال متصور شی۔

**جواب.** ارسال په معنیٰ دَ بعث باندِ دے۔ **سوال.** ظاهره معنیٰ دَ بعث دا ده چه حیات بعد الموت؟

**جواب.** بعث په معنیٰ دَ تخلیه باندِ دے۔ **سوال.** دِخال خو په انسانانو کښے متصور کیږی، نو دَ حمار وحشی دَ پاره دا لفظ څنګه استعمالیږی؟ **جواب.** مُراد په دِخال سره معنیٰ لغوی دهٔ، چه هغه دخول دَ بعض دے په بعض باندِ، یا دا چه دلته حذف دَ مضاف راغلے دے، هغه به دا سے شی، چه وَلم یشفق علیٰ نغص مثل نغص الدخال۔

**فان کان صاحبها نکرة وجب تقدیمها** اوٓ که چرته ذوالحال نکره وی، نو واجب دے، تقدیم دَ حال په ذوالحال باندِ، ځکه چه حال اوٓ ذوالحال دواړه په اصل کښے مبتدا اوٓ خبر دی اوٓ مبتدا چه کله نکره وی، نو واجب دے، تقدیم دَ خبر په مبتدا باندِ اوٓ دویم دا چه دَ حال التباس راځئ شی، دَ صفت سره په حالت نصبی کښے، لکه "ضربت رجلاً مجرداً عن ثیابه"۔ اوس دلته دا نهٔ معلومیږی، چه دا حال دے اوٓ که صفت دے، بیا دَ حالت نصبی نه غیر چه حالت رفعی دے یا جری دے، په دے کښے اګر که التباس نشته، خو "طرداً للباب" په حالت نصبی باندِ حمل شو۔ **سوال.** ستا دا قاعده منتقضه شوه په "جاءنی رجل من بنی تمیم فارساً" باندِ ځکه چه دلته رجل حال دے اوٓ نکره دهٔ، سره دَ دے نه تقدیم دَ حال په دے باندِ نه دے راغلے۔

**جواب.** مراد په نکره سره نکره محضه دهٔ، نهٔ نکره مخصصه اوٓ تا چه کوم مثال ذکر کړے دے، دا دَ نکره مخصصه مثال دے۔ **سوال.** ستا قاعده منتقضه شوه په دے ترکیب باندِ چه "جاءنی رجل وزیدٌ راکبین"، چه ذوالحال په کښے نکره محضه دهٔ اوٓ با وجود دَ مونږ باندِ تقدیم دَ حال نهٔ دے راغلے۔ **جواب.** دا حکم په هغه ځائے کښے دے، چه چرته حال مشترک نهٔ وی، په مابین دَ معرفے اوٓ دَ نکرے کښے اوٓ دلته حال مشترک دے په مابین دَ معرفے اوٓ نکرے کښے۔

**ولا یتقدم علی العامل المعنوی** اوٓ نهٔ به مقدم کیږی، دا حال په عامل معنوی باندِ ځکه چه عامل معنوی ضعیف دے اوٓ دے په مؤخر کښے عمل کولے شی اوٓ په مقدم کښے نهٔ شی کولے۔ **سوال.** ستا دا قاعده منتقضه شوه په دے ترکیب باندِ چه "زیدٌ قائماً کعمرو قاعداً"، ځکه چه قائماً حال دے، دَ زید نه اوٓ عامل په دے کښے معنوی دے، چه مستفاد دے، دَ کاف تشبیهی نه تقدیم دَ حال په دهٔ باندِ راغلے دے۔ **جواب.** دا بنا دے په دے قاعده باندِ اوٓ هغه دا چه وانتج شی دَ دوه حالونو

د دغه شیانو نه په اعتبار د مختلفو سو، نو لهذا داسې چې کوم حال به یلی وي هغه د ذوالحال سره.

# درس نمبر ۱۶۹

**بخلاف الظرف** په خلاف د ظرف نه. **سوال.** بخلاف الظرف په چا پورې متعلق دے؟ یا متعلق وي، په هغه ضمیر پورې چې مستتر دے، په تتقدم کښې او راجع دے حال ته او یا په متعلق وي، په العامل المعنوي پورې، لوکه چرته متعلق شي په هغه پورې چې مستتر دے په تتقدم کښې، نو معنیٰ به دا شي چې ولاتتقدم علی العامل المعنوي بخلاف الظرف فان الظرف یتقدم علیه، ځکه چې بنا کوو په توضیح باندې او جائز دي په دے کښې هغه چې جائز نه دي په غیر کښې. او س چې کله دے متعلق شي، په ضمیر پورې، نو بیا به دا ظرف خالی نه وي، یا به داخل وي په العامل المعنوي کښې او یا به نه وي، که چرته مندرج وي په العامل المعنوي کښې بیا لازمیږي تقدم د شي په خپل نفس باندې او که نه وي مندرج، نو بیا لازمیږي خروج د بحث نه، ځکه چې بحث زموږ په حال کښې دے نه په ظرف کښې او که چرته بخلاف الظرف متعلق شي په العامل المعنوي پورې، نو معنیٰ به دا شي چې ولاتتقدم الحال علی العامل المعنوي بخلاف الظرف لان الحال تتقدم علیه. او س په دغه صورت کښې دا ظرف به خالي نه وي، یا به داخل وي په العامل المعنوي کښې، او یا به نه وي مندرج، که چرته مندرج وي، نو لیکل دلو چې مصنف دا سې عبارت راوړے وے چې "الا الظرف"، د پاره د اختصار او که نه وي مندرج، نو بیا خو تخصیص د ظرف نه دے صحیح، ځکه چې حال خو که متقدم کیږي په ظرف باندې، دغه شان په فعل او شبه فعل هم متقدم کیږي. **جواب.** بخلاف الظرف متعلق دے په العامل المعنوي پورې او ظرف مندرج نه دے په عامل معنوي کښې او باء په معنیٰ د مع سره ده او خلاف په معنیٰ د اختلاف سره دے، نو تقدیر به دا شي چې ولا تتقدم الحال علی العامل المعنوي بالاتفاق مع اختلاف فی الظرف"، ځکه چې په ظرف کښې اختلاف دے په مابین د سیبویه او د اخفش کښې سیبویه وائي چې جائز نه دے تقدیم د حال په ظرف باندې، ځکه چې ظرف ضعیف العمل دے په متقدم کښې عمل نه کوي او په موخر کښې عمل کوي لکه مذهب د اخفش دا دے چې ظرف که چرته اعتماد نے کړے وي په مبتدا باندې، نو بیا دے عمل په معمول متاخر او متقدم دواړو کښې کولے شي، ځکه چې په ده کښې یو قسم له قوت پیدا شي په دغه اعتماد سره او که چرته اعتماد یې نه وي کړے، نو بیا نه کوي عمل په معمول متقدم کښې او یا جواز دا دے، په اختیار د شق اول سره چې بخلاف الظرف متعلق دے په تتقدم کښې چې ضمیر دے د هغه سره او ظرف مندرج نه دے په عامل معنوي کښې. **سوال.** بیا خو لازمیږي خروج د بحث نه. **جواب.** نه لازمیږي خروج د بحث نه، ځکه چې حال مشابهه دے د ظرف سره، نو چې هر کله مشابهه اوکړه ده د ظرف سره او حال خو مقدم کیږي نه په عامل معنوي، نو بیا به متوهم دا وهم کولو چې د ظرف تقدیم به هم ناجائز وي په عامل معنوي باندې، نو جواب ارکړو مصنف په دے قول سره چې بخلاف

الظرف"، ځکه چې بناء د ظروفو په توسع باندې ده او دا په منزله د محالو باندې دی۔

**ولا على المجرور على الاصح**

او نه به متقدم کیږي، په هغه ذوالحال باندې چې هغه مجرور وي۔ بیا پوهه شه! چې مجروروی، په اضافت سره او که مجرور وي، په حرف جار سره، که چرته مجرور وي په اضافت سره، نو هغه به متقدم کیږي حال په دې باندې بالاتفاق، ځکه چې حال فرع ده، د ذوالحال او چې ذوالحال هر کله مضاف الیه واقع شوی وي، نو تقدیم د مضاف الیه په مضاف باندې ممتنع دی، نو تابع د مضاف الیه خو به په طریق اولی سره ممتنع وي[1] او چې ذوالحال کله مجرور وي، په حرف جار سره، نو په دې کښې دوه مذهبه دی، یو مذهب اصح دی، بل غیر اصح دی۔ مذهب اصح دا دی، چې تقدیم د حال په هغه ذوالحال باندې چې مجرور وي، په حرف جار سره ممتنع دی، ځکه چې حال تابع د ذوالحال دی او ذوالحال خو دلته مجرور دی او تقدیم د مجرور په حرف جار باندې ممتنع دی، نو هغه شان تابع د ده په طریق اولی سره ممتنع شو او مذهب غیر اصح دا دی، چې تقدیم د حال په هغه ذوالحال باندې چې مجرور وي، په حرف جار سره جائز دی، ځکه چې حرف جار د معدات د فعل لازم څخه دی، یعني په دې سره فعل لازم متعدی کیږي، نو دی په منزله د خو د فعل اوګرځېدو او تقدیم د حال خو په فعل باندې جائز دی، نو په دې هم جائز اوګرځېد (دا دلیل عقلي دی) او بل دلیل نقلي دا دی، چې په قرآن پاک کښې هم د حال تقدیم راغلی دی، په هغه ذوالحال باندې چې هغه مجرور دی، لکه "وما ارسلناك الا كافة للناس"، په دې شان سره چې كافة حال واقع شوی دی، د للناس نه، دا جار او مجرور دی او تقدیم د حال ورباندې راغلی دی۔ جواب۔ دلته دا دی، چې كافة حال د للناس نه نه دی واقع شوی، بلکه دا حال د "ارسلناك" د کاف خطابي نه او یا دا صفت دی، د پاره د موصوف محذوف، چې "وما ارسلناك الا رسالة كافة"، او یا دا مفعول مطلق دی، د پاره د فعل محذوف چې "وما ارسلنا الا ان تكف كافة للناس"۔ په دې جواب سوال واردیږي، چې كافة د کاف خطابي نه حال واقع شي، نو دا ځکه نه صحیح کیږي، چې کاف خطابي مذکر دی او كافة مؤنث دی۔ جواب دا دی، چې په كافة کښې دا تاء د پاره د مبالغې ده او د تانیث د پاره نه ده او دلیل عقلي نه جواب دا دی، چې دلته مدعی عامه ده او دلیل خاص دی، ځکه چې فعل لازم خو په باء سره متعدی کیږي۔

---

[1] یعني ذوالحال خو مضاف الیه نه دی، لیکن د متعلقاتو د مضاف الیه نه دی او څنګه چې تقدیم د مضاف الیه په مضاف ممتنع دی، نو دغه شان تقدیم د متعلقاتو د مضاف الیه هم ممتنع دی، لکه جاءتني مجردا عن الثياب ضاربة زيد (م-س)۔

# درس نمبر ۱۷

**وكل مادل على هيئة صح ان يقع حالاً** اَوْ هَر هغه لفظ چه دلالت کوی په بیان د هیئت د فاعل یا د مفعول باندې۔ بو این خبره ده چه مشتق هوی اَوْ که جامد وی، صحیح ده چه هغه حال واقع شی، ځکه چه غرض د حال نه هغه بیان د هیئت د فاعل اَوْ یا د مفعول دے، نو دا چه څنګه اِسم مشتق واقع کیږی، دغسے اِسم جامد هم واقع کیږی، په دے عبارت سره مصنف رد اوکړو په هغه جماعت باندې چه هغوی وائی چه اِسم جامد حال نه واقع کیږی بلکه اِسم مشتق حال واقع کیږی اَوْ که چرته اِسم جامد حال واقع شوے دے، نو هغه مؤل ګرځیدلے دے[1]

**مثل هذا بسراً اطيب منه رطباً** په دے ترکیب کښے بسراً اَوْ رطباً دواړه حال واقع شوی دی، سره د دے نه چه دواړه مشتق نه دی بلکه اِسمونه جامدونه دی، بسراً هغه کجورے ته وائی چه لا پورے پخه نه وی اَوْ ترش والے په کښے وی اَوْ رطباً هغه کجورے ته وائی چه پخه وی۔ دلته په رطباً کښے په اتفاق د نحاتو سره عامل اطیب دے اَوْ په بسراً کښے اختلاف دے په مابین د محققینو کښے اَوْ د عامو نحاتو کښے۔ محققین وائی چه په بسراً کښے هم اطیب عامل دے بیا په هغوی باندې سوال وارد یږی چه اطیب صیغه د اسم تفضیل ده اَوْ اِسم تفضیل عامل ضعیف دے، نو دے په مؤخر کښے عمل کولے شی اَوْ په مقدم کښے نه شی کولے۔ **جواب** دا دے چه دا تقدیم بنا دے په یو قاعدے باندې هغه دا چه هر کله د یو شی نه دوه حالے واقع شی په اعتبارونو مختلفو سره، نو واجب ده چه هر یو حال دِ یتلی وی د ذوالحال سره، نو بسراً حال واقع شوے دے، د هذا نه په دے اعتبار سره چه دے مفضل دے اَوْ دا بسراً یلی دے هذا نه اَوْ رطباً حال دے د مشار الیه نه په دے اعتبار سره چه دے مفضل علیه دے په دے وجه رطباً یلی دے د منه ضمیر ته۔ **سوال**. هذا مفضل نه دے، بلکه مفضل هغه ضمیر دے چه مستتر دے په اطیب کښے، نو لهٰذا دا چه بسراً دِ وروستو د اطیب نه راشی۔ **جواب**. ضمیر په مقابله د اِسم ظاهر کښے کالعدم دے، چه کله مقابله راشی د اِسم ظاهر اَوْ د ضمیر، نو ترجیح به اِسم ظاهر ته ورکولے شی، نو د هذا په مقابله کښے د ضمیر حیثیت نشته لَوْ مذهب د عامو نحاتو دا دے چه عامل په بسراً کښے اشاره اَوْ تنبیه ده چه مستفاد ده د هذا نه، لیکن مذهب د دوئ ضعیف دے، د دوه وجونه یو وجه دا ده چه حال څو قید وی د پاره د عامل د ذوالحال اَوْ دلته خو بسرّیت قید د پاره د اشارے اَوْ د تنبیه نه دے اَوْ دویمه وجه د ضعف دا ده چه جائز ده داخبره چه واقع شی په ځائے د اِسم اشارے باندې اِسم صریح لَوْ صحیح نه هوی واقع کیدل، لکه تمرة نخلی بسراً اطیب

[1] لکه په مثال د متن کښے دوئ د بسراً نه په مبسراً اَوْ د رطباً نه په رطبیة سره تاویل کوی۔ ۱۲ (م-س).

منه رُطَبًا، دلته تمرة مبتداء ده اَوْ جامد ده اَوْ دا عمل نه شي کولے۔

**وقد تکون جملةً خبريةً** اَوْ کله کله واقع کيږي دا حال جُمله خبريه نه جمله اِنشائيه، ځکه چه غرض د حال نه بيان د هيئت د فاعل اَوْ يا د مفعول به دے اَوْ دے هيئت حاصليږي په مفرد سره، دغه شان حاصليږي په جمله سره اَوْ واقع کيږي په جمله خبريه نه اِنشائيه ځکه چه حال مربوط وي د ذوالحال سره اَوْ په جُمله اِنشائيه کښے ربط نه وي۔

**فالاسمية بالواوِ والضميرِ اوبالواوِ** پس جمله اِسميه چه کله حال واقع شي، نو دا به متلبسه وي په واؤ سره اَوْ په ضمير سره، ځکه چه جُمله اِسميه مؤکده ده په استقلال کښے، نو لابُدي ده، په دے کښے د رابطه قوي نه اَوْ رابطه قوي دا دے اَوْ ضمير دواړه دي، لکه جاءني زيدٌ وهو راکبٌ اَوْ يا متلبسه وي په واؤ سره، ځکه چه واقع کيږي په اول د کلام کښے وجوبًا، نو دے دلالت کوي په ربط باندِ د اَوّل وهلة نه، لکه چه په دے حديث کښے، چه وکنتُ نبيًا وآدمُ بين الماءِ والطين۔

## درس نمبر ١٧١

**او بالضمير على ضعفٍ** اَوْ يا به دا جُمله متلبسه وي په ضمير سره، ليکن سره د ضعف نه ځکه چه ضمير نه واقع کيږي په اَوّل کلام کښے وجوبًا، نو پس دے دلالت نه کوي په ربط باندِ د اَوّل وهلة نه۔

**والمضارع المثبت بالضمير وحده** اَوْ هر کله چه مضارع مثبت حال واقع شي، نو دا به متلبسه وي يواځے په ضمير سره اَوْ واؤ به ورسره نه وي، ځکه چه مضارع مشابهه ده د اِسم فاعل سره لفظًا اَوْ معنًا اَوْ هغه خو يواځے په ضمير سره دے، نو دا به هم دغه شان متلبس وي په ضمير سره، لکه جاءني زيدٌ يسرع اي جاءني زيدٌ مسرعًا۔

**وما سواهما بالواوِ والضميرِ اوباحدِهما** اَوْ ماسيوا د دے دواړو نه، چه جُمله اِسميه اَوْ يا مضارع مثبته ده، چه هغه ماسيوا د مضارع منفي ده اَوْ يا ماضي منفي اَوْ مثبته ده، دا به يا متلبس وي په واؤ په ضمير دواړو سره يا به په يو سره وي، بغير د ضعف نه اَوْ چا دا هم ويلي دي، چه په دے دواړو کښے يو هم نه وي، نو هم صحيح ده اَوْ دا په دے وجه باندِ، چه جُمله فعليه مؤکده نه ده په اِستقلال کښے۔ مثال د هغې چه حال جمله وي اَوْ فعل مضارع منفي وي اَوْ سره د ضمير اَوْ د واؤ نه وي، لکه جاءني زيدٌ وما يتکلم غلامه۔ مثال د هغې چه حال جُمله وي اَوْ فعل مضارع منفي وي اَوْ سره د ضمير نه وي اَوْ واؤ په کښے نه وي، لکه جاءني زيدٌ ما يتکلم غلامه؟ اَوْ مثال د هغې چه حال جمله وي اَوْ فعل مضارع منفي وي، چه واؤ په کښے وي اَوْ ضمير په کښے نه وي، لکه جاءني زيدٌ وما يتکلم عمروٌ؟ مثال د هغه دے چه حال ماضي مثبته وي اَوْ

سره، دَ واؤ اَؤ دَ ضمیر نه وی، لکهٔ جاءنی زیدٌ وَقد خرج غلامُهُ. مثال دَ هغې چې حال ماضی مثبته وی، اَؤ سره دَ ضمیر نه وی اَؤ واؤ په کښې نهٔ وی، لکهٔ جاءنی زیدٌ قد خرج غلامه. مثال دَ هغې چې حال ماضی مثبته وی اَؤ سره دَ واؤ نه وی اَؤ ضمیر په کښې نه وی، لکهٔ جاءنی زید وقد خرج عمرو. مثال دَ هغې چې حال ماضی منفی وی اَؤ سره دَ واؤ اَؤ دَ ضمیر نه وی، لکهٔ جاءنی زیدٌ وما خرج غلامه. مثال دَ هغې چې حال ماضی منفی وی اَؤ سره دَ ضمیر نهٔ وی اَؤ واؤ په کښې نهٔ وی، لکه جاءنی زیدٌ ما خرج غلامُهٗ. مثال دَ هغې چې حال ماضی منفی وی اَؤ سره دَ واؤ نهٔ وی اَؤ ضمیر په کښې نهٔ وی، لکهٔ جاءنی زیدٌ وما خرج عمرو.

## درس نمبر۱۷۲

**وَلَابُدَّ فِی الْمَاضِی الْمُثْبَتِ مِنْ قَدْ ظَاهِرَةً اَوْ مُقَدَّرَةً** اَؤ لا بدی دهٔ په فعل ماضی مثبته کښې، چې هغه حال واقع شی، دَ لفظ دَ قد نه. برابره خبره ده، چې دے په لفظ کښې ذکر وی، اَؤ کهٔ مقدر وی، مثال دَ ملفوظ، لکه جاءنی زیدٌ قد رکب. اَؤ چې قد مقدّ وی، لکهٔ او جاءوکم حصرت صدورهم. دلته قد مقدر دے "ای وقد حصرت صدورهم". اَؤ لا بُدیٔ دَ قد نه په دے وجه دهٔ، چې قد په اصل وضع کښې واضع وضع کړے دے، دَ پاره دَ تقریب دَ زمانے دَ ماضی دَ حال سره. او س چې هر کله ماضی حال واقع شوه، نو لابدی دهٔ په دے کښې دَ قد نه، چې تقریب دَ زمانے دَ ماضی راشی زمانے دَ حال[1] ته.

**وَیَجُوْزُ حَذْفُ الْعَامِلِ کَقَوْلِكَ لِلْمُسَافِرِ رَاشِدًا مَهْدِیًّا** اَؤ جائز دے، حذف دَ عامل دَ حال په وخت دَ موجود دَ قرینے کښې. برابره خبره ده، چې قرینه حالیه وی اَؤ کهٔ مقالیه وی، مثال دَ قرینے حالیه، لکهٔ راشداً مهدیاً، یعنی "انصب راشداً مهدیاً، یا سِرتُ راشداً مهدیاً". اَؤ قرینه دلته کښې حال دَ مسافر دے اَؤ مثال دَ قرینے مقالیے، لکهٔ بلٰی قادرین علٰی ان نسوّی بنانه، دلته کښې قادرین حال واقع شوے دے اَؤ حذف دَ عامل دَ دے متحقق شوے دے، چې هغه نجمع دے، ځکه چې دلته کښې مخکښې ذکر شوے دے، یعنی "ایحسب الانسان ان لن نجمع عظامه"، نو تقدیر به دا شی، چې "بلٰی نجمعها قادرین".

**وَیَجِبُ فِی الْمُؤَکِّدَةِ مِثْلُ زَیْدٌ اَبُوْكَ عَطُوْفًا** اَؤ واجب دے، حذف دَ عامل دَ حال

---

[1] واعلم اذا یقع الماضی المثبت حالاً فلا بد فیه من دخول لفظة قد سواء کان مکتوباً او مقدراً لیدل بها علٰی قرب زمان الحال الٰی زمان صدور الفعل من ذی الحال فاعلاً او علٰی قرب زمانه الٰی زمان وقوع الفعل عن ذی الحال مفعولاً تجوّزاً ان تقریبه علیه مجازیٌّ لاحقیقی فافهم. ۱۲ (م۔س)۔

مؤکده - حال مؤکده دې ته وائي چې دے نۀ منتقل کیږي او نۀ جُدا کیږي، د خپل ذوالحال نه او بل حال منتقله ده - حال منتقله دیته وائي چې د خپل ذوالحال نه جُدا کیږي - **سوال.** دا قاعده ستا منقوضه شوه په دیے بانډې چې شهد الله انّه لا الٰه الا هو والملٰئکة واولوا العلم قائمًا بالقسط، ځکه چې قائمًا بالقسط دا حال مؤکده ده او سره د دیے نه عامل یے نۀ دے حذف شوے -

**جواب.** مراد په حال سره بعض احوال دي، لکه په دیے مثال کښې چې زیدٌ ابوك عطوفًا حال مؤکده ده، ځکه چې عطوفت د لۀ نه نۀ جُدا کیږي[1] -

**ای احقه** دلته کښې عامل د پاره د عطوفًا احقه دے او احقه په معنی د اثبته سره ده، د پاره د دیے چې دا سوال وارد نۀ شي، چه کله چرته دا په فتح د همزه سره شي، نو دا به صیغه د واحد متکلم شي، د ثلاثي مجرد نه، چې هغه دلالت په مبالغه بانډې نۀ کوي، او چرته په ضمے د همزے شي، نو دا به باب انفعال شي او دا به دلالت اوکړي په احقاق او په تحقیق بانډې نو مونږ وائیو چې دا په معنی د اثبته سره ده او دا صیغه د باب افعال ده).

**وشرطها ان تکون مقررة لمضمون جملةٍ اسمیّةٍ** او شرط د پاره د حذف وجوبي د حال مؤکده د عامل هغه دا دے چې دا حال به مؤکده وي، منتقله به نۀ وي، د پاره د مدلول او د مفهوم د جملے هسے جمله چې هغه اسمیه وي، فعلیه به نۀ وي او مراد د جملے اسمیے نه هغه جمله اسمیه ده چې هغه مرکبه نۀ وي، د داسے اجزاؤ نه چې هغه صالح وي د پاره د عمل، چې مضمون د جملے یے او وهه، نو په دیے سره احتراز اوشو، د جزء د جملے نه، یعنی د هغه حال نه چې هغه تاکید کوي د بعض اجزاء د جملے، لکه وارسلناك للناس رسولاً، دلته کښې رسولاً دا حال مؤکده دے خو دا تاکید کوي د جزء د جملے چې هغه ارسلنا دے او جمله اسمیه یے او وهه، نو په دیے سره احتراز اوشو د جملے فعلیے نه، یعنی چې کوم حال مؤکده راغلے وي او هغه تاکید کوي د مضمون د جملے فعلیے، لکه شهد الله قائمًا بالقسط، دلته قائمًا حال مؤکده واقع شوے ده او عامل یے نۀ دے حذف شوے، نو جواب دا دے چې دا جمله فعلیه ده او خبر د مونږ په جملے اسمیه کښې ده او چې مونږ دا اوئیل، په هسے جمله اسمیه چې هغه مرکبه نۀ وي، د داسے اجزاؤ نه چې هغه صالح دي د پاره د عمل، نو په دیے سره دفع د دیے سوال اوشوه - **سوال** دا وارد یږي چې الله شاهدٌ قائمًا بالقسط، دلته کښې قائمًا حال مؤکده د جملے د اسمیے نه راغلے دے او سره د دیے نه عامل یے نۀ دے حذف شوے - **جواب** دا دے چې مراد په جملے اسمیے سره، هغه جمله اسمیه ده چې صالح

---

[1] خلاصه جواب دا شو چې واجب دے حذف د عامل د حال مؤکده په اکثرو حالتو کښې، پس قاعده منتقضه شوله نه کلیه ۱۱۲ (م بحث)

نو دغه اجزاو د سیغ د پارہ د عمل او دلته کښې جزء د دیے چې شاهدٌ دے صالح د پاره د عمل دے، دلته کښې حذف واجب دے په حذف معمول سره، د وجه د وجوب د قوینے او د سد مسد نه۔ هر چه د قرینه هغه نصب د معمول دے او هر چه دے سد مسد، هغه اقامت د معمول دے په ځائے د عامل۔

# درس نمبر ۱۷۳

**التمیز ما یرفع الابهام المستقر عن ذات** ای من ملحقات بالمفعول التمیز، یعنی بعض د ملحقاتو د مفعول نه تمیز دے، تمیز په **لغت** کښې جُدا والی ته وائی او په **اِصطلاح** کښې، ما هغه اِسم دے چې دے رفع د ابهام کوی، د هغه معنی موضوع لهٔ نه چې ثابت وی، په دیے کښې د دیے حیثیت نه، چې ما موضوع لهٔ دهٔ، چې ما یرفع الابهام بے او ویل، نو ما به منزلے د جنس باندې شو، په دیے کښې تمیز، صفت او حال ټول داخل شو۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف مانع او نهٔ کو ځکه چې دو د دخول د غیر نه او داخل شو، په کښې مات په دیے ترکیب کښې، چې قطع رزقه ای مات؟، دلته کښې مات رفع د ابهام کړے دهٔ د معنی موضوع لهٔ نه او سره د دیے نه دا تمیز نهٔ دے۔ **جواب**۔ دلته کلمه د ما عبارت دے، د اِسم نه او مات خو فعل دے۔

**سوال**۔ مستقر په اعتبار د لغت سره ثابت؟ ته وائی مطلقاً او تا سره تیرے نه ابهام وضعی معنیٰ والفسته، او دا خو نه دے، مګر ضرور ورة دے، د معنیٰ حقیقی نه معنیٰ مجازی ته، نو دلته قرینه څهٔ دهٔ، ځکه چې په مجاز کښې لابُدی دهٔ، د قرینے نه۔ **جواب**۔ دا بنا دے، په دیے قاعده باندې چې شو ذکر شی مطلق، نو صرف سے کیږی، فردِ کامل ته او فردِ کامل په دے مقام کښې ابهام وضعی دے۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف مانع او نه ځکه چې دو د دخول د غیر نه او داخلے شوی په کښې قرینه د مشترکاتو ځکه جاریةً، په دیے ترکیب کښې چې رأیتُ عیناً جاریةً؟ دلته عین لفظ مشترک دے او په جاریة سره یے تعین د معنے مراد راغے، نو په دیے سره هُم رفع د ابهام راغله۔ پس دا په تعریف د تمیز کښې داخل شو، دغه شان داخل شو په کښې اوصاف د مبهالو، لکه هذا الرجل، دلته په هذا کښې ابهام وو، په الرجل سره یے تمیز راغے۔ یکار دا دے چې دا دے هُم په تمیز کښې داخل شی او عطف بیان هُم په کښې داخل شی، لکه ابوحفص عمرُ، ځکه چې ما رفع د ابهام دے، د معنے موضوع لهٔ نه، نو دا ټول داخل شو په تمیز کښې، خو په حقیقت کښې دا تمیزونه نهٔ دی۔ **جواب**۔ مراد په ابهام سره هغه دے چې ثابت وی، په معنیٰ موضوعٌ لهٔ کښې، د دیے حیثیت نه چې دا موضوع لهٔ دهٔ او دلته کښې رفع د ابهام لفظی دهٔ، دا د دیے حیثیت نه نهٔ دهٔ، بلکه دا پیدا شوی دهٔ، د وجه د تعدد د وضع نه، لکه په قرینه د مشترک کښې او یا د تعدد د مستعمل فیه نه، لکه په اوصافو د مبهالو کښې دهٔ او یا د وجه د عدم شهرت نه، لکه په عطف بیان کښې۔

**عن ذات مذکورة او مقدرة**

په دې سره احتراز راغلے د حال نه، ځکه چې دے رفع د ابهام کوي، خو د ذات نه نه کوي او د دغه شان احتراز راغے د نعت[1] نه او مذکورة او مقدرة دا صفتونه دي د پاره د ذات او په دې کښې اشاره ده قسمونو د تمیز ته، یعني یو هغه تمیز دے چې رفع د ابهام کوي د ذات مذکورې نه، لکه "رطلٌ زیتاً"، دلته په رطل کښې ابهام دے، نو په زیتاً سره رفع د ابهام راغله او دویم قسم هغه دے چې رفع د ابهام کوي د ذات مقدرې نه، لکه "طاب زیدٌ نفساً"۔ دا په حکم او په قوة د دې قول کښې دے چې "طاب شيءٌ منسوب الی زیدٍ نفسه" نو دلته نفساً رفع د ابهام کړې ده، د ذات مقدرې نه، چې هغه شيء دے۔

**فالاول عن مفرد مقدار غالباً**

پس قسم اول چې هغه رفع د ابهام کوي د ذات مذکورې نه او رفع د ابهام کوي د مفرد مقدار نه په غالب استعمال کښې (او دا مفرد به یا تام وي په تنوین سره، یا په نون د تثنیه سره او یا په اضافت سره یا هغه نون چې مشابهه وي د نون د جمع سره، لکه "عشرون" شو) په مفرد سره احتراز راغے د جملې او د شبهه جملې نه او د اضافت نه او په مقدار سره احتراز راغے د غیر مقدار نه۔ مقدار هغه ته وائي چې هغه سره د اشیاؤ مقدار معلومیږي او دا په پنځه قسمه دے، وزن دے، کیل (پیمانه) دے، عدد دے، مساحت دے او مقیاس دے۔

**اما عدد نحو عشرون درهماً او سیالی**

یعني هغه چې رفع د ابهام کوي د ذات مذکورې نه چې مفرد وي، هسې مفرد چې هغه کامل وي، په عدد کښې، لکه "عشرون درهماً"، دلته درهماً تمیز دے چې دې رفع د ابهام کړې ده، د "عشرون" نه چې هغه مقدار دے، د عدد (او بیان د عدد او د هغې د تمیز ذکر وروستو را روان دے)۔

**واما فی غیره نحو رطلٌ زیتاً و منوان سمناً و قفیزان براً۔**

او یا به دا تمیز رفع د ابهام کوي، د غیر د عدد نه سره د دې نه چې دا مقدار وي "رطلٌ زیتاً"، دا مثال د هغه دے چې وزن وي او دے تمام وي په تنوین سره، نو په رطل کښې ابهام دے او په زیتاً سره رفع د ابهام راغلې ده۔ "منوان سمناً"، دا مثال د هغه دے چې موزون وي او ابهام وي په کښې، په سمناً سره رفع د ابهام راغلې ده او دا تام شوے دے په نون د تثنیه سره۔ "قفیزان براً"، دا مثال د مکیل دے او رفع د ابهام یې راغلې ده په براً سره، دا هم تام شوے دے په نون د تثنیه سره۔

---

[1] او دغه رنګې په دې سره احتراز راغے د نعت نه هم ځکه چې حال او نعت دواړه رفع د ابهام کوي، د مصنف نه ذات نه۔ (م۔ س)۔

# درس نمبر ۱۷۴

**وعلی التمرة مثلها زبداً** دا مثال د متیاس دے چه تام دے، په اضافت سره لکه مثلها مبتدا ده او "علی التمرة" ورله خبر دے چه واجب التقدیم دے۔

**سوال.** تمیز خو رفع د ابهام کوی، د ذات نه او په دے مقادیرو کښے خو د سره ابهام نشته۔ **جواب.** مراد په مقادیرو سره مقدرات دی۔ **سوال.** تمیز خو رفع د ابهام کوی، د معنیٰ موضوع له نه او مقدرات خو معنیٰ موضوع له نه ده۔ **جواب.** موضوع له عام دے چه موضوع له په وضع شخصی سره وی او که په وضع نوعی سره وی۔ دلته اگر که وضع شخصی نه ده، لیکن وضع نوعی ده۔ **سوال.** مقادیر خو پنځه دی، نو څه وجه ده چه مصنفؒ بعض ذکر کړل او بعضے نه او بعض ئے مکرر ذکر کړل؟ **جواب.** غرض د مصنفؒ بیان د مقادیرو نه دے، بلکه بیان د هغه دے چه په هغے باندے مفرد مقدار تمامیږی، د پاره د دے چه علت د نصب موجود شی بنا په تمیز باندے، نو مفرد متمم مشابهه دے، د فعل سره او متمم د دے مشابهه دے د فاعل سره او تمیز ئے مشابهه دے د مفعول سره۔ **سوال.** مفرد مقدار چه څنګه تمامیږی په تنوین باندے یا په نون د تثنیه سره او یا په جمع سره او یا په اضافت سره، نو هغه شان په الف لام سره هم تمامیږی، نو هغه د وجه ذکر نه کړو، لکه عندی الراقود خلا؟ او مراد دا دے چه تمامیدو سره چه بیا محل وی اضافت د ده، ځکه چه معرف باللام اضافت ممتنع دے۔ **جواب.** مراد په متمم سره مطلق متمم نه دے، بلکه هغه متمم دے چه هغه مشابهه وی د فاعل سره او لام نه دے مشابهه د فاعل سره، ځکه چه فاعل د فعل نه وروستو او لام مقدم دے په اسم باندے۔

**فیفرد ان کان جنساً** پس دا تمیز به مفرد وی که چرته دے جنس وی، ځکه چه د جنس اطلاق په قلیل او په کثیر تولو باندے برابر دے، ځکه چه مقصود د تثنیت او جمعیت نه دلالت دے، په کثرت د افرادو باندے او د جنس اطلاق په قلیل او کثیر دواړو برابر دے او د جنس اجزاء متشابهه دی او یو بل سره، لکه عندی رطل زیتاً۔

**الا ان یقصد الانواع** مګر نه به وی مفرد په هغه وخت کښے چه قصد د انواعو او کړے شی او مراد په انواع سره ما فوق دے د واحد نه، یعنی یفرد فی جمیع الاوقات الا وقت قصد الانواع المختلفة، بیا به وائے چه عندی رطل زیتین او رطل زیوتاً؟ او دا ځکه چه جنس اګر که دلالت کوی په کثرت د افرادو باندے، ولے دے دلالت نه کوی په کثرت د انواعو باندے، نو لابدی شو په دے کښے د تثنیت او د جمعیت نه۔ **سوال.** تمیز چه څنګه تثنیه او جمع کیږی، د پاره د قصد د انواعو نو هغه شان تثنیه او جمع کیږی، د پاره د قصد د اعدادو هم نو څه وجه ده؟

چه مصنف؟ قصد دَ الواعو نکړو اَؤ قصد دَ اعداد ئې ذکر نه کړو؟ **جواب**. مراد په الواعو سره حصص دَ جنس دی۔ برابره خبره ده، چه په خصوصیات سره وی اَؤ که په شخصیات سره وی۔

**ویجمع فی غیره** اَؤ په غیر دَ جنس کښې جمع کیږی لَؤ تثنیه کیږی، چه هر کله ئې جمع اُروے، لو تثنیه په کښې هم داخل شوه اَؤ یا مراد دَ جمع نه مافوق الواحد دے لَؤ جمع کیږی، بیا په دے وجه باندې چه موافقت راشی، په مابین دَ تمیز اَؤ دَ ممیز کښې۔

**ثم ان کان بتنوین اَو بنون التثنیة جازت الاضافة** پس دَ هغه نه که چرے دا مقدار مفرد، چه تام وی، په تنوین سره اَؤ یا په نون دَ تثنیے سره اَؤ چه ضمیر په کان کښې راجع شی، تمیز ته، لو معنی به دا شی، چه کچرے تمیز چه متلبس وی اِسم دَ هغه چه تام وی، په تنوین سره یا په نون دَ تثنیے سره، لو جائز دے اضافت، ځکه چه مقصود دَ تمیز نه رفع دَ ابهام ده اَؤ هغه حاصلیږی په اضافت سره، سره دَ تخفیف نه۔

**والا فلا** یعنی "وان لم یکن بتنوین او بنون التثنیة فلا یجوز الاضافة"، که چرته نه وی تملبس اِسم دَ ده په تنوین سره، یا په نون دَ تثنیے سره، بلکه تمام شوے وی په جمع جمع سره، اَؤ یا په اضافت سره، لو بیا جائز نه دے اضافت، ځکه چه په صورت دَ جمع کښې (یعنی په نون دَ جمع کښې) جائز دے، اضافت دَ دے غیر دَ تمیز ته۔ اوس که چرته دے مضاف اوګرځی، تمیز ته، لو لازم به التباس اَؤ په صورت دَ اضافت کښې لازمیږی اضافت دَ مضاف، "لان المضاف لا یضاف ثانیاً" اَو په "عشرون درهماً" کښې اضافت متعذر دے۔

**وعن غیر مقدار مثل خاتم حدیداً** اَؤ کله رفع دَ ابهام واقع وی، دَ غیر مقدار نه لکه "خاتم حدیداً"، ځکه چه دلته په خاتم کښې ابهام وو، ځکه چه خاتم دَ حدید هم وی، دَ سپینو زرو هم وی، دَ تانبے هم وی۔ پس په خاتم کښې ابهام دے، سره دَ دے نه چه، دا غیر مقدار دے، لو حدیداً به دے دَ پاره تمیز واقع شی۔

**والخفض اکثر** اَؤ جر په تمیز کښې غیر مقدار کښې اکثر دے، یعنی کثیر الاستعمال دے، ځکه چه غرض دَ تمیز نه رفع دَ ابهام وه اَؤ دا چه څنګه حاصلیږی په نصب سره، دغه شان حاصلیږی په اضافت سره اَؤ سره دَ مزید فائدے نه، چه هغه تخفیف دے۔

## درس نمبر ۱۷۵

**والثانی عن نسبة او ما ضاهاها** اَؤ قسم ثانی دَ تمیز چه هغه رفع دَ ابهام کوی، دَ نسبة نه چه واقع وی، په جمله کښې اَؤ په هغه کښې ابهام وی اَؤ یا نسبة واقع وی، په شبه جمله کښې اَؤ مراد دَ جملے نه جمله فعلیه ده۔ مضاهاة، په معنی دَ مشابهت

سره راځي، شبهه جمله، لکه اِسم فاعل شي. مثال يې دا ډې دے، لکه "الحوض ممتلئٌ ماءً" اَوْ یا اِسم مفعول، لکه "الارضُ مفجرة عیوناً" اَوْ یا صفة مشبهه وي، لکه "زیدٌ حسنٌ وجهاً" اَوْ یا اِسم تفضیل وي، لکه زیدٌ افضل اباً، اَوْ دا جمله چه څنګه فعل فاعل غواړي، نو دغه شان دوي هم فاعل غواړي، ځکه چه دوي مشابهه دي د فعل سره. **سوال**. دا خو مخالفت راغے، په مابین د اجمال اَوْ د تفصیل کښې، ځکه چه اجمال دا دے، چه قسم ثاني هغه دے، چه رفع د ابهام کوي، د نسبة نه، په جمله کښې اَوْ یا په شبهه جمله کښې. **جواب**. ابهام په طرف د نسبة کښې مستلزم دے، ابهام لره، په نفس نسبت کښې، اَوْ رفع د ابهام په نسبت کښې مستلزم ده، رفع د ابهام لره په طرف د نسبت کښې اَوْ مصنف دلته امتحان اوکړو، په نسبت باندې د پاره د تنبیه په دې خبره باندې، چه مقابله په مابین د قسمین د تمیز کښې نه ده، په اعتبار د ذات مقدر یا مذکوره سره بلکه په اعتبار د ذات اَوْ د نسبت سره ده، که چرته تمیز رافع د ابهام وي، د ذات نه، نو هغه قسم اوّل دے. برابره خبره ده، چه ذات مذکوره وي اَوْ که مقدره وي اَوْ که چرته تمیز رافع د ابهام وي، د نسبت نه، نو هغه قسم ثاني دے. برابره خبره ده، چه ذات مذکوره وي اَوْ که مقدره وي.

**ضابطه** زده کړه دا خبره چه تمیز د نسبت نه په څلور قسمه دے. وجه د حصر يې دا ده، چه دا تمیز به خالي نه وي، یا به عین وي اَوْ یا به عرض وي (عین قایم بالذات ته وائي، اَوْ عرض قایم بالغیر ته وائي) اَوْ هر یو به د دې نه خالي نه وي، یا به په مفهوم د دې کښې اضافت وي اَوْ یا به نه وي (یعني غیر ته به يې نسبت وي اَوْ یا به نه وي)، نو دا څلور قسمه شول، عین اضافي، عین غیر اضافي، عرض اضافي، عرض غیر اضافي. عین اضافي، لکه اب شو ځکه چه دے قایم بالذات دے، اَوْ مفهوم د ده کښې اضافت معتبر دے غیر ته. عین غیر اضافي، لکه مال شو ځکه چه دے قایم بالذات دے اَوْ په مفهوم د دې کښې اضافت نه دے معتبر غیر ته. عرض اضافي، لکه البوة شو ځکه چه دے قایم بالغیر دے اَوْ په مفهوم د ده کښې اضافت معتبر دے غیر ته. عرض غیر اضافي، لکه علم شو ځکه چه دا قایم بالغیر دے اَوْ په مفهوم د ده کښې اضافت غیر ته نه دے معتبر. بیا دا تمیز په اعتبار د منتصب عنه سره په دوه قسمه دے، یو هغه دے، چه خاص دے په منتصب عنه پورې، دوم هغه دے، چه خاص نه دے په متعلق د منتصب پورې. دریم هغه دے، چه په دواړو پورې صلاحیت د تعلق لري. منتصب عنه، لکه زید شو په طالب زیدٌ نفساً کښې، ځکه چه د ده په وجه باندې تمیز منصوب دے.

**مثل طابَ زیدٌ نفساً** دا مثال د جملې دے، اَوْ دا دې په نسبت کښې ابهام وو، نو په نفساً سره رفع د ابهام راغلې ده، تمیز په دې کښې عین غیر اضافي دے اَوْ خاص دے، په منتصب عنه پورې دے.

**وزيد طيب اباً** دا مثال دَ شبهې جملې دے، تميز په دے کښې عين اضافي دے اَو خاص نه دے، په منتصب عنه پورې، بلکه دَ دواړو سره دَ دے تعلق راتلے شي يعنې زيد منه دے، دَ حيثيت دَ پلار والي نه، چه دے په خپله پلار دے اَو يا دا چه دَ زيد پلار منه دے۔

**والبوة ودارا وعلما** سوال. دَ باره دَ وضاحت خو يو مثال کافي وو، دَ دومره مثالونو ته څه ضرورت دے؟ جواب. کثرت دَ مثالونو په اعتبار دَ کثرت دَ تمثيلاتو سره دے، ځکه چه يو تميز هغه دے، چه عين اضافي وي، بل هغه چه عين غير اضافي وي، بل هغه چه عوض اضافي وي اَو بل هغه چه عوض غير اضافي وي اَو هر يو دَ دے ابلعونه به يا خاص وي په منتصب عنه پورې يا په متعلق دَ منتصب عنه پورې اَو يا صالح وي، دَ دواړو دَ پاره۔

**او في اضافة مثل يعجبني طيبه ابا والبوة ودارا.** دا عطف دے، په جمله بانډې، نو تقدير دَ عبارت به داسے شي، چه "والثاني عن نسبة في اضافة"۔ دلته په طيبه کښې اضافت دے اَو په دے قسم کښې تم له ابهام دے، نو په اباً البوة اَو داراً سره ترے نه رفع دَ ابهام راغلے۔ يو مثال دَ هغه دے، چه تميز عين اضافي وي، او س اباً مثال دَ عين اضافي دے اَو صالح دے دَ دواړو دَ پاره، البوة عوض اضافي دے، دا عين غير اضافي دے۔

**وعلما!** علم مثال دَ عوض غير اضافي دے، په دے کښې دَ ابا نه علاوه دا نور ټول صالح دي، چه دوئ خاص او ګرځي، په منتصب عنه پورې۔

**ولله دره فارسا** در په اصل کښې لبن ته وائي اَو عرب دا لفظ دَ پاره دَ خير کثير استعمالوي، نو معنیٰ به داسے شي، چه "لله خيره فارسا"۔ دلته فارسا تميز واقع شوے دے۔

سوال. مثال خو دَ پاره دَ وضاحت دَ ممثل راځي، نو دَ وضاحت دَ پاره خو يو مثال کافي وو، نو دومره مثالونه ولې ذکر کړل؟ جواب. په دے کښې تنبيه ده، په دے خبره بانډې، چه تميز څنګه جامد واقع کيږي، نو دغه شان مشتق هم واقع کيږي. فوارسة يا په فتح دَ فارس وه په معنیٰ شهسوارۍ سره راځي اَو په کوه هوښيارتيه وائي. سوال. څه وجه ده، چه بعض شارحانو دا مثال دَ پاره دَ قسم اوّل راوړے دے اَو مصنف دا مثال دَ پاره دَ قسم ثاني ذکر کړو؟ جواب. په در کښې دا ضمير که چرے معلوم وي، نو دا مثال دَ قسم ثاني دے اَو که مجهول وي، نو دا مثال دَ قسم اوّل دے، نو دَ مصنف په نزد دا معلوم وو، په دے وجه يې مثال دَ پاره دَ قسم ثاني راوړلو۔

**ثم ان كان اسما ليصح جعله لما انتصب عنه جاز ان يكون له او لمتعلقه** پس دَ هغه نه که چرے وي، دا تميز اسم ذاتي نه اسم صفتي، هسے اسم چه صحيح

وی کوځوځول، دَ هغه دَپاره دَ منتصب عنه (راهغه) دے، چه دهٔ ته نسبت دَ عامل دَ تمیز پیښ شوے وی (لو جائز ده دا خبره، چه داتمیز دَ منتصب عنه دَپاره راشی اَو یا دَ هغه دَ متعلق دَ پاره، لکه "طاب زیدٌ اباً"، نو دا اباً تمیز واقع کیږے شی، دَ منتصب عنه هُم، چه زید دے، نو معنیٰ به دا شی چه زید پلار دے، دَ دغه حیثیت نه چه پلار دے اَو کهٔ دے تمیز واقع شی متعلق دَ منتصب عنه نه، نو معنیٰ به دا شی، چه زید مِنه دے، چه دهٔ لره پلار دے. سوال. داقاعده ستا منقوضه شوه، په "طاب زید نفساً" باندِ، حُکه چه نفساً اِسم ذاتی دے اَو سره دَدے نه جائز نهٔ دی، چه دے صالح لو کړے دَپاره دَ منتصب عنه لَو دَ متعلق دَ منتصب عنه، بلکه دے خاص دے، فقط په منتصب عنه پورے. جواب. مراد په اسم ذاتی سره هغه دے، چه صحیح وی اوکرځول دَ هغه دَپاره دَ منتصب عنه اَو دے لَص نهٔ وی په منتصب عنه کښے اَو نفساً، خو نص دے په منتصب عنه کښے۔

# درس نمبر ۱۷۶

**والا فهو لمتعلقه فهو يطابق فيهما ما قصد**

اَو کهٔ چرته صحیح نهٔ وی کرځول دَ دهٔ دَپاره دَ منتصب عنه، نو بیا به داتمیز واقع شوے وی، دَ متعلق دَ منتصب عنه نه. پس داتمیز به مطابق وی، دَ مقصود سره په افراد، تثنیه اَو جمع کښے اَو په مراد وقصد کښے۔ "فیطابق فیهما"، پس مطابق وی، داتمیز په دواړو صورتونو کښے، دَ هغه سره، چه کوم قصد کیږے شوے وی، دَ افراد او اَو دَ تثنیے اَو دَ جمع نه، چه اووائے "طاب زیدٌ اباً، طاب الزیدان ابوین، طاب الزیدون آباءً، لکه یا اووائے، چه "طاب زیدٌ اباً، طاب زید ابوین" (چه پلار اَو نیکهٔ دواړه مراد شی)، اَو "طاب زید آباءً" (چه پلار، نیکهٔ اَو لوړ نیکونه هُم ورسره مراد شی)۔

**الا اذا كان جنسا**

یعنی مطابق وی په جمیع اوقاتو کښے، مگر مطابق به نهٔ وی په وخت دَ کیدلو دَ دے تمیز کښے جنس، حُکه چه دَ جنس اطلاق په قلیل اَو په کثیر باندِ برابر دے، نو په دے وجه دَ دے تثنیه اَو جمعیت ته ضرورت نشته، لکه چه اووائے "طاب زیدٌ عِلماً"۔

**الا ان يقصد الانواع**

دا مستثنیٰ مفرغ ده، یعنی تمیز به مفرد راوړلے شی، چه کله دے جنس وی په جمیع اوقاتو کښے، مگر نهٔ به وی دے جنس، چه کله قصد دَ انواعو اوشی، حُکه چه جنس دلالت کوی په کثرت دَ انواعو، لیکن دلالت کښے په کثرت دَ انواعو دلالت نهٔ کوی. پس په دغه صورت کښے به موافق دَ انواعو یا دَ نوعین راځی، لکه "طاب زیدٌ علمین یا علوماً"۔

**وان كانت صِفَةً كانت لهٔ وَطبقه**

اَو کهٔ چرته داتمیز اِسم صفتی وی، یعنی اِسم فاعل اسم مفعول صفة مشبه اَو یا اِسم تفضیل وی، نو

دا تمیز به صفت گرځي' دپاره د منتصب عنه، ځکه چه صفت تقاضا کوي' د موصوف' لو منتصب عنه به د ده دپاره موصوف اوګرځي، لکه "طاب زید والداً". دلته والداً اِسم صفتي دے او تمیز دے' لو دے به صفت وي' دپاره د زید. **سوال**. تمیز خو راځي د ابهام کولو' د ذات نه، لو دے به څنګه رفع د ابهام اوکړي' د صفت نه، چه ته وائې "وان کانت صفة الخ". **جواب**. مراد په صفت سره اِسم مشتق دے.

**سوال**. دا قاعده ستا منقوضه شوه' په دے قول سره چه "کفیٰ زید رجلاً"، ځکه چه رجلاً اِسم صفتي نه دے او سره د دے نه خاص دے' په منتصب عنه پورے. **جواب**. اِسم صفتي عام دے' صراحةً وي او که تاویلاً. دلته اګرکه دا رجلاً صریحي نه دے' لیکن په تاویل سره اِسم صفتي دے' تقدیر به دا سے شي' چه "کفیٰ زیدٌ کاملاً في الرجلیة" او مطابق به وي' دا تمیز د منتصب عنه سره' په افراد تثنیه او جمعیت کښے او د غسے په تذکیر او په تانیث کښے، ځکه چه دے حامل دے' د ضمیر د منتصب عنه.

**سوال**. وطبقه عطف دے' په خبر د کان باندِ او خبر د کان محمول وي' په اِسم د کان باندِ، لو دلته کښے دا حمل نه صحیح کیږي، ځکه چه حمل د صرف وصف لازمیږي. **جواب**. واؤ په معنیٰ د مع سره دے' یعني مع طبقه او یا دا چه دلته په مصدر کښے معنیٰ د تاویل کوو' یعني "مطابقة له" او واؤ به دپاره د عطف شي.

## ولحقلت الحال

او دا صفت مذکوره احتمال د حال لري' د وجه د معنے د استقامت نه د حال' یعني معنیٰ د حال په ده کښے هم صحیح کیږي. **سوال**. چه هر کله معنیٰ د تمیز او د حال په دے کښے برابر ده' لو بیا حال ئے ولے په احتمال سره ذکر کړو.

**جواب**. جهت د تمیز په دے کښے قوي دے، او جهت د حال نه، ځکه چه معنیٰ د "طاب زیدٌ فارساً" او "فارساً" تمیز شي' یعني زید ښه دے' د دے حیثیت نه چه فارس دے او که چه حال شي' لو دا به مدح اوګرځي' د پاره د زید بل شي' په حال د فروسیة کښے او مقصود نه مدح' فروسیة د زید دے' لو د تمیز معنیٰ موافق او لائق ده' د مقصود سره.

## ولا یتقدم علی عامله

او دا تمیز نه مقدم کیږي' په خپل عامل باندِ، که عامل د دے اِسم بیلد وي' لو اِسم جامد ضعیف العمل دے' په موخر کښے عمل کولے شي لو په مقدم کښے نه شي کولے، که چرته عامل د ده فعل وي' لو دے به په منزله د فاعل اوګرځي لو فاعل موخر وي' د فعل نه.

## والاصح ان لا یتقدم علی الفعل

او اصح په مذاهب کښے دا دے' چه دے نه مقدم کیږي' په فعل باندِ او وجه ئے صحیح او دلیله، ځکه چه دے مشابهه دے' د فاعل سره او فاعل موخر وي' د فعل نه، لکه "طاب زید نفساً"، دا په

دې تاویل سره شي چه طاب نفس نېږي. **سوال**. ته وائې چه تمیز په منزله د فاعل دے، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په دې ترکیب سره چه "فجّرنا الارض عیونا". دلته عیونا تمیز دے او د سره دې منه نه دے صحیح داخبره چه د دے فاعل واقع شي او دغه شان "امتلأ الاناء ماءً". دلته کښې ماءً تمیز دے، د نسبت نه او بیا هم فاعل واقع کېدل د دې نه دي صحیح. **جواب**. فجّرنا کښې باب تفعیل په معنیٰ د باب انفعال سره دے، نو تقدیر به دا سے شي "انفجرت عیون الارض" او په امتلأ الاناء ماءً کښې باب افتعال چه امتلاء دے په معنیٰ د مجرد سره دے، نو معنیٰ به دا شي چه "ملأ الماء".

**خلافا للمازني والمبرد** خلاف ثابت په دې قول کښې ابوعثمان مازني نحوي لره او امام د نحو مبرد لره نحوي، ولې چه جائز دے، تقدیم د تمیز په فعل باندې حکه چه فعل عامل قوي دي، په مقدم او په موخر دواړو کښې عمل کوي او د دغوي دلیل دا دے، چه "وما کاد نفسا بالفراق تطیب" دلته کښې نفسا تمیز واقع شوے او مقدم هم دے، په عامل باندې چه هغه فعل تطیب دے، او قول شعر دا دے چه:

اتهجر سلمیٰ بالفراق حبیبها وما کاد نفسا بالفراق تطیب

پس د دې نه جواب دا دے، چه په دې شعر کښې یو روایت په نفسي سره دے، او بل جواب دا دے چه دا د قبیلې د ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر نه دے، یعنې د تطیب نه نفسا حال واقع شوے دے، خو هغه د نفسا نه مقدم دے او دا وروستو تطیب تفسیر دے، د پاره د هغه او د لسي تطیب.

# درس نمبر ۱۷۷

**المستثنیٰ متصل ومنقطع** لُغت کښې جدا کړے شوي ته وائي او په اِصطلاح کښې بل د ملحقاتو د منصوباتو نه مستثنیٰ دے، مستثنیٰ په تعریف اعتباري دا دے، چه دا هغه اسم دے، چه ذکر کړے شوے وي پس د حرف استثناء نه.

**سوال**. تقسیم فرع د تعریف ده، نو پکار دا ده چه اول یې تعریف د مستثنیٰ کړے وے او بیا یې تقسیم کړے وے. **جواب**. دلته د مستثنیٰ د پاره یو جامع مانع تعریف نه وو چه هغه دې دواړو قسمونو له شامل شي، په دې وجه یې تعریف اونه کړو. **سوال**. دا خو لازمیږي، تقسیم د مجهول او تقسیم د مجهول باطل دے. **جواب**. تعریف په دوه قسمه دے، یو تعریف حقیقي او بل تعریف اعتباري. دلته اګر که تعریف حقیقي نشته، خو تعریف اعتباري شته، چه هغه موږ ذکر کړو، چه ذکر وي پس د حرف استثناء نه او دومره تعریف کافي دے، د پاره د تقسیم. **سوال**. د دې قسمونو تعریف یې ولې اوکړه؟ **جواب**. د هر یو قسم د پاره خاص احکام دي، په دې وجه یې ورله

تعريف نه ذكوي، ما مستثنیٰ په دوه قسمه دی، يو متصل بل منقطع دی، وجه د حصر يې داده چې دا مستثنیٰ به خالي نه وي يا به داخل وي په مستثنیٰ منه كښې قطعاً مخكښې د استثناء نه او يا به خارجه وي، د مستثنیٰ منه نه قطعاً مخكښې د استثناء نه، كه چرته اوّل وي، نو مستثنیٰ متصله او كه دويم وي، نو مستثنیٰ منقطع.

**فالمتصل هو المخرج عن متعدد لفظاً او تقديراً**

پس مستثنیٰ متصل هغه دی چې د هغې اخراج شوے وي، د متعدد نه. برابره خبره ده چې دا متعدد ملفوظ وي او كه مقدر وي. **سوال.** اخراج خو هم د متعدد نه كيږي نو ذكر د متعدد پس د مخرج نه زائد دے. **جواب.** دا د پاره د بيان د تفصيل د لفظاً او تقديراً راغلے دے. دلته دا لفظاً په معنیٰ د ملفوظ يا لفظياً او تقديراً په معنیٰ د مقدر يا تقديرياً سره دی "فانه دفع الاعتراض المقدر حتى تفصيله فيما مضى". مثال د هغې چې متعدد لفظي وي، لكه جاءني القوم الا زيداً، او مثال د متعدد چې مقدر وي، لكه ما جاءني الا زيدٌ.

**بالا واخواتها**

دا استثناء به راغلي وي په الا سره او يا د هغې په اشباهو او نظائرو سره، چې سوي حاشا خلا او عدا وغيره دي. په الا او اخواتها سره احتراز راغلے د هغې نه، چې په الا يا په اخوات د الا سره نه وي ذكر، بلكه په لفظ د استثناء سره ذكر وي، لكه جاءني القوم مستثنیٰ منهم زيدٌ.

**والمنقطع المذكور بعدها غير مخرج**

او مستثنیٰ منقطع هغه اسم دے چې چې ذكر كړے شوے وي، پس د الا او د نظائرو نه، چې هغه غير صفتي وي، بيحال د كون د دې كښې چې دا مخرج نه وي، د متعدد نه، يعني غير مخرج عن متعدد دے. **سوال.** د مستثنیٰ منقطع په تعريف كښې دې هو ذكر نه كړو او په متصل كښې دې هو راوړے دے؟ **جواب.** دلته يې هو ذكر نه كړو او محذوف دے، په قرينه د ذكر د ده سره په مستثناء متصل كښې، مثال د مستثنیٰ منقطع، لكه جاءني القوم الا حماراً. زده كړه دا خبره، چې دلته اختلاف دے په مابين د علماو غالق كښې او د محققين كښې، په تفسير د مستثنیٰ متصل او منقطع كښې. عام نحات وائي، چې مستثنیٰ متصله هغې ته وائي، چې مستثنیٰ داخله وي، په مستثنیٰ منه كښې او منقطعه هغې ته وائي، چې مستثنیٰ په مستثنیٰ منه كښې داخله نه وي، لكه يا به د جنس د مستثنیٰ منه نه وي او يا به نه وي، كه د جنس د مستثنیٰ منه نه وه، نو دا متصله او كه نه وه، نو دا منقطعه. او مذهب د محققينو دا دے، چې مستثنیٰ داخله وي، په مستثنیٰ منه كښې قطعاً قبل الاستثناء، نو دا مستثنیٰ متصله، او كه خارجه وي، مستثنیٰ د مستثنیٰ منه نه قطعاً دا منقطعه او په دواړو صورتو نو كښې. بيا

خبره دا چې مستثنیٰ د جنس د مستثنیٰ منه وي او که نه وي[1]۔

**وهو منصوب اذا کان بعد الا غیر الصفة.** اود دا مستثنیٰ به منصوب وي وجوباً، چې کله دا واقع شي، پس د الا نه هسې الا چې هغه غیر صفتي وي، ځکه چې که چیرې صفتي شي، نو دے به بیا په اعراب کښې تابع وي، تخیل موصوف، لکه 'لو کان فیهما الهة الا الله لفسدتا'۔ او س چې هر کله مصنف بیان د تمیز د مستثنیٰ او کړو نو شروع یې او کړه په بیان د دے خبرې کښې، چې مستثنیٰ به کله واجب النصب وي او کله به نصب جائز وي او کله به مجرور وي، نو په دے عبارت سره مواضع د وجوب د نصب د مستثنیٰ بیانوي، نو وائي چې کله مستثنیٰ واقع شي، پس د الا نه چې غیر صفتي وي۔

**فی کلام موجب** کلام موجب هغه ته وائي چې په کښې نفي نهي استفهام نه وي، لکه 'جاءني القوم الا زیداً'۔ دلته نصب واجب دے بنا بر استثنائیت ځکه چې محل د پاره د نصب د مستثنیٰ بنا بر استثنائیت هغه یا رفع ده یا النصب ده او یا جر دے بنا بر بدلیت، ولې دلته بدلیت نه صحیح کیږي، ځکه چې بدل په حکم د تکریر د عامل کښې دے، نو که چیرې دلته کښې موږ تکریر د عامل راوړو، لکه په 'جاءني القوم الا زیداً' کښې، نو فساد په معنیٰ کښې راځي او که نه راوړو نو بدل نه صحیح کیږي[2]۔

پس متعین شو نصب بنا بر استثنائیت۔ **سوال.** لا نمردی، په مصنف چې یو بل قید ذکر کړی د پاره د اخراج د دے ترکیب، چې 'قرأت الا یوماً'، ځکه چې مستثنیٰ په دے کښې منصوب ده خو بنا بر ظرفیت ده، نه بنا بر استثناء۔ **جواب.** قید ته ضرورت نشته، ځکه چې کلام زموږ په نصب د مستثنیٰ کښې دے مطلقاً نه، په نصب د مستثنیٰ کښې دے بنا بر استثنائیت۔ **سوال.** مصنف له پکار وو چې یو بل قید یې ذکر کړے وے د پاره د اخراج د دے ترکیب، چې 'قرأ الا الیوم کذا'؟ ځکه چې په دے کښې استثناء مرفوع ده نه منصوب۔ **جواب.** دلته کښې بل قید راوړلو هم ضرورت نشته، ځکه چې دا مستثنیٰ مفرغ ده او د هغې حکم راروان دے۔

**او مقدما علی المستثنیٰ منه** دا بل حالت د وجوب د نصب د مستثنیٰ بیانوي، چې کله مستثنیٰ مقدم وي په مستثنیٰ منه باندې، لکه 'ماجاءني

---

[1] اعلم قد ذهب المصنف الی هذا الرأی ولم یلتفت الی الجهة المشهورة کما ذهب النحاة العامة فی المتصل من جنسه والمنقطع من غیر جنسه لان الاعتبار فی المستثنیٰ علی دخول وخروج من قبله ۱۲۰۔ (م۔ س)۔

[2] ځکه چې بدل مدعون المبدل منه نه واقع کیږي۔ ۱۲ (م۔ س)۔

الا زیدٌ احدٌ"، نو دلته نصب واجب دے، ځکه چه محل د یاره د نصب بنا بر استثنائیت بالرفع ده، یا نصب دے لکه یا جر دے بنا بر بدلیت او دلته کښې بدل نه صحیح کیږي ځکه چه کله چرے دا بدل واقع شي نو لازمیږي تقدیم د بدل په مبدل منه باندې او دا ناجائز دے او که صفت یې واقع کړو نو هم تقدیم د صفت راځي په موصوف باندې۔

**او منقطعاً!** دا بل حالت د وجوب د نصب د مستثنیٰ ذکر کوي چه کله مستثنیٰ منقطع وي، نو نصب واجب دے، لکه "جاءني القوم الا حماراً"، ځکه چه محل د یاد نصب مستثنیٰ بنا بر استثنائیت، هغه بدل دے یعنې هغه رفع یا النصب یا جر دے بنا بر بدلیت او دلته دا سې راد بدل غلط نه بل احتمال نه لري لیکن دلته بدل غلط هم ممتنع دے، ځکه چه بدل غلط کښې سهو وي او بنا د مستثنیٰ په سهو باندې نه ده۔

**في الاكثر** یعني عند الاكثرين يا في اكثر الاستعمالات، په دے کښې دوه مذاهب دي، یو مذهب د حجازیین دے او بل مذهب د بنو تمیم دے۔ حجازیین دا منصوب وائي او په نزد د بنو تمیم باندې مستثنیٰ منقطع په دوه قسمه ده، یو هغه ده چه صحیح وي حذف د مستثنیٰ منه او اقامت د مستثنیٰ په ځائے د مستثنیٰ منه، نو په اول کښې جواز د بدلیت سره او په دویم کښې تعین د نصب دے بنا بر استثنائیت، لکه "لا عاصم اليوم من امر الله الا من رحم"۔

**او كان بعد خلا وعدا في الاكثر** دا بل حالت دے د وجوب د نصب د مستثنیٰ چه دا مستثنیٰ واقع شي پس د خلا او یا د عدا نه په اکثر استعمال کښې یا په نزد د اکثرو نحاتو، ځکه چه خلا او عدا افعال دي او د دوي د پاره فاعل مقدر دے چه هغه ضمیر دے او د دے نه وروستو چه کوم اسم دے، هغه مفعول دے، نو هغه به منصوب وي بنا بر مفعولیت۔ **سوال.** عدا خو صحیح ده چه د دے نه وروستو به مفعول وي ځکه چه دا فعل متعدي دے، مګر خلا خو فعل لازمي دے، نو د دے نه وروستو به څنګه مفعول راشي۔ **جواب.** خلا په معنیٰ د جاوز سره دے او جاوز فعل متعدي دے۔ **سوال.** خلا او عدا خو افعال دي او د دے نه وروستو چه مستثنیٰ واقع شوي ده هغه مفعول به ده، نو فعل سره د فاعل او د مفعول به نه جمله فعلیه ده او په جمله کښې لا بدې ده د اعراب نه، نو د دے اعراب څه دے؟ **جواب.** د دے اعراب نصب دے بنا بر حالیت۔ **سوال.** جمله فعلیه چه ماضي وي او حال واقع شي نو لا بدي ده په کښې د قد نه او دلته کښې خو قد نشته۔ **جواب** دا دے چه لفظ د قد دلته مقدر دے۔

**في الاكثر!** دا به منصوب وي په نزد د اکثرو نحاتو باندې ځکه چه دا مفعول دے او منفرد

منصوب وی اؤ بعض نحات وائی چه خلا اؤ عدا حروف جر دی، لهٰذا دیته به ورسره مجرور وی۔

# درس نمبر ۱۷۸

**وماخلا وماعدا ولیس ولایکون**

پنځم ځائے دَ هغه مواضعو چه نصب دَ مستثنیٰ په کښې واجب دے هغه، هغه مستثنیٰ دے چه دَ ماخلا اؤ دَ ماعدا اؤ دَ لیس اؤ دَ لایکون نه وی، لکه "جاءنی القوم ما خلا زیداً وما عدا زیداً" اؤ دا ځکه چه دلته ما مصدریه دے اؤ دا نو داخلیږی، مگر په فعل باندې۔ پس فاعل دَ دے افعالو به ضمیر مستتر اؤ دے نه ورسره چه کوم اسم راشی هغه به منصوب وی، بنا بر مفعولیت۔ اوس دا ماخلا اؤ ماعدا دا په محل دَ نصب کښې دی بنا بر ظرفیة اؤ یا بنا بر حالیة۔ **سوال**۔ نصب دَ دوئ بنا بر ظرفیة نه صحیح، ځکه چه ظرف په دوه قسمه دے اؤ دا نه ظرف زمان دی اؤ نه ظرف مکان دی۔ **جواب**۔ ظرفیة دَ دوئ بنا بر مجاز دے، ځکه چه ما مصدریه کله په فعل داخل شی، لو دا به تاویل سره مصدر وی، سره دَ تقدیر دَ وقت نه، لو دَ "ما جاءنی القوم ما خلا زیداً" معنیٰ به دا شی، چه "جاء القوم وقت خلو مجیئهم زیداً" اؤ "ما جاءنی القوم وقت عدم مجیئهم زیداً"۔ **سوال**۔ نصب دَ ماخلا اؤ دَ ماعدا بنا بر حالیة نه صحیح کیږی، ځکه چه حال محمول وی په ذوالحال باندې اؤ دلته حمل دَ صرف وصف راځی په ذات باندې **جواب**۔ دا مؤول دے په تاویل دَ فاعل سره، چه "جاءنی القوم خالیاً مجیئهم زیداً"، اؤ دَ لیس اؤ دَ لایکون نه ورسره به هُم منصوب وی، ځکه چه دا افعال ناقصه دی، لو په دوئ کښې به ضمیر اسم شی اؤ دا به ورله خبر شی۔ **سوال**۔ لیس اؤ لایکون افعال ناقصه دی، دوئ اسم اؤ خبر غواړی، لو دَ دوئ نه چه کوم اسم ورسره ذکر شی هغه خو اسم شی دَ دوئ دَ پاره، لو خبر به ورله څه شی؟ **جواب**۔ اسم دَ دوئ مستتر دے، چه هغه دَ دوئ ضمیر دے، اوس چه هر کله دا افعال په ځائے دَ حرف استثناء او ګرځیدل، لو په دے کښې تصرف اؤ تغیر نه کیږی۔

**ویجوز فیه النصب ویختار البدل فیما وقع بعد الا فی کلام غیر موجب**

اؤ جائز دے په مستثنیٰ کښې نصب بنا بر استثناء اؤ مختاره دے بدل په هغه ځائے کښې چه واقع شی مستثنیٰ په کلام غیر موجب کښې چه په هغه کښې نفی نهی اؤ استفهام وی، په دے عبارت سره مصنف رح مواضع دَ جواز دَ نصب اؤ دَ اختیار دَ بدل ذکر کوی اؤ مراد په دے بدل سره بدل بعض دے، نه بدل کل، ځکه چه دَ الا نه پس بدل بعض وی اؤ چه کلام غیر موجب ئے اووے، په دے سره احتراز راغے دَ کلام موجب نه چه دَ هغه حکم مخکښې تیر شوے دے۔

**وذکر المستثنیٰ منه نحو ما فعلوه الا قلیل والا قلیلا**

اؤ چه مستثنیٰ منه

ذکر کړے شوے نۀ دے چې دے سره احتراز اوشو د مثل د دے قول نه چې "ما ضربت الا زیدٌ"، په دے کښے جائز نۀ دے بدل اوّ دلته اختیار د بدل دے، وجه داده، چې کله چرته حمل شي، ما بعد د الا نه په بدل باندې نو د دے اعراب به بالاصالة وي او که حمل شي په استثناء باندې نو د دے اعراب به بالواسطه شي او استحقاق د اعراب بالاصالة دا اولٰی دے، د اعراب بالواسطه نه۔ **سوال**۔ بدل خو په حکم د تکریر د عامل کښې دے او دا به خالی نۀ وي، یا به تکریر د عامل راځي او یا به نه راځي، که چرته تکریر د عامل راشي، نو معنٰی نه صحیح کیږي او که چرته تکریر د عامل نه راځي، نو بیا بدل نه صحیح کیږي۔ **جواب**۔ دلته تکریر د عامل راځي دے، خو بغیر د حرف نه۔ **سوال**۔ تاسو څنګه وائي، چې دلته په بدل کښې اعراب بالاصالة دے، څکه چې بدل تابع دے او د تابع اعراب بالتبع وي۔ **جواب**۔ مُراد په اصالة سره لحاظ د مقصود د متکلم دے، څکه چې بدل په نسبت سره متکلم ته مقصود وي، او مستثنٰی غیر مقصود وي، لو "ما فعلوهُ الا قلیلٌ" کښې مرفوع وي، او دا به بدل شي، د ضمیر د فعلواه او کښې نصب اووائي، نو دا به د مستثنٰی په وجه باندې منصوب وي۔

| **ويعرب على حسب العوامل اذا كان المستثنٰى منه غير مذكور** |
|---|

او دا مستثنٰی به په حسب د اقتضاء د عوامل باندې معرب وي، چې هر کله مستثنٰی منه غیر مذکور وي، کله چرته د مستثنٰی نه مخکښې عامل تقاضا د رفع کوي، نو دے به هم مرفوع وي، او که تقاضا د نصب کوي، نو منصوب به وي، لکه "ما جاءني الا زیدٌ" یا "ما ضربتُ الا زیداً" یا "ما ضربتهُ الا ضربةً"، او چې کله دے مستثنٰی منه ذکر نه کړي، نو دے ته مستثنٰی مفرغ وائي، چې عامل د دے فارغ وي، د پاره د عمل په مستثنٰی کښې۔ **سوال**۔ دے ته مفرغ له او وائي۔ **جواب**۔ دے ته مستثنٰی مفرغ، اګر که اوائي، لیکن مراد تري نه مستثنٰی مفرغ له دے۔

| **وهو فى غير الموجب ليفيد** |
|---|

او حال دا دے، چې دا مستثنٰی واقع وي، په کلام غیر

---

ل. فان قيل، چې عوامل صیغه د جمع ده، او د جمع اطلاق کم نه کم په ثلاثه باندې کیږي، نو مطلب به دا شي، چې دا مستثنٰی به معرب کولی شي په حسب د اقتضاء د عوامل ثلاثه او یا زیات په قوت د خطاء کښې ده، اقول۔ الف لام په العوامل کښې جنس دے او دا چې کله داخل شي په جمع باندې او معهود مقصود نه وي، نو باطله شي، جمعیت لره او اراده کړے شي په دے سره جنس، فان قيل، چې عکس دے لکه شي، یعنی جمعیت ختم کول، وی لکه جنسیت لره نو باطل کړي۔ فاقول عکس نه شي کیدلے، څکه چې ناسخ سابق کیږي، نه لاحق او دلته هم اسم دا دلته دے، چې سابق جمعیت دے، نو هغه منسوخ شو۔ اللّٰهمّ اغفر لی ولہما۔ (م - س)۔

موجب کیږي د باره د دے چه فائده تامه ورکوي، چه هغه صحت د حکم دے۔

**مثل ماضربني الا زیدٌ** یعنی "ماضربني احدٌ الا زیدٌ"۔ **سوال**۔ ستا دا قول منقوض شو په دے ترکیب سره چه "قرأت الا یوم کذا"، ځکه چه دا مستثنیٰ مفرغ دے او په کلام موجب کښے دے، نو مصنف جواب اوکړو چه:-

**الا ان یستقیم المعنی مثل قرأت الا یوم کذا.** که چرته معنیٰ مستقیمه وي، نو بیا په کلام موجب کښے هم عدم ذکر د مستثنیٰ منه کیدے شي، ځکه چه دلته کښے مراد د ایام نه ایام د سبوع یا د شهر یا د کال دي۔ **سوال**۔ چه څنګه قید د استقامت د معنیٰ رافع دے په کلام موجب کښے، نو دغه شان قید د استقامت اولګوه، په کلام غیر موجب کښے هم، لکه "ماماتت الا زیدٌ"، نو پکار ده، چه په دواړو کښے دقید د استقامت د معنیٰ اولګوي۔ **جواب**۔ اعتبار غالب لره دے او غالب په غیر موجب کښے استقامت د معنیٰ دے۔ **سوال**۔ چه څنګه صحیح دے "قرأت الا یوم کذا"، چه کله په ایام سره ایام د هفتے یا د میاشت یا د کال وي، نو پکار ده چه دا ترکیب هم جائز شي، لکه ضربني الا زیدٌ، چه مراد په دے سره یو خاص جماعت شي په واسطے د قرینے سره۔ **جواب**۔ فرق په مابین د دواړو مثالونو کښے په اعتبار د وجود د قرینے او د عدم د قرینے سره دے علیٰ قرینه په "قرأت الا یوماً کذا" کښے بالفعل موجوده ده او په "ضربني الا زیدٌ" کښے نه ده موجوده۔

**ومن ثم لم یجز مازال الا عالماً** او د دے وجه نه چه نه دے جائز عدم ذکر د مستثنیٰ منه په کلام موجب کښے نه دے جائز دا ترکیب چه "مازال زیدٌ الا عالماً"، ځکه چه زال لنفي ده او ما هم نفي ده او نفي چه په نفي داخله شي، فائده کوي اثبات لره، نو معنیٰ به دا شي چه "ثبت زیدٌ الا عالماً"، او دا ناجائز دے۔

## درس نمبر ۱۷۹

**سوال**۔ مناسب ده چه حمل شي صفات د زید په هغه صفاتو باندې چه ممکن وي، جمع د هغه په شخص واحد کښے او بیا تر سره نه نفي د صفت د علم راغلے وي۔ **جواب**۔ په دے باندې چا قول نه دے کړے۔ **سوال**۔ تاسو څو ځکښے مثیلي بي چه "ویجوز النصب ویختار البدل الخ" چه مستثنیٰ منه ذکر وي او کلام غیر موجب وي، نو دا خبره ستا منقوضه شوه په دے باندې چه "ماجاءني من احد الا زیدٌ یا لا احد فیها الا عمروٌ" "ومان مد شیئاً الا شیئاً لا یعبأ به"، په دے کښے مستثنیٰ منه ذکر ده او کلام هم غیر موجب دے سره، د دے نه په دے کښے اختیار د بدل نشته، نو مصنف جواب اوکړو چه:-

**واذا تعذر البدل علی اللفظ فعلی الموضع**

یعنی چه کوم وخت کښې متعذر شي حمل د مستثنیٰ په لفظ د مستثنیٰ منه باندې، بیا به ئې حمل کیږي په محل د مستثنیٰ منه باندې، د پاره د دې چه عمل راشي په هغې باندې بقدر الامکان.

**مثل ما جاءني من احد الا زید ولا احد فیها الا عمرو وما زید شیئا الا شئ لا یعبأ به.**

په اول مثال کښې زید حمل دے په موضع د من احد باندې، په دوئم مثال کښې عمرو محمول دے په محل د اسم د لا باندې، لا یعبأ به دا صفت دے د پاره د شئ او داسې متصف کولې ئې دے چه استثناء د شئ د جنس نفس نه لازم نه شي.

**لان من لا تزاد بعد الاثبات**

حکه چه من وضع کړے دے واضع د پاره د استغراق د نفی او کلام پس د الا نه موجب دے ۔ او من زیاتیږی نه پس د اثبات نه، نو که په اول مثال کښې زید بدل واقع شي، نو لازمیږي شي زیادة د من پس د اثبات نه، حکه چه بدل په حکم د تکرار د عامل کښې دے، نو هلته خو من لفظاً دے، بیا دلته به هم من راشي او دغه شان په نورو مثالونو کښې ۔

**وما ولا لا تقدران عاملتین بعده**

او ما او لا نه مقدر کیږي یعنی نه فرض کیږي په حال د کون د دوئ کښې چه عمل کونکی وي پس د اثبات نه ۔

**لانهما عملتا للنفی وقد انتقض النفی بالا.**

حکه چه ما او لا دواړه عمل د نفی کوی او په تحقیق سره دا نفی منتقض شوه په اثبات سره، یعنی ما او لا عمل کوی د وجه د نفی نه لو په الا سره معنی د نفی ختمه شوه ۔ سوال ـ تاسو د پاره تکرار دے مثال کښې "ما جاءني من احد الخ" "لا احد الخ"، مثلاً عمله دی، نو محل قریب د اعراب سره، چه هغه نصب دے او بل محل بعید دے، چه هغه رفع دے، نو محل ئې ولې په ځائے د محل قریب په محل بعید اوکړو ـ جواب. په محل بعید کښې عمل د لا لوه دخل نشته او په محل قریب کښې عمل د لا شته، ولې هغه منتقض دے په اعراب سره، یعنی په الا سره ـ

# درس نمبر ۱۸

**بخلاف لیس زید شیئا الا شیئا**

په دې عبارت سره مصنف دفع د سوال کوی، سوال دا دے، چه په دې ترکیب کښې نفی منتقض شوې ده په الا سره او بیا هم نه چه دا محمول شي په بدل سره ـ جواب. مصنف اوهغه

چې بخلاف د لیس زیدٌ شیئاً الّا شیئٌ ... دا ترکیب روا دے ... دلته نفي په الّا سره نه ده منتقض شوي.

**لانها عملت للفعلیة** — ځکه چې دا لیس عمل کوي، د وجې د فعلیت نه نه، د وجې د نفي نه.

**فلا اثر فیها لنقض معنی النفی** — پس نشته دے تاثیر په لیس کښې، د پاره د نقض د معنیٰ د نفي.

**لبقاء الامر العاملة هی لاجله** — د پاره د بقاء د امر، هغه امر چې عمل کړے دے. لیس د هغه د وجې نه چې هغه فعلیت دے.

دلته کښې لبقاء الامر العاملة هی لاجله، د تبیلي د هند نه چې ضاربه هيَ نه دے.

**ومن ثم جاز لیس زیدٌ الّا قائماً وامتنع ما زیدٌ الّا قائماً.** — او د وجې د دې خبرې نه چې لیس عمل کوي د وجې د فعلیت نه او اثر د پاره د نقض د معنیٰ د نفي د دے نشته، یعني د دے معنیٰ د نفي نه لوے کیږي، په الّا سره لو جایز دے، دا ترکیب چې لیس زیدٌ الّا قائماً په نصب سره بناء په دې وجې باندې چې دے خبر د لیس دے، سره د کېدلو د دے مثبت او مصدر په الّا سره او جائز نه دے، دا ترکیب چې ما زیدٌ الّا قائماً؟ ځکه چې دلته په الّا سره هغه معنیٰ د نفي زائله شوي ده۔

**ومخفوضٌ بعد غیرٍ وسویٰ وسواءٍ وبعد حاشا فی الاکثر** — په دې عبارت سره مصنف هغه حالتونه بیانوي چې چرته مستثنیٰ مجرور وي، او مجرور به وي مستثنیٰ، پس د لفظ د غیر نه او د سویٰ او د سواء نه، ځکه چې دا مضاف کیږي، او د دوئ نه وروستو به مضاف الیه وي او مضاف الیه مجرور وي او د هغه شان د حاشا نه وروستو به هم مجرور وي په اکثر استعمال کښې، یا په نزد د اکثرو نحاتو باندې، ځکه چې دے حرف جر دے او د حرف جر نه وروستو مجرور وي، او بعض وائي چې د دې نه وروستو به منصوب وي، ځکه چې دے فعل دے او ضمیر په کښې مستتر دے، هغه به فاعل وي او د دے نه وروستو به منصوب وي، ځکه چې مفعول به واقع وي۔

**واعراب غیرٍ فیه کاعراب المستثنیٰ بالّا علی التفصیل.** — کلمه د غیر په استثناء کښې داخله ده او دا اسم متمکن دے، نو د دې به هم اعراب وي۔ پس مصنف لوے چې اعراب د غیر په استثناء کښې په شان د اعراب د مستثنیٰ دے په الّا سره، بنا په تفصیل مذکور سره، چې واجب وي نصب د مستثنیٰ په هغه پنځو مواضعو کښې، نو هم به منصوب

---

: خفض مختص بالحرکة وی او جر عام دے ... (۲۰۰۲-۱۵۰).

دی، لکه چې وړاندې تېر شول، یعنې مستثنیٰ مفرغ، او چې چرته جواز د نصب او اختیار د بدل وي، نو دې به هم هغه حال کښې واخلي، او چرته کښې اعراب د مستثنیٰ به حسب د عواملو وي، د دې به هم هغه وي وغیره.

**وغیر صفة حملت علی الا فی الاستثناء کما حملت الا علیها فی الصفة**

او لفظ د غیر چې دې کله صفت وي، یعنې چې کله په معنیٰ د صفت وي، نو دې به په معنیٰ د مغایرت سره وي[1]، لکه مررت برجلٍ غیرِ زیدٍ، یعنې مررت برجلٍ مغایرٍ لزیدٍ، دا به حمل کیږي په الا باندې په حال د کښې د دې کښې چې دا استثناء ده، لکه چې څنګه حمل کیږي الا په غیر باندې په صفت کښې، نو مطلب دا دې چې کله حمل د الا په غیر کیږي، نو کله د غیر په الا کیږي.

**اذا کانت تابعة لجمع منکور غیر محصور**

په هغه وخت کښې، چې دا جمع صفت تابع وي د جمع منکور یعنې دا صفت واقع شوې وي، پس د جمع نه چې هغه غیر معرف باللام وي او محصوره او معدوده نه وي، چې جمع منکور یې اووې، په دې سره تې نه احتراز راغی، د هغه جمع نه چې معرف باللام وي، ځکه چې کله جمع معرف باللام وي، نو دا الام به خالي نه وي، یا به د استغراق د پاره وي او یا به د عهد د پاره وي. او س که چرته استغراقي وي، نو مستثنیٰ داخل ده، په مستثنیٰ منه کښې قطعاً او که چرته عهدي وي، نو بیا مستثنیٰ که چرته په مستثنیٰ منه کښې جزماً داخل نه وي، نو مستثنیٰ منقطع شو، پس دا استثناء متعذر نه شو او شرط د پاره د الا چې په معنیٰ د غیر وي، هغه تعذر د استثناء دے او چې غیر محصور یې اووے، نو په دې سره احتراز راغی، د دې قول نه چې لفلان علی مائة الا واحداً[2]، ځکه چې دلته کښې استثناء متعذر نه ده، لکه چې غیر محصور وي، په دې شان سره چې معلومه نه وي، دا خبره، چې مستثنیٰ په مستثنیٰ کښې داخل ده که نه ده.

**لتعذر الاستثناء**

دلته کښې تعذر د استثناء دے، یعنې الا په معنیٰ د استثناء نه دے، بلکه په معنیٰ د غیر سره دے.

**مثل لو کان فیهما الهة الا الله لفسدتا**

په دې مثال کښې مستثنیٰ منه الهة

---

[1] یعنې چې هر کله لفظ د غیر په معنیٰ صفتي سره وي، معنیٰ صفتي یې دا ده، چې دے به دلالت کوي په ذات مبهم باندې چې ماخوذه وي سره د بعض صفاتو نه او دا مغایر به مقابل د هغه اسم شي، چې کوم مقابل د فعل او د حرف دے، لیکن چې کله دے حمل کړے شي په الا باندې یا الا حمل کړے شي په دې باندې په صفت کښې، پس دا به خلاف الاصل وي، ځکه چې د غیر خپل معنیٰ به په دې صورت کښې ماخوذه نه شي، بلکه په معنیٰ د استثناء سره به مکرر شي، چې مغایرت دے او برابر خبره ده چې دا سبب الذات وي او که بحسب الصفة وي او که خلاف ئې دے. شیخ رضی ره، هغه والئ چې استعمال د غیر په اعتبار ثاني سره مجاز دے (م. س).

جمع منکور اؤ غیر محصور دے، نو استثناء متعذر شو، په دې وجه باندې اِلّا په معنیٰ دَ غیر دے اؤ لفسدتا معنیٰ داده، چه لخرجتا عن النظام، اؤ دلته که چرته اِلّا په معنیٰ دَ استثناء سره واخلو نو معنیٰ به بلکل سره هم نه صحیح کیږی، ځکه چه اِلّا په معنیٰ دَ استثناء سره شی، نو معنیٰ به داسے شی، که چرته وے په زمکه په آسمان کښے۔ ډېر آلهة، چه مستثنیٰ دے، دَ هغې نه الله، نو بیابه فساد په دواړو کښے پیدا شوے وو، یعنی چه ډېر خدایان سره خدائے پاک مل نه شی، نو فساد به نه وی اؤ که چرته هغه ورسره شریک شی، نو بیا به فساد پیدا شی، نو په دې سره اثبات دَ واحدانیت نه راځی اؤ نه معنیٰ. والد صاحب حضرت صدر صاحب مولانا عبدالحلیم رحمة الله علیه به فرمائیل، چه فساد خو مستلزم دے اوّل جوړیدو ولره خو بیا په کښے نقصان پیدا شی، ولے حال خو دا دے، چه که چرته ډېر آلهة وے، نو بیابه دَ سره نظام نه موجود دَ دُنیا، نو معنیٰ دَ لفسدتا داده، چه لم تکونا، یعنی دَ سره به نکون دَ کائنات نه وو۔

| وَضَعُفَ فِی غَیرِهِ |

اؤ ضعیف دے حمل دَ اِلّا په معنیٰ دَ غیر په جمع منکور اؤ غیر محصور کښے دَ وجه دَ استقامت اؤ عدم تعذر دَ استثناء نه۔

| وَاِعرَابُ سِوَیٰ وَسَوَاءِ النَّصبُ عَلَی الظَّرفِیَّةِ عَلَی الاَصَحِّ۔ |

ځکه چه دا دواړه په معنیٰ دَ مکان سره دی، لکه چه اووئیلے شی، چه جاءنی القوم سوی زیدٍ، نو دَ دې معنیٰ به دا شی، چه جاءنی القوم مکان زیدٍ او علی الاصح، ئے په دې وجه باندې اووے، چه په دې سره احتراز راغے، دَ غیر اصح نه، چه هغوی وائی، چه دا به منصوب نه وی، بنا بر ظرفیة، بلکه په دے کښے تصرّف کوی اؤ دلیل ئے دا شعر دے، چه:۔

~ فلم یبق سوی العدوان دناهم کما دانوا، دلته کښے سوی مرفوع دے۔

# درس نمبر ۱۸

| خبرُ کَانَ وَاَخَوَاتِهَا هُوَ المُسنَدُ بَعدَ دُخُولِهَا |

بعض دَ ملحقاتو دَ منصوباتو نه خبر دَ کان اؤ دَ هغې دَ اشباه اؤ دَ نظائرو دے، یعنی خبر دَ افعال ناقصه، چه هغه کان او صار اصبح اضحی وغیره دی، هو المسند، دا په منزله دَ جنس دے، په دے قول کښے مسندات داخل شو، که خبر دَ مبتداء دے، خبر دَ انّ دے اؤ خبر دَ ما اؤ دَ لا دے، خو چه بعد دخولها ئے اووے، نو په دې سره ټول نه ټول خارج شو، سیوا دَ خبر دَ کان نه۔ **سوال**: په خبر دَ کان کښے دَ اوّل نه اسناد موجود وو، نو دا خو کلا زمین بے اسناد دَ مسند۔ **جواب**: مراد په مسند اؤ اسناد سره اسناد جدید دے۔ **سوال**: تا خو اووئیل، چه هو المسند بعد دخولها، نو دَ دې مطلب دا شو، چه دا بہ مسند وی، پس دَ داخلیدو دَ دې لتر یو نه، حالانکه امر خو داسے نه دے۔ **جواب**: دلته تقدیری عبارت په حذف دَ مضاف سره دے، یعنی هو المسند بعد دخول احدهما، اؤ دغه شان دَ خبر کان واخواتها، نه مراد احدیٰ اخواتها دے۔

**مثل کان زید قائما** دلته قائما خبر دے د پاره د کان۔

**امره کامر خبر المبتدا** او حکم او شان د خبر د کان په شان د خبر د مبتدا دے، په جواز د واقع کیدو د دے کښے مفرد یا جمله۔ برابره خبره ده، چه جمله اسمیه وی که فعلیه وی او په جواز د تقدیم د خبر په اسم باندې او د غه شان په نورو احکامو او اقسامو او شرائطو کښے۔ **سوال**۔ امر د خبر د کان په شان د امر د خبر د مبتدا دے، په اقسامو، په احکامو او په شرائطو کښے، او حال دا دے، چه خبر د مبتدا، چه کله معرفه وی، نو جائز نه دے تقدیم د هغے په مبتدا باندې، نو لهٰذا پکار دا ده، چه خبر د کان، چه کله معرفه وی، نو جائز دې نه وی تقدیم د خبر د کان، په اسم د کان باندې، نو مصنف رحمه الله **جواب** ارکړو چه:۔

**ویتقدم معرفة** یعنی متقدم کیږی، خبر د کان په اسم د کان باندې په حال د کون د هغه کښے، چه خبر معرفه وی، ځکه په وخت د عدم د التباس کښے یعنی چه اعراب یې ظاهر وی، او س په کان موسیٰ عیسیٰ کښے، چه موسیٰ خبر او ګرځی او تقدیم یې راشی په اسم دا ممتنع دے، ځکه چه دلته کښے التباس راغلے دے، په مابین د خبر او د اسم کښے۔

**وقد یحذف عامله** او کله حذف کیږی عامل د خبر د کان، چه په خپله باندې کان دے نه د نورو افعال ناقصه په وخت د قیام د قرینے کښے، ځکه چه کان کثیر الاستعمال دے، په نسبت سره نورو اخواتو ته، نو ځکه دے ته سبقت کوی۔

**فی الناس مجزیون باعمالهم ان خیرا فخیر وان شرا فشر** مراد په دے ترکیب سره هغه ترکیب دے چه ذکر شی ان او بیا ورپسے ذکر شی اسم او بیا فاء جزائیه او بیا اسم، نو تقدیر به داسے شی، چه ان کان عملهم خیرا فجزاءهم خیرا وان کان عملهم شرا فجزاءهم شر، نو حذف شو دلته کان او ورسره اسم هم حذف شو، او دلته قرینه دا ده، چه ان حرف شرط داخل دے، په اسم باندې او حالانکه ان داخلیږی په فعل باندې او په جانب د جزاء کښے مبتدا حذف شوی ده۔

**ویجوز فی مثلها اربعة اوجه** او جائز دی، په مثل د دا یے صورت کښے څلور وجوهات، اولنۍ وجه دا ده چه نصب د اول او د ثانی وی، چه کان به دواړو مواضعو کښے مقدر وی، سره د اسم نه، نو تقدیر به داسے شی چه ان کان عملهم خیرا فیکون جزاءهم خیرا، وان کان عملهم شرا فیکون جزاءهم شرا۔ — دویمه وجه دا ده، چه رفع وی، په دواړو کښے چه تقدیر د کان سره د خبر نه په اول کښے وی او تقدیر د مبتدا په دویم کښے وی، لکه ان کان فی عملهم خیر فجزاءهم خیر وان کان فی عملهم شر فجزاءهم شر۔ — دریمه وجه دا ده، چه نصب د اول وی او رفع

دَ ثالى دى يعنى "ان كان عملهم خيراً فجزاءهم خيرٌ" ـ خلورمه وجه داده، چه اوّل مرفوع وى، اَوْ دويم منصوب وى، لكه "ان كان فى عملهم خيرٌ فيكون جزاءهم خيراً"۔

**وجب الحذف فى مثل اما انت منطلقاً انطلقت اى لان كنت منطلقاً** اَوْ واجب دے حذف دَ كان په وخت دَ وجود دَ قرينے اَوْ دَ سد مسد كيدو۔ دلته كيني "امّا انت منطلقاً" په اصل كښے وو "لان كنت منطلقاً"، بيا لام رخيار حذف كړے شو دَ پاره دَ تخفيف اَوْ حذف كړے شو كان دَ پاره دَ اختصار، اَوْ په عوض دَ هغه كښے ما راوړے شو، بيا دَ ضمير متصل په ځائے باندې ضمير منفصل راوړے شو۔ پس "انْ ما انت منطلقاً" شو بيا ما په نون كښے مدغم كړے شو لو "لمّا انت منطلقاً" ترے نجوړ شو اَوْ دلته حذف واجب دے، دَ وجه دَ وجود دَ قرينے اَوْ دَ سد مسد نه، هَرچه دَ قرينه حقه نصب دَ معمول دے اَوْ هَرچه دے اسد مسد، هغه اقامت دَ معمول دے په ځائے دَ عامل باندې۔

**اسم ان واخواتها هو المسند اليه بعد دخولها مثل ان زيداً قائم** بعض دَ ملحقاتو دَ منصوباتو نه، هغه اسم دَ انّ اَوْ دَ هغې دَ اشباهو اَوْ نظائرو دے۔ اسم دَ انّ اَوْ دَ هغې دَ اخواتو به حكم منصوب وى چه دا مشابهه دے، دَ مفعول سره اَوْ مفعول خو منصوب وى اَوْ مُراد دَ انّ نه حروف مشبه بالفعل دى۔ دلته چه مصنفؒ "هو المسند اليه" اوو دے، په دے كښے قول "مسند اليه" داخل شو، كه مبتدا وى اَوْ كه فاعل وى لوكه لنو مسند اليه وى اَوْ په "بعد دخولها" سره ترے نه لنو مسند اليه خارج شول۔ **سوال**۔ دلته خو لازمي اسناد دَ مسند۔ **جواب**۔ دلته مُراد دَ اسناد نه اسناد جديد دے۔ **سوال**۔ هَا ضمير خو جمع ته راجع دے، يعنى چه قول حروفِ مشبه بالفعل راشى، لو دلته به اسم كله دوى منصوب وى اَوْ آمرخو داسے نه دے۔ **جواب**۔ دلته تقدير دَ عبارت دے يعنى "بعد دخول احدها"۔

**مثل ان زيداً قائم** زيداً اسم دَ انّ دے، حروفِ مشبه بالفعل دا دى، چه شاعر وائى چه:۔

؎ اِنَّ بَا اَنَّ كَاَنَّ لَيْتَ لٰكِنَّ لَعَلَّ ناصب اسمند رافع درخبر ضد مَا وَلَا

**المنصوب بلا التى لنفى الجنس** بل قسم دَ منصوباتو نه دے منصوب دے، په لا دَ نفى دَ جنس سره، يعنى چه راځى، دَ پاره دَ نفى دَ حكم دَ جنس نه۔ **سوال**۔ داسے بحث دے دشيلى وو، چه اسم دَ لا لكه چه څنګه په ميرے لوړو كښے دے امونيل، چه خبر كان يا اسم انّ۔ **جواب**۔ اسم دَ لا په نفى طور سره منصوب نه وى اَوْ اسم دَ يے على الاطلاق دَ منصوباتو نه نه دے

دے بلکہ کلہ مبنی هم وی[1]۔

**هو المسند بعد دخولها** یعنے خبر د اسم د لا به مسند الیه وی، پس د دخول د لا نه اؤ مراد په اسناد سره اسناد جدیده دے، هو المسند الیه په منزله د جنس دے، دے، خو چه کله بے ورسره د خولها اووے، نو تمام مسند الیه ترے نه خارج شول۔

**یلیها نکرة مضافا او مشبها به** په دے سره شروط بیانوی، چه دوه ستر به د دے نه نکره وی او مضافه به وی یا به مشابهه وی، د مضاف سره او مراد د مشابهه نه دا دے چه په ده سره به اتمام د معنی راغلے وی چه د هغے تعلق د ده سره وی۔ او دلالت متنے شرطه دی، لؤ ولا، د دوئم نکره او د دریم اضافت۔ هو چه دے، شرط د ولا هغه په دے وجه لاضعیف العمل دے، په متصل کیدے عمل کولے شی او په منفصل کیدے نه شی کولے او هر چه دے نکره نو هغه په دے وجه چه لا لنفی الجنس تقاضا د کثرت کوی او په نکره کیدے کثرت دے او هر چه دے اضافت او یا مشابهه د مضاف، نو هغه په دے وجه چه اضافت د خواصو معظمه مکبره د اسم نه دے، نو په دوے سره به کیدے قوی کیږی، جهت د اسمیة او ضعیف کیږی، جهت د مشابهت د حروف سره۔

**مثل لا غلام رجل ظریف فیها** دا مثال د مضاف دے او دلته کیدے فیها خبر بعد خبر دے او الثانی اونه کړه، صرف په لیو خبر بسا ننده، د پاره د دے، چه لازم نه شی، کذب په نفی د ظرافة د هر یو غلام د رجل نه۔

**ولا عشرین درهما لك** دا مثال د شبه مضاف دے۔

**فان کان مفردا فهو مبنی علی ما ینصب به** که چرته وی، دا اسم د لا لنفی الجنس مفرد، یعنی مضاف یا شبه مضاف نه وی۔ مطلب دا دے، چه شرط ثالث په کیدے مفقود وی۔ پس دے به مبنی وی، په هغه حروف یا حرکت سره، چه په هغه باندے دے، تحکیے د دخول د لا نه منصوب وی، چه هغه یا فتحه ده، یا الف دے، یا یا ده، هر چه دے کیدل د دے مبنی، نو دے متضمن دے، من حرف لره او حرف مبنی دے، نو دے به هم مبنی وی او دے متضمن دے، من لره، ځکه چه دے واقع دے، په جواب د سوال د سائل کیدے، چه، هغه مشتمل دے، په من باندے او المذکور فی السوال کالمعاد فی الجواب[2] او مبنی دے، په فتح باندے، ځکه چه دا حرکت بنائیه موافق شی د حرکت اعرابیه سره۔

---

[1] بعض وخت تو اسم د لا لنفی الجنس مرفوع وی، ولکن لا یبعد ان یقال اسم لا هو المنصوب بها لفظا کالمضاف و شبهه

[2] اصلا کما هو مبنی منه علی الفتح واما هو مرفوع فلیس اسما لها لعدم عملها فیه کما قال الشارح (م-س)۔

**وان معرفة اومفصولا بينه و بين لاوجب الرفع والتكرير.**

اَوْ كه چرے وی اِسم دَلاَ معرفه اَوْ یا فصل واقع شوے وی په مابین دَاِسم اَوْ لا کښے نو بیا واجب دهٔ رفع اَوْ تکرير دَ لاَ ، په دے عبارت سره مصنفؒ حکم بیانوی دَاِسم دَ لاَئے نفی جنس کله په کښے انتفاء دَ شرط اوّل اَوْ شرط ثانی راغلے وی یعنی نکره نهٔ وی اَوْ یا دِ لاَ نه جُدا وی - هر چه دے رفع نو هغه په دے وجه باندئ چه هر کله اَثر دَ لاَ ظاهر نهٔ شو په معرفه کښے نو واجب شو رفع بنا بر ابتدائیت ، لکه "لا زید فی الدار ولا عمروٌ" اَوْ هر چه دے په مفصول کښے نو هغه په دے وجه ، چه لاَ ضعیف العمل دے په متصل کښے عمل کوی اَوْ په منفصل کښے عمل نهٔ کوی اَوْ هر چه دے تکرير دَ لاَ هغه په دے وجه چه په صورت اوّل کښے چه جبيره دَ ما فات اوکړی ځکه چه دا کلمه معرفه شوه نو قلت په کښے موجود شو اَوْس دَ دے جبيره پکار ده اَوْ هر چه دے په صورت ثانی کښے نو دا به مطابق اوکړی دَ سوال دَ سائل سره ، چه "افی الدار رجلٌ ام امرءة" نو په جواب کښے به ادوات دَ نفی چه "لا فی الدار رجلٌ ولا امرءةٌ" وی۔

## درس نمبر ۱۸۲

**ومثل قضية ولا ابا حسن لها متاول**

په دے عبارت سره مصنفؒ دفع دَ سوال کوی - **سوال** . تاسو اُوويل چه اِسم دَ لا کله معرفه وی ، نو واجب دهٔ رفع اَوْ تکرير دَ لاَ ، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه ، په دے قول چه "قضية ولا ابا حسن لها" ، په دے شان سره ، چه ابا حسن دا معرفه دهٔ ځکه چه دا کنيه دهٔ دَ حضرت علیؓ ، نو دلته اِسم دَ لاَ معرفه دهٔ اَوْ دلته نهٔ رفع دهٔ اَوْ نهٔ تکرير دَ لاَ ، نو مصنف **جواب** اوکړو چه دا قسم قضيه مؤوله دهٔ په تاويل سره اَوْ په دے کښے په دوه قسمه تاويل دے ، يو دا دے چه "قضية ولا مثل ابی الحسن لها" - دا په معنیٰ دَ نکرے سره دے ، ځکه چه مثل دَ وجے دَ توغل نه دَ ابهام په اضافت سره نهٔ معرفه کيږی اَوْ يا دا چه ابوالحسن کنايه دهٔ دَ وصف مشهور دَ صاحب دَ علم نه ، ځکه چه حضرت علیؓ مشهور وو په فيصلے سره اَوْ دا هرے مُغلقه فيصلے به يے زر کولے ، لکه چه نومالئ "واقضاكم علیؓ" ، نو تقدير به دا سے شی ، چه "قضية ولا فيصل لها" لکه موسیٰ والیٔ ، چه "لكل فرعون موسیٰ" يعنی "لكل مبطل محق" وی۔

**وفي مثل لا حول ولا قوة الا بالله خمسة اوجه.**

مراد په مثل دَ دے ترکيب سره ، هر هغه ترکيب دے چه لاَ په کښے مکرر وی په سبيلے دَ عطف سره اَوْ ورستو دَ هر يو لا نه نکره مفرده وی بغير دَ فاصل نه ، دَ دے ترکيب اصل دا دے ، چه "لا حول من معصية الله الا بعصمته ولا قوة على طاعة الله الا بعونه"

حول په معنیٰ د رجوع باندې دے، یعنی "لا رجوع لنا الخ" او قوة په معنیٰ د طاقة باندې، یعنی "ولا طاقة لنا"، هغه پنځه وجې دا دي:-

**فتحهما!** یعنی فتح د دواړو اسمونو، بنا په دے باندې، چه لا به دواړو ځایونو کښې د پاره د نفی د جنس شی او اِسم د دے به نکره مفرده او یلی او یو ځل لاندې اسم د لا، چه کله مفرده نکره او یلی وی، نو هغه مبنی وی، په فتح باندې۔

**وفتح الاول ونصب الثانی** دویمه وجه دا ده، چه فتح د اول وی او نصب د ثانی بنا، په دے، چه لا به اول موضع کښې د پاره د نفی د جنس شی او دا به ورله اِسم شی او اِسم د لا، چه مفرده نکره او یلی وی، نو هغه مبنی وی، په فتح سره او نصب د ثانی بنا په دے کیږي چه لا ملته زائد دے او تاکید د نفی د پاره دے او دا اسم د دے عطف دے، په محل قریب د اول باندې او محل قریب د اول نصب دے، نو دا به هم منصوب وی۔ د

**ورفعه** دریمه وجه دا ده، چه فتح د اول او رفع د ثانی. فتح د اول، چه لا به اول کښې د پاره د نفی د جنس شی او رفع د ثانی په دے، چه لا ملته زائد دے، د پاره د تاکید د نفی دے او عطف دے، په محل بعید د اول باندې، ځکه چه محل بعید د اول رفع ده، بنا بر ابتدائیت۔

**ورفعهما** او څلورمه وجه دا ده، چه رفع د دواړو وی، یعنی لا به دواړو کښې د پاره د نفی د جنس نه شی، بلکه دا به مطابق د سوال سره شی، چه څوک به سوال کښې اوائی "احول لنا ام قوة؟"، نو به جواب کښې اووائی "لاحولٌ ولا قوةٌ"۔ دلته کښې دا خبره یاده ساتئ، چه عطف د جملې راشی، به جملې باندې او یا عطف د مفرد راشی، به مفرد باندې، یعنی "لاحولٌ لنا من معصیة الله موجودٌ الا بالله" او "لا قوة لنا علی طاقة موجودة الا بالله" او یا دا چه "لاحول ولا قوة لنا موجودة الا بالله"۔

**ورفع الاول علی ضعف وفتح الثانی** دا پنځمه وجه ده، هغه دا ده، رفع د اول هغه بنا په دے، چه لا په معنیٰ د لیس شی او اِسم د لا، چه په معنیٰ د لیس شی، هغه مرفوع وی او دا وجه ضعیفه به دے وجه ده، چه عمل د لا په معنیٰ د لیس باندې ضعیف دے او قلیل دے او هرچه دے، فتح د ثانی هغه په دے وجه، چه لا د پاره د نفی د جنس شی او اِسم د لا د نفی د جنس، چه مفرد نکره او یلی وی، هغه مبنی وی په فتحه باندې، په دے وجه کښې عطف د جملې په جملې راځی او عطف د مفرد په مفرد نه شی راتلے، ځکه چه بیا لازمیږی، کیدل د یو اسم هم مرفوع او هم منصوب او دا محال دے۔ -

**وإذا دخلت الهمزة لم يتغير العمل**

او هغه وخت کښې چه داخل شي همزه په لَا د نفي جنس باندې، نو نهٔ متغير کوي عمل دَ لَا۔

**ومعناها الاستفهام**

او دا لَا په معنیٰ دَ استفهام سره وي، لکه اَلَا رجل في الدار؟ او مراد دلته په عمل سره معنیٰ لغوي ده، نه اصطلاحي حکه چه عمل خو عموماً په معربالو کښې استعماليږي لکه اَلَا رجلٌ في الدار کښې رجل مبني دے۔
**سوال.** دا قاعده ستا منقوضه شوه، په دے قول سره چه اَلَا رَجُلًا جزاه الله خيرًا، حکه چه دلته کښې عمل ئے په رجل کښې کړے دے او دَ مبني نه ئے معرب کړځولے دے۔ **جواب.** دلته همزه دَ استفهام نه دے بلکه دَ اَلَا حرف تحضيض دے۔ **سوال.** اَلَا خو داخليږي په فعل باندې۔ **جواب.** دلته فعل مقدر دے، اصل عبارت دا دے چه اَلَا ترونني رجلًا، يا دا چه په ضرورت شعري باندې۔

**والعرض والتمني**

يعنې چه هر کله همزه په دے داخل شي، نو بيا به په معنیٰ دَ استفهام وي، لکه اَلَا رجلٌ في الدار؟ او يا به عرض وي، لکه اَلَا نزول لك بنا فتحسن اليك؟ او يا به تمني وي، لکه اَلَا ايتان منك نتشرنا؟[1]

**ولغت المبني الاول**

او صفت دَ اِسم دَ لَا، چه مبني وي په فتح باندې هغه صفت چه هغه اَوّل وي۔۔

**مفرد ايليه مبني ومعرب رفعا ونصبا الخ.**

په حال دَ کون دَ دے صفت کښې چه دے مفرد وي او کيلي وي دَ مبني سره، نو دے به مبني وي، دَ دے وجه نه چه دے حمل شي په موصوف باندې، حکه چه دَ دواړو په مابين کښې اتحاد دے او دَ وجه دَ اتصال نه په مابين دَ دواړو کښې او بله وجه دا ده چه حرف نفي خو درحقيقت متوجه دَ صفت ته ده او دلته مراد په مبني سره مبني بالاصالة دے نه بالتبع او معرب به وي، حکه چه الا په توابع کښې تبعيت دے دَ خپلو متبوعاتو سره په اعراب کښې، نهٔ په بنا کښې، نو دے به معرب وي په رفع سره، چه حمل دَ دهٔ په محل بعيد اوشي، چه هغه رفع ده او منصوب به وي چه حمل دَ دهٔ په محل قريب اوشي، چه هغه لفظ دے او لفظ دَ دے مفتوح دے، نو دے به هم منصوب وي حکه چه دے معرب دے۔

**مثل لا رجل ظريفَ وظريفٌ وظريفًا**

چه ظريف مفتوح شي، نو دے به مبني

---

[1] بابا دَ شاه منصور مولانا فضل الٰهي صاحب تعريف دَ عرض دا کړے دے، چه عرض طلب دَ حصول دَ شي دے په طريقه دَ لجت سره، خو سره دَ جزم نه په عدم حصول دَ دغه شي باندې۔ ۱۲ (م س)۔

وي، په فتح باندې او موضع شي نو دے به منصوب او حمل به يئي په محل بعيد راغلې وي او که منصوب شي نو دے به حمل شوے وي په محل قريب باندې چه لفظ دے۔

**والا فالاعراب** | او که چرته دا دے نه وي يعني لفت د معرب وي او يا غير اكل وي او يا مضاف او يا شبه مضاف وي او يا يلي نه وي، نو بيا اعراب لازم دے رفعاً او نصباً، د وجه د عدم علت د بنا نه، لكه لا غلام رجل ظريف في الدار يا لا رجل ظريف كريم فيها ولا رجل راكب فرس عندي ولا رجل خير منك في البلد ولا رجل في الدار كريم۔

## درس نمبر ۱۸۳

**والعطف على اللفظ وعلى المحل جائز في مثل لا ابَ وابناً و ابن .** | او عطف په لفظ باندې او په محل باندې جائز دے په مثل د دے تركيب كښې مراد په تركيب سره هغه تركيب دے

چه معطوف په كښې نكره وي او تكرار د لا په كښې نه وي راغلے۔ هركله چه فارغ شو مصنفؒ د بيان د حكم د لفت د مبني نه، نو شروع يئے اوكړه په بيان د عطف كښې، نو وے ويل چه عطف په اسم د لا او په محل د اسم د لا باندې جائز دے او بنا په كښې نه دے جائز، ځكه چه فصل راغلے دے په مابين د معطوف او معطوف عليه په اعتبار د ذات سره۔ **سوال**۔ ستاسو قاعده منقوضه شوه په دے تركيب سره چه لا غلام لك والفرس، ځكه چه الفرس معطوف دے په اسم د لا باندې سره او دے نه تعين د رفع دے چه كښې نه جواز د رفع او د نصب۔ **جواب**۔ مراد په معطوف سره هغه معطوف دے چه نكره وي او دا معطوف معرفه دے۔ **سوال**۔ ستاسو قاعده منقوضه شوه په مثل د "لاحول ولا قوة الا بالله" سره، چه په دے كښې پنځه وجوهات جائز دي۔ **جواب**۔ مراد په معطوف سره هغه دے چه نكره وي بغير د تكرير د لا نه او دلته لا مكرر راغلے دے۔ اوس په دے مثال كښې چه "لا ابَ وابناً وابنٌ"۔ ابناً چه معطوف دے په لفظ باندې او لفظ د دے د نصب دے او دغه شان ابنٌ مرفوع هم جائز دے چه عطف شي په محل باندې چه هغه رفع دے بنا بر ابتدائيت۔

**ومثل لا اباله ولا غلامي له جائز** | په دے عبارت سره مصنفؒ دفع د سوال كړے، **سوال** دا دے چه تا خو وائے چه اسم د لا په هغه كښې چه هغه يلي او نكره وي، نو هغه به مبني وي په فتح باندې، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه په "لا اباله ولا غلامي له"، ځكه چه دلته په "لا اباله" كښې منصوب دے او اثبات د الف دے په كښې او په "لا غلامي له" كښې هم اسم د لا منصوب دے، نو مصنفؒ جواب اوكړو چه "ومثل لا اباله ولا غلامي

له جائز" چه دا ترکیب جائز دے او مراد په دے ترکیب سره هم هغه ترکیب دے چه واقع شوے وی، پس د اسم د لا نه لام د اضافت او جاری شوی وی په هغه باندې احکام د مضاف چه هغه اثبات د الف دے په اول او حذف د نون دے په دویم کښې.

**لتشبيهه بالمضاف** د پاره د تشبیه د دے د مضاف سره.

**لمشاركته في اصل معناه** د وجه د مشارکة د اسم د لا نه په دے دواړو ترکیبونو کښې د مضاف سره په اصل معنیٰ کښې چه هغه اختصاص دے.

**ومن ثم لم يجز لا ابا فيها** او د وجه د جواز د دے دواړو ترکیبونو چه د دوی تشبیه د اضافت سره راغلی ده نه دے جائز دا ترکیب چه "لا ابا فيها" د وجه د عدم مشارکت نه د دے د مضاف سره په اصل معنا کښې، ځکه چه دلته اختصاص د اب د الوة په وجه دے په بل څیز سره نه دے، لو په "لا ابا فيها" کښې اختصاص د اب په دار سره نه دے راغلے.

**وليس بمضاف لفساد المعنى** په دے عبارت سره مصنف دفع د سوال کوی، **سوال** دا دے چه ته مونږ وائے چه "لا ابا له او لا غلامی له" د دوی تشبیه د مضاف سره راغلی ده لو دوی عین مضاف ولے نه دی؟ نو مصنف د جواب ورکوی چه وليس بمضاف الخ، یعنی "لا ابا له او لا غلامی له"، دوی عین مضاف نه دی د وجه د فساد د معنی نه، ځکه چه کله اضافت د اب "ه" ضمیر ته راشی او د غلامی ضمیر ته اضافت راشی لو دوی خو به اسم وګرځی، د لا د پاره، لو خبر د دوی به بیا څه وی او بل به خبر د لا په معارف کښې راغلی.

**خلافا لسيبويه** مخالفت کړے دے د دے خبرے نه سیبویه، ځکه چه هغه والی چه "لا ابا له" کښې د اب اضافت "ه" ضمیر ته صحیح دے او دلته دا لام زائد دے د تاکید د اضافت د پاره راغلے دے او هغه والی چه دا په دے وجه په دے کښې اضافت دے چه د اضافت مفاد تخصیص او اختصاص دے او هغه دلته حاصل دے.

**ويحذف كثيرا** او حذف د اسم د لا کثیر دے، یعنی چه کله قرینه موجود وی نو حذف د اسم هلته کثیر دے.

**في مثل لا عليك اي لا باس عليك.** مراد په دے ترکیب سره هم هغه ترکیب دے چه خبر د لا مذکور وی، ځکه که چرته خبر د لا محذوف او ګرځی نو بیا خو نه دے جائز حذف د اسم، لو دلته کښې قرینه موجوده ده چه هغه ځیوه د خبر دے او لا حو اسم او خبر دواړه غواړی، لو چه هر کله د ده خبر ذکر شو، لو معلومه شوه

چه دَ دِیه اِسم هوشته دے، خو هغه حذف شوے دے، چه "لَا بَاسَ عَلَیكَ" دے۔ **سوال.** دا ترکیب "لاکزیدٍ" دِ صحیح نهٔ شی، ځکه چه کاف خو نهٔ اِسم واقع کیدے شی اَوْ نهٔ خبر، ځکه چه دا حرف دے۔

**جواب.** دا کاف اِسمیه دے، په معنیٰ دَ مثل سره، لو دا به یا اِسم شی اَوْ خبر به محذوف شی، چه "لا مثل زیدٌ موجودٌ" اَوْ یا به خبر شی اَوْ اِسم به ئے حذف شی، چه "لَآ احد کزیدٍ"۔

## خبر مَا وَلَا المشبهتین بلیس

یعنی دَ جنس منصوب نه هغه خبر دَ مَا اَوْ دَ لَا دے، چه مَا اَوْ لَا چه مشابه دی دَ لیس سره په نفی کنے اَوْ په دخول دَ دِیه کنے، په جملے اسمیے باندے۔

## هو المسند بعد دخولها

یعنی دا خبر دَ مَا اَوْ لَا دا به مسند وی، پس دَ دخول دَ دِیو دَ دوارو نه، یعنی "بعد دخول احدهما" اَوْ چه مسند ئے اُوودے، په دِیے سره، په کنے تول مسندات داخل شو اَوْ په "بعد دخولهما" سره تول نه تول خارج شو۔

## وهی لغۃ حجازیۃ

اَوْ دا نصب ورکول دَ خبر دَ مَا اَوْ لَا دا لغت دَ حجازیینو دے، یعنی دَ حجازیین په نزد باندے دا عمل کوونکی دی اَوْ بنوتمیم دِیے لره عمل نهٔ ورکوی، هغوی وائی، چه دوئ په اِسم اَوْ فعل دواړو داخلیږی۔

## وانا زیدت ان مع ما او انتقض النفی بالا او تقدم الخبر بطل العمل.

اَوْ په هغه وخت کنے، چه زیات کړے شی "ان" سره دَ مَا نه، لکه نه وعلته، چه "ما ان زیدٌ قائمٌ" اَوْ یا دا نفی ختم کړے شی په سبب دَ دخول دَ اِلَّا سره اَوْ یا مقدم او کوځی خبر په اِسم دَ دوے باندے، نو باطل شی عمل دَ مَا اَوْ لَا، په دِیے عبارت سره مصنف اشاره کوی، دِیے خبرے ته، چه دَ مَا اَوْ دَ لَا عمل په څه باندے ختمیږی، لو اول خو په "ان" سره، چه کله دے فاصل شی، ځکه چه دوئ عمل په متصل کنے کوی اَوْ په منفصل کنے نهٔ کوی، بل دا چه معنیٰ دَ نفی منقوضه شی، په اِلَّا سره، ځکه چه دوئ عمل دَ وجه دَ مشابهت نه دَ لَیس سره کوی، چه هغه دَ بابه دَ نفی نه دی، لو چه هرکله په اِلَّا سره معنیٰ دَ نفی پاتے نهٔ شوه، بلکه اثبات شو، نو عمل به نهٔ کوی۔ بل ځلے دَ ابطال دَ عمل هغه تقدیم دَ خبر دے، په اِسم دَ دوئ باندے، ځکه چه دوئ خو عمل کوی، په مرتب کنے نهٔ په غیر مرتب کنے اَوْ دا په دِیے وجه چه دوئ ضعیف العمل دی۔

## وَاذا عطف علیه بموجب فالرفع

اَوْ هغه وخت کنے، چه عطف اُوکړے شی، په خبر دَ مَا اَوْ دَ لَا باندے، په دا سے

عاطف سره چې هغه مفيد د إيجاب وي، لكه "بَلْ" شو يا "لٰكِنْ" شو نو بيا په هغه صورت كښې رفعه واجب ده. يعني حكم د معطوف رفع ده، د وجه د عمل نه په محل د خبر د "ما" او د "لا"، حكم په دا په اصل كښې خبر د مبتدا وو، نو دلته به شي، چې "مَا زَيْدٌ قَائِمًا بَلْ قَاعِدٌ" يا "لٰكِنْ قَاعِدٌ" او چې كله عطف راشي په غير موجب سره، نو فقط به چې "مَا زَيْدٌ قَائِمًا وَلَا قَاعِدًا" يعني حكم د ده به كه نوره معطوفاتو دى۔

تَمَّتِ الْمَنْصُوْبَاتُ بِعَوْنِ الْمَلِكِ الْعَزِيْزِ الْوَهَّابِ۔

اللّٰهم اغفر لكاتبه ولمن سعىٰ فيه والجميع المؤمنين آمين يارب العلمين ۔۲۔

# درس نمبر ۱۸۴

# المجرورات

هر کله چه مصنف رحمه الله فارغ شو، د بیان د منصوباتو نه، نو شروع یې اوکړه په بیان د مجروراتو کښې، پس وئے وئیل چه المجرورات، یعنی هذا بحث المجرورات یا بحث المجرورات هذا، او په دے کښې هم هغه تحقیق دے، چه کوم مخکښې په المرفوعات یا المنصوبات کښې ذکر شوے دے، البته دلته یو مشهور **سوال** راولیږي، چه مجرورات جمع راوړل ستا نه صحیح کیږي ځکه چه مجرور خو صرف یو قسم دے، چه مضاف الیه دے (او مرفوعات یا منصوبات یې په دے وجه باندې جمع راوړي دی، چه د هغوي اقسام ډیر دی)۔ **جواب** دا دے چه مصنف رحمه الله جمع راوړي طرداً للباب، یعنی مرفوعات او منصوبات یې جمع راوړي دی، نو دلته یې هم جمع ذکر کړله او یا دا چه مجرور یو نه دے، بلکه دوه دی، یو هغه چه مضاف وي، په اضافت لفظي سره او بل هغه چه مضاف وي، په اضافت معنوي سره لکه د دریم هغه چه حرف جر په کښې اصلي وي او څلورم هغه چه حرف جار په کښې زائد وي۔

**هو ما اشتمل علی علم المضاف الیه** دا جنس مجرور چه دلالت کوي، په ده جمع د قبیلې په دلالت د جمع نه په جنس باندې، دا هغه اسم دے چه مشتمل وي، په قبیله د اشتمال د موصوف نه په صفت باندې، نه د قبیلې د اشتمال د کل نه په جزو باندې، په علامت د کېدلو د شي سره مضاف الیه، چه هغه کسره ده، په مفرداتو کښې او فتحه ده، په غیر منصرف کښې او یا ده، په اسمائے ستة مکبره کښې او په تثنیات کښې او جمع مذکر سالم کښې۔

**والمضاف الیه کل اسم نسب الیه شي** او مضاف الیه، هر هغه اسم ده چه نسبت ده ته د یو شي کړے شوے وي۔

**سوال**۔ بناء د متون په اختصار دے او بله دا خبره چه کله ورته حاجت نه وي، ظاهراً ذکر شي، نو بیا ورته ضمیر راجع کیږي، لو لیکن داوه چه مصنف رحمه الله وئیلي دے، «وهو کل اسم الخ»، ځکه چه مخکښې یې مضاف الیه ذکر کړے دے۔ **جواب**۔ دا به هله صحیح وو، چه په مابین د مضاف الیه او د مجرور کښې ترادف وے او که مجرور عام دے او مضاف الیه خاص او یا داچه په

"ما اشتمل علی علم المضاف الیه" کښې، چه کوم مضاف الیه ذکر دے، دا هغه مضاف الیه نه دے، چه کوم د روستو "المضاف الیه" ذکر کوی، مصنف دلته کښې شئ او ویلی او اسم یې او نه وے، ځکه چه مضاف کله اسم راځی، لکه "غلام زید" او کله فعل راځی، لکه "مررت بزید"۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف جامع او نه ګرځید ځکه چه خپلو افرادو نه دا خارج شو، تو دے نه داتو کیب، چه "یوم ینفع الصادقین" دلته یوم مضاف دے او مضاف الیه ینفع فعل دے او نه خو وائے چه مضاف الیه به اسم وی۔
**جواب**۔ اسم عام دے حقیقتاً وی که حکماً وی او که تاویلاً وی، دلته کښې اګر که صریحاً او حقیقتاً ینفع اسم نه دے، لیکن دے مؤول دے په تاویل د اسم سو، ځکه چه دلته ان مصدریه مقدر دے، لو دا به په تاویل د مصدر سره شی، "ای یوم نفع الصادقین"۔ **سوال** وا، دیری چه تقدیر د ان خو مختص سے په خاص مواضعو پورے چه په هغې کښې داخل نه دے شمار۔
**جواب**۔ هغه کوم مواضع چه ذکر دی په هغې کښې حصر نه دے، بلکه هغه مشهور ځایونه دی، د هغې ځایونو نه علاوه هم په بعض ځایونو کښې تقدیر د ان راغلی دے، لکه په دے قول کښې "تسمع بالمعیدی خیر من ان تراه"، دلته د تسمع نه مخکښې ان مقدر دے۔

## درس نمبر ۱۸۵:

**سوال**۔ مصنف په تعریف کښې دا سے ولے و نه ویل چه "هو ما اشتمل علی علم الجر"؟ **جواب**۔ "علی علم الجر" یې ځکه و نه وے چه بیا دور لازمیږی۔ او س په دے عبارت سره مصنف تعریف د مضاف الیه کوی، ځکه چه دے مخکښې او وے چه "هو ما اشتمل علی علم المضاف الیه"۔ علامه عامه ده، لفظاً وی، که تقدیراً وی او که محلاً وی او "ما نسب الیه شئ" چه یې او وے، دا ځکه چه مضاف کله اسم وی او کله غیر اسم وی۔ **سوال**۔ په واسطے د حرف جر دِ ولے او وے؟ **جواب**۔ په دے سره احتراز راغے، د هغه نه چه نسبت خو په کښې وی، ولے په واسطے د حرف جر نه وی، لکه نسبت د فعل فاعل ته او یا مفعول ته بغیر د واسطے نه۔ لفظاً او تقدیراً، دا دواړه خبر دی، د باره د کان، یعنی "سواء کان لفظاً او تقدیراً، یا ملفوظاً کان او مقدراً"۔ مثال د هغې چه حرف جر په کښې لفظی وی، لکه "مررت بزید"۔ مثال د هغې چه حرف جر په کښې تقدیری وی، لکه "غلام زید"۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف جامع و نه ګرځید، ځکه چه خپلو افرادو نه او خارج شو، تو دے مضاف الیه په اضافت لفظی سره په مذهب د هغه چا باندې چه هغوی وائی چه اضافت لفظی په تقدیر د حرف جر سره نه وی۔ **جواب**۔ د مصنف په نزد باندې چه کوم اضافت منقسم دے لفظی او معنوی ته۔ دا هغه اضافت دے چه په تقدیر د حرف جر سره دی۔
**سوال**۔ تعریف ستا مانع او نه ګرځید، د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې مفعول فیه په دے صورت کښې چه "صمت یوم الجمعة"، ځکه چه یوم اسم دے او نسبة ورته او شو د لحو

شی، چه په واسطے د حرفِ جر سره دے اؤ اصل عبارت داسے دے، چه صمت فی یوم الجمعة، نو مصنفؒ جواب اوکړو چه ۱-

**مراداً**
په حال د کون د دے حرفِ جر کښے، چه دے به مراد وی، په اَلقارد تمثیل سره اؤ په مفعول فیه کښے حرفِ جر مُراد نه وی۔

**فالتقدیر شرطه أن یکون المضاف اسماً**
دلته دا فاء د پاره د تفصیل اؤ د تفسیر ده اؤ الف لام بدل د مضاف الیه نه دے، نو تقدیر به داسے شی، "فتقدیر حرف الجر شرط ئے دا دے، چه مضاف به اسم وی، فعل به نه وی، حکه چه د اضافت لوازم خاص دی پر اسم پورے، چه هغه تخصیص تعریف اؤ تخفیف دے اؤ که چرته مضاف فعل شی، نو بیا لازم دے تلفظ په حرف باندِ، د پاره د دے، چه په واسطے د دے سره ایصال د فعل اُوشی، مفعول ته۔

**مجرداً تنوینه لاجلها**
خالی کړے شوے به وی، د اِسم د تنوین اؤ یا قائم مقام د تنوین نه، چه نون د تثنیے اؤ یا نون د جمع دے، لاجلها د وجے د اضافت نه، حکه چه په مابین د مضاف اؤ مضاف الیه کښے شدت اتصال دے اؤ تنوین وغیره دلیل، د پاره د انفصال آئی په مابین د اتصال اؤ انفصال کښے منافات دے، دا تنوین به په هغه صورت کښے لرے کیږی، که چرته موجود وی، په کښے، لکه "غلام زیدٍ" یا ضاربُ عمروٍ یا حسن الوجه، یا ضاربا زیدٍ او ضاربو زیدٍ۔ اوس دا ترکیب جائز نه دے، چه "الغلام زیدٍ" حکه چه د الغلام نه تنوین په اضافت سره نه دے ساقط شوے، بلکه د وجے د الف لام نه ساقط شوے دے۔

**وَهِیَ مَعْنَوِیَّةٌ وَلَفْظِیَّةٌ**
اؤ دا اضافت په تقدیر د حرفِ جر سره، په دوه قسمه دے، وجه د حصر ئے دا ده چه دا مضاف به خالی نه وی یا به صفت وی، چه عمل به کوی، په مضاف الیه کښے مخکښے د اضافت نه اؤ یا به نه وی۔ پس اؤل ئے اضافت لفظی دے اؤ دوهم اضافت معنوی دے اؤ اضافت معنوی ورته په دے وجه باندِ وائی، چه دے فائده کوی، معنیٰ په مضاف کښے، چه هغه تعریف دے اؤ یا تخصیص دے۔

**فالمعنوية أن یکون المضاف غیر صفة مضافة الی معمولها**
پس اضافت معنوی کیدل د مضاف دی، غیر صفت۔ هسے صفت، چه مضاف وی، معمول ته، یعنی مضاف به صفت نه وی، لکه "غلام زیدٍ"، په دے سره احتراز دے، د "ضارب زیدٍ او حسن الوجه" نه اؤ یا خو وی صفت خو عامل نه وی، په مضاف الیه کښے، لکه "کریم مصرٍ"۔ سوال . المعنوية، خو مبتدا ده اؤ ان یکون په تاویل د مصدر سره به خبر

نی، خبر ځنو حمل رنی په مبتدا ر باندې اؤ دلته حمل د صرف وصف راغلې، یه ذات باندې اؤ دا ناجائز دے۔ جواب۔ دلته خبرد مبتدا ر محذوف دے، چه هغه علامتها دے۔

**وهي أما بمعنى اللام في ما عدا جنس المضاف وظرفه**

اؤ اضافت معنویه به یا په معنیٰ د لام وي، په هغه ځائے کښې چه مضاف الیه د جنس د مضاف نه وي، اؤ نه ظرف وي د پاره د مضاف۔

**وأما بمعنى من في جنس المضاف**

اؤ یا به په معنیٰ د من سره وي، که چرته مضاف الیه د جنس د مضاف نه وي، یعنی مضاف الیه جنس وي د پاره د مضاف، لکه خاتم الفضة وغیره۔

**أو بمعنى في في ظرفه**

اؤ یا به وي په معنیٰ د في باندې چه هغه مضاف الیه ظرف د پاره د مضاف وي۔ برابره خبره ده چه ظرف زمان وي، که ظرف مکان وي، لکه ضرب الیوم او قتیل کربلاء، یعنی دا اضافت په درې طریقو سره استعمالیږي، یا به په لام سره، یا به په من سره وي اؤ یا به په في سره وي اؤ وجه د حصر دا ده، چه دا مضاف الیه به خالی نه وي یا به ظرف وي د پاره د مضاف اؤ یا به نه وي، که چرته اوّل وي، نو دا په معنیٰ د في سره دے، لکه ضرب الیوم، اؤ که چرته مضاف الیه ظرف د پاره د مضاف نه وي، نو بیا به خالی نه وي، یا به په مابین د مضاف اؤ مضاف الیه کښې نسبت د تباین وي، یا به نسبت د مساوات وي، یا به نسبت د عموم خصوص مطلق وي اؤ یا به نسبت د عموم خصوص من وجه وي، که چرته نسبت د تباین وي، نو هغه اضافت په معنیٰ د لام سره دے، لکه غلام زید، اؤ که نسبت د مساوات وي، نو دا ترکیب ممتنع دے ځکه په دے کښې فائده نه ده مرتبه، لکه لیث او اسد، اؤ که چرته نسبت د عموم خصوص مطلق وي، نو بیا به خالی نه وي، یا به اضافت د عام واقع وي خاص ته اؤ یا به اضافت د خاص واقع وي عام ته، که چرته اوّل وي، نو دا هم په معنیٰ د لام سره دے، لکه یوم الاحد، اؤ که چرته دویم وي، نو دا ترکیب ممتنع دے ځکه چه په دے کښې څه فائده نشته، لکه احد الیوم، که چرته عموم خصوص من وجه وي، نو بیا به خالی نه وي یا به مضاف اصل وي په نسبت سره مضاف الیه ته اؤ یا به مضاف الیه اصل وي په نسبت سره مضاف ته، که اوّل وي، نو دا اضافت په معنیٰ د لام سره دے اؤ که دویم وي، نو دا اضافت به معنیٰ د من سره دے۔

**وهو قليل**

اؤ دغه اضافت، چه کوم په معنیٰ د في باندې دے، دا قلیل الاستعمال دے۔

**مثل غلام زيد وخاتم فضة وضرب اليوم**

غلام زید، دا مثال د هغه

دے چہ اضافت په معنیٰ دَ لام سره وی اَوْ "خاتم فضۃٍ"، دا مثال دَ هغه دے چہ اضافت په معنیٰ دَ مِن سره وی اَوْ "ضرب الیوم"، مثال دَ هغه چہ اضافت په معنیٰ دَ فی سره دے۔

**وتفید تعریفاً مع المعرفۃ وتخصیصاً مع النکرۃ.** اَوْ فائده کوی دا اضافت معنوی تعریف دَ مضاف سره، دَ مضاف الیه معرفه نه اَوْ فائده کوی تخصیص دَ مضاف سره دَ مضاف الیه نکرے نه، لکه "غلام رجل" اَوْ یا "غلام امرءۃ"، په دے سره قلت دَ شرکاء پیدا کوی۔ **سوال**. دا قاعده ستا منتقض شوه په "غلام زید" سره چہ اشاره په کښے شوے وی غیر معین ته، حُکه چہ دلته کښے اضافت معنوی دے اَوْ اضافت کښے معرفه ته راغلے دے، سره دَ دے نه په کښے تعریف دَ مضاف نه دے راغلے۔ **جواب**. حال دا اضافت په شان دَ لام دے، په اصل وضع کښے دا واضع وضع کړے دے، دَ باره دَ تعین۔

## درس نمبر ۱۸۶:

**سوال**. ستا دا قاعده منتقض شوه په مثل زید یا "غیر زید" سره، حُکه چہ دلته اضافت معنوی دے اَوْ مضاف الیه معرفه ده، سره دَ دے نه تعریف ئے نه دے فائده کړے، حُکه چہ په مثل اَوْ غیر کښے ابهام دے اَوْ دا متوغل دی په ابهام کښے۔ **جواب**. دا حکم علاوه دَ غیر اَوْ مثل نه دے حُکه چہ دوئ متوغل دی په ابهام کښے۔

**وشرطها تجرید المضاف من التعریف** لَوْ شرط دَ اضافت معنوی دا دے چہ تجرید به وی دَ مضاف دَ تعریف نه حُکه چہ اضافت خو راځی دَ پاره دَ حصول دَ تعریف، نو که چیرته مضاف معرفه وی، نو لازمیږی تحصیل دَ حاصل اَوْ که مضاف الیه نکره وی اَوْ مضاف معرفه وی، نو لازمیږی طلب دَ اَدنیٰ سره، دَ حصول دَ اقوی نه اَوْ دلته تجرید په معنیٰ دَ تجرد اَوْ دَ خلو سره دے۔ **سوال**. تاسو خو وائے چہ شرط دَ اضافت معنوی دا دے چہ مضاف به خالی نه وی دَ تعریف نه، نو دا قاعده ستا منتقض شوه په "الثلاثۃ الاثواب" سره، یا "الخمسۃ الدراهم" اَوْ "المائۃ الدینار" سره، چہ دلته خو مضاف معرف باللام دے، نو مصنف جواب اوکړو چہ:-

**وما اجازه الکوفیون من الثلاثۃ الاثواب وشبهه من العدد ضعیف** اَوْ کوفیانو چہ دا ترکیب جائز کړے دے "الثلاثۃ الاثواب" اَوْ دَ دے په مثل نور ترکیبونه لکه "الخمسۃ الدراهم" نو دا ضعیف دی، حُکه چہ دا ترکیبونه فصحاؤ نه دی استعمال کړی، بلکه دَ فصحاؤ په نزد باندے "ثلثۃ الاثواب" استعمالیږی نه "الثلاثۃ الاثواب" اَوْ دا دَ قیاس نه هم مخالف دے، حُکه چہ لازمیږی تحصیل دَ حاصل۔
**سوال**. ستا دا قاعده منتقض شوه په بعضے ترکیب سره چہ په حدیث کښے راغلی دی، الاٰیة.

الدینار ځکه چه مضاف دلته معرف باللام دے۔ **جواب**۔ دا د تبیلی د مضاف او مضاف الیه نه نهٔ دی، بلکه دا بدل او مبدل منهٔ دی۔

**واللفظية ان يكون المضاف صفة مضافة الى معمولها.**

او اضافة لفظیه علامه ئے دا دهٔ چه مضاف به صفت وی او اضافت به ئے خپل معمول ته راغلی وی، چه هر کله ئے دا اُووے چه مضاف به صفت وی، په دے سره احتراز راغلو د هغه نه چه مضاف صفت نه وی، لکه غلام زیدٍ او مضاف به صفت وی، یعنی یا به اِسم فاعل وی، یا به منعول وی، یا به اِسم تفضیل وی او یا صفت مشبه وی، او په مضافة الى معمولها سره اِحتراز راغے د هغه نه چه مضاف وی غیر معمول ته، لکه مصارع مصرٍ یا کریم العصرِ وغیره۔

**مثل ضارب زيد وحسن الوجه**

اول مثال د هغه دے چه اضافت د اِسمِ فاعل راغلے وی منعول خپل ته او دلته مضاف صفت دے، چه صیغه د اِسم فاعل ده او دا د دویم مثال د هغه دے چه اضافت د صفت مشبه راغلے وی، فاعل ته۔

**ولا تفيد الا تخفيفا فى اللفظ**

او دا اضافت لفظیه فائده دا ده چه دے تخفیف په لفظ کښے پیدا کوی، نه تعریف یا تخصیص۔ برابره خبره ده، چه دا تخفیف په جانب د مضاف کښے وی او یا په جانب د مضاف الیه کښے وی۔ هر چه دے تخفیف په جانب د مضاف کښے، نو هغه حذف د تنوین دے او یا قائم مقام د تنوین، چه هغه نون د تثنیه او یا نون د جمع دے او هر چه دے په جانب د مضاف الیه کښے، هغه حذف د ضمیر دے او استتار دے، په صفت کښے۔ **سوال**۔ دلته کښے مصنفؒ لفظاً ولے ذکر کړو۔ **جواب**۔ په دے کښے اشاره ده، وجے د تسمیے ته او یا د یاره د تقابل چه د معنی په مقابله کښے لفظ راغلی۔ **سوال**۔ څهٔ وجه ده؟ چه اضافت معنوی فائده لفظی او معنوی دواړه ورکوی او اضافت لفظی صرف لفظی فائده ورکوی۔ **جواب**۔ په اضافت معنوی کښے انفصال دے، په مابین د مضاف او مضاف الیه کښے لفظاً او معناً۔ پس هر کله چه ئے اضافت راغلو، نو حاصل شو اتصال په لفظ کښے او په معنی کښے او په اضافت لفظی کښے انفصال دے لفظاً نه معناً، نو چه هر کله ئے اضافت راغے اتصال په لفظ کښے پیدا شو، نو صرف فائده لفظیه په کښے متحقق شوله۔

**ومن ثم جاز مررت برجل حسن الوجه**

او د دے وجه نه چه اضافت لفظی صرف تخفیف په لفظ کښے پیدا کوی او تخصیص یا تعریف نه پیدا کوی۔ جائز دے

ما ترکیب، چه "مررت برجل حسن الوجه"، ځکه چه دلته مطابقة راغلې دے، په مابین د موصوف او د صفت کښے، رجل موصوف نکره ده او حسن الوجه هُم نکره ده، ځکه چه دا اضافتِ لفظی ده، اضافتِ لفظی مفید د تعریف نهٔ دے، کهٔ چرته نے مفید د تعریف وے، نو بیا به ما ترکیب ناجائز وو، ځکه چه مطابقة به نهٔ وو، په مابین د موصوف او د صفت کښے، موصوف به نکره وه او صفت به معرفه وه

**وامتنع مررت بزید حسن الوجه** | او دا ترکیب ممتنع دے، ځکه چه مطابقت نهٔ راځی، په مابین د موصوف او د صفت کښے، ځکه چه زید موصوف معرفه ده او "حسن الوجه" دا اضافت مفید د تعریف نهٔ دے، ځکه چه دا اضافتِ لفظیه دے او اضافتِ لفظی تعریف نهٔ پیدا کوی، بلکه صرف مفید د تخفیف فی اللفظ وی، فقط۔

فائده :- غرض د مصنفؒ په دے عبارت سره "چه "ولا تفید الخ" بیان د حکم د اضافتِ لفظیه دے، د دے دوه حکمونه دی، یو صریحی دے او دویم ضمنی دے۔ حکم صریحی دا دے، چه اضافتِ لفظیه به لفظ کښے تخفیف پیدا کوی، بیا د دے تخفیف دوه صورتونه دی، یو دا چه، تنوین یا د جمع قائم مقام حذف کوی، او دویم صورت دا دے، چه د جانب د مضاف الیه نه ضمیر حذف کړی او په جانب د صفت کښے استتار کوی۔ دا فائده لفظی او صریحی ده او حکم ضمنی دا دے، چه اضافتِ لفظیه تخصیص او تعریف نه فائده کوی۔ لوس په "ومن ثم جاز الخ" سره مصنفؒ تفریع کوی، په دواړو حکمونو باندِ وجوداً او عدماً، نو اول یے تفریع اوکړه، په حکم ضمنی باندِ او دا مثال د وجودی دے، ځکه چه وجود مقدم دے، په عدم باندِ، "وامتنع مررت بزید"، دا مثال د عدمی دے او حکم ضمنی دے۔ سوال۔ پکار دا وه، چه حکم صریحی یے مقدم کړے وے، یعنی په حکم صریحی یے تفریع مقدم کړے وے او په حکم ضمنی به یے تفریع مؤخر کړی وه، ځکه چه حکم صریحی اصل او حکم ضمنی نوع ده او اصل مقدم وی، په نوع باندِ، بله وجه دا ده، چه حکم صریحی یو حکم دے، دا به منزله د مفرد کښے دے او حکم ضمنی کثیر دی، نو دا به منزله د مرکب شو او مفرد مقدم وی، په مرکب باندِ، پس حکم صریحی مقدم کول پکار وو، په حکم ضمنی باندِ۔
جواب۔ حکم ضمنی قلیل وو، او حکم صریحی کثیر وو، یعنی په هغے کښے بحث ډیر وو، او قلیل مقدم وی، په کثیر باندِ۔

# درس نمبر ۱۸۷

**وجاز الضارب زید والضاربو زید** | دا تفریع ده، په حکم صریحی باندِ وجوداً

چه دا دواړه ترکیبونه جائز دي ځکه چه په دې کښې تخفیف راغلے دے لفظاً، په اوّل ترکیب کښې نون د تثنیه حذف شوے دے او په بل ترکیب کښې نون د جمع۔

**وامتنع الضارب زید** دا تفریع ده په حکم صریح باندې عدماً۔ دا ترکیب ممتنع دے، د وجې د عدم حصول د تخفیف نه په دې اضافت سره، ځکه چه تنوین حذف شوے دے، د وجې د الف لام نه، نو په دې اضافت سره تخفیف حاصل نه شو، د هغه شان دا ترکیبونه هم ممتنع دي چه "الحسن وجهه" او "الحسن وجه"۔

**خلافاً للفراء** خلاف ثابت دے امام فراء لره، ځکه چه د هغهٔ په نزد باندې دا ترکیب جائز دے، د هغه د پاره دوه دلیله دي، یو خارجي او یو نقلي دے، دلیل خارجي دا دے، چه دلته کښې حذف د تنوین د وجې د اضافت نه راغلے دے، ځکه چه اضافت مقدم دے په الف لام باندې، نو دا تنوین حذف شوے دے، د وجې د اضافت نه نه د وجې د الف لام نه پس فائده د اضافت لفظیه حاصله شوه، نو دا ترکیب جائز شو، جمهور نحات د امام فراء د دې دلیل نه دا جواب ورکوي، چه ستا دا دلیل صحیح نه دے، ځکه چه الف لام حساً مقدم دے په اضافت باندې او ستا دا قول چه الف لام وروستو راغلي دي، دا خلاف دے، د حس نه او بله وجه دا ده، چه اضافت راځي، د پاره د تحقیق د ذاتي عارض د عوارضو د اسم او الف لام راځي، د پاره د تحقق د ذات کړ اسم او تحقق د ذات دا مقدم دے، په تحقق د صفاتو باندې۔

**وضعف الواهب المائة الهجان وعبدها** په دې عبارت سره مصنف رد کوي، په استدلال د امام فراء باندې، د امام فراء د پاره دلیل نقلي دا دے، په خپله مدعی باندې۔ هغه وائي چه "الضارب زید" ترکیب صحیح دے، ځکه چه د دې ترکیب په شان مثل په دې مصرع د شاعر کښې راغلے دے، لکه "الواهب المائة الهجان وعبدها"، په دې شان سره چه الواهب معرف باللام دے او دا مضاف دے المائة ته او په المائة باندې عبدها عطف دے۔ پس دا ترکیب داسې شو چه "الواهب عبدها"، دا په مثل د "الضارب زید" او که چرته "الضارب زید" ترکیب ممتنع اوګڼئ، نو بیا دا شعر هم نه دے صحیح، نو سوال متدبه داسې شو، چه تاسو وائي، چه "الضارب زید" ترکیب نه دے، نو په دې شعر کښې خو د هغه شان ترکیب راغلے دے، پس مصنف جواب اوکړو چه "وضعف الخ"، یعنی استدلال په دې ترکیب سره ضعیف دے، ځکه چه فائده د اضافت لفظیه چه هغه تخفیف دے، په لفظ کښې، هغه نه دے حاصل شوے، ځکه چه تنوین ساقط شوے دے، په الف لام سره، لیکن دا جواب ضعیف دے، ځکه چه دا خو د فصیح عرب جاهلي شاعر شعر دے او د فصیح جاهلي شاعر شعر باندې استدلال نیولے کیدے شي، نو ته ځکه په دې باندې

حکم دَ ضعف لګوے، بلکه رجه داده چه لا نمیږی مصادره علے المطلوب اؤ مصادره علے المطلوب دېے ته والیٔ چه دلیل موقوف وی په مدعیٰ باندې اؤ مدعی موقوف وی په دلیل باندې اؤ دَ دېے څلور قسمونه دی، اول دا چه مدعیٰ عین دلیل وی ـ دویم دا چه جزء دَ دلیل وی ـ دریم دا چه دلیل موقوف وی په کل مدعیٰ باندې ـ څلورم دا چه دلیل موقوف وی په جزء دَ مدعیٰ اؤ دا اوّل صورتونه باطل دی، ځکه چه دا مستلزم دی دَ دور لره اؤ دور باطل دے، نو مصادره علی المطلوب هُم باطله ده اؤ په دېے ځائے کښے مصادره علے المطلوب په دېے طریقه سره راځی چه مدعیٰ چه " الضاربُ زیدٍ " ده دَ دېے امتناع موقوف ده په ضعف دَ دلیل باندې چه " الواهب المائة الخ " دے اؤ دَ دلیل ضعف موقوف دے په مدعیٰ باندې چه هغه " الضارب زیدٍ " دے، نو دَ ضعف صحیح توجیه دا ده چه دَ شاعر په دېے مصرعه باندې دلیل نیول صحیح نه دی، ځکه چه دلته کښے په عبدها باندې دَ جر تصریح نشته، بلکه جائزه ده دا خبره چه عبدهَا دِ منصوب اوګرځی اؤ دا دِ عطف اوګرځی په محل دَ المائة باندې اؤ المائة خو محلاً منصوب دے، ځکه چه دا مفعول دے دَ الواهب دَ پاره اؤ یا دا مفعول معه دے اؤ بله دا چه هم کومه یو شے جائز وی په معطوف کښے اؤ په معطوف علیه کښے نا جائز وی، لکه " ربّ شاة وسخلتها "، دلته کښے رُبّ راغلے دے، دلے داخلیږی په نکره باندې اؤ په سخلتها باندې نه شی داخلیدے ځکه چه دا نکره نه ده پوره، شعر دا دے چه:-

الواهب المائة الهجان وعبدهـا ! . عوذاً يزجى خلفها اطفالـها

یعنی زما ممدوح هغه کوونکے دے، سلو سپینو اوښانو لره، سره دَ ریبانو نه ـ **سوال** ـ اضافت دَ عبد هجان ته نه دے صحیح، ځکه دَ عبدها اضافت خپل مالک ته کیږی ـ **جواب** ـ دلته کښے دَ عبد نه مجازی معنیٰ مراد ده، چه هغه راعی دے اؤ یا دا چه دلته کښے دَ عبد نه مراد معنیٰ حقیقی ده، لیکن اضافت دَ عبد هجان ته دَ وجه دَ ادنیٰ ملابسے لوَ مناسبة نه دے، لکه چه څنګه عبد دَ خپل مولیٰ په خدمت کښے مشغول وی، هغه شان راعی هُم په خدمت دَ دېے اوښانو کښے لګیا وی ـ

وانما جاز الضارب الرجل حملا علے المختار فی الحسن الوجه

په دېے عبارت سره مصنف رح دفع دَ دخل مقدر کوی اؤ دا دَ امام فراء دَ پاره دلیل هُم دے، دخل مقدر دا دے، چه هرکله تاسو والیٔ " الضارب زیدٍ " ترکیب ممتنع دے، نو لیکن داوه چه " الضاربُ الرجلِ " ترکیب هم جائز نه شی اؤ هم په دېے ترکیب سره امام فراء هُم دلیل نیولے دے، هغه والیٔ چه هرکله " الضارب الرجل " ترکیب جائز دے، نو " الضارب زیدٍ " ترکیب هُم جائز شی ـ پس مصنف رح دَ دېے دخل مقدر جواب اوکړو چه په تحقیق سره جائز دے، دا ترکیب چه " الضارب الرجل حملاً علے المختار " دَ وجه دَ حمل نه په وجه مختار یا

په من صب مختار باندې په "الحسن الوجهِ" باندې په کسره سره، یعنې "الحسن الوجهِ" - دَ "الضارب الرجل" مشابهت "دَ الحسن الوجه" سره راغلی دے، په دې شان سره چې په دغه دواړو ترکیبونو کښې مضاف صفت دے او معرّف باللام دے، په دغه شان په دې دواړو ترکیبونو کښې مضاف الیه هم معرف باللام دے، په خلاف دَ "الضارب زیدٍ" نه، ځکه چې په دې کښې اګر که مضاف صفت معرف باللام دے، لیکن مضاف الیه معرف باللام نه دے، په "الحسن الوجه" کښې درے وجوهات جائز دی، فتح سره کسرے سره او رفع سره، خو بحث وشیل دی۔

**والضاربك وشبهه فيمن قال انّه مضاف حملاً على ضاربك ــــ**

په دې عبارت سره مصنف دفع دَ دخل مقدر کوی او دا دَ امام فرّاء دَ پاره دلیل هم دے، دخل مقدر دا دے، چې هر کله تاسو وائې چې "الضارب زیدٍ" ترکیب ممتنع دے، نو لیکل دا دی، چې "الضاربك" ترکیب دې هم ممتنع او کرځی ځکه چې دلته کښې هدم تخفیف دَ اضافت په وجه راغلی هوچه ده، سقوط دَ تنوین، نو هغه دَ وجې دَ الف لام نه دے، نه دَ اضافت نه او دَ امام فرّاء دَ پاره دا دے دلیل کرځی، چې هغوالی چې تاسو ځنګه وایئ، چې "الضارب زیدٍ" ترکیب ممتنع دے، که چرته دا ترکیب ممتنع وی نو بیا دا هم چې "الضاربك" ترکیب دې هم ممتنع وی، هر کله چې "الضاربك" ترکیب جائز دے، نو "الضارب زیدٍ" ترکیب هم جائز شو، نو مصنف جواب اوکړو، چې "الضاربك وشبهه" چې "الضاربك" یا دَ دې په شان نور ترکیبونه دا جائز دی، دَ وجه دَ حمل نه په ضاربك باندې، ځکه چې قاعده دا ده، چې کله اراده غات دَ اتصال دَ اسم فاعل یا دَ اسم مفعول چې مجرور وی، دَ الف لام نه، او کړی، دَ خپلو معمولاتو سره لکه حال دا دے، چې دا معمولات ضمائر دی۔ پس غات په دې کښې التزام دَ اضافت کیږي دے لکه دې ته ئې نه دی کتلی، چې فائده حاصله شوی ده او که نه، هر کله چې جائز شو دا ترکیب، پس "الضاربك" ئې ورن باندې حمل کړو او مناسبت په کښې دا دے، چې دلته کښې په دې دواړو ترکیبونو کښې مضاف صفت دے او مضاف الیه ضمیر دے۔

## درس نمبر ۱۸۸

**سوال۔** په دې خبره باندې څه دلیل دے؟ چې په "ضاربك" کښې تنوین ساقط شوے دے، ځکه چې دَ اضافت نه، نه دَ وجې دَ اضافت نه۔ **جواب** دا دے، چې که چرته په ضاربك کښې تنوین په اضافت سره ساقط شی، نو اول به تصور دَ ضاربك لاانبحوه لکه چې څنګه تصور دَ "ضاربُ زیدًا" اول لازم دے، حالانکه تصور اوّل دَ ضاربك نه دے راغلے۔ پس معلومه شوه، چې تنوین په ضاربك کښې ساقط شوے دے، ځکه چې دَ اضافت نه۔ **سوال۔** جاړه ده دا خبره، چې "ضاربك" په اصل کښې "ضاربٌ ایاك" وو بیا

تنوین ساقط شوے دے، پہ اضافت سرہ، یا ضمیر منفصل پہ ضمیر متصل بدل شو، پہ دے صورت کښے تخفیف پہ جانب دَ مضاف اَوْ مضاف الیه دواړو کښے موجود شو. **جواب** دا دے، چہ دا یے دَ عربو نہ مسموع نہ دے اَوْ بله وجه دا ده، چہ ضمیر منفصل پہ هغه وخت کښے راوړلے شی، چہ کوم ځائے کښے ضمیر متعذر وی اَوْ هغه خاص ځائے نہ دے. دَرَیمه وجه دا ده، چہ دَ اضافت لفظیه صرف دُوه فائدے دی، چہ یو تخفیف دے پہ جانب دَ مضاف کښے اَوْ دغه شان تخفیف دے، پہ جانب دَ مضاف الیه کښے پہ جانب دَ مضاف کښے حذف دَ تنوین یا قائم مقام دَ تنوین دے اَوْ پہ جانب دَ مضاف الیه کښے حذف دَ ضمیر دے اَوْ استتار دے، پہ صفت کښے اَوْ هغه چہ دے، ابدال دَ منفصل پہ متصل سره، نو دا دَ اضافت لفظیه دَ تخفیف دَ اقسامو نہ دے. پس "الضاربك" دا ترکیب صحیح اوکرځیدو، دَ وجه دَ حمل نہ پہ ضاربك باندے.

**ولا یضاف موصوف الی صفة**

پہ دے عبارت سره ماتن پہ قاعدے تہ اشاره کوی، چہ موصوف صفت تہ نہ شی مضاف کیدے اَوْ دغه شان :-

**ولا صفة الی موصوف**

اَوْ نہ اضافت دَ موصوف صفت تہ راتلے شی، وجه دا ده چہ، پہ دغه صورت کښے اجتماع دَ ضدین راځی اَوْ دلته کښے اقامت دَ یو پہ ځائے دَ بل نہ شی راتلے، ځکه چہ دَ ترکیب اضافی ځان له حکم دے اَوْ دَ ترکیب توصیفی ځان له حکم دے، بنا دَ ترکیب اضافی پہ مغایرة ده، پہ مابین دَ مضاف اَوْ مضاف الیه کښے اَوْ بنا دَ ترکیب توصیفی پہ اتحاد ده، پہ مابین دَ موصوف اَوْ صفت کښے، بله وجه دا ده چہ صفت تابع دے اَوْ پہ اضافت کښے تبعیت نشته، یو بله وجه دا ده، چہ موصوف اخص یا مساوی کیدے شی اَوْ مضاف اخص یا مساوی نہ شو کیدے :

**ومثل مسجد الجامع وجانب الغربی و صلوٰة الاولیٰ وبقلة الحمقاء متاوّل.**

پہ دے عبارت سره مصنف دفع دَ دخل مقدر کوی. **سوال**. تاسو اووئیل، چہ "لا یضاف موصوف الی صفة" نو دا قاعده ستا منقوضه شوه، پہ دے ترکیبونو سره، لکه "مسجد الجامع"، دلته کښے مسجد موصوف دے اَوْ الجامع صفت دے نو پہ دے کښے اضافت دَ موصوف راغلے دے، صفت ته، دغه شان پہ دے ترکیبونو کښے، "جانب الغربی"، جانب موصوف دے اَوْ الغربی صفت دے، پہ "صلوٰة الاولیٰ" کښے، صلوٰة موصوف اَوْ الاولیٰ صفت دے اَوْ "بقلة الحمقاء" کښے، بقلة موصوف دے اَوْ حمقاء صفت دے، پہ دے ټولو ترکیبونو کښے اضافت دَ موصوف صفت تہ راغلے دے، نو مصنف **جواب** اوکړو، چہ متاول، یعنی دلته کښے پہ دے ترکیبونو کښے تاویل کړے شوے دے، پہ دے شان سره، چہ دَ دے صفتونو موصوفات

مقدر دی، لوکه مسجد الجامع اصل تقدیر دا دے، مسجد الوقت الجامع او د جانب الغربی تقدیر دا دے جانب المکان الغربی او د صلوٰة الاولیٰ تقدیر دا چه صلوٰة الساعة الاولیٰ او د بقلة الحمقاء تاویل دا دے، بقلة الحبة الحمقاء۔

**ومثل جرد قطيفة و اخلاق ثياب متاولٌ.**

په دے عبارت مصنفؒ دفع د سوال کوی۔

**سوال** ۔ تاسو اووئیل چه لا یضاف صفة الیٰ موصوفها، نو دا قاعده ستا منقوضه شوه، په دے ترکیبونو چه جرد قطیفة او اخلاق ثیاب، ځکه چه جرد صفت دے د پاره د قطیفة او اضافت ئے راغلے دے، موصوف ته او دغه شان اخلاق، صفت د پاره د ثیاب دے او اضافت ئے راغلے دے، موصوف ته۔ پس مصنفؒ **جواب** اوکړو چه متاول، یعنی دلته په دے ترکیبونو کښے تاویل کړے شوے دے، په دے شان سره چه هر کله خالق حذف کړو قطیفة د دے قول نه، چه قطیفة جرد۔ پس صفت بغیر د موصوف نه پاتے شو، او استعمال د صفت بغیر د موصوف نه جائز نه دے، پس صفت اُوویستلو د صفتیت نه او د نورو اجناسو په شان ئے لوګرځولو بیا ئے اضافت راغے، د پاره د ابهام، دغه شان ترکیب په اخلاق کښے دے، او س دلته کښے دا اضافت بیانی دے، په معنیٰ د مِنْ سره دے۔

# درس نمبر ۱۸۹

**ولا يضاف اسم مماثل للمضاف اليه في العموم والخصوص كليث واسد وحبس ومنع لعدم الفائدة.**

په دے عبارت سره مصنفؒ بله قاعده ذکر کوی، چه اضافت د هغه اسم نه راځی، دا سے اسم ته، چه هغه د ده سره مساوی او مماثل وی، په عموم او په خصوص کښے۔ برابر خبره ده، چه متساویین وی، لکه انسان او ناطق۔ دلته کښے د انسان اضافت ناطق ته نه شی کیدے او د ناطق انسان ته لو که مترادفین وی، لکه لیث او اسد شو۔ مصنفؒ د لیث او اسد مثال راوړلو، دا د دغه مثال دے، چه مماثل وی، په ذات کښے او د حبس او منع مثال د هغه دے، چه مماثل وی په معنیٰ کښے او دا اضافت په دے وجه باندے ناجائز دے، چه په دے کښے څه فائده نشته دے۔

**بخلاف كل الدراهم وعين الشيء**

په دے عبارت سره مصنفؒ دفع د اعتراض کوی، منشاء ئے ماقبل قاعده ده، چه مصنفؒ اووئیل، چه ولا یضاف اسم مماثل الخ، لو **سوال** دا دے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه، په دے ترکیب سره چه کل الدراهم، په دے کښے اضافت د یو مماثل بل ته راغلے

دے او د دغه شان په عین الشئ کښے، چه مضاف او مضاف الیه مماثل دی۔ پس مصنف جواب اوکړو چه۔

**فانه یختص به**
یعنی په دے ترکیبونو کښے اضافت د عام راغلے دے، خاص ته، "فان المضاف یختص بسبب المضاف الیه" یعنی مضاف کښے عموم وو، د کل اطلاق په درهم او په غیر درهم دواړو باندے کیدو۔ پس چه کله ئے ورسره درهم اوکړلو نو تخصیص ئے راغے، دغه شان عین الشئ کښے، عین عام دو، موجود او معدوم دواړو له شامل وو، چه کله ورسره شئ اوکړلو نو خصوص په کښے پیدا شو۔ او س داد قبیلے د اضافت د یو متماثلینو نه او نه گرځیدو۔

**وقولهم سعید کرز ونحوه متأول**
په دے عبارت سره غرض مصنف دفع د دخل مقدر دے۔ سوال دا دے چه تاسو اووئیل، چه اضافت د یو د متساویین بلکه نا جائز دے، نو دا قاعده ستا منتوضه شوه په دے ترکیب سره، چه "سعید کرز" ځکه چه دواړه سعید او کرز متماثلین دی او اضافت په کښے راغلے دے۔ پس مصنف جواب اوکړو، چه متأول، یعنی په دے کښے تاویل راغلے دے، په دے شان سره، چه مراد په مضاف سره مسمیٰ او مدلول دے، او په مضاف الیه سره اسم او لفظ دے، چه کله اوس مطلب شو، چه "جاءنی سعید کرز" دا به داسے شو چه "جاءنی مدلول هذا اللفظ ومسماه"۔ سوال۔ عکس دے او نشی۔ جواب۔ اسناد د مجیئة لفظ ته ممتنع دے لکه اضافت د لقب اسم ته نه کیږی۔ پس داسے نه شی وئیلے، چه "کرز سعید"۔

**واذا اضیف الاسم الصحیح او الملحق به یاء المتکلم کسر آخره۔**
او هر کله چه اضافت د اسم صحیح یا د هغه چه ملحق وی په اسم صحیح پورے او کړے شی، یاء د متکلم ورته، نو د هغه آخر به مکسور کړے شی۔ صحیح په اصطلاح د نحاتو کښے هغه ته وائی، چه د هغه په آخر کښے واو یا یاء نه وی راغلی، یعنی "ما لا یکون فی آخره حرف علة"، او ملحق بالصحیح ته جاری مجرای صحیح هم وائی، یعنی په آخر د هغه کښے واو او یا یاء وی او ملحق بالصحیح ورته نه ساکن وی، لکه "ظبی" یا "دلو" او دے ته ملحق بالصحیح په دے وجه وائی، ځکه چه حرف علت پس د سکون نه حرکت په هغه باندے ثقیل نه وی او وجه دا ده چه حرف علت نه ما قبل چه په حرف سکون راشی، نو ژبے او لسان ته استراحت حاصل شی، بیا په حرف علت باندے حرکت ثقیل او نه گرځی، نو په دے صورت کښے به آخر د دغه اسم مکسور وی، د وجه د موافقت د یاء نه، لکه "غلامی دلوی وظبی"۔

**والیاء مفتوحة او ساکنة**
او دغه یاء به یا مفتوحه وی، ځکه چه اصل په هغه کلمه کښے، چه هغه په یو حرف باندے مشتمله وی۔ حرکت دے د پاره د دے، چه "لا نه لا یمکن الابتداء بالسکن" حقیقتاً یا حکماً او اصل په مبنی علی الحرکة کښے فتحه ده، د و ه

دَ خفت نه. اَوْ یا به دا یاء ساکن والی، دَ یاء دَ تخفیف۔

## درس نمبر: ۱۹۰

**فان کان فی آخرہ الف اثبت** کهٔ چرته کښې هغه اِسم، چه دَ هغه اضافت راغلے دے، یا صحیح نهٔ وی اَوْ نهٔ ملحق بالصحیح وی، بیا به خالی نهٔ وی، یا به په آخر دَ هغه کښې الف وی، نو دے به ثابت پرېښودے شی، په لغت فصیحه کښې، دَ تثنیه دَ یاء وجه نه الف که نهٔ وی، لکه سلمای یا فتای، مثل دَ عصای اَوْ رحای، دَ وجه دَ عدم موجب دَ انقلاب نه۔

**وهذیل تقلبها لغیر التثنیة** اَوْ قبیله دَ هذیل دغه الف په حال دَ کون دَ دغه الف کښې، چه دَ غیرِ دَ تثنیه دَ یاء وی، بیا ئے بدلوی په یاء باندې، لکه په عصای کښې عصیَّ اَوْ په رحای کښې رحیَّ اَوْ که چرته دَ تثنیه دَ یاء وی، بیا په کښې تغیر نهٔ کوی۔

**وان کان یاءً ادغمت** اَوْ که چرته هغه اِسم، چه دَ هغه اضافت راغلے دے، یاء دَ متکلم ته اَوْ دَ هغه په آخر کښې یاء وه، نو دَ دے ادغام به اوشی، ځکه چه دوه حروف دَ یو جنس نه راغلل، لکه مسلمیَّ شو یا لکه مسلمیَّ، یا لکه قاضیَّ۔

**وان کانت واواً قلبت یاءً و ادغمت** اَوْ که چرته دَ هغه اِسم په آخر کښې واؤ وی اَوْ اضافت ئے راغلے وی، یاء دَ متکلم ته، نو بیا به په دے کښې دوه عمله کیږی، قلب اَوْ ادغام، یعنی دا واؤ به په یاء بدل شی اَوْ بیا به یاء، په یاء کښې مدغم شی، ځکه چه دوه حرفه دَ یو جنس نه راجمع شول اَوْ دا واؤ په یاء باندې، ځکه بدلیږی، چه دا قاعده دَ صرفیانو ده، چه هر هغه ځائے کښې، چه واؤ اَوْ یاء جمع شی، نو واؤ به په یاء بدل شی اَوْ یاء به په یاء کښې مدغم شی، لکه مرمیَّ، چه دا په اصل کښې مرموی وو، واؤ اَوْ یاء جمع شو، واؤ په یاء بدل شو اَوْ په یاء کښې مدغم شو، بیا دَ یاء دَ وجه نه میم له کسره ورکړے شوه۔ (دَ مرمیَّ، دا مثال دا دَ قاعدے صرفیه مثال دے)۔

**وفتحت الیاء للساکنین** اَوْ په ټولو صورتونو کښې یاء به ساکن وی۔ بلکه مفتوح به وی چه په آخر دَ اِسم کښې الف وی، که یاء وی اَوْ که واؤ وی لکه ساکنه به نهٔ وی، دَ یاء دَ وجے، چه التقاء ساکنین لازم نهٔ شی۔

**واما الاسماء الستة فاخی وابی** په دے عبارت سره مصنف بیان دَ دے خبرے کوی، چه هر کلمه دَ اسماء ستة سره لحوق دَ یاء دَ متکلم اوشی، دَ دے څهٔ حکم دے، پس مصنف فرمائیل، چه واما الاسماء الستة نو اخ یا اب

سي، چې کله لحوق د یاء او شي، نو دغه ټیک شي، چې "اخي وابي"، بغیر د رد د لام کلمې نه۔

**واجاز المبرد اخيَّ وابيَّ** او جائز ګرځولي دي مبرد نحوي په دې ترکیب کښې "ابيَّ و اخيَّ" په تشدید د یاء سره، چې حذف لام کلمه رد او واپس راوړي شي،

بیا د لام کلمې ادغام کړې شوې دے، په یاء کښې او دلیل د حذف د شاعر د شعر دا مصرعه ده، چې "وابيَّ مالك ذو المجاز بدار" او اخ، دا محمول او ګرځیدلي په اب باندې، مونږ ورته وایو، چې داشا ده او د استعمال د فصحاء نه بعید دے او بل احتمال په کښې دا دے، چې ابي جمع د اب ده په اصل کښې ابین وو، بیا نون ترې نه ساقط شو، په اضافت سره او یاء په یاء کښې مدغمه شوه،

لس ابي ترې نه جوړ شو، لکه په دې شعر د شاعر کښې:۔

~ فلمّا تبيَّنّ اصواتنا   بکين وفديننا بالابينا!

"ونقول حمي وهني" بغیر د رد د لام کلمې نه او هغه به محذوف لنسیا منسیا او ګرځي۔

**ويقال فيَّ في الاكثر** یعني چې کله فم سره یاء د متکلم ملحقه شي، نو په دې کښې به درې عمله کیږي، رد او قلب او ادغام۔

**وفمي** او په بعض استعمالاتو کښې فمي وئیلې شي۔

# درس نمبر ۱۹۱

**واذا قطعت اخ واب وحم وهن وفم** په فم کښې، په فا باندې درې واړه حرکات صحیح کیږي ضمه، فتحه او کسره، چې کله دغه اسماء منقطع او ګرځي، د اضافت نه لويیا به "اخ واب الخ" وئیلې شي۔

**وفتح الفاء افصح منهما** په فم کښې فتحه، کسره، ضمه درې واړه لغات دي، خو فتحه د فاء دا افصح دے، په نسبت سره د دې دواړو، واړه ته،

یعني کسرے او ضمې ته، ځکه چې فتحه اخف الحرکات دے۔

**وجاء حم مثل يد وخبٔ ودلو وعصا مطلقا.** یعني حکم د حم په شان د حکم د ید دے، په حذف د لام کښې، او په ګرځولو د اعراب کښې په عین کلمه باندې۔ وخبٔ، په کېدلو د ده کښې مهموز معرب په حرکات ثلاثه سره، ودلو،

په کېدلو د آخر د ده کښې واو، وعصا، په کېدلو د آخر د ده کښې مقصور معرب په اعرابات تقدیریه سره مطلقا، دا متعلق دے، په دې ټولو پورې، یعني په حالت د افراد او د اضافت کښې، په دلو کښې رد دے فقط او په خبٔ کښې رد دے او قلب دے، په همزه باندې او په عصا کښې رد او قلب په الف سره راغلی دے۔

**وجاء حسنٌ مثل یدٍ مطلقاً** اَوْ حکم دَ حسنٌ په شان دَ حکم دَ یدٌ دے یعنی رد دَ محذوف نه اَوْ مطلقاً معنیٰ داچه برابره خبره ده چه مفرد وی، که مضاف وی۔

**وذو لا یضاف الی مضمرٍ** په استعمال سره کښې ذو دَ ده اضافت ضمیر ته نه راځی، ځکه چه ضمیر واضع وضع کړے دے دَ پاره دَ توصل دَ شی په اسم جنس سره اَوْ ضمیر اسم جنس نه شی واقع کیدے۔ **سوال**. لکه چه څنګه اضافت دَ ذو ضمیر ته نه شی راتلے، دغه شان اسم اشاره علم موصول ته هم نه شی کیدے۔ لیس لکار داوه چه مصنف لاسے وئیلے وے چه وذو لا یضاف الی غیر اسم الجنس، بیا مصنف ولے ضمیر خاص کړو؟ په ذکر سره۔ **جواب** دا دے چه مصنف خاص کړو ضمیر په ذکر سره ځکه چه دَ دے اسماء خمسه دَ پاره خاص احکام دی په صفت دَ اضافت دَ دوی کښې یا دَ متکلم وته۔ پس مصنف نفی اوکړه دَ اضافت دَ ذو ضمیر ته، دَ پاره دَ انتفاء دَ دغه احکام خاصه۔ **سوال**. ته خو وائے چه دَ ذو اضافت ضمیر ته نه راځی۔ ستا دا قاعده منقوضه شو په دے قول دَ شاعر سره چه "انما یعرف ذو الفضل من الناس ذووه" یا لکه دا قول "اللهم صل علی محمد وذویه" په دے کښې اضافت دَ ذو ضمیر ته راغلے دے۔ **جواب** دا دے چه دا شاذ دے۔

**ولا یقطع** یعنی ذو دَ اضافت نه قطع کیدے نه شی، مسے لازمة الاضافة ده ځکه چه وضع دَ ده راغلی دا دَ پاره دَ توصل دَ توصیف دَ شی په اسم جنس سره، اَوْ دا معنیٰ نه شی حاصلیدے بغیر دَ اضافت نه۔

# التوابع

هر کله چه فارغ شو مصنف رحمه الله د بیان د هغه اسماء نه چه په هغوی کښې اعراب بالاصالة راځي، اوس یې شروع اوکړو په هغه باب چه په هغې کښې اعراب بالواسطه راځي. پس مصنف رحمه الله اووئیل چه: التوابع. نډه کوم داخبره چه توابع په پنځه قسمه دي، ①نعت، ②عطف بیان، ③تاکید، ④بدل او ⑤معطوف. وجه د حصر په پنځو کښې داده چه مقصود بالنسبة به خالي نه وي یا به تابع وي، یا به متبوع وي او یا به دواړه، که چرته اول وي، هغه بدل او که دوئم وي، نو بیا به خالي نه وي یا غرض د راوړلو د تابع نه دلالة وي په هغه معنی باندې چه ثابته وي په متبوع کښې او یا به راوړے شوے وي د پاره د تقرير د هغه معنی چه په متبوع کښې ده او یا به راوړے شوے وي د پاره د توضیح د هغه معنی چه په متبوع کښې ده، که اول وي، هغه نعت دے، که دوئم وي تاکید او که دریم وي عطف بیان او که مقصود دواړه وي، نو هغه معطوف په التوابع کښې د المرفوعات، المنصوبات او المجرورات په شان اعراب مجروري يعني چه داخبر اوګرځي د پاره د مبتدا محذوف او مقدر، یعنی که مضاف هم حذف دے او مبتداء یې هم حذف ده. هغه شان چه مبتداء شي او خبر یې حذف شي، یعنی د دوے مضاف حذف دے او خبر یې هم حذف دے.

## كل ثان باعراب سابقه من جهة واحدة

ما هر هغه مونځی دے چه دے، معرب وي په اعراب د سابق سره د جهة واحدة نه، یعنی معرب به وي په جنس اعراب د سابق سره، د جهة واحده شخصیه نه.

**سوال**: ملته کښې سوئيف کړي په معرف معرفه کښې نقصان دے، ځکه چه التوابع جمع ده او کوم چه الوامی باندې دلالت کوي، نو ملته کښې لازمیږي تعریف، د افرادو او حالانکه تعریف د ماهيت کیږي نه د افرادو. بلکه خبره داده، چه په تعریف کښې لفظ د کل راغلے دے، چه دا راځي د پاره د احاطه د افرادو، بیا هم تعریف د افرادو راغے. **جواب** دا دے، چه التوابع کښې الف لام راغلي دي او دا جنس د پاره دي او قانون دا دے، چه کله په جمع باندې الف لام جنسي داخل شي، نو جمعیت باطل شي او دا هیئت یې ختمه نه مراد وي او دا ملته کښې لفظ د کل په تعریف کښې نه دے داخل. **سوال**: توابع جمع د تابع ده او تابع وزن د فاعل دے او فاعل په وزن فواعل نه جمع کیږي. **جواب** دا دے چه وزن د فاعل په دوه قسمه دے، ①وصفي او ②غیر اسمي،

دے، صفتی نه جمع کیږی لکه اِسمی جمع کیږی او تابع فاعل اِسمی دے۔ زده کړه دا خبره چه، فاعل صفتی په دوه قسمه دے، یو صفت د عاقل دے او بل غیر د عاقل دے، صفت د عاقل به په دے وزن نه جمع کیږی او صفت د غیر عاقل به په دے وزن جمع کیدے شی، لکه شواهق او طوالع، لفظ د کل لره دخل نشته په تعریف کښے، بلکه تعریف د مدخول د کل نه شروع شوے دے۔

**سوال.** بیا او ولے د لفظ د کل نه څه ضرورت وو؟ **جواب** دا دے، چه لفظ د کل یے راوړے دے، د پاره د تصریح په اطراد د تعریف باندے۔

## درس نمبر ۱۹۲ :-

**سوال.** دا تعریف جامع او نه دے ځکه د خپلو افرادو لره، ځکه چه خارج شو د دے نه تابع فعلی او تابع حرفی، لکه اِنَّ اِنَّ او ضرب ضرب؟، ځکه چه ثانی معرب نه دے، په اعراب د خپل سابق باندے. **جواب** دا دے چه، خبره لفظی په توابع د مرفوعاتو منصوباتو او مجروراتو کښے ده، چه هغه د اقسام د اِسم نه دی، که چرته خارج شو د دے نه تابع فعلی یا تابع حرفی، نو په دے کښے څه نقصان نشته دے۔ بعضے حضرات په معنی کښے ما او مثل چه دا هغه متأخر دے، یعنی د ثانی نه مونږ تعبیر په مؤخر سره اوکړو، په دے سره غرض زمونږ دفع د اعتراض ده۔ **سوال.** دا تعریف جامع او نه دے ځکه د خپلو افرادو لره او خارج شو ترے نه تابع ثانی، ثالث او رابع وغیره هم، ځکه چه دا تابع دے سره د دے نه ثانی نه دے۔ **جواب** دا دے چه مراد په ثانی سره متأخر دے۔ **سوال.** هر کله چه ثانی معرب اوګرځیدو په اعراب د سابق سره نو سابق بلا اعراب پاتے شو۔ **جواب** دا دے، چه مراد په اعراب د سابق سره جنس اعراب د سابق دے، نه عین اعراب د سابق په معنی کښے مونږ جهتِ واحده نه مراد جهتِ واحده والخ په دے معنی سره مونږ دفع د اِعتراض اوکړو۔ **سوال.** ستا دا تعریف د تابع مانع او نه دے ځکه چه د دخول د غیرونه مانع شو، په کښے مفعول ثانی د باب، د ظننت او اعطیت، ځکه چه دا هم ثانی دے او معرب دے، په اعراب د سابق سره د جهتِ واحده نه چه هغه مفعولیت دے۔

**جواب** دا دے، چه مراد په جهتِ واحده سره جهتِ واحده شخصیه دے، نه نوعیة او که په باب د ظننت او اعطیت کښے جهتِ واحده نوعیه دے، نه شخصیه۔ **سوال.** ستا دا تعریف جامع او نه دے ځکه د خپلو افرادو لره او خارج شو ترے نه هغه تابع، چه اعراب یے محلی کښے یا په لو کښے تقدیری وی، یا محلی وی، ځکه چه ثانی معرب په اعراب د سابق سره نه دے۔ **جواب** دا دے چه هغه اعراب، چه کوم معتبر دے، په دے تعریف کښے، په نسبت سره، سابق ته دے او لاحق عام د دے نه، چه هغه تقدیری وی، که لفظی وی او که محلی وی۔

**النعت تابع یدل علی معنیً فی متبوعه مطلقاً** په دے عبارت سره مصنف د

نعت تعریف کوي او نعت یې مقدم کړي، په تعلو تابع نه بانډې، ځکه چې دے، اکثر استعمالاً دے او دونو تابعهٔ دے، یعنی دے دخپل متبوع په لښو څیزونو کښې تابع دے، پس دے، او دغه تابعهٔ اوکړې څه دا او ویوه أعظم فائدهٔ ده، په هر یو تعریف کښې لابدي ده، دجنس او د فصل نه. هر کله چې مصنف اوفرمائیل "تابع" دا په منزله د جنس شو، تمام توابع په دے کښې شامل شو او "یدل على معنى في متبوعه" دا فصل دے، په دے سره بیرته نور توابع خارج شو او مطلقاً مطلب دا دے، چې دے مقید نه دے، په حال د نسبت سره.

**وفائدته تخصیص او توضیح**

فائده د نعت هغه تخصیص د منعوت دے، او یا توضیح د هغه ده، تخصیص چې غږد فالق بانډې مبل دے، د تقلیل د شیوع او د ابهام نه، په نکارت کښې، لکه "رجل" دا نکره ده او شامله ده، تولو افرادو د رجل له، خو چې کله موږ د دے صفت عالم اوویل، نو هغه شیوع او احتمال او ابهام بیرته نه زائل شو او توضیح عبارت دے، د رفع د احتمال نه په معارفو کښې، لکه "زید التاجر عندنا"، په زید کښې احتمال د تاجر او د عدم تاجر وو، خو چې هر کله تا صفت د تاجر ورسره ذکر کړو، نو رفع د احتمال یې راغله.

**وقد یکون لمجرد الثناء او الذم او التوکید**

او کله دا نعت راځي، د پاره د مجرد ثناء او د ذم نه د پاره د تخصیص یا د توضیح، لکه "بسم الله الرحمن الرحیم" د ذم مثال، لکه "اعوذ بالله من الشیطان الرجیم" او یا د پاره د تاکید لکه نفخة واحدة. دلته کښې واحدة د پاره د تاکید راغلے دے، ځکه چې وحدة خو کیږي، د تامنه په نفخة کښې، ځکه چې په دے کښې تاء د پاره د وحدة راغلې ده.

**سوال.** څه وجه ده، چې مصنف د تاکید د پاره مثال راوړو او د مدح او د ذم مثال یې نه دے راوړے.

**جواب.** د ثناء او د ذم مثالونه واضح او مشهور وو، نو د وجه د وضاحت او د شهرت نه یې د دغوي دا مثالونه ذکر نه کړل او د تاکید په هغه کښې لږ خفاء وه، په دے وجه یې د هغه مثال ذکر کړو او دغه شان کله راځي. دا نعت د پاره د کشف د حقیقت او ماهیت، لکه "الجسم الطویل العریض العمیق".

# درس نمبر ۱۹۳

**ولا فصل بین ان یکون مشتقا او غیره**

او نشته دے، فرق په دے کښې، چې نعت مشتق وي او که جامد، ځکه چې غرض د نعت نه، هغه دلالت دے، په معنی بانډې، هغه معنی، چې ثابته وي په منعوت کښې او هغه چې ځنګه

حاصلیږی، په مشتقاتو سره نه بلکې حاصلیږی په جوامدو سره - په دې عبارت سره مصنف رح دفع دَ توهم کوی، بعضو خلقو ته توهم کیږې دے چه اکثر مواد دَ نعت، چونکه مشتقات دی، لنو هغوی دَ نعت دَ پاره اشتقاق شرط گرځولې دے، او چه کوم ترکیبو کښې نعت غیر مشتق راغلې دے، دوئ دَ هغې تاویل کړې دے، په غیر مشتق سره. پس مصنف رح په دې عبارت سره دفع دَ توهم اوکړه.

## اذ کان وضعه لغرض المعنیٰ عموماً

ماعبارت تید دے، دَ پاره دَ غیر مشتق هغه وخت کښې چه وی وضع دَ دې غیر مشتق دَ پاره دَ غرض دَ دلالت په معنیٰ باندې چه واقع وی، په متبوع کښې، په جمیع استعمالاتو کښې.

## نحو تمیمی وذی مال

مُراد په دې عبارت سره منصوب دے او ذو چه مضاف وی اِسم جنس ته، ځکه چه دوئ په جمیع مواضع کښې موصوف غواړی، یا په لفظاً وی یا تقدیراً. دَ عموماً نه مراد یا دلالت عامه دے یا وضع عامه ده، تمیمی دلالت کوی دا په هغه ذات باندې چه منسوب وی، دې قبیلې ته او ذومال دلالت کوی، همیشه په ذات دَ صاحب دَ مال.

اَو خصوصاً، یعنی دلالت خاصه یا وضعاً خاصاً او مُراد په دې سره بعض استعمالات دی.

## مثل مررت برجل ای رجلٍ

یعنی رجل کامل، ای په موضع دَ مدح کښې صفت واقع کیږی، دَ پاره دَ نکرے او ای رجلٍ، په دې ترکیب کښې دلالت کوی، په هغه معنیٰ باندې چه ثابته ده، په متبوع کښې او هغه معنیٰ کمال ده، په رجلیت کښې او ما ترکیب چه "ای رجلٍ عندك" دا دلالت نه کوی، په هغه معنیٰ باندې چه ثابته ده په متبوع کښې، لو صحیح نه دی واقع کیدل، دَ دې نعت.

## ومررت بهذا الرجل

په دې ترکیب کښې هذا اِسم اِشاره ده، چه دلالت کوی، په ذات مبهمه باندې او الرجل دلالت کوی، په تعین دَ ذات مبهمه باندې او دغه تعین معنیٰ ثابته ده په ذات مبهمه کښې، پس صحیح دے، واقع کیدل دَ دې نعت او دَ دغه خصوص دَ وجه نه الرجل، په دې ترکیب کښې چه "جاءنی الرجل" دلالت نه کوی، په هغه معنیٰ باندې (چه ثابته وی، په ذات مبهمه کښې). پس صحیح نه دی واقع کیدل دَ دې نعت - خلاصه دا شوه، چه اِسم جنس واقع کیږی، صفت دَ پاره دَ مبهم.

## وبزید هذا

ځکه چه اِسم اشاره نه واقع کیږی، مگر صفت دَ پاره دَ علم یا دَ هغه دَ مضاف دَ علم ته یا چه مضاف وی، مضمر ته، په دې ترکیب کښې هذا اسم اشاره دلالت کوی، په هغه معنیٰ باندې چه ثابته وی، په زید کښې او هغه معنیٰ کیدل، دَ زید دی، مشار الیه په اشاره

سره سره، نو صحيح او کرځېدل، واقع کېدل، د دے نعت د پاره د زېب -

## درس نمبر ۱۹۴

**وتصف النکرة بالجملة الخبرية** دا يوه کليه ذکر کوي چه د نکرے توصيف په جملے خبريے سره کېد سے شي، دلته کښے قيد خبريه دے، يوه دا چه جمله صفت واقع کېد سے شي. دويم دا چه جمله خبريه صفت واقع کېد سے شي، او انشائيه نه شي واقع کېد ے، دليل د دے خبرے چه جمله صفت واقع کېد ے شي، دا دے چه غرض د نعت او د صفت نه، هغه دلالت دے په هغه معنى باندے چه په متبوع کښے ده، دا چه څنګه حاصلېږي په مفرد سره دغه رنګے حاصلېږي په جملے سره او دليل د دے خبرے چه جمله خبريه صفت واقع کېږي او انشائيه نه شي واقع کېد ے، هغه دا دے چه جملے انشائيے لوه ثبوت في نفسها نشته ده لکه اثبات د شي د پاره د بل شي هغه فرع د ثبوت د دغه ده في نفسه، په دے وجه باندے جمله انشائيه نه صفت واقع کېد ے شي، نه خبر نه صله او نه حال او دغه وجه دا ده چه نعت مربوط وي په خپل منعوت پورے او انشاء ربط نه قبلوي، مګر په تاويل بعيد سره.

**ويلزم الضمير** او هر کله چه جمله خبريه نعت واقع شي، نو لابدي ده په کښے د ضمير د پاره د ربط، ځکه چه جمله خبريه مستقله بنفسها ده او نعت مربوط وي خپل منعوت پورے، نو لابدي شوه د ربط نه او رابط نه لحق الغير د عائد نه، توصيف د نکرے په جملے خبريے سره کېد ے شي، ځکه چه جمله من حيث الجملة په قوت د نکرے کښے ده، نو نکره به صفت د نکرے واقع شي. پس مطابقت به راشي په مابين د نعت او د منعوت کښے.

**ويوصف بحال الموصوف وبحال متعلقه** په دے عبارت سره غرض د مصنف هغه تقسيم د حال نه ، تقسيم ته، چه يوصفه بحاله دے، بل صفت بحال متعلقه دے. بحال جار مجرور مفعول مالم يسم فاعله دے، يعني يوصف بحالة قائمة بالموصوف . صفت بحاله دے ته وائي چه صفت بالذات د پاره د موصوف واقع شوے وي او صفت بحال متعلقه دے ته وائي، چه صفت بالذات د موصوف د پاره نه وي، بلکه د هغه متعلقاتو نه وي، لکه يو مثال اول دا دے، چه مررت برجل حسن. دلته کښے حسن بالذات د رجل د پاره صفت واقع شوے دے او د صفت بحال متعلقه مثال دا دے، چه مررت برجل حسن غلامه. دلته کښے حسن صفت د رجل د غلام دے، چه هغه د متعلقاتو د رجل نه دے. زيه کړے داخبره چه متعلق د موصوف هغه دے، چه علاقه وي په مابين د موصوف او د صفت کښے، دا علاقه عامه ده، قريبه وي او که بعيده وي. قريبه په دريے قسمه ده، يوه علاقه ؛

نسب دہ، لکہ 'مررت برجل قائم ابوہ'۔ دریم علاقہ د ملک دہ، لکہ 'مررت برجل حسن غلامہ'۔ څلورم علاقہ د مخالطت دہ، لکہ 'مررت برجل طویل ثوبہ'۔ د علاقې بعیدې مثال لکہ 'مررت برجل قائم غلام ابیہ'۔ ٥

**نحو مررت برجلٍ حسنٍ غلامہ**

دا مثال د صفت بحال متعلقہ دے۔ دلته کښې **سوال** وارديږي، چې مصنف رحه دویم قسم ذکر کړے دی او مثال ئې صرف د دویم قسم ذکر کړو۔ **جواب** دا دے چې، د صفت بحاله مثال ظاهر او واضح وو، په خلاف د صفت بحال متعلقہ نه، چې هغه کښې لږه خفا وه، په دې وجه ئې د هغې مثال ذکر کړو۔

**فالاول یتبعه فی اعراب والتعریف والتنکیر والافراد والتثنیة والجمع والتذکیر والتانیث۔**

اولنے قسم چې هغه بحاله دے۔ دا به د خپل متبوع سره مطابق وي، په لسو امورو کښې، دې نه قسمه په اعراب کښې دي، یعنې که چرته متبوع مرفوع وي، دا به هم مرفوع وي، که متبوع مجرور یا منصوب وي، نو دا به هم مجرور یا منصوب وي۔ د غه شان که چرته متبوع معرفه وي نو دا به هم معرفه وي او د غسې په افراد، تثنیه، جمعیت او تذکیر او په تانیث کښې مطابقت ضروري دے، خو په دې لسو امورو کښې صرف څلور موجود بېدے شي، د وجې د منافات د بعضو امورو د بعضو سره، مثلاً په اعراب کښې به یا رفع وي یا نصب وي یا به جر وي، په تعریف او تنکیر کښې به یا تعریف وي یا به تنکیر وي، په تذکیر او په تانیث کښې به یو وي۔ د غه شان په افراد تثنیه او جمع کښې به یو وي۔ **سوال**: ستا قاعده منقوضه شو، په دې ترکیبونو سره، چې 'رجل صبور' امرأة صبور، رجل جریح، امرأة جریح، رجل علامة، امرأة علامة'، ځکه چې په دې ترکیبونو کښې مطابقت نشته دے، په مابین د موصوف او د صفت کښې، په تذکیر او په تانیث کښې؟ **جواب** دا دے چې، دا حکم په هغه صفت کښې دے، چې په هغې کښې مذکر او مؤنث برابر نه وي او نه د صفت د مؤنث جاري وي، په مذکر باندې۔

## درس نمبر ۱۹۵

**والثانی یتبعه فی الخمسة الاول**

او دویم نعت بحال متعلقہ دے۔ دا به مطابق وي، د خپل متبوع سره، په اولنو پنځو امورو کښې، یعنې په اعراب کښې، چې رفع، نصب، جر دے او په تعریف او تنکیر کښې، لیکن په دې کښې صرف دوه موجود بېږي، ځکه چې د بعضې امورو د بعضو سره منافات دے، په اعراب کښې، په دوه کښې

بیلو وی او په تولیف او تنکیں کښې په دوی کښې به یو وی۔

**وفی الباقی کالفعل**

او د دوے نورو ذکرشوو امورو نه علاوه چه هغه افراد تثنیه، جمع، تذکیر او تانیث دے په شان د فعل دے، حکمه لغت په دغه قسم کښې مشابه دے د فعل سره، لکه چه څنګه فعل خپل مابعد ته مسند وی او دے هم خپل مابعد ته مسند دے، د قاعدے مطابق چه فاعل د فعل مذکر وی، نو فعل به هم مذکر وی او که چرته فاعل مونث حقیقی وی، نو فعل به هم مؤنث راوړلے کیږی او چه فاعل کله اسم ظاهر وی، نو فعل به مفرد راوړلے کیږی۔ دغه شان لغت دے، لکه مررت برجل قائمة جاریته، مررت بامرءة قائم غلامها، مررت برجلین قائم ابوهما، مررت برجال ذاهب غلامهم۔

**ومن ثم**

او د وجه د دے خبرے نه چه لغت په باقی امورو کښې په شان د فعل دے۔

**حسن قام رجل قاعدٌ غلمانه**

ښه دے، دا ترکیب چه قام رجل قاعد غلمانه، ځکه چه لغت کله په شان د فعل اوګرځیدو او په فعل کښې دا قاعده وه، چه فاعل د فعل کله اسم ظاهر وی، نو فعل به مفرد راوړلے شی، دلته په دے ترکیب کښې قاعدٌ لغت دے، دے په منزله د یقعد شو او غلمان جمع د غلام ده، فاعل اسم ظاهر دے، نو اګرچه غلمان جمع ده مګر د دے وجے نه فعل مفرد راوړلے شوے دے، ځکه چه فاعل اسم ظاهر دے۔

**وضعف قاعدون غلمانه**

او ضعیف دے، دا ترکیب، چه قاعدون غلمانه، یعنی قام رجل قاعدون غلمانه، ځکه چه قاعدون په منزله د یقعدون دے او د فعل فاعل، چه کله اسم ظاهر وی، نو فعل به مفرد وی او دلته کښې سره د دے نه، چه فاعل اسم ظاهر دے، فعل جمع راوړلے شوے دے، په دے وجه، دا ترکیب ضعیف دے۔ **سوال**۔ مصنف ولے په دے ترکیب باندې د ضعف اطلاق اوکړو۔ لیکارواده چه په دے ترکیب کښې د امتناع حکم لګولے وے۔ **جواب** ورکړے، چه په دے ترکیب کښې بدل احتمال هم شته، هغه دا دے، چه دا اسم ظاهر به بدل واقع شی د هغه فاعل نه، چه کوم ضمیر دے، یعنی په قاعدون کښې ضمیر هغه فاعل مبدل منه دے او غلمان به د هغه نه بدل واقع شی۔ **سوال**۔ ستاسو قاعده منقوضه شوه، په دے ترکیب باندې چه قام رجل قعود غلمانه، ځکه چه سره د دے نه، چه فاعل په دے کښې اسم ظاهر دے او لغت جمع راوړے شوے دے او دا ترکیب ښه دے، بکار وه، چه دا ترکیب دې ناجائز وګرځی، نو مصنف جواب اوکړو چه:-

**ويجوز قعود غلمانه** اَوْ دا ترکیب په دیسه وجه باندې جائز دے، ځکه چه نعو جمع تکسیر ده اَوْ جمع په حکم دَ مفرد کښې ده، "فکانه لم یجمع"۔

**والمضمر لا يوصف ولا يوصف به** په دے عبارت سره غرض دَ مصنف بیان دَ یو بل قاعدے دے، چه ضمیر نه موصوف واقع کیږی اَوْ نه صفت، ضمیر په درے قسمه دے، یو ضمیر دَ متکلم دے، دوئم دَ مخاطب دے، دریم دَ غائب دے، ضمیر دَ متکلم اَوْ دَ مخاطب دا اعرف المعارف دی، نو دَ دے توضیح ته ضرورت نشته اَوْ هر چه دے ضمیر دَ غائب، مفرحمل کے مثل په دے، نو دو دواړو باندې اَوْ ضمیر صفت نه شی واقع کیدے، ځکه چه صفت "موضح او مُبَیِّن دی"۔ دا یو تابع دے، چه دلالت کوی، په هغه یو معنیٰ باندې چه ثابته وی، په متبوع کښې اَوْ ضمیر دال دے په ذات باندې فقط نه په معنیٰ باندې۔

**والموصوف أخص أو مساوٍ** اَوْ موصوف پکار دی چه دے دِ اخص یا دِ مساوی وی، دَ صفت سره دا پاره دَ دے، چه لا نعرفه شی مزیته دَ فرع په اَصل باندې، خو دا خُصُوصیت یا مساوات دا په اعتبار اَوْ حیثیت دَ مفهوم سره دے، نه په اعتبار دَ خارج سره۔ **سوال.** تا خو دا اوفرمائیل چه "والموصوف اخص او مساوٍ"، بنا په دے باندې پکار دا ده، چه جائز دِ اَوْنه کوځی، "تو صیف دَ حیوان په ناطق سره، ځکه چه موصوف دلته کښې نه اخص دے، نه مساوی دے، بلکه اعم دے۔ **جواب** دا دے چه، مُراد په خصوصیت اَوْ مساوات سره، خُصُوصیت اَوْ مساوات دے، په تعریف اَوْ معلومیت کښې نه په مصداق کښې۔

## درس نمبر ١٩٦

**ومن ثمَّ** اَوْ دَ وجه دَ دیشه خبرے نه، چه شرط په موصوف کښې دا دے، چه دے به اخص وی یا به مساوی وی۔

**لم يوصف ذو اللام إلا بمثله** دا معرف باللام توصیف به راځی، په معرف باللام سره، لکه "قام الرجل العالم"۔

**أو بالمضاف إلى مثله** یا په مضاف سره خپل مثل ته، چه هغه معرف باللام دے اکر کړه واسطے سره وی، لکه "مررت بالرجل صاحب لجام الفرس"۔

**سوال.** تا دا اوویئیل، چه شرط په موصوف کښې دا دے، چه دے به اَخص وی، یا به مساوی وی۔ بنا په دے باندې پکار دا ده، دا خبره چه جائز اوکوځی، "تو صیف دَ اِسم اِشاره" په بل اِسم اِشاره سره، ځکه چه دَ دوئ په مابین کښې مساوات دے، سره دَ دے نه مخالق الترام دَ دے خبرے کړے دے، چه تو صیف دَ اِسم اِشارے راځی، په معرف باللام سره، نه په اِسم اِشارے سره،

د مصنف جواب اکړی چې:-

**وانما التزم وصف باب هذا بذى اللام للابهام**

په تحقیق سره التزام اوکړے شو د وصف د اسم إشارے، په معرف باللام سره د وجه د ابهام نه، ځکه چې صفت راځي، د پاره د رفع د ابهام او د پاره د کشف د جنس،،

د خلاصه د جواب دا ده، چې په دغه باب کښے ابهام واقع دے، په اعتبار د اصل وضع سره، چې دا مقتضي دے، د پاره د بیان د جنس - پس چې کله إراده اوکړے شی، د رفع د ابهام د جنس نو د دے څو صورتونه دی، یا به رفع د ابهام راځي، په مضاف سره، یا په اسم إشارے سره، یا په معرف باللام سره - بنا په اول باندې چې رفع د ابهام راشي، په مضاف سره لازمیږی استعاره د مستعیر نه او بنا په دویم باندې نه ده مقصود، رفع د ابهام د غیر نه، ځکه چې اسم إشاره مبهمه ده فی نفسه، نو دا به څنګه رفع د ابهام د غیر اوکړی - پس متعین شو ذو اللام فتعین الکوتك للبازکل۔

**ومن ثم ضعف مررت بهذ الابيض**

او د وجه د دے نه، چې مقصود د صفت نه بیان د ذات او کشف د جنس دے، ضعیف دے، دا ترکیب چې "مررت بهذ الابیض"، ځکه چې د بیاض اختصاص په یو جنس پورے نشته دے، بیاض، چې څنګه په حیوان کښے دے - دغه شان په غیر حیوان کښے هم وی، نو دلته صفت اګرچې معرف باللام دے، لیکن په دے سره بیان د جنس نه راځي، په دے وجه باندې دا ترکیب ضعیف دے۔

**وحسن بهذ العالم**

او ښه دے دا ترکیب چې "مررت بهذا العالم"، ځکه چې صفت دلته کښے معرف باللام دے او د ده اختصاص په یو جنس پورے راغلی دے - پس په دے سره بیان د جنس راغے، علم خاص دے، په انسان پورے۔

**العطف**

یو قسم د توابعو نه دغه عطف دے - عطف په لغت کښے میلان ته وائي او عطف اصطلاحي ته عطف په دے وجه وائي، چې دے معطوف مائل کوی معطوف علیه ته، یعنی معطوف په حکم د معطوف علیه کښے کوځوی، اصطلاحي تعریف د عطف مصنف ذکر کوی، چې:-

**تابع مقصود بالنسبة مع متبوعه**

یعنی دے یو تابع دے، چې مقصود بالنسبة وی، سره د خپل متبوع نه - په دے تعریف کښے لا ئیدی ده، د جنس او د فصل نه - پس تابع دا په منزله د جنس دے، شامل شو تمامو توابعو ته او مقصود بالنسبة دا یو فصل دے، په دے سره بهر شو نور توابع خارج شول، سیوا د بدل نه، ځکه چې نعت تاکید او عطف بیان مقصود بالنسبة نه دی مع متبوعه، دا بل فصل دے

په دے سره توره نه بدل خارج شو۔ **سوال**۔ العطف مبتداء ده او تابع د خبر دے او خبر محمول وی نو په مبتداء باندے او دلته کښې دا حمل نه دے صحیح، ځکه چه لازمیږی حمل د ذات په صوف وصف باندے او دا ناجائز دے۔ **جواب** دا دے چه دلته دا مصدر مبنی للمفعول دے، یعنی ذکرد عطف دے او مراد تره نه معطوف دے۔ **سوال**۔ ستاسو تعریف جامع اُونه ګرځید، ځکه افرادو لوه او خارج شو تره نه معطوف په لا او بل لکن او ام سره، ځکه چه مقصود په دغه حروفو سره احد الامرین دے، یعنی یا تابع دے یا متبوع دے، دواړه نه دی۔ **جواب** دا دے، چه مراد په کېدلو د متبوع سره مقصود دا دے، چه دے به وسیله نه وی، ذکر د تابع نه او مراد په کېدلو د تابع سره مقصود دا دے، چه دے متبوع په مقصود باندے نه وی او معطوف علیه او معطوف په دے حروفو سره دواړه مقصود دی۔

# درس نمبر ۱۹۷

**ویتوسط بینه وبین متبوعه احد الحروف العشرة وسیاتی۔** او متوسط کیږی، په مابین د ده (تابع) کښې او په مابین د متبوع د ده کښې یو د لسو حروفو (عاطفه) نه، چه د هغوی تفصیل به بحث د حروف کښې راروان دے۔ **سوال**۔ بناء د متولو په اختصار ده۔ لهذا ده، چه مصنف ویتوسط نه وے ذکر کړے، ځکه چه تعریف حاصل شوے ئے، په ماسبق سره۔ **جواب** دا دے چه مصنف ویتوسط ذکر کړو، دپاره د مزید توضیح۔ **سوال**۔ مقصود د تعریف نه منعیة او جمعیت دے او هغه حاصل شو، په دے قول د مصنف سره العطف تابع یتوسط بینه وبین متبوعه آه او حاجت نه وو دے خبرے ته، چه تابع مقصود بالنسبة مع متبوعه۔ **جواب** دا دے که چرته مصنف پرے باندے اکتفا کړے وے، نو بیا به تعریف مانع نه ګرځیدو، د دخول د غیره، بیا به په کښې داخلیدی، هغه صفات، چه متوسط وو، په مابین د دی کښې او په مابین د متبوع د هغوی کښې یو د دے حروف عاطفه نه مثلاً جاء لی زید العالم والشاعر والکاتب۔

**مثل قام زید وعمرو** په دے ترکیب کښې عمرو تابع دے، چه مقصود دے، په نسبت د قیام سره د زید نه۔

**واذا عطف علی المرفوع المتصل اکد بمنفصل** هر کله چه اراده اوکړے شی، د عطف په ضمیر مرفوع متصل باندے، نو تاکید به د هغه راوړلے شی، په ضمیر منفصل سره ځکه چه ضمیر متصل کالجزء دے، د کلمے لفظاً او معناً نو عطف پرے باندے بغیر د تاکید نه په منفصل سره، داګویا عطف دے، په جزء د کلمے باندے او عطف په جزء د کلمے باندے باطل دے۔ **سوال**۔ هر کله چه د ضمیر متصل تاکید راشی، په منفصل سره او بیا ورباندے عطف کوو، نو دا به

خالي نه دي، يا به عطف وي، په مؤكد باندې يا به عطف وي، په مؤكَّد باندې که عطف وي، په مؤكد باندې نو لازمیږي، عطف په جزء د كلمې باندې او كه عطف وي، په مؤكّد باندې، نو دا خو تاكيد او كرځېدو او عطف نه شو.

**جواب** دا دے چې، دا عطف دے په مؤكَّد باندې او دغه اعتراض نه واردیږي، ځكه چې هر كله د ده تاكيد راغے، په ضمير منفصل سره، نو دغه اتصال د ده ختم شو په سبب د تاكيد سره.

## نحو ضربتُ انا وزيد

دلته په دے تركيب كښې د زيد عطف راغلے دے، په ضمير متصل باندې چې ضربتُ كښې دے، نو د دغه تاكيد په انا ضمير منفصل سره راغلے دے.

مصنفؒ دلته كښې ضمير مرفوع متصل اووئيل، ځكه كه چرته منفصل وے، نو بغير د تاكيد نه په ده باندې عطف جائز دے لكه "انا وزيدٌ"، او كه ضمير منصوب يې ذكر كړو، ځكه چې كه چرته منصوب يا مجرور وي، بيا هم جائز دے، عطف بغير د تاكيد نه، لكه "ضربتك وزيدًا او مررت بك وبزيدٍ".

## الا ان يقع فصل

مگر په دغه حالت كښې چې فصل واقع شي، په مابين د ضمير كښې او د معطوف كښې. برابره خبره ده، چې دا فصل مخكښې د حرف عاطفه نه وي، لكه "ضربتُ اليوم وزيدٌ"، او يا بعد د حرف عاطفه نه وي، لكه "ما اشركنا ولا اباؤنا".

## فيجوز تركه

بيا جائز دے، ترك د تاكيد، ځكه چې په فصل سره په كلام كښې طوالت راغلے دے اوس كه چرته تاكيد يې راوړلو، نو بيا به په كښې نور هم طوالت راشي او طوالت لقاضا د اختصار كوي. پس اختصار يې موږ ته اوښودلو په ترك د تاكيد سره چې يجوز تركه كښې مصنفؒ يو فائده ته اشاره كړې ده. هغه دا چې سره د دے فصل نه تاكيد راشي، نو هم جائز دے، لكه په دے قول د باري تعالی كښې: "فكبكبوا فيها هم والغاؤن"، دلته كښې فصل راغلے دے، په فيها او باوجود د دے نه په هم سره شوے، يا لكه په دے آيت كريمه كښې "ما عبدنا من دونه من شيءٍ نحن ولا اباؤنا".

# درس نمبر ۱۹۸

## واذا عطف الضمير المجرور اعيد الخافض

په دغه صفت كښې چې عطف اوكړے شي په ضمير د مجرور باندې نو اعاده د حرف جار به كيږي، په معطوف كښې، خافض نه مراد حرف جار دے او دا اعاده د حرف جار واجب ده، د پاره د دے چې لازم نه شي، جزء د كلمې باندې، ځكه چې ضمير مجرور په شان د جزء دے، د جار د وجه د شدت اتصال نه په جار كښې يې د شان سره چې د جار نه بالكل نه جدا كيږي. اوس كه چرته اوشي بغير د اعادې د جار نه بيا لازم به شي عطف په جزء د كلمې باندې.

**سوال** مېكرر دا شي چې اول د دې تاكيد په منفصل سره اوشي بيا دېپه دې باندې عطف اوشي. **جواب**. په مجرور كښې ضمير منفصل نشته دے. **سوال**. چې هر كله اعاده د خافض په معطوف كښې اوشي، نو لازم به نه شي، عطف د مركب باندې او دا باطل دے **جواب** چې معطوف په حقيقت كښې مجرور دے، فقط او اعادة

دَ خافض دا تکریرۀ عامل دے۔

**والمعطوف فی حکم المعطوف علیه** اَوْ حکم دَ معطوف پہ شان دَ حکم دَ مَعطوف علیہ دے، پہ جواز اَوْ پہ امتناع اَوْ پہ وجوب کښې، مگر نہ بۀ وی مَعطوف پہ حکم دَ معطوف علیہ کښې دَ وجہے دَ عارض نہ۔ **سوال**. دا خبره نۀ منو چہ مَعطوف پہ حکم دَ معطوف علیہ کښې دے، ځکہ چہ ډیر کرت مَعطوف مبنی وی اَوْ معطوف علیہ معرب وی یا پہ عکس دَ دیے وی اَوْ کلہ معطوف معرفہ وی اَوْ معطوف علیہ نکره وی، یا پہ عکس دَ دیے وی، حالانکہ دَ دوارو احکام جُدا دی۔ **جواب** دا دے، چہ احوال پہ دوه[2] قسمہ دی، یو هغہ احوال دی، چہ عارض وی معطوف علیہ تہ "عما تقبلہ عامل"۔ دویم[2] قسم هغہ دے، چہ عارض وی معطوف علیہ تہ "من حیث نفسہ" دلتہ کښې دغہ احوال دَ قبیلې دَ قسم ثانی نہ دی۔ **سوال**. ستاسو قاعده منقوضہ شوه، پہ "یارجل والحارث" سره، ځکہ چہ دلتہ کښې معطوف علیہ غیر معرف باللام دے اَوْ معطوف معرف باللام دے۔ **جواب** دا دے، چہ مَعطوف پہ حکم دَ معطوف علیہ کښې دے، پہ دیے شرط سره چہ مقتضٰی دَ هغې منتفی نۀ وی، پہ مَعطوف کښې اَوْ دلتہ کښې مقتضٰی منتفی ده، ځکہ چہ معطوف معرف باللام دے، پہ دیے باندې حرفِ نداء نۀ شی داخلیدے، بیا بۀ لازم شی، اجتماع دَ علامتونو دَ تعریف۔ **سوال**. ستاسو قاعده منقوضہ شوه، پہ "رُبَّ شاة وسخلتها" سره، ځکہ چہ سخلتها معطوف دے، پہ شاة اَوْ پہ حکم دَ هغې کښې نۀ دے، ځکہ چہ رُبَّ داخلیږی پہ نکره باندې اَوْ سخلتها معرفہ گرځیدلی ده، پہ سبب دَ اضافت سره۔ **جواب** دا دے چہ "سخلتها" مؤول دے پہ تاویل دَ نکرے سره دَ وجہے دَ قصد دَ عدم تعین نہ، یعنی "رُبَّ شاةٍ شاة وسخلة لها"۔ **سوال**. ستاسو قاعده چہ معطوف پہ حکم دَ معطوف علیہ کښې دے، منقوضہ شوه، پہ "یازیدٌ وعمرو" سره، ځکہ چہ عمرو عطف دے، پہ "زیدٌ" باندې اَوْ پہ دیے حکم دَ زید کښې، چہ هغہ دَ هغې پہ ضمہ باندې دوباره احوال ذاتیہ نۀ دَ احوال عارضہ نہ۔ **جواب** دا دے چہ، معطوف علیہ پہ حکم دَ مَعطوف کښې دے، پہ احوال عارضہ کښې نۀ پہ احوال ذاتیہ کښې، مگر پہ هغہ وخت کښې چہ معطوف پہ شان دَ معطوف علیہ وی، اَوْ چہ کلہ معطوف پہ شان دَ مَعطوف علیہ وی، پہ مطلق احوال کښې او دلتہ پہ دیے ترکیب کښې معطوف پہ شان دَ معطوف علیہ دے، پہ مطلق احوال کښې، پہ دیے شان سره، چہ هر واحد دَ دوے دواړو منہ معرفہ دے۔

**ومن ثَمَّ** اَوْ دَ وجہے دَ دیے خبرے نہ، چہ معطوف پہ حکم دَ معطوف علیہ کښې دے نفیاً او اثباتاً جوازاً او امتناعاً۔

**لم یجز فی ما زید بقائم او قائماً ولا ذاهب عمرو الا الرفع.** نۀ دے جائز، پہ دیے ترکیب کښې بیا دَ رفع نہ بل اعراب، یعنی پہ "ولا ذاهب عمرو" کښې، پہ ذاهب بۀ رفع متعین شی، پہ دغہ صورت کښې بۀ دے خبر لوگرځی، دَ

باره د مرفوع او د اهب منصوب یا مجرور نه شو ویلے، ځکه چه په معطوف علیه کښې ضمیر دے، چه راجع دے اسم د ما ته او معطوف خالي دے د ضمیر نه او بل وجه دا ده چه په دغه صورت کښې (یعنی په نصب او جر کښې) لازمیږي عمل د ما په خبر مقدم کښې او دا ممتنع دے، عمل د ما په خبر مقدم کښې. **سوال**. بنا په دے باندې پکار دا ده چه دا ترکیب "الذی یطیر فیغضب زید الذباب" دا هم ممتنع اوګرځي، ځکه چه معطوف علیه یطیر دے، په یطیر کښې ضمیر دے چه راجع دے موصول ته او یطیر ورله صله ده او معطوف چه فیغضب زید دے په دے کښې ضمیر نشته دے. پکار دا ده چه دا ترکیب هم ممتنع شي، سره د دے نه دا ترکیب جائز دے، نو مصنف جواب اوکړو او وے وئیل چه:

| | |
|---|---|
| **وانما جاز الذی یطیر فیغضب زید الذباب لانها فاء السببیة.** | یعنی دا ترکیب جائز دے، د دے وجه نه چه دا فاء په فیغضب کښې سببیه ده، عاطفه نه ده او کله جواب دا دے چه دلته کښې فاء د پاره د عطف ده، ولے ضمیر په معطوف کښې مقدر دے او اصل عبارت داسې دے، "الذی یطیر فیغضب زید بطیرانه الذباب". |

# درس نمبر ۱۹۹

| | |
|---|---|
| **واذا عطف علی عاملین مختلفین** | او په هغه وخت کښې چه عطف اوکړے شي په معمولین د عاملین مختلفین باندې. |
| **لم یجز** | دا جائز نه دے، هیڅ صورت کښې، ځکه چه واو حرف ضعیف دے، او نو دے تام نه لري د عاملین مختلفین نه شي کولے او دلته کښې په عبارت کښې تقدیر دے، اصل عبارت داسې دے چه "واذا عطف علی معمولی عاملین مختلفین لم یجز". |
| **خلافا للفراء** | خلاف ثابت دے، فراء نحوي لره، د هغه په نزد باندې دا عطف جائز دے او هغه قیاس کوي په معمولین د عامل واحد باندې، د فراء د پاره دلیل دا دے، ما کل سوداء تمرة وبیضاء شحمة او بل دلیل ئې دا شعر دے چه: |

- اکل امرء تحسبین امرء ونار توقد باللیل نارا

جواب دا دے چه دا دلیلونه موقوف دي په سماع باندې او په سماع باندې قیاس نه شي کیدے.

| | |
|---|---|
| **الا فی نحو فی الدار زید والحجرة عمرو** | مراد په دے ترکیب سره هغه ترکیب دے چه مجرور په کښې مقدم وي، په مرفوع او په منصوب باندې په معطوف او معطوف علیه دواړو کښې او دا عطف جائز دے، ځکه چه دا مسموع دے د عربو نه. |
| **خلافا لسیبویه** | د سیبویه په نزد باندې دا عطف نا جائز دے حتی چه په دے ... |

ضعیف العمل، لوَدے په مقابلهٔ د عاملینو مختلفین نه شی راتلے۔

**التاکید** دریم قسم د توابع نه هغه تاکید دے، هرکله چه مصنف فارغ شو د بیان د عطف د هغے د احکامو او متعلقاتو نه، نو شروع یے اوکړه په تاکید کښے، تاکید په **لغت** کښے مضبوطیا ته وائی او تاکید اصطلاحی ته په دے وجه تاکید وائی چه دے هم مضبوطیا راولی د مؤکد، تاکید **اصطلاحی** تعریف مصنف په خپله ذکر کوی۔

**تابع يقرر امر المتبوع في النسبة او الشمول** په دې تعریف لا بدی ۳ د جنس ۲ فصل نه تابع په منزله د جنس دے، "يقرر امر المتبوع" دا اول فصل دے په دې سره خارج شو عطف بالحرف او بدل او "في النسبة" دا اول فصل دے په دې سره نه خارج شو نعت او عطف بیان ځکه چه دوئ اگرچه تقرير د شان د متبوع کوي لیکن په نسبت کښے نه کوي تاکید دا هغه تابع دے چه تقریر د شان د متبوع مضبوطوي په نسبت کښے۔

**في النسبة** په کښے لو د دا کښے منسوب یا منسوب الیه۔

**او الشمول** یا په شمول د متبوع کښے خپلو افرادو لره یعنی په شمول د نسبت د فعل کښے متبوع ته۔ د تکید فائده داده چه، دا یا راځي د پاره د دفع د غفلت د سامع، یا راځي د پاره د دفع د ظن د غلط په متکلم باندې، یا راځي د پاره د دفع د مجاز د متکلم نه او په صورت د شمول کښے دفع د ظن د تخصیص ده۔

**وهو لفظي ومعنوي** او دا تاکید په دوه قسمه دے لومړی لفظی دے او دوئم معنوی دے، وجه د حصر یے داده، چه دا تاکید به خالی نه وی یا به تکرير د لفظ اول وی لفظاً او معناً معاً او یا به معنیٰ وی فقط، که اول وی نو هغه تکید لفظي او که دوئم وی نو معنوي۔

**فاللفظي** پس تکید لفظي چه دے، دلته کښے **سوال** وارديږي چه اللفظي خو صفت دے، دوه د پاره موصوف څه شے دے؟ **جواب** دا دے چه دغه د پاره موصوف التاکید دے۔

**تکرير اللفظ الاول** تکرير د لفظ اول دے او دا چه تاکید لفظي وے ته وائي چه په هغه سره تکرير د لفظ راځي۔

**نحو جاءني زيد زيد** دلته په دې ترکیب کښے زید ثانی، دا تاکید راغلے دے د پاره د اول۔

# درس نمبر ۲۰

**ويجري في الالفاظ كلها** او دا تاکید لفظي چه په معنیٰ د تکرير دے مطلقاً جاري کيږي په ټولو الفاظو کښے۔ برابره خبره ده چه اسماء وي که

افعال دی اؤ که حروف وی که جملې وی اؤ که مرکبات تقییدیه وی، که غیر تقییدیه وی۔ **سوال**: په یو کښې ضمیر چا ته راجع نه دے، یا به یې راجع کوی، تاکید اصطلاحی ته یا تاکید لغوی ته، که چرته اصطلاحی ته یې راجع کوی، نو دا خو منحصر دے، صرف په اسماء کښې اؤ که چرے تاکید لغوی ته یې راجع کوی، نو خروج د بحث نه لازمیږی۔ **جواب** دا دے چه، ضمیر راجع دے تاکید اصطلاحی ته اؤ مراد الفاظ نه اسماء دی: یعنی ذکره عام دے، مراد تربے نه خاص دے، یا دا چه ضمیر راجع دے، تاکید لغوی ته، چه حذف تکریر دے مطلقاً او خروج د بحث نه نه لازمیږی، ځکه چه منصوص تاکید اصطلاحی دے اؤ لغوی تبعاً ذکر شوے دے، د اسم، مثال لکه "جاءنی زید زید"، د فعل مثال لکه "ضرب ضرب زید"، د حرف مثال، لکه "ان ان زیداً قائم"، د مرکب مثال، لکه "جاءنی زید جاءنی زید"۔

**والمعنوی بالفاظ محصورة** | اؤ تاکید معنوی کائن دے، په الفاظ معدوده محصوره کښې۔

**وهی نفسه وعینه وکلاهما وکله واجمع واکتع وابتع وابصع.** | په اکتع، ابتع اؤ ابصع کښې اختلاف دے، بعض علماء وائی چه د دے الفاظو خپل معنیٰ نشته دے، په حال د افراد کښې اؤ چه کله د جمع سره ذکر شی، نو بیا په معنیٰ د اجمع دی اؤ بعض علماء وائی چه په حال د افراد کښې د دوی معنیٰ شته دے، ځکه چه "اکتع د "حول کتیع" نه راغلے دے، په معنیٰ د تمام کلی اؤ ابصع د "بصع العرق" نه راغلے دے، په معنیٰ د سال (یعنی تویدلو ته وائی) اؤ ابتع د بتع نه دے، چه طول د عنق ته وائی (یعنی اوږد والے د څټ ته وائی)۔

**فالاول یعمان باختلاف صیغتهما وضمیرهما** | پس دا اول دوه عام دی، په اختلاف د صیغې اؤ د ضمیر سره، یعنی اطلاق د دوی په مفرد اؤ تثنیه اؤ جمع په مذکر اؤ مؤنث په ټولو باندې کیږی اؤ صیغه اؤ ضمیر دواړه به یې سره بدلیږی، په مذکر مفرد کښې به "نفسها" اؤ عینها وئیلے شی اؤ په مؤنث مفرد کښې به "نفسها اؤ عینها" وئیلے شی اؤ تثنیه مذکر اؤ مؤنث کښې همدغه شان په جمع مذکر اؤ مؤنث کښې به صیغه اؤ ضمیر دواړه بدلیږی، لکه په تثنیه کښې "الرجلان والمرءتان انفسهما واعینهما"۔

**تقول نفسه ونفسها وانفسهما وانفسهم وانفسهن** | د مفرد مذکر د مفرد مؤنث د تثنیه مذکر د تثنیه مؤنث اؤ د جمع مذکر اؤ مؤنث د پاره به په پوره توګه ترتیب سره صیغې راوړلے شی۔

**والثانی للمثنیٰ** اؤ قسم ثانی کلاهما دَ پاره دَ تثنیې شو۔ دلته په ترتیب کښې کلاهما، اګرچه ذکر شوی نه دے، ځکه هر کله چه نفسه وعینه یو قسم اوګرځید، نو کلاهما دوېم قسم شو اؤ دَ مذکر تثنیې دَ پاره کلاهما اؤ دَ مؤنث تثنیې دَ پاره کلتاهما، لکه ماجاءنی الرجلان کلاهما او جاءتنی المرأتان کلتاهما۔

**تقول کلاهما وکلتاهما والباقی لغیر المثنی باختلاف الضمیر فی کله وکلها وکلهم وکلهن۔**

اؤ دَ دے نه علاوه دَ پاره دَ غیر تثنیې راځي چه هغه کله اجمع اکتع وغیره دی، نو په کلهٗ کښې به صرف ضمیر بدلیږی، لکه او وائے چه اشتریت العبد کله، جاءنی القوم کلهم، اشتریت الجاریة کلها، جاءنی النساء کلهن۔

**والصیغ فی البواقی** اؤ په اختلاف دَ صیغو سره نه، دَ ضمیر سره به باقیو کښې۔

**تقول اجمع وجمعاء واجمعون وجمع**

مثلاً ته او وائے چه اشتریت العبد کله اجمع واکتع وابتع، چونکه عبد مذکر دے، دَ دے موافق صیغه اؤ ضمیر راوړے، جاءنی القوم کلهم اجمعون ابتعون ابصعون اکتعون، چونکه قوم جمع مذکر دے، دَ دے موافق صیغه اؤ ضمیر راوړے، اشتریت الجاریة کلها جمعاء کتعاء بصعاء۔ دلته کښې جاریه مؤنث دے، دَ دے موافق ضمیر اؤ صیغه راوړے شوه، جاءتنی النسوة کلهن جمع کتع بصع بتع۔ دلته کښې نسوة جمع مؤنث دے، نو دَ هغې موافق ضمیر اؤ صیغه راوړے شوه۔

# درس نمبر ۲۰۱

**ولا یؤکد بکل واجمع الا ذو اجزاء** په کل اؤ په اجمع سره تاکید دَ هغه شی راځي چه هغه لره اجزاء وی، مراد په اجزاء سره امور متعدده دی۔ پس ما شامل شو افراد ولره هم، ځکه چه کل ملالت کوی په کلیت باندې اؤ اجمع دلالت کوی په جمعیت باندې اؤ دا دواړه متحقق کیږی مګر په ذوی الاجزاء کښې۔ دلته کښې مونږ دا اوئیل چه مراد په اجزاء سره امور متعدده دی، دا معنیٰ مونږ دَ پاره دَ دفع دَ سوال اوکړه۔

**سوال** دا دے چه ستاسو دَ دے په دے سره ذو اجزاء مؤکد کیږی، نو هغه شان ذو افراد هم مؤکد کیږی، نو مناسب دا وه چه مصنف ویلی وے چه ذو اجزاء او ذو افراد؟ **جواب** دلته مراد په ذو اجزاء سره امور متعدده دی اؤ امور متعدده عام دی، که ذو اجزاء وی که افراد وی۔

**یصح افتراقها حساً او حکماً**

چه صحیح کیږي، افتراق د دې اجزاء حساً یا حکماً، د پاره د دې چه، تاکید په کل او په اجمع سره مفید د پاره د فائدې او ګرځي، چه افتراق په کښې حساً راځي، لکه مجال او. قوم شو او چه حکماً راځي، لکه عبد شو، "بالنسبة الی بعض الافعال کالشراء والبیع"۔

**مثل اکرمت القوم کلهم و اشتریت العبد کله.**

"اکرمت القوم" دا مثال د هغه دے چه صحیح وي، افتراق په کښې حکماً، ځکه چه ممکن دے، شراء د نصف عبد یا د ثلث یا د ربع۔

**واذا اکد الضمیر المرفوع المتصل بالنفس والعین اکد بمنفصل.**

او په هغه وخت کښې، چه اراده او کړے شي د تاکید د ضمیر مرفوع متصل په نفس او په عین سره نو اوّل به تاکید د هغې راځي په منفصل سره، ځکه که چرته تاکید یې رانه شي په منفصل سره، نو بیا لازم شي التباس د تاکید د فاعل سره په بعضو ترکیبونو کښې، نو هغه صورتونه، چه په کومو کښې التباس منع راځي، هغه طرداً للباب حمل کړے شو، لکه "زید اکرمني هو نفسه"۔ دلته کښې مقید کړے شو ضمیر مرفوع په منفصل سره، ځکه چه جائز دے تاکید د ضمیر مرفوع منفصل په نفس او په عین سره بغیر د تاکید نه په بل منفصل سره۔

**مثل ضربت انت نفسك**

دلته کښې د ضمیر مرفوع متصل تاکید راغلے دے، په نفس سره، نو اوّل یې تاکید راغلے دے، په منفصل سره اوکړ دلته کښې مصنف اوویل چه "بالنفس والعین" او دا نور الفاظ یې ذکر نه کړل، ځکه چه جائز دے تاکید د مرفوع متصل په کل سره او اجمعین سره بغیر د تاکید نه په منفصل سره۔

**واکتع واخواته اتباع لاجمع**

او اکتع او د دې نظائر، چه ابتع او ابصع دي دا د اجمع تابع دي، یعني چه کله اجمع ذکر شي، دوی به ذکر کیږي۔

**فلا تتقدم علیه**

چه هر کله د اجمع تابع دا باقي الفاظ او ګرځیدل، نو دوی به نه مقدم کیږي، په اجمع باندې، ځکه چه لازمیږي تقدم د تابع په متبوع باندې۔ **لطیفه**:- د نحو په دې مسئله سره د فقهي مسئله هم معلومه شوه چه د مقتدي تقدم نه صحیح کیږي، که چرته دے د امام نه مخکښې شوے وي، ځکه چه دے تابع دے او تابع په خپل متبوع باندې نه مقدم کیږي۔ او س د اجمع نه وروستو کوم یو لفظ راځي۔ بعض وائي چه اکتع به راځي، بیا ابتع او د تعلوله وروستو به ابصع وي او بعض نحاة وائي چه ابصع مقدم دے۔

په اتبع بانډې اَؤ دَ بعضو په نیزو بانډې ځکه تعین لشته هر یو چې مقدم کړې یا مؤخر کړې۔

**وذکرها دونه ضعیف** اَؤ د دوئی ذکر بغیر د جمع نه ضعیف دے، دَ وجې دَ عدم ظهور دَ دلالت دَ دوئی په معنی دَ جمع بانډې اَؤ بله وجه دا ده، چه لازمیږی، ذکر دَ تابع بغیر دَ ذکر دَ متبوع نه اَؤ دا باطل دے۔

# درس نمبر ۲۰۲

**البدل تابع مقصود بما نسب الی متبوعه دونه** بل قسم دَ توابعو نه، هغه بدل دے، بدل دا یو تابع دے چه دے مقصود وی، په نسبت سره نه متبوع، یعنی مقصود بالنسبة تابع وی اَؤ متبوع نه وی، په هر یو تعریف کښې لاندې وی، دَ جنس اَؤ فصل نه، لو دغه دے تعریف کښې تابع په منزله دَ جنس دے اَؤ مقصود بما نسب الی متبوعه، دا یو فصل دے په دے سره بهر نه خارج شو عطف بالحروف۔ دلته کښې متبوع نه، چه کوم نسبت شوے دے، هغه توطیه اَؤ تمهید دے، دَ پاره دَ نسبت تابع نه۔ **سوال**۔ دا تعریف مانع اَمنه کړې شو، دَ دخول دَ غیر نه اَؤ داخل شو په کښې، معطوف په بل سره، ځکه چه په دې بانډې تعریف دَ بدل صادقیږی۔ **جواب** دا دے چه، متبوع دَ دې مقصود دے ابتداءً، لیکن اعراض دَ دے نه اوشو، دَ وجه دَ ظهور دَ غلط نه اَؤ بیا قصد دَ معطوف اوکړې شو، نو په دے معنی سره دواړه مقصود اوګرځیدل۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف جامع اَمنه کړې شو، ځکه افراد دَ دې نه خارج شو تر دے نه، هغه بدل چه کوم پس دَ الا نه وی، لکه ما قام احد الا زید، ځکه چه دے مقصود نه دے، په نسبت سره خپل متبوع وته۔ **جواب** دا دے، چه ما نسب الی المتبوع، دلته کښې قیام دے اَؤ نسبت دَ قیام بعینه مقصود الی التابع دے، لیکن په اول کښې سلبی دے اَؤ په دویم کښې ایجابی دے اَؤ هغه نسبت، چه کوم په تعریف دَ بدل کښې دے، هغه عام دے، چه سلبی وی که ایجابی۔

**وهو اربعة** یعنی بدل په څلور قسمه دے۔

**بدل الکل والبعض والاشتمال والغلط.** وجه دَ حصر یې په څلور قسمه کښې دا ده، چه بدل لګه مبدول منه به خالی نه وی، یا به په مابین دَ دوئی کښې ملابسة وی، یا به نه، که چرے دویم وی، نو بدل غلط اَؤ که چیرے اول وی، نو به خالی نه وی، یا به بدل کل دَ مبدل منه وی، یا به جزء دَ مبدل منه وی اَؤ یا به بیرون په دوئی کښې مشتمل وی، په بل بانډې، که چرته اول وی بدل کل، که چیرته دویم وی، نو بدل بعض اَؤ که دریم وی، نو بدل اشتمال۔

**فالاول مدلوله مدلول الاول** یعنی مصداق دَ دواړو به یو وی، اَؤ کل

عبارت دے د مبدل منه ـ **سوال**. بنا په دے باندے خو بیا فرق حاصل نه شو په مابین د بدل کل اؤ عطف بیان کښے، ځکه چه مدلول د ثانی په عطف بیان کښے مدلول د اول دے ـ
**جواب** دا دے چه په مابین د دواړو کښے فرق دے، ځکه که چرته مقصود په حکم سره اول وی اؤ ثانی د پاره د ایضاح د اول وی، نو دا عطف بیان دے اؤ که چرته مقصود په حکم سره ثانی وی اؤ اول توطیه د پاره د ثانی وی، نو دا بدل کل دے ـ

**واذا کان النکرة من معرفة** هغه وخت کښې چه بدل نکره واقع شوی وی، د معرفه نه، یعنی مبدل منه معرفه وی اؤ بدل نکره وی، په دغه صورت کښې واجب دے، نعت د نکرے ځکه چه بدل مقصود بالنسبة دے په نسبت سره مبدل منه ځکه د پاره د دے چه لازم نه شی، النقصیة د مقصود د غیر مقصود نه ـ

**مثل بالناصیة ناصیة کاذبة** لکه په دے ترکیب کښې چه دا قول د باری تعالی دے ـ دلته کښې الناصیة مبدل منه دے، چه معرفه ده، اؤ ناصیه د هغه نه بدل راغلے دے، چه نکره ده، نو توصیف یے راغلے، په کاذبة سره ـ

**ویکونان ظاهرین و مضمرین و مختلفین..** اؤ دا بدل اؤ مبدل منه په اقسام اربعه کښې کله دواړه اسماء ظاهره وی، په دے کښې څلور صورتونه جوړیږی، زید اخوك، زید راسه، زید علمه، زید حمار، چه دواړه ضمائر وی، لکه زید ضربته ایاه، ید زید قطعته ایاها جهل الزیدین کرهتما ایاه حمار الزیدین کرهتما ایاه ـ مثال د هغه چه دواړه مختلف وی، بدل ضمیر وی اؤ مبدل منه اسم ظاهر وی، لکه ضربت زیداً ایاه، ید زید قطعت زیداً ایاه، جهل زید کرهت زیداً ایاه، حمار زید کرهت زیداً ایاه ـ مثال د هغه چه مبدل منه ضمیر وی اؤ بدل اسم ظاهر، زید ضربته اخاك، زید قطعته یده، زید کرهته جهله، زید کرهته حماره ـ

**ولا یبدل ظاهر من مضمر بدل الکل الا من الغائب.** اؤ اسم ظاهر د ضمیر نه بدل کل نه شی واقع کیدے، د پاره د دے چه مقصود اخص او ګرځی، د غیر مقصود نه، ځکه چه ضمیر د متکلم اؤ مخاطب اقوی دے اؤ اخص دے په اعتبار د دلالت سره د ظاهر نه ـ پس دلیل نه شی منلے کیدے، مررت بی المسلمین وبك زید، په خلاف د غائب اؤ د غیره بدل کل نه، د عبه د عدم ده، لکه ضربته زیداً ـ دلته کښې مبدل منه ضمیر غائب دے اؤ بدل زیداً اسم ظاهر دے ـ **سوال**. دا منو چه مبدل منه مقصود نه دے، ځکه دے اؤ که

مقصود اصالة نه دے، لیکن مقصود دے توطیةً۔ **جواب** دا دے، چه مُراد په مقصود سره مقصود اصلی دے۔

**والثانی جزءه**

یعنی په بدل بعض کښې بدل د مبدل منه جزء وی۔

## درس نمبر ۲۰۳

**والثالث بینه وبین الاول ملابسة لغیرهما۔** اؤ دریم قسم هغه دے، چه وی په مابین د بدل اؤ مبدل منه کښې ملابست بغیر د کلیت او د جزئیت نه، مراد په ملابست سره تعلق دے، لکه ته اووائے چه "اعجبنی زید علمه" یا "سلب زید ثوبه"۔ **سوال**۔ ستا دا تعریف مانع اوکنه کو چښه د دخول د غیرنه اؤ داخل شو په کښې بدل غلط، په مثل د دے ترکیب چه "ضربت زیدا حماره"، ځکه چه په دے ترکیبونو کښې په مابین د دواړو کښې ملابست او تعلق دے بغیر د کلیت د جزئیت نه، چه هغه مالکیت اؤ مملوکیت دے۔ **جواب** دا دے، چه مُراد په ملابست سره هغه ملابست دے، چه واجب وی نسبت د متبوع نسبت تابع ته، اجمالا او تبعا دواړه۔

**والرابع ان تقصد الیه بعد ان غلطت بغیره۔** څلورم قسم، چه بدل غلط دے، دا هغه دے، چه ته قصد اوکړے دے بدل ته، پس د غلطیدو نه پس په غیر د دے بدل سره، بغیر کښې ضمیر بدل ته راجع دے۔

**ویکونان معرفتین و نکرتین و مختلفتین۔** اؤ دا بدل اؤ مبدل منه کله دواړه معرفتین وی، کله دواړه نکرتین وی، کله مختلفتین وی، یعنی بدل معرفه وی اؤ مبدل منه نکره وی یا بالعکس وی۔ دلته

کښې تول شپاړس صورتونه جوړیږی، چه حاصلیږی د ضرب د څلورونه په څلورو کښې — مثال د هغے، چه بدل او مبدل منه دواړه معرفه وی، لکه "جاءنی زید اخوك، زید راسه، زید علمه، زید الحمار"۔ مثال د هغے، چه دواړه نکرتین وی، لکه "رجل غلام لزید، رجل راس له، رجل علم له، رجل حمار له"۔ مثال د هغے، چه مبدل منه نکره او بدل معرفه وی، لکه "رجل غلام زید، رجل راسه، رجل علمه، رجل حماره"۔ مثال د هغے، چه مبدل منه معرفه وی او بدل نکره وی، لکه "زید غلام زید له، زید راس له، زید علم له، زید حمار له"۔

**عطف البیان**

بل قسم د توابعو نه هغه عطف بیان دے، دا آخری تابع دے۔

**تابع غیر صفة یوضح متبوعه**

تابع په منزله د جنس دے، غیر صفة دا یو فصل دے، په دے سره احتراز د نعت اؤ د صفت نه راغلے، یوضح

متبوعه ، ما بل صفت دے ، په دے سره احتراز راغلو ، د دے لوړو نو اِلعونه چه بدل دے ، عطف دے اؤ تاکید دے ۔

**مثل اقسم باللّٰه ابوحفصٍ عمرُ** په دے مصرعه کښے عمرُ دا عطف بیان دے اؤ دا د پاره د بیان د ابوحفص راوړے شوے دے ، چه دا کنیه د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ده ، ټول شعر دا دے :

اقسم باللّٰه ابوحفص عمر ، ما مسها من نقب ولا دبر ، اغفر له اللّٰهم ان کان فجر ۔

**وفصله من البدل لفظا** فرق په مابین د عطف بیان اؤ د بدل کښے په اعتبار د لفظ سره دا دے ، دلته کښے مصنف فرق بیانوی ، په مابین د عطف بیان اؤ د بدل کښے ، ځکه چه په بعضو صورتونو کښے لفظی طور سره التباس راتلو ، د دواړو په مابین کښے ۔ مصنف لفظاً قید راوړلو ، ځکه چه د بدل اؤ د عطف بیان په مابین کښے خو معنوی طور سره فرق ظاهر دے ، چه د تعریف نه معلومیږی ، ځکه چه په بدل کښے مقصود بالنسبة بدل دے اؤ ذکر د مبدل منه د پاره د توطئے اؤ د تمهید دے اؤ په عطف بیان کښے مقصود بالنسبة متبوع دے اؤ ذکر د تابع د پاره د ایضاح د متبوع وی ۔

**فی مثل !** یعنی فرق په دواړو کښے واقع دے ، په مثل د دے ترکیب کښے :۔

**انا بن التارك البکری بشر** مراد په دے ترکیب سره ، هر هغه ترکیب دے ، چه عطف بیان واقع شوے وی ، د معرف باللام نه ، چه هغه ته اضافت د صفت معرف باللام راغلے وی ۔ پس دلته کښے عطف بیان جائز دے اؤ بدل ناجائز دے ، په دے مصرعه کښے بشرٍ عطف بیان دے ، د پاره د "البکری" ، چه اضافت ورته د صفت د "التارك" راغلے دے ۔ "بشرٍ" په دے ترکیب کښے عطف بیان صحیح کیږی اؤ بدل نه صحیح کیږی ، ځکه چه بدل په حکم د تکرار د عامل کښے وی ، نو معنیٰ به داسے شی ، چه "التارك بشرٍ" دا به لوګی ، په شان د "الضارب زید" اؤ دا ترکیب خو نه دے صحیح ۔ پس واقع کیدل د دے بدل ګرځی نه دے صحیح اؤ مکمل شعر دا سے دے چه :۔

؎ انا ابن التارك البکری بشرٍ — علیه الطیر ترقبه وقوعاً

---

فللّٰه الحمد اولاً و آخراً ۔

نیټه اختتام :۔ ۲۲ اپریل ۱۹۹۶ء ، ورځ د شپږمه ( جمعه ) ۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

النحو في الكلام كالملح في الطعام

د دروس الكافيه دويمه حصه مُسمّیٰ په

# العيون الصافيه

شرح

# مبنى الكافيه (پښتو)


لافادات: حضرت مولانا حافظ محمد ابراهيم فاني صاحب مدظله

مدرس دارالعلوم حقانيه اکوره ختک

ترتيب او تدوين: مولاداد همدرد افغاني

| | | |
|---|---|---|
| دکتاب نوم | :- | العيون الصافية شرح مبنى الكافية (د دروس الكافيه دويم حصه) |
| افادات د | :- | مولانا حافظ محمد ابراهيم فاني صاحب مدظله<br>مدرس دارالعلوم حقانيه اکوړه ختک |
| ترتيب او تدوين | :- | مولا داد محمد د افغاني |
| کتابت | :- | مولانا فضل هادي حقاني |
| شمير | :- | ۱۱ سوه (يوولس سوه) |
| دچاپ کال | :- | فروري ۲۰۰۷ |
| څلورم ځل | :- | محرم ۱۴۲۸ |

بسم الله الرحمن الرحيم

# فهرست

## دمضامینو دالعیون الصافیه شرح مبنی الکافیه

# تقریظ

فضیلة الشیخ أستاذ العلماء امیر المجاهدین الادیب اللبیب جامع المنقول والمعقول العلامة الفهامه شیخ التفسیر والحدیث **الدکتور السید شیر علی شاه المدنی** مدظلهٗ وعم فیوضه (الدکتوراه بمرتبة الشرف الدولی) من الجامعة الاسلامیة بالمدینة المنورة، و مبعوثها استاذ الحدیث بجامعة دار العلوم الحقانیه اکوره ختک باکستان

---

الحمد لله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی. أما بعد فقد سرحت النظر فی کتاب **العیون الصافیه شرح مبنی الکافیه**۔ لأوحد المدرسین المحققین و نخبة الافاضل المتقنین فضیلة الشیخ **مولانا محمد ابراهیم الفانی** المحترم الاستاذ بجامعة دار العلوم الحقانیة فوجدته شرحًا وافیا یشرح الصدور و یورث السرور فتح به المؤلف الموقر اقفال العبارات المغلقة واوضح به مسائل النحو المشکلة. و منَّ علی الذین یتکلمون باللغة الافغانیة حیث سهل لهم الاستفادة من کتاب الکافیه بعبارات فصیحة بلیغة و اصناف من اللطائف والظرائف.

وقد شرح المؤلف الموصوف قبل القسم المعرب لکتاب الکافیة شرحًا نافعا قد نال شرف القبول فی المعاهد العلمیة بین الدارسین والمدرسین. واکمل بهذا المؤلف الثانی هذا الشرح الوافی فأتم احسانه علی رواد الکافیه. تقبل الله جهوده العلمیة المبارکة ولاسیما هذا الجهد الطیب فی علم النحو فانه خدمة عظیمة للقرآن الکریم و السنة النبویة علی صاحبها الف الف سلام و تحیته. وکان السلف الصالحون یهتمون بذالك وکانوا یقولون: اعربوا الکلام لتعرفوا القرآن ولاریب ان الذی یتقن القواعد النحویة ویراعی فی قراءته للقرآن والسنة قوانین الاعراب والبناء یصیر ماهرا فی تلاوت الکتاب و السنة والعلوم العربیة و یتشرف ببشارة النبی المصطفی صلی الله علیه وسلم الماهر بالقرآن مع السفرة الکرام البررة

نفع اللہ بہذا الشرح المنیف طلاب العلوم الدینیہ وجعل ھذہ الجھود الطیبۃ فی میزان حسنات المؤلف والمرتب المتعلم **مولا داد ھمدرد** حفظہ اللہ وھو ولی التوفیق وصلی اللہ تعالیٰ علی اشرف رسلہ وخاتم انبیائہ وعلی آلہ واصحابہ اجمعین۔

(حضرت مولانا) شیر علی شاہ عفی عنہ (مدظلہ العالی)

١٧/ ١٠ / ١٤٢٢ھ

---

خزاں رسید و گلستاں بآں جمال نماند
سماعِ بلبلِ شوریدہ رفت و حال نماند
نشانِ لالہ آں باغ از کسے مپرس
برو کہ آنچہ تو دیدی بجز خیال نماند

چہ می پرسی ز دردِ ما بیا مارا ببیں یکروزے
اگر خواہی کہ بینی در جہاں دردِ مجسم را

(چلاسی بابا)

# رائے گرامی

جامع المعقول والمنقول حاوی الفروع والاصول زبدۃ الاتقیاء قدوۃ الصلحاء
مفسر شہیر محدث کبیر حضرت العلامہ مولانا **مغفور اللہ** صاحب مدظلہ العالی
استاذ الحدیث دارالعلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک (سرحد) پاکستان

---

باسمہ تعالیٰ

الحمد للہ رب العالمین والصلوٰۃ والسلام علی سید الانبیاء والمرسلین وعلی آلہ واصحابہ الطیبین الطاہرین اما بعد! فہذہ تعلیقات علی الکافیۃ الحصۃ الاخیرۃ مسماۃ بالعیون الصافیۃ باللغۃ العجمیۃ الافغانیۃ لغرض التسہیل لطلبۃ ہذا الاقلیم للاخ فی اللہ الزکی المتوقد والفطن المتیقظ الحافظ الفاضل البارع المحقق المدقق صاحب الملکات الفاضلۃ محمد ابراھیم الشہیر بالفانی ابن العلامۃ جامع المعقول والمنقول اجل العلماء شیخ الحدیث وصدر المدرسین بجامعۃ "حقانیۃ" اکوڑہ خٹک عبد الحلیم زروبوی قدس سرہ العزیز المتوفی ۱۴۰۳ھ تعلیقات نفیسۃ قیمۃ نافعۃ لطلبۃ علم النحو عموماً ولتعلم کتاب الکافیۃ خصوصاً وبعد فراغہ من التعلیقات علی الحصۃ الاولیٰ المسماۃ بدروس الکافیہ اعتنیٰ واھتم لجمع ہذہ التعلیقات وتالیفہا وتہذیبہا وبذل جہدہ فیہا فاجاد واحسن واللہ المسئول ان یجعل مؤلفہ نافعاً للمعلمین والمتعلمین ومشہوراً متبولاً فیما بینہم وان یجعل جہدہ وسعی مرتبہ المتعلم مولا داد محمد درد مشکوراً وذخراً لہ الیوم الدین آمین ویرحم اللہ عبداً امینا۔

وانا العبد الاحقر مغفور اللہ استاذ الحدیث
فی الجامعۃ الحقانیۃ اکوڑہ خٹک
۲۸ شوال المکرم ۱۴۲۲ھ

# تأثرات

**د مقرر شعله بیان ادیب لبیب خطیب لاثانی حضرت مولانا عبدالقیوم صاحب حقانی مدظله**
**بانی و مهتمم جامعه ابوهریرهؓ، خالق آباد، نوښهره، و مدیر ماهنامه "القاسم"**

---

الحمد لله وحده والصلوٰة والسلام علی من لا نبي بعده. مخدوم مکرم حضرت **مولانا حافظ محمد ابراهیم فانی** یو جیّد عالم دین کامیاب مدرس محقق مصنف ادیب صاحب قلم د مختلفو ژبو شاعر او ادنیٰ شارح دے۔ **العیون الصافیه شرح مبنیٰ الکافیه** د نوموړی تازه ترین وقیع او عظیم علمي او تحقیقی کاوش او محنت دے. په درسي حلقو کښې د موصوف مشهوره شرح دروس الکافیه د علمي حلقو کښې نه مقبوله محبوبه او متداوله رالا نزده. د طلباؤ او د درسي حلقو شدید اصرار او پړنو ده مطالبه وه. چه د کافیې د دے شرح تکمیل و او شي. او د معرب حصے پشان د مبنی حصے د هم د غسې مشرح کپے شي. چنانچه د فانی صاحب افادات او تعریبات د هغوی یو قابل او لائق شاګرد **مولاداد همدرد** ډیر په محنت او کوشش سره مرتب او مدون کړل. الله دې ورله اجر جزیل ورکړي۔

الحمد لله "العیون الصافیه" منتظر ینو تمشتا قینو او طالبانو علوم عربیه له یو ګران قدر سوغات او وقیع علمي تحفه ده. یقیناً اهل علم به د دې قدر کوي. اساتذه او طلبا به د دې نه پوره پوره استفاده او کړي. خو زن د عاده چه الله کریم د حضرت فانی صاحب دا علمي نقوش او درسي افادات عم لحاظ سره نافع او کرځوي. دا یو عظیمه صدقه جاریه ده او انشاء الله دا به همیشه د پاره قائمه او دائمه وي۔

(مولانا) عبدالقیوم حقانی رصاحب مدظله
۱۳ شوال ۱۴۲۲ھ
جامعه ابوهریره خالق آباد نوښار

باسمه تعالیٰ

# تأثرات

## د زبدة الافاضل فخر الأماثل مولانا فضل علی صاحب حقانی
زید مجده و عم فیوضه ـ زرو بئ ضلع صوابی

د مصنفینو او مؤلفینو په تصنیفاتو او تالیفاتو تقریظات او تاثرات لیکل د اکابرینو او
ماهرینو علماؤ کار دے. ځکه اکابرین اهل د جرح او تعدیل وی ما غوندے بے بضاعة او
طفل مکتب به د یو عالم فاضل ادیب په تالیف څه اولیکی. لیکن حضرت مولانا محمد ابراهیم
فانی صاحب ځوینې د مشفق استاد او مربی حضرت مولانا عبد الحلیم صاحب نور الله مرقده
فرزند ارجمند ځوینې مخدوم او د ستر کو تور دے نو د هغوی حکم تاویل مناسب نه وُو. او په
د تالیف څو خبرے طالب علمانو بعنوانه دے وجه نه لیکم چه څه هم لکه د خس پادرو د یوسف
علیه السلام په دے سعادت کښی برخه واخلم.

د دروس الکافیه دویمه حصه "العیون الصافیة" د یو لوئے انتظار نه وروستو
منظر عام ته راغله. تکمداقے حصے دویمه حصه هم د علم نحو یو لوئے خزانه ده. کافیه
د ابن حاجبؒ علم نحو کښی یو مغلق متن دے. لیکن هم عربی ژبه زده کونکے د دے کتاب نه
صرف نظر نشی کولے. د هم وجه ده چه په هر دور کښی علماؤ دا کتاب د علوم نحویه
د بحث جو لانګاه ګرځولے دے. او په مختلفو ژبو کښی ئے شرحے لیکلی شوی دی. لیکن
په پښتو ژبه کښی دو مره جامعه شرحه ځما د نظر نه، نه ده تیره شوے. دروس الکافیه
دا انداز نه معلومه ده چه فانی صاحب په یو ډیر مؤثر عام فهم او سلیس انداز کښی بغیر
د حشو او تطویل او ایجاز مخل نه قواعد د نحوے مخاطب ته او مغز د کتاب د طالب علم په
ذهن کښی د اچولو کوشش کړے. چونکه مؤلف موصوف په نوی عمر کښی یو بهترین مؤلف
ادیب او په مختلفو ژبو عبور لرونکے شاعر هم دے. او مشهوره ده چه شاعران لطیف
مزاج او حساس ذهن لری. نو د هغه خوبو جهلک ځائے په ځائے په دے تالیف کښی هم ښکاره دے.

ددوئ مختلف شاهکار تالیفات ددوئ د خداداد قابلیت او د ها نت یو بیّن ثبوت دے۔ الله تعالیٰ ددروس الکافیه اولے حصّے ته زبردست مقبولیت ورکړه او څو کرته بار بار چهاپ شوه او د دنے شرحے مرتب اومدون مولوی **مولا داد محمد زد** ډیر د قدر وړ دے۔ چه په ډیر محنت او کوشش سره یے داکتاب مرتب کړو۔ الله دوه له اجر ورکړی۔

څمونږ دا دعا ده چه الله تعالیٰ دے دویمے حصّے ته هم هغه قبولیت او شرف ورکړی چه د علماء طلباء د پاره هر زړه اومفیده اوګرځی ۔ او الله تعالیٰ دِ د فاضل صاحب په علم وعمل کښے نور هم برکة واچوی۔

وما ذالك على الله بعزيز

العبد الاحقر

(مولانا) فضل علی حقانی عفی عنه

۲/۱/۲۰۰۲

در حریم سینه حیرانم که چون جا کرده‌ای

پار تو حسنت نگنجد در زمین و آسمان

باز بچشم عاشقان خود را تماشا کرده‌ای

حسن خویش از روی خوبان آشکارا کرده‌ای

# دکتاب لوستونه مخکښ

الحمد لحضرة الجلالة والصلوٰة والسلام علی خاتم الرسالة وعلی آله واصحابه الذین هم نجوم الهدیٰ واعلام التقیٰ۔ اما بعد !

دنن نه شپږ کاله اګاهو په سن ۱۹۹۵ء کښې دروس الکافیه چه هغه د علم نحو د مشهور کتاب کافیه ابن حاجبؒ د پښتو شرح ده او په حقیقت کښې دا هغه درسونه دی چه مولوی محمد سلیم سواتی ځما نه په دوران د درس کښې لیکلی وو۔ او د یوے مجموعے حیثیت ئے ورله ورکړے وو۔ د بعضو مخلصو دوستانو او د شاګردانو په خواهش هغه تقریر او درسونه د "دروس الکافیه" په نوم باندے چاپ شول۔ د تحدیث نعمت په توګه ځما داوهم او ګمان هم نه وو۔ چه د دے معمولی کوشش ته به الله تعالیٰ دومره مقبولیت ورکوی۔ چه په ډیر لږ وخت کښې د هغے څو ایډیشنونه اوو تل۔ د کوټے د دینی کتابونو تاجر مکتبه قاسمیه والا هم بغیر ځما د اجازت نه په غلط باندے دا کتاب په کمزورے شمیر کښې چاپ کړیدے او د مدرسو لے خپله بیته هم ورکړیده چه د لادور است،، چه کله "دروس الکافیه" مارکیټ ته راغلو۔ نو د ملک د مختلف حصو نه نیکو نه ما ته راغلل۔ او په هغے کښې دا خو مبنتنه او مطالبه وه۔ چه کچرته د دے کتاب اردو ترجمه اوشی نو فائده به ئے عامه شی۔ د هغوئ د خواهش په احترام کښې د کتاب په اردو ترجمه باندے کار روان دے۔ د دے نه علاوه په یو کښې شمیر ملګرو او احبابو دا تقاضا اوکړه۔ چه دا خو صرف یو جز تش ۶ ده۔ چه هغه "معرب" حصه ده۔ دویمه حصه چه مبنی ده۔ د هغے هم د غسے تشریح یکاره ده چه د مکمل کتاب پښتو شرح راشی۔ د بعضے بزرګانو مشرانو او ځما د محترمو استاذانو دا ارشاد هم را حکم اوشو۔ چه په هغه عظیمو شخصیاتو کښې ځما ډیر ګران او محترم استاذ استاذالعلماء امیرالمجاهدین شیخ التفسیر والحدیث علامه ډاکټر **سید شیر علی شاه صاحب** مدنی مدظله العالی او بل ځما ډیر مهربان او باشمار شخصیت المجاهد فی سبیل الله شیخ الحدیث مولانا ډاکټر **مفتی نظام الدین صاحب شامزی** مدظله شیخ الحدیث جامعة العلوم الاسلامیه علامه بنوری ټاون کراچۍ د ذکر ور حضرات دی۔ چه د دوئ د حکم مطابق ما په دے

باندې دېر په سست رفتارۍ سره کار شروع کړو اګرچه زه پخپل ځان کښې دې اهلیت نه وینم او د مختلفو شروحو نه مې استفاده اوکړه. چه وخت او موقعه به راته میسر کیده نو کیف ما اتفق ځائے په ځائے به مې لیکله. بیا مې دغه بے ترتیبه مسوده خپل شاګرد **مولوی مولاداد محمد** ته حواله کړه. ځما په ذهن کښې هغه د دے کار سرته رسولو پوره پوره اهلیت لرلو ځکه چه هغه د قلم مضمون نګارۍ تصنیف او تالیف سره بے کچه مینه لری. الله ورته بهر رسا ذهن او قوی حافظه هم ورکړیده. او ماشاء الله د علمی مستقبل ستورےئے دېر روښانه او ځلنده ښکاری. دغه چه څه حصه مرتبه شوه هغه به کاتب ته حواله کیده. د دغه دوران کښې بعضے داسے مشاغل پیدا شو. چه هغے سره دے په لیکلو کښې تاخیر را غلو دوی راته بیا توجه راکړه. چرته شرحے کار ښکېکېے پاتے دے. د هغه شان به رو رو او منزه منزه باندې کافی کار پکښې اوشو. وے د بد قسمتۍ نه **یو لسم ستمبر ۲۰۰۱ء** نړیوالی حالات بدل شو او د ټولے دنیا او د ټولے نړۍ په نقشه باندې یوے کمزورے طبقے چه "**طالبان**" ورته وائی. هغوی د اسلام د نظام اجراء په افغانستان کښې کړیوه. چه هغے سره د تمامے دنیا د مخصوصو مسلمانانو په زړونو کښې نوے جذبے پیدا شوے او د عالم اسلام عوامو دے امارت اسلامیه ته دیر په قدر او د احترام په سترګه اوکتل. ظاهره ده چه دا خبره کفری ملتونو له نه غوښتله شوه. نو د دهشت ګردۍ او د ترهګرۍ د خاتمے په اساس او د اسامه بن لادن په بانه امریکے برطانیے او د نورو ټولو کفری طاقتونو په سرپرستۍ کښې په امارت اسلامیه باندې حملے سره د صلیبی جنګ آغاز اوشو. خو بد ده مرغه د تمامے اسلامی نړۍ حکمرانان کفارو سره اوږه په اوږه نړۍ په زړه او خله په خله ولاړ وو فیا اسفا.

ے بتم پر ځان ہم سراس اولید و ۔۔ چه رم رقیب سره د لب اولید و۔

ځما د پاکے عینے قتل ــــــ پیے ۔۔ د سینړید یانو رم لنبکی اولید و.

ے بمثل هٰذا یذوب القلب والکبد ان کان فی القلب اسلامٌ و ایمانٌ.

بیا هم دے وړوکی ټولی فئة قلیلة طالبانو سینه په سره مقابله اوکړه. او په تاریخ کښې ئے خپل ځان له یو لوړ او جوت مقام پیدا کړو.

ے تاریخ میرے نام کی تعظیم کرے گی ۔۔ تاریخ کے اوراق میں تابندہ رہونگا.

نتیجه ظاهره ده. په افغانستان کښې د امارت اسلامیه خاتمه اوشوه. او په زرګونو مسلمانان د کفر او د اسلام په دے معرکه کښې شهیدان شو. او د کوم مرکز چه ټمر هیله او طمع پیدا شوے وه. هغه مرکز تاخت و تاراج شو ــ ع وہ شاخ ہی نہ رہی جس پہ آشیانہ تھا۔

ے چمن چمن گلی گلی یہاں لہو وہاں لہو ۔۱۔ میں کیا کہوں یہ حادثہ کہاں کہاں گزر گیا

د سقوط کابل دا حادثه دومره عظیمه ده چه هغه د خلافتِ عباسیه د سقوط بغداد هغه خونی واقعه تازه کړه. د سقوط اندلس په زخمونو ئے نمک پاشی اوکړه. د خلافت عثمانیه د نیست ونابود کید د هغه داستانِ خونچکان د ذهن په پرده باندې دیر په کرب اوپه درد سره ښکاره شو. او بیا په تیره تیره د سقوط دهاکه (مشرقی پاکستان) چه داخونړی د سترګو په وړاندې شوی وو. د هغه دهشت ناکه ځړیکې په زړونو کښې اوچتې شوے. نکه وائی. الحزن الجدید یقوی الحزن القدیم. په افغانستان کښې داامارت اسلامیه د کفری ملتونو او دا تمادی ظلم او بربریت، دا وسر تس نس کیدل دا هم د دغې په لړ کښې د دردونو د لحراشه او جګر پاشه سلسله ده. او ورسره په فلسطین بوسنیا چیچنیا کشمیر او نورو اسلامی هیوادو کښې داوراوِ دیا رود یو خون آشام باران وریږی.

ع آسمان راحق بود گر خون ببارد بر زمین.

| | |
|---|---|
| کومے کومے تو لوم بر لو یه خدایه ۔۱۔ | ځائے ځائے م د جګر لوستے خورے دی. |
| یم حیران د حسرتونو قتلِ عام ته ۔۲۔ | کام په کام دارمانونو هدیرے دی. |
| زاړه زاړه نن په چغفانی ښار کې ۔۳۔ | په قسمت کښې چه لیکلے د تیرے دی. |

ع داوبونه دی ارزانے خُما وینے په مصداق د مسلمانانو وینه داسے ویړیا شوه.

بهرحال دا یوزړه خیرونکے داستانِ درد دے. په دے باندې دیر لیکل شوی دی. او آئنده به هم په دے موضوع مستقل کتابونه اولیکلے شی. که ترو نده وفا اوکړه نوموږ به هم دے په باب کښې د تاریخ جو لئ ته خپله برخه اوسپارو.

بخښنه غواړم خبره اوږده شوه. ولے په پس منظر کښې د دے خونی حادثے او واقعے تاجنذکر ضروری وو. د دے جنګ د شروع کیدو نه مخکښې دے شرحے څه لږه حصه باقی وه. او بیا دغه دوران کښې د خونړی تعطیلات هم قریب وو. خما خیال وو چه د فرصت په دغه لمحو کښې به په اطمینان سره دا کتاب پوره او مکمل کړم ولے دغه پیدا ذکر شوی واقعات منیع ترا غلل دهغه پریشانه په ذهن او دماغ باندې د داسے حادثاتو او آفاقی نوازلو رد عمل طبعی او فطری وو. دے وجه نه هغه توجه ورنه کړے شوه. چه دکومے دا شرح متقاضی وه. مګر نور تاخیر یکښې بیا باعث د نقصان ګرځیدو. د خپلو معروضاتو د ختمولو نه مخکښې د خپلو کرانو دوستانو طالبانو نه ماهیله ده چه راقم الحروف او مرتب سره خپلو د دعا ګانو کښې یاد ساتی.

؎ خاطر مسلسل است پریشان چوں زلفِ یار.
عیبم مکن کہ در شبِ ہجراں نوشتہ ایم

اللھم استعملنا فی طاعتك وطاعة رسولك وارزقنا حبك وحب رسولك واجرنا من خزی الدنیا وعذاب الاخرة برحمتك یا ارحم الراحمین.

العبد الجانی
محمد ابراھیم فانیؔ کان اللہ لہٗ
خادم العلوم بدار العلوم الحقانیہ
۲۵ ر رمضان المبارك ۱۴۲۲ھ

> گردشِ دوراں کہ ما را نیشۂ فرہاد داد
> تحفۂ آہ و بکا و توشۂ فریاد داد
> اے کرمی پُرسی ز فانیؔ حالِ ایں ذوقِ سخن
> ایں ہنر ما را خدا بے پیر و بے استاد داد
>
> فانیؔ

بجہانِ دردمنداں تو بگو چہ کار داری
تب و تابِ ما شناسی دلِ بیقرار داری
چہ بگویمت ز جانے کہ نفس نفس شمارد
دمِ مستعار داری غمِ روزگار داری
(اقبالؒ)

# عرض مرتب

## سریزه اوابتدائیه

الحمد لله رب العٰلمین والصلوٰة والسلام علی خاتم النبیین محمد وعلی آله واصحابه اجمعین الطیبین الطاهرین ومن تبعهم باحسان الی یوم الدین. اما بعد! دا ځما دپاره ډیر د ویاړ اؤ فخر مقام دے چه د خپل استاذ محترم **مولانا حافظ محمد ابراهیم فانی صاحب** مدظله دافاداتو اؤ د تحریراتو زه یوادنیٰ طالب علم ترتیب اؤ تدوین کولو سعادت حاصلوم. اؤ دا د هغوی ښیښه بانډې حسن ظن دے چه زه ئې د دے د ترتیب اؤ د تدوین اهل اوګنړلم اؤ ځما انتخاب ئے اوکړو خدائے دِ اوکړي چه زه د دوی د دے حسن ظن مطابق اوګرځیږم. اګرچه زما غوندې البعلم دپاره دا یو ګرانه مرحله اؤ مشکله تجربه ده ولے د خپل مشفق استاذ په تشجیع اؤ په دا یکین زه الله جل شانه د دے قابل کړم چه د دے شرح تدوین اؤ ترتیب اوکړم. الحمد لله د الله تعالیٰ فضل اؤ احسان اؤ د استاد محترم شفقت او رهنمائي ځما شامل حال وه. اؤ زه د دے جوګه اؤ قابل شوم چه ستاسو په وړاندې دا علمي سوغات پیش کړم.

د دے شرحې یو څو **امتیازي خصوصیات** ذکر کوم د پاره د دے خبرې چه د دې افادیت اؤ اهمیت د طالبانو په نظر کښې ځائے کیږي اؤ جاګر ښي.

(۱) :- دا شرح د کافیې په مکمله متن سطحه د طالبانو د ذهن مطابق ده. چه په پښتو ژبه کښې ځما په نظر کښې د دے پشان بله شرح نشته.

(۲) :- د کتاب د متن نه تعبیر په پښتو ژبه کښې په داسې انداز سره شوے دے. چه هغه تعبیر ډیر جامع اؤ مانع دے. چه په یو ځل کښې هم زړه ځي اؤ په یاد ولو کښې هم آسان دے.

(۳) چه چې ترکیب متن سهل دے یعنی د ډیرے شرحې محتاج نه دے. نو هلته کښې استاذ محترم د اختصار نه کار اخستے دے. چه په هغې سره څه د شوارې یا نیمګړتیا نه محسوس ښې ی. اؤ چه چې ترکیب عبارت مغلق اؤ ډیر تشریح طلب دے نو هغه ځائے په پوره تفصیل سره حل کړے شوے

د پاره دي چې طالب علم څه د تشنګۍ احساس او نه کړي.

(۴) :- د مقام په مناسبت که څه بله فائده یا نکته ده نو هغه هم د درس د مخ بېدے فائدے د چارې ذکر کړې ده. د پاره د دے خبرے چې په شرح کښ تنوع پیدا شي.

(۵) :- د دے شرح په مطالعه سره د شرح جامي مبني حصه هم طالب علم په ښه طریقے سره ضبطولے شي.

(۶) . د دے نه علاوه نور هم پکښې داسې نحوي عجائب او غرائب موجود دي چې هغې سره په ذهن کښ نشاط پیدا کیږي. ګویا دا شرح باعث د تنشیط دا ذهانو ده.

هیله ده چې طالبعلمان د دونه به د دے نه په پوره او کامل توګه استفاده اوکړي.

په آخرکښ زه د خپل هغه درد اظهار هم ضروري ګڼم چې د کوم ذکر حضرت الاستاذ د خپل ابتدائي کلام کښ کړے دے چې په افغانستان کښ د امارت اسلامیه سقوط دے د دغه **امارة اسلامیه په سقوط** باندې نه صرف د هند مسلمان خفه او زهیر دے د هغه شان زه هم د دے درد نه انتهائي متأثره او دلګیر شوم. د طالبانو جرم صرف دا وو چې هغوی په ملک کښ د اسلام د نظام احیاء کړے وه په دے وجه ټول کفري نړۍ سره د اسلامي دنیا ورته په مقابل کښ اودریده.

خونے نه کرده ایم وکسے را نه کشته ایم
جرم است این که عاشق روئے تو ګشته ایم

نو زه یو ځل بیا د خپل استاذ محترم شکریه ادا کوم چې هغوی په ما د شفقت په بنیاد باندې د اظهار د اعتماد اوکړو. او زه ګڼم چې "ماموریه" لائق اوګرځولم او بیا د خپلو ټولو طالبانو نه ورنه امید لرم چې ما به په خپلو دعاګانو کښ نه هیروي. الله جل شانه دې زمونږ ټول کاوشونه د خپل پاک دین په خدمت کښ مصرف کړي. آمین.

وما توفيقي الا بالله عليه توكلت واليه انيب

اخوكم في الله

مولاداد حیدر د افغاني
دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک
یکم جنوري ۲۰۰۲ء

بسم الله الرحمٰن الرحيم

**المبنی** هركله چه مصنفؒ فارغ شو د بيان د اسم معرب د هغه اقسامو احكامو او متعلقاتو نه نو شروع ئے اوكړه په دويم قسم د اسم كښې چه هغه مبنى دے نو وے وئيل چه المبنى. په المبنى كښې دا الف لام عهدى خارجى دے او معهود په دے سره اسم مبنى دے په دے سره دفع د سوال هم راغله سوال دا وارد يږى چه المبنى دا خو صفت دے او د هر صفت دپاره لا بدى ده د موصوف نه ددے دپاره موصوف څه شے دے؟ جواب دا دے چه ددے دپاره موصوف اسم دے يعنى الاسم المبنى دے. ځكه چه په المبنى كښې الف لام عهدى خارجى دے او معهود په دے سره اسم دے.

**ماناسب المبنى الاصل** اسم مبنى دا هغه اسم دے چه ددۀ مناسبة راغلے وى هغے مناسبت چه مؤثروى په منع د اعراب كښې په يو د مناسبات ستّه سره د مبنى سره هغه مبنى چه اصل وى په بنا كښې چه هغه ماضى ده امر حاضر دے او حروف دى بالاتفاق او په نزد د صاحب د مفصل بانډ جمله من حيث هى هم په مبنى اصل كښې داخله ده دلته كښې مآ عبارة دے د اسم نه او په دے سره دفع د اعتراض راغله سوال دا دے چه تعريف د مبنى مانع نه شو د دخول د غير نه او داخله شوه پكښې مضارع ځكه چه مضارع هم مشابهه ده د ماضى سره چه مبنى اصل ده په واقعه كيدو دواړو كښې صفت د پاره د نكره. جواب كله د ما عبارة دے د اسم نه او مضارع فعل دے بيا سوال وارد يږى چه تعريف د اسم مبنى مانع نه شو د دخول د غير نه او داخل شو پكښې غير منصرف ځكه د ده مشابهت هم راغلے دے د ماضى سره چه مبنى اصل ده په وجود د فرعيتينو كښې. جواب مراد په مناسبت سره مناسبت دے هغه مناسبت چه مؤثر دے په منع د اعراب كښې. او د دوئ مناسبت دا سے نه دے سوال دا وارد يږى چه ستا دا تعريف مستلزم دے دور له او دور باطل دے دور په دے شان لازميږى چه په جانب د معرّف كښې هم

تا مبنی ولاړے دے اؤ په جانب د معرّف کښې هم مبنی دے جوآب دا دے
چه دا تعریف د اسم مبنی دے د مطلق مبنی نه دے حتی چه دورلازم شی
سوآل دادے چه مراد په مناسبت سره به یا مطلق مناسبت اخلے اویامناسبتِ
خاصه. کچرته مناسبت مطلقه اخلے. نو پورته ذکر شوے. سوآل واردیږی
چه بیا پکښې غیر منصرف داخلیږی اوکچرته کښې مناسبت خاصه ترمراد وی
نولازمیږی تعریف په مجهول سره جوآب دادے چه مراد په مناسبت سره مطلق
مناسبت دے ولے چه هرکله مناسبت مطلقا په اصطلاح د نحاتوکښې په بحث
د مبنیاتوکښې ذکر شی نومراد ترنه مناسبت خاصه دے لکه چه څنګه په دے
باندِ تصریح کړیده صاحب د مفصل. اؤ دا مناسبت په شپږ قسمه دے اؤ هغه
په دے شان سره چه دا مناسبت به کلهٔ متحقق کیږی په سبب د تضمن د اسم
سره معنی د حرف لره لکه تضمن د اسماء د استفهام اؤ د شرط شو معنی د حرفِ
استفهام اؤ د شرط لره اوٓ یا به متحقق کیږی په سبب د مشابهت د دهٔ د مبنی اصل
سره لکه مشابهت د اسماء اشاراتو موصولاتو اؤ مضمراتو د حرف سره په احتیاج کښې
یعنی لکه چه څنګه حرف محتاج دے د غه شان دا اسماء هم محتاج دی اؤ حرف
خو مبنی اصل دے نو د غه شان دا اسماء هم د مشابهت د وجې نه مبنی شول
اوٓ یا به دا مناسبت متحقق کیږی په سبب د وقوع د دهٔ په موقع د مبنی اصل
باندِ لکه نزالِ اؤ تراك چه واقِع دی په موقع د انزل اؤ د اترك باندِ. چه
دا صیغې د امرحاضر دی اؤ یا به دا مناسبت متحقق کیږی په سبب د مشابهت د دهٔ
د هغه شی سره چه هغه واقع وی په موقع د مبنی اصل باندِ لکه حضار اؤ طمار
شو. چه مشابه دی عدلًا اؤ وزنًا و تراك اؤ نزال سره چه هغه واقع دی په
ځائے د اترك اؤ د انزل. اؤ یآ به دا مناسبت کیږی په سبب د وقوع د دهٔ
سره په موقع د هغه شی باندِ چه هغه مشابه وی د مبنی اصل سره لکه
منادیٰ مفرده معرفه مثلاً یا زید چه واقع دهٔ په موقع د کافِ اسمی کښې
اؤ کاف اسمی مشابه دے د کافِ حرفی خطابی سره اؤ یآ به دا مناسبت متحقق
کیږی په سبب د اضافت د دهٔ مبنی اصل ته لکه ظروفِ مضافه شو جملے وته
لکه یوم ینفع الصادقین صدقهم -

**او وقع غير مركب مع غيره** اؤ يا دا اسم مبني هغه اسم دے چه مركب نه وى سره د غير نه برابره خبره ده لچه دا غير په دغو كښ عامل وى كه نه وى اؤ دے به واقع شوے وى غير مركب سره د غير نه په دا سے وجه سره چه متحقق وى دغه سره عامل. زده كره داخبره چه اسم به خالى نه وى يا به مضموم مع الغير وى يا به نه وى كه چرته نه وى نو هغه مبنى لكه اسماء معدوده مثلا واحد اثنان ثلثة الىٰ آخرهم. يا الف با تاء يا زيد، عمرو بكر. اؤ كه چرته اول وى نو بيا به خالى نه وى يا به مشابه وى د مبنى اصل سره يا به نه وى كه چرته اول وى نو هغه مبنى اؤ كه چرته ثانى وى نو بيا به خالى نه وى يا به ددسره عامل متحقق وى. او يا به نه وى قسم ثانى مبنى لكه غلام زيد اؤ قسم اول معرب. اؤ دلته كښ مراد په مركب سره مركب لغوى دے چه مضموم مع الغير دے اؤ قرينه دے خبره با ندے دا ده چه اسم مركب اصطلاحى نه وى.

سوال وارد يږى چه مصنف په تعريف د مبنى كښ حرف داؤ راؤړے دے اؤ دا راځى د پاره د تشكيك ولے دا مناسب ددے مقام سره نه دے ځكه چه تعريف راځى د پاره د حصول د يقين اؤ تشكيك منافى دے د يقين سره جواب دا دے چه اؤ ځكه راځى د پاره د تشكيك نو دغه شان د پاره د تنويع هم راځى يعنى په دے كښ دوه قسمين د مبنى ته اشاره ده يو قسم د مبنى هغه دے چه مبنى وى د وجے د وجود د موجب د اعراب نه چه هغه تركيب دے. اؤ بل قسم هغه دے چه هغه مبنى وى د وجے د وجود د مانع د اعراب نه سره د دے نه چه موجب د اعراب وى. نو په اؤ سره دے دواړو قسمونو ته اشاره راغله. خلاصه دا چه كله د اؤ مانعة الخلو د پاره ده دلته كښ نه د پاره د مانعة الجمع. سوال وارد يږى چه هر كله "او" په دے دوؤ معنو باندے دلالت كوى اؤ تا ترنه معنى د تنويع وا غسته په دے باندے څه قرينه ده جواب دا دے چه قرينه هغه مقابله ده په مابين د معرب اؤ د مبنى كښ ځكه چه معتبر په مفهوم د معرب كښ تركيب اؤ عدم مشابهت نو معتبر په مفهوم د مبنى كښ انتفاء د امرينو ده يا انتفاء د احدهما سوال دا دے چه مبنى اؤ معرب متقابلين دى. اؤ قاعده دا ده

چه اعتبار دیو قید وجودا په یو د متقابلینو کښې دا مستلزم دے اعتبار دهغه قید لره عدما په متقابل آخر کښې بنا په دے قاعدے بکار داده چه په تعریف د معرب کښې ئے عدم مشابهت معتبر کړیدے نو په تعریف د مبنی کښې به ئے مشابهت اخستے وو. حالانکه دلته په تعریف د مبنی کښې ئے مناسبت معتبر کړیدے جواب دادے چه مراد په عدم مشابهت سره په تعریف د معرب کښې هغه هم دغه مناسبت دے. سوال وارد یږی چه تعریف د مبنی مانع او نه ګرځیدو د دخول د غیرنه اؤ داخل شوه پکښې مبتداء اؤ خبر ځکه چه متبادر د ترکیب نه هغه ترکیب مع العامل دے اؤ مبتداء اؤ خبر دا مرکب نه دی سره د عامل خپل نه ځکه چه عامل په دوئ کښې معنوی دے اؤ ترکیب د معنوی سره د لفظی نه محال دے. جواب دادے چه مراد په ترکیب سره ترکیب دے سره د غیر نه برابره خبره ده چه دا غیر په دهٔ کښې عامل وی اؤ که نه وی اؤ په دے خبره کښې شک نشته چه هر واحد د مبتداء اؤ د خبر نه مرکب دے سره د صاحب خپل نه. سوال دادے چه دا تعریف جامع نه شو خپلو افرادو لره ځکه چه دے نه غلام زید خارج شو ځکه چه دے هم مرکب دے سره د غیر نه جواب دادے چه مراد په ترکیب سره هغه ترکیب دے چه متحقق وی په دے کښې عامل د دغه اسم. سوال دا وارد یږی څه وجه ده چه مصنفؒ په تعریف د معرب اؤ د مبنی کښې ترتیب بدل کړو. په دے شان سره چه په تعریف د معرب کښې ئے ترکیب مقدم کړو اؤ په تعریف د مبنی کښې ئے ترکیب مؤخر کړو. بیا په تعریف د معرب کښې ئے عدم مشابهت مؤخر کړو اؤ تعریف د مبنی کښې ئے مناسبت مقدم کړو. جواب دادے چه اعتبار وجودی لره دے د وجے د شرف نه. په تعریف د معرب کښې ترکیب وجودی وو اؤ په تعریف د مبنی کښې مناسبت وجودی دے نو د شرافت د وجود نه ئے تقدیم اؤ تاخیر اوکړو.

**فائده** اصل په اسماء کښې اعراب دے اؤ اصل په افعال اؤ حروفو کښې بناء ده. ځکه چه اسماء محل د معانی معتوره دی هغه تقاضا د علاماتو کوی د پاره د دے چه التباس د بعض د بعض سره رانشی. اؤ دغه علامات اعراب دے

افعال اؤحروف محل د معانی معتبرہ نہ دی نو دا محتاج نه دی اعراب وته.
بله وجه دادہ چه فعل ثقیل دے ځکه چه دے موضوع دے دپارہ د نسبت حدث اؤزمان نو مناسب دۀ سرہ خفت دے او بنا خفیفه دہ په نسبت سرہ اعراب ته ځکه چه سلوك په یوہ لارہ باندے دا اسان دے په نسبت سرہ سلوك وته په طُرق متعددہ باندِ اؤ د اسم موضوع له غیر متعدد دہ. نو دے خفیف اوګرځیدو اس که په دہ باندِ اعراب راشی نو دے ثقل نه پیدا کوی اؤ کله چه کښی په فعل باندے اعراب راشی نو دے به ثقل پیدا کړی فوق الثقل. لان الفعل ثقیل والاعراب ایضا ثقیل.

دلته کښی سوآل راځی چه ثقل معتبر دے په ژبه باندے اؤ اسم اؤفعل خو برابر دی په تلفظ لسانی کښی جوآب ثقل په ذهن کښی مستلزم دے ثقل لرہ په ژبه ځکه چه ذهن کله مشوش وی نو تردد په ژبه کښی راځی.

سوآل دادے چه ماضی کله واقع کیږی موضع الخبر لکه ضرب شو په دے ترکیب کښی چه زید ضرب دا واقع دے په ځائے د زید ضارب نو پکار دادہ چه دے له دِ هم محل د اعراب وی نو دا دِ معرب اوګرځی جوآب دادے چه موږ ته دا نه منو چه ماضی په ځائے د خبر داغلے دہ بلکه په ځائے د خبر باندِ جمله راغلے دہ بیا سوآل راځی چه بنا په دے باندِ پکار دہ چه ماضی د هم معرب کړے شی ځکه چه دا واقع دہ په ځائے د اسم فاعل باندِ لکه زید ضرب واقع دے په ځائے د زید ضارب. جوآب دادے چه د مضارع مشابهت د اسم فاعل سرہ راغلے دے مکمل یعنی په عدد د حروفو حرکاتو اؤسکناتو کښی اؤ ماضی دا شان نه دہ هرکله چه د مضارع مشابهت راغلے وو د اسم فاعل سرہ کامل نو ثابت شو دے لرہ عین اعراب اؤ د ماضی مشابهت چه ناقص وو نو ثابت شو ورله هغه چه مشابه دے د اعراب سرہ اؤ هغه حرکت دے. سوآل دادے چه بیا خو امرِ حاضر هم معرب کول پکار دی ځکه چه د دۀ مشابهت هم د فاعل سرہ دے په حرکاتو په سکناتو کښی. جوآب دادے چه همزہ د وصل لرہ هیڅ اعتبار نشته ځکه چه دے ساقطیږی په درج کښی هرکله چه د دہ مشابهت نه وو نه تام اؤ نه ناقص. نو نه ورله اعراب

ثابت شو او نه بنا په حرکت سره۔

**و القابه ضمٌ و فتحٌ و کسرٌ و وقفٌ** او القاب د حرکاتو د بنا یا د حرکاتو د حرف آخر د اسم مبنی او سکون د آخر ضمه فتحه او کسره دی د پاره د حرکاتو او وقف دے د پاره د سکون په نزد د بصریانو بانده **سوال** دا دے چه ضمیر د القابه چه راجع شی بناء ته نو دا لازمیږی اضمار قبل الذکر ځکه چه مخکښ خو بناء نه ده ذکر بلکه مبنی ذکر دہ۔ **جواب** دا دے چه ذکر عام دے صراحتًا وی که ضمنًا دلته کښ اګر که صراحةً نه دے ذکر د بناء و لے ضمنًا ذکر دہ۔ ځکه چه مبنی مشتق دے او په دے کښ بناء موجوده دہ۔

**سوال** دا دے چه اضافت د القابو مبنی ته نه صحیح کیږی ځکه چه دا القاب خو د عارض د مبنی دی چه هغه حرکات او سکون دی۔ **جواب** دا دے چه دا صفت بحال متعلقه دے **سوال** دا دے چه دا القاب د حرکاتو د مبنی نه دی بلکه دا چه ځنګه استعمالیږی په حرکاتو بنائیه کښ د غه رنګے استعمالیږی په حرکاتِ اعرابیه کښ لکه چه ځنګه مصنفؒ و ئیلی دی بالضمة رفعا و الفتحة نصبا و الکسرة جرا۔ **جواب** دا دے چه لقب په دوه معنیین سره راځی لقب په معنی خاص او لقب په معنی عام۔ لقب په معنی خاص هغه ته وائی چه خصوص د جانبینو نه وی او لقب په معنی عام هغه ته وائی چه خصوص د جانب معتبر نه وی۔ دلته کښ لقب په دوئیمه معنی باندِ معتبر دے یعنی حرکاتِ بنائیه تعبیر ددے نه نه کیږی مګر په دے القابو سره او دا القاب چه ددے ځنګه تعبیر په حرکاتِ بنائیه کښ کیږی د غه رنګے په حرکاتِ اعرابیه کښ هم کیږی۔ **سوال** دا دے چه څه وجه ده چه مصنفؒ په معرب کښ د انواعه او وئیلی او دلته کښ ئے و القابه او وے۔ **جواب** دا دے چه انواع د اعراب حقیقتًا مختلف دی ځکه چه په دے کښ هریو دلالت کوی په معنی باندِ بخلاف د القابو د بناء نه۔ ځکه چه مراد د هغه نه نه دی مګر الفاظ۔

**وحکمه ان لا یختلف آخره لاختلاف العوامل** | او د ئ مرتبه په بنا د مبنی بلند دا دے چه نه به مختلف کیږی حرف آخر د مبنی ذاتًا یا صفتًا حقیقةً یا حکمًا لفظًا

یا تقدیرا په سبب د اختلاف د جنس عامل سره به دا باندِ په عمل کښې اګر
که مختلف کېږي په غیر د اختلاف د عواملو یعني که هرقسمه عامل په دې باندې راشي
ولے به دا کښې به تغیر نه راځي او د رحمان بابا د دے شعر مصداق به وي.

لکه وُ نه مستقیم په خپل مقام یم
که خزان را سباندِ را شي که بهار

وَهِيَ الْمُضْمَرَاتُ الخ| او دا اسم مبني منقسم دے اقسام ثمانیه ته وجه د حصر
ئے په اتو کښې دا ده چه علت د اتصاف د بناء د مبني دا به خالي نه وي یا
به عدم ترکیب وي یا به مناسبت وي د مبني اصل سره که اول وو نو اصوات
او هغه چه مناسب وي د دوی سره (لکه هغه چه مرکب وي ولے حکایةً) او که چرته
کښې مناسبت وي نو بیا به خالي نه وي یا به غیرحرف سره وي یا به حرف سره
وي که چرته د غیرحرف سره وي نو اسماء افعال او که د حرف سره وي نو بیا به خالي
نه وي یا به صورةً وي یا معنیً که صورةً وي نو کنایات او هغه چه مناسب وي
د دوی سره او که معنیً وي بیا به خالي نه وي یا به په تضمن کښې وي یا به په احتیاج
کښې وي که په تضمن کښې وي نو مرکبات او هغه چه مناسب وي د دے سره
او که په احتیاج کښې وي نو بیا به خالي نه وي یا به په لفظ کښې وي یا به په
غیر لفظ کښې که لفظ کښې وي بیا به خالي نه وي یا به جمله وي یا به غیرجمله
که جمله وي نو موصولات او که غیرجمله وي نو ظروف مقطوع الاضافة او که غیر
لفظ وي نو بیا به خالي نه وي یا به په اشارتِ حسي سره وي یا په قرینے د تکلم
سره او په قرینے د خطاب او په قرینے د غیبة سره که اول وو نو اسماء اشارات
او که ثاني وو نو مضمرات۔

وهي المضمرات واسماء الاشارات والموصولات والکنایات واسماء الافعال
والاصوات وبعض الظروف دلته کښې سوال راځي چه مبني مذکر دے او تا
هي ضمیر د مؤنث راوړو ولے جواب دا دے چه تانیث د ضمیر په اعتبار د خبر سره
لکه څنګه قاعده تیره شویده چه رعایة د خبر اولیٰ ده دے سوال چه څنګه
جمیع ظروف د مبنیاتو نه نه دي دغه شان ټول اسماء اشارات هم د مبنیاتو نه
نه دي ځکه چه ذان او ذین معربات دي په نزد بعض نحاتو باندې نو یکاردا ولا

چه داسے هم مقید کړی وو په قید د بعض سره جواب اعتبار د بعضُ اختلاف لره نشته یا دا چه په اسماء اشاراتو کښې اکثر مبنی دی . سوال دادے چه شکله جمیع ظروف د مبنیاتو نه نهٔ دی دغه شان جمیع موصولات هم د مبنیاتو نه نهٔ دی ځکه چه أیّ او أیّة په اتفاق سره معرب دی پکار داده چه دوی ئے هم مقید کړی وو په قید د بعض سره . جواب دادے چه اعراب د دے دواړو مختص دے په بعض احوالو پورے اُش دلته کښې په مبنی کښې ذکر ئے څیز ومنه پکار دی. یو علت د بناء علت د بنا په حرکت علت د بنا په حرکة مخصوصه

**المضمر ما وضع لمتکلم** | مضمر دا هغه اسم دے چه وضع کړے شوے وی دپاره د هغه ذات چه هغه حکایت کونکے وی د خپل نفس په داسے د ضع سره چه مقید وی په وخت د حکایت پورے (په دے عبارة سره اُس مصنف رح تفصیل د دغه مبنیاتو کوی)

**او لمخاطب** | یا وضع کړے شوے وی د پاره د هغه ذات چه توجه د خطاب کیږی د ده وته هسے وضع چه مقید وی په وخت د توجه پورے.

**او غائب** | یا وضع کړے شوے وی دپاره د هغه ذات چه هغه غائب او غیر حاضر وی سوال دادےچه تعریف د مضمر متکلم او مخاطب مانع او نهٔ کرځیدو د دخول د غیرنه او داخل شو پکښې لفظ د متکلم یا علَم د متکلم او دغه شان داخل شو پکښې لفظ د مخاطب او یا علَم د مخاطَب. جواب دادے چه قیدحیثیة معتبر دے په تعریف کښې یعنې ضمیر د متکلم د دے حیثیت نه چه متکلم دے او دے حاکی دے د خپل نفس نه او ضمیر د مخاطب د دے حیثیة نه چه ضمیر د مخاطب دے او متوجه دے د دهٔ وته خطاب.

**تقدم ذکرہ لفظا اؤ معنیً اؤ حکماً** | چه متقدم وی ذکر د مرجع د ده لفظاً یا معنیً اؤ یا حکماً . لفظا یعنی د حیثیة د لفظ نه چه مقدم مذکور من حیث اللفظ وی یعنی ملفوظ وی حقیقتًا لکه ضرب زید غلامَه . په دے مثال کښې مرجع مقدّم دے حقیقة . اوّ یا مقدم حکماً . لکه ضرب غلامَه زید. دلته کښې مرجع مقدم دے حکماً اگر که لفظا مؤخر دے تقدم معنوی دیته وائی چه مقدم مذکور من حیث اللفظ نه وی بلکه من حیث المعنی تری برابرخیږی د ده.

چه مفهوم وی د لفظ نه بعینه. لکه اعدلوا هو اقرب للتقوی. دلته کښې هو ضمیر راجع دے عدل ته چه مفهوم دے د لفظ د اعدلوا نه یامفهوم وی د سیاق د کلام نه لکه ولابویه لکل واحدمنهما السدس اؤ تقدم حکمی دیته وائی چه مقدم مذکور وی نه لفظا اؤ نه معنیٰ بلکه مفروض وی تقدیرا للقصة لکه قل هو الله احد

**وهو متصل ومنفصل** او دا ضمیر په دوه قسمه دے په اعتبار د ماقبل سره یو متصل دے اؤ بل منفصل وجه د حصر ئے په دے دوؤ قسمونو کښې دادهٔ چه دا ضمیر به خالی نه وی یا به محتاج وی ضم د کلمے اُخریٰ ته اؤ یا به نهٔ وی که اول وو نو متصل اؤ که دوئم وی نو منفصل.

**فالمنفصل هوالمستقل بنفسه** منفصل هغه ضمیر دے چه دے مستقل بنفسه وی اؤ ضم د کلمے اُخریٰ ته محتاج نه وی دے په منزله د اسم ظاهر دے منفصل ئے په مقام د تفصیل کښې مقدم کړو په متصل باندے ځکه چه مفهوم د منفصل وجودی دے. اؤ وجودی اشرف وی د عدمی نه. دلته کښې د ضمیر تقسیم دوه ځله راغے ولے جهتونه ئے مختلف دی. تقسیم اول د ضمیر په اعتبار د مرجع سره وو. اؤ دویم په اعتبار د ماقبل سره.

**والمتصل غیر المستقل بنفسه** اؤ ضمیر متصل هغه دے چه دے غیر مستقل بنفسه وی یعنی دے محتاج وی په تلفظ کښې بلے کلمے ته چه هغه عامل دے. سوآل دادے چه عدم استقلال د منافاتو د حروفو نه دے. جواب غیر مستقلٌ په دوه قسمه دے غیرمستقل په تلفظ کښې اؤ مستقل په معنیٰ کښې اؤ حرف غیرمستقل دے په معنیٰ کښې دے نه داخبره معلومه شوه چه حرف غیر مستقل دے په دلالت کښې نه په تلفظ کښې اؤ په دے تفصیل سره دا اعتراض هم دفع شو. چه ضمیر متصل کله غیر مستقل دے نو په حروفو کښې ئے شامل کړه.

**وهو** او دا ضمیر په اعتبار د اعراب (اؤ مراد په اعراب سره اعراب محلی دے) سره په درے قسمه دے.

**مرفوع ومنصوب ومجرور** | ځکه چه دے قائمودے په مقام د ظاهر باندِ او اسم ظاهر منقسم دے دے دریو اقسامو ته خو په اسم ظاهرکښ اعراب لفظی دے او یا اعراب تقدیری دے سوال دادے چه دا خو تقسیم د ضمیر دے پس د تقسیم نه جواب دا تقسیم په نظر سره اعراب ته دے او بله تقسیم سره اعتبار د مرجع سره او هغه پسے دوئیم تقسیم په نظر سره ما قبل ته دے لو دا ضمیر په اعراب د محلی سره منقسم دے اقسام ثلاثه وته چه مرفوع او منصوب او مجرور دے سوال دادے چه تقسیم د ضمیر مرفوع منصوب او مجرور ته نه صحیح کیږی ځکه چه دا اقسام د اسم معرب دی او ضمیر مبنی دے. جواب دا دے چه تقسیم دے اقسامو ته دا وجے د قیام ددے نه په مقام د اسم ظاهر چه هغه منقسم دے دے اقسام ثلاثه ته.

**فالاولان** | پس اولنی یعنی مرفوع او منصوب دا په دو قسمه دی.

**متصل ومنفصل** | یعنی هر واحد ددے دواړو نه یو متصل دے او بل منفصل.

**والثالث متصل فقط** | او دریم چه مجرور دے دے متصل دے فقط نه منفصل ځکه چه مجرور د جار نه منفصل نه موجود یږی. په کلام د عربو کښ قیاس خو دا تقاضا کوی چه هر واحد د ضمیر د متکلم د مخاطب او د غائب نه دا د په شپږ قسمه او کرځی لو مجموعه د نوی الفاظ شی چه دال په نوئی معانیو باندِ ولے مخاتود متکلم دپاره دوه لفظه راوړل چه دا دال دی په شپږ معانیو باندِ. او د مخاطب د پاره ئے پنځه الفاظ راوړل چه دال دی په شپږ ومعانیو باندِ. او د غائب د پاره ئے پنځه الفاظ راوړل چه دال دی په شپږ و معانیو باندِ ځکه چه تثنیه په دے کښ مشترکه ده پس لو لمجموعه شپیته الفاظ شو چه دال دی په نوئی معانیو باندے.

**فذالك خمسة انواع** | پس دا ضمیر په پنځه قسمه شو. په نظر سره اتصال او انفصال ته.

**فالاول ضَرَبتُ وضَرَبتَ الی ضَرَبنَ و ضُرِبنَ** | نوعه اول د انواعو د مضمر نه چه هغه ضمیر د مرفوع متصل دے ضمیر په ماضی معلوم او

په ماضي مجهول کښې . لکه ضَرِبْتُ ضَرِبْنَا . ضَرِبْتَ ضَرِبْتُمَا ضَرِبْتُمْ ضَرِبْتِ ضَرِبْتُمَا ضَرِبْتُنَّ ضَرِبَ ضَرِبَا ضَرِبُوْا ضَرِبَتْ ضَرِبَتَا ضَرِبْنَ . ضُرِبْتُ ضُرِبْنَا الخ

سوال دا دے چه مصنفؒ ولے مخالفت کړیدے د اصطلاح د صرفیانو نه ځکه چه هغوئ د غائب نه شروع کوی . او دهٔ د متکلم نه شروع اوکړه . جواب دا دے چه صرفیان بحث د صیغے نه کوی او صیغه د غائب اصل دهٔ په نسبت سره متکلم او مخاطب ته . ځکه چه په صیغه د غائب کښې زوائد نشته او نظر د نحوی هغه بحث دے د ضمیر نه او ضمیر د متکلم اصل دے په نسبت سره مخاطب او غائب ته سوال وارديږی چه الاول مبتداء دهٔ او ضربت خبر دے خبر چونکه محمول وی په مبتداء باندې نو دا حمل نه دے صحیح ځکه چه اول عبارة دے د ضمیر نه او ضربت خو ضمیر نه دے . جواب دا دے چه دلته په عبارة کښې تقدیر دے . اصل عبارة دا دے چه الاوّل ضمیر ضربتُ .

**الثاني انا الی هن** نوع ثانی د انواع خمسه د اعراب نه هغه ضمیر مرفوع منفصل دے . لکه انا نحن الخ .

**الثالث ضربنی الی ضربهنّ** دریم قسم چه منصوب متصل دے دا په دوه قسمه دے یو هغه دے چه متصل وی په فعل پورے لکه ضربنی نه تر ضربهن پورے او دویم هغه چه متصل وی په حرف پورے لکه اننی تر انهن پورے .

**والرابع ایای الی ایاهن** او څلورم قسم د انواعو د مضمر نه هغه منصوب منفصل دے . چه ابتداء ئے په ایای ده او انتهائے په ایاهن ده . او د بے نوعے ته منصوب وائی په دے وجه چه دا واقع دے . په مقام د اسماء منصوبه باندې او منفصل په دے وجه چه دا د خپل عامل نه منفصل دی .

**الخامس** پنځم قسم چه هغه مجرور متصل دے دا په دوه قسمه دے یو هغه دے چه دے متصل وی د اسم سره او دویم هغه دے چه متصل وی د حرف سره چه متصل وی د اسم سره لکه غلامی نه تر غلامهن

پورے او چه متصل وی د حرف سره لکه لی او لهن په دے ترلوکښ
تر نه د غه ضمائر مراد دی. زده کړه دا خبره چه په ایا ئ کښ
اختلاف دے په مابین د نحاتو کښ. خو مختاره مذهب د سیبویه دے
هغه وائی چه ضمیر هغه ایا دے او لواحق دے په آخرکښ دپاره د دلالت
په مرجع راغلی دی چه هغه متکلم مخاطب او غائب او افراد او تثنیه
جمع مذکر او مؤنث دی.

| فالمرفوع المتصل خاصة یستتر | پس ضمیر مرفوع نه مجرور یا منصوب متصل — نه مرفوع منفصل دا به مستترکیږی بالضرور |
|---|---|

ځکه چه ضمیر مرفوع متصل کاجزء دے د فعل نه لفظاً او معنیً. هرچه دے
لفظاً هغه په دے شان سره چه هرکله اتصال د ضمیر بارزه او شی د فعل
سره نو لام کلمه ساکنه کرځولے شی. دپاره ددے چه توالی د اربع کلمات والتی
فیما هو کالکلمة الواحدة او هرچه دے معنیً هغه په دے وجه چه فعل
موقوف دے په ده بانډ. په دے وجه بانډ جائز دے په دے کښ استتار
ځکه چه دے اخصر دے او هرچه دے ضمیر مرفوع منفصل یا منصوب او مجرور نو
دوئ کا جزء نه دی د فعل نه. ولے دا استتار به تولو صیغو کښ نه دے بلکه
د فعل ماضی په دوؤ صیغو کښ. لکه چه مصنف رحمه الله وائی.

| فی الماضی للغائب والغائبة | یعنی په صیغه د فعل ماضی واحد مذکر غائب او په صیغه د واحدے مؤنثے غائبے کښ په حال دکون |
|---|---|

ددوئ کښ چه مسند نه وی اسم ظاهر ته. او په پنځو صیغو کښ دفعل
مضارع به مستتر وی لکه چه فرمائی.

| وفی المضارع للمتکلم مطلقاً | یعنی په فعل مضارع کښ په حال دکون ددے کښ چه دا کا نه وی دپاره دمتکلم |
|---|---|

برابره خبره ده چه واحد متکلم وی که جمع متکلم وی. مذکر وی که مؤنث وی.

| والمخاطب | په صیغه د واحد مذکر مخاطب. |
|---|---|

| والغائب والغائبة | او د غه شان استتار د ضمیر به راغلی وی په صیغه د واحد مذکر غائب او په صیغه د واحدے مؤنثے |
|---|---|

د فعل مضارع کښې.

**وفي الصفة مطلقا** اؤ د غه شان استتار د ضمیر به راغلی وي په صفت کښې مطلقاً برابره خبره ده چه اسم فاعل وي یا اسم مفعول وي صفت مشبه وي که اسم تفضیل کړ صیغه د مفرد وي یا د تثنیه وي یا د جمع وي مذکر وي که مؤنث وي په حال د کون د دوی کښې اسناد ئے نه وي راغلے اسم ظاهر ته. سوال واردیږي چه په یضربان اؤ یضربون باندې د ضاربان اؤ ضاربون قیاس شي اؤ دا الف اؤ واؤ د ضمیرین شي جواب دادے چه دوی ضمیر نه وي که ضمیرین وو نو بیا به نه بدلیدل سره اختلاف د عواملو سره اؤ دوی مختلف کیږي. سوال واردیږي چه ضمیرونه نه مختلف کیږي. هونږ اګورو چه هر په ما باندې بدلیږي لکه انه ضربه یا داسې نور ضمائر چه تبدیلي پکښې راغلې وي. جواب دادے چه عدم تغیر په وخت د علم د تغیر د عامل کښې. بیا سوال راځي چه کله تغیر د عامل راغلے وي لکه جاء في الضاربان رأيت الضاربين مررت بالضاربين جواب دادے چه په دے مثالونو کښې تغیر د عامل د عامل د ضمیر راغلے دے اؤ هر چه دے عامل د ضمیر هغه په خپل حالت باندې قائم دے ځکه چه اسناد ئے راغلے دے ضمیر ته اؤ ضمیر په خپل حال دے. چه هغه رفع ده بنا بر فاعلیت برابره خبره ده چه صفت مرفوع وي که منصوب وي اؤ که مجرور وي. ز ده کړه دا خبره چه مراد په عدم اختلاف سره په مبني کښې عدم اختلاف د وصف دے چه هغه حرکت اؤ سکون دے اؤ هر چه دے ذات نو هغه مختلف کیږي. اصل مطلب اؤ مقصد د ضمائرو نه هغه ایجاز اؤ اختصار دے. اؤ ضمیر متصل اخصر دے د منفصل نه نو تر څو پورے چه امکان د متصل وي نو منفصل ته به ضرورت نه کیږي ځکه مصنف اوفرمایل چه!

**ولا يسوغ المنفصل** جائز نه دے راوړل د ضمیر منفصل برابره خبره ده چه مرفوع وي که منصوب د لته کښې سوغ په معنی د جواز باندې دے.

**الا لتعذر المنفصل** مګر رواداری راوړل د ضمیر منفصل چه کله متعذر

اوګرزی ضمیر متصل اؤ دا تعذر متحقق کیږی په امور ستّهٔ ؤ کښ . یعنی په دے ځایونوکښ به ضمیر متصل نه شی راوړلے کیدے.

**ذ الك بالتقدیم علی عامله** | یو په دغه کښ تقدیم د ضمیر دے په خپل عامل باندِ . ځکه چه اتّصال راځیٔ په آخر د عامل پورے نه اول پورے.

**او بالفصل لغرض** | یاتعذر د اتّصال راغلے وی د وجے د فصل نه په مابین دعامل اؤ د ضمیر کښ د پاره د یو غرض چه دا غرض نه حاصلیږی بغیر د فصل نه اؤ منافات دے په ما بین د انفصال اؤ اتّصال کښ. اس کچرته دلته کښ اتّصال اوشی نو دغه غرض به فوت شی.

**او بالحذف** | یا په حذف د عامل د ضمیر سره دلته کښ الف لام بدل د مضاف الیه نه دی . یعنی بحذف عامل الضمیر . دلته کښ به ضمیر منفصل راوړلے شی . ځکه چه ما یتصل به الضمیر المتصل معدوم دے

**او بکون العامل معنویا** | یا وی عامل د ضمیر معنوی نو دلته به ضمیر منفصل راوړلے شی ځکه چه اتّصال د ضمیر متصل عامل معنوی پورے محال دے.

**او بکون عامله حرفا** | یادا عامل د ضمیر حرف وی.

**والضمیر مرفوع** | اؤ ضمیر چه معمول دے دا مرفوع وی نو دلته کښ ضمیر مرفوع متصل متعذر دے اتّصال ئے د حرف سره. ځکه چه دا خلاف دے دوضع د عرب نه . ځکه چه په دغه صورت کښ اتّصال دقوی راغلے دے په ضعیف پورے اؤ دا باطل دے بخلاف د منصوب نه چه هغه جائز دے لکه انك او انّنی

**اَوْ مسندا الیه** | یا اسناد راغلے وی دے ضمیر ته.

**صفة جرت علی غیر من هی له** | د صفت هغه صفت چه جاری وی په غیر د خپل موصوف نه په دے صورت کښ چه کچرے موږ به

انفصال او نکړو نو بیا به التباس راشي په بعضو صورتونو کښې د بعضو په شان لکه زید عمر ضاربه هو او پس د انفصال نه التباس نه لازمیږي او د صورت د عدم التباس ورباندې حمل شو طرداً للباب دلته کښې سوال واردیږي چه د انفصال په صورت کښې هم التباس راځي لکه زید عمرو ضاربه هو کښې. هُو چه څنګه صالح دے د پاره د زید د غه رنګ صالح دے د پاره د لعمرو جواب دا دے چه د انفصال په صورت کښې التباس نه لازمیږي ځکه چه کله انفصال راغے. خلاف القیاس د ضمیر. نو معلومه شوه چه مرجع به ئے هم خلاف القیاس وي. او هغه مرجع بعیده دے. دلته په دے عبارت کښې اګرچه مَن راوړے شوے دے چه دا راځي د ذوي العقول د پاره. لیکن دلته کښې دا غیر ذوي العقول له هم شامل دے. او مَن ئے د وجے د شرافت نه ذکر کړے دے.

مثل ایاك ضربت | دا مثال د تقدیم د ضمیر دے په عامل باندې.

ما ضربك الا انا | مثال د هغه دے چه فصل راغلے وي د پاره د غرض منه تخصیص دے.

ایاك والشر | مثال د حذف د عامل دے اصل عبارت دا دے چه اتق نفسك والشر.

انا زید | مثال د هغې دے چه عامل پکښې معنوي وي.

ما انت قائم | مثال د هغې دے چه عامل پکښې حرف وي.

هند زید ضاربته هي | دا مثال د هغه ضمیر دے چه اسناد ورته د صفت راغلے وي جرت علی غیر من هي له په دے مثال کښې هند مبتداء دے زید مبتداء ثاني ضاربته خبر د مبتداء ثاني هيَ فاعل د ضاربته. او د ضاربته اسناد هي ته راغلے دے او هي جاري دے علی غیر من هي له باندې ځکه چه ضاربته خبر د زید او فاعل ئے هند دے او دا جمله په محل د رفع کښې ده ځکه چه دا خبر د مبتداء اول دے.

سوال دا دے چه دا مثال خو به هله صحیح کیږي چه هي فاعل د پاره د صفت

شي اوحال دا دے چه جائزه ده داخبره چه دا دِ تاکید شی دپاره د هغه ضمیر چه مستتر دے په صفت کښ. لکه عرب وائی نحن الزیدون ضاربوهم نحن. **جواب** دا دے چه علامه زمخشری په مثال کښ دا سے وائی چه ضاربهم نحن دے نه معلومه شوه چه دا فاعل دے تاکید نه دے. **سوال** دا دے چه څه وجه ده چه مصنفؒ صورت دعدم التباس ذکرکړو. **جواب** دپاره د دے چه صورت د التباس کښ حکم په طريق اولیٰ سره ثابت شی.

**واذا اجتمع الضميران ليس احدهما مرفوعا** او په هغه کښ چه اجتماع د دوو ضمیر ینو راشی او یو په هغوی کښ مرفوع نه وی ځکه چه کله چه یو مرفوع وی نو بیا لازم دے اتصال د ضمیر ثانی په فعل پورے ځکه چه ضمیر ثانی کالجزء دے د فعل نه یا فعل نه دے متحقق شوے په فعل او په ضمیر ثانی کښ. په دے احتراز راغے د اکرمتك نه ځکه چه په دے کښ یو ضمیر مرفوع راغلے دے.

**فان كان احدهما اعرف** که چرته په دے کښ یو اعرف وی. په دے سره احتراز دے د هغه نه چه متساویین وی لکه اعطاها اياها. په دے کښ واجب دے انفصال على الاصح د پاره د دے چه لوزمه نه شی ترجیح بلامرجحه.

**وقدمته فلك الخيار في الثاني** په دے سره احتراز راغے د هغه نه چه اعرف مؤخر وی لکه اعطیته ایاك په دے صورت کښ هم انفصال واجب دے

**نحو اعطيتكه واعطيتك اياه** دا مثال د خیار دے که انفصال کوے که اتصال کوے اتصال د دے وجے نه چه نظر اوکړے لفظ د اول وته. او انفصال د دے وجے نه چه نظر اوکړے معنی د اول وته.

**وضربيك وضربي اياك** په اعطیتکه کښ ك ضمیر د مخاطب دے چه دا اعرف دے او روستو ورپسے ضمیر د غائب دے په ضربیك و ضربی ایاك. ضمیر د متکلم او د مخاطب دے په دوئی کښ ضمیر د متکلم اعرف دے. والا او کچرته په دوئ کښ یو اعرف نه وو یا

اعرف خو موجود وو ولے تامتقدم کړے نه وو.

**فهو منفصل** نو په دغه صورة کښې به انفصال وی. په اول صورة کښې په دے وجه چه لازمېږی ترجیح دیعدم مثلینو په کلمه واحدة کښې حکماً او په دے دویم صورت کښې په دے وجه چه لازم نه شی تقدیم د اضعف په اقوی په کلمه واحدة کښې حکماً. لکه اعطیته ایاه یا اعطیته ایاك.

**والمختار فی خبر باب کان الانفصال** مختار په خبر د باب کان کښې انفصال د ضمیر دے لکه ته اووائے زیدٌ قائمٌ وکنت ایاه ځکه چه خبر د کان په اصل کښې خبر د مبتداء دے او خبر د مبتداء چه کله ضمیر وی واجب دے انفصال ئے ځکه چه عامل ئے معنوی دے او پس د دخول د کان نه دے مشابهه او کرځیدو د مفعول سره په واقع کیدو د دے کښې پس د مرفوع متصل نه او ضمیر د منصوب پس د ضمیر د مرفوع نه واجب الاتصال دے نو په مشابهه کښې د دۀ سره اګرکه اتصال واجب نه دے ولے جائز خو دے لیکن مختار په دے کښې انفصال دے ځکه چه رعایت د اصل اولیٰ دے د مشابهت نه

**والاکثر لولا انت الی آخرها** پس د لولا نه چه کوم ضمیر راشی په هغې کښې انفصال دے په اکثر استعمال کښې. ځکه چه ما بعد د لولا نه مبتدا محذوف الخبر دے. او مبتدا چه کله ضمیر وی نو دا واجب الانفصال وی. په دے وجه ئے روستو د لولا نه انت ضمیر منفصل راوړلو. او د عسیٰ نه روستو ضمیر متصل راوړے شی. ځکه چه د عسیٰ نه روستو فاعل راځی او ضمیر مرفوع فاعل واجب الاتصال وی ځکه ئے

**وعسیت** اوویل. دلته کښې سوال واردیږی چه مصنف له پکار وو چه دا ئے ویلی وو لولا انت وعسیت الی آخرها لکه چه ځکه روستو والی لولاك وعساك الی آخرها. جواب دا دے چه دلته کښې تغائر د ضمیرونو راغلے دے په اتصال او په انفصال کښې او په ما بعد کښې اتحاد دے په اتصال کښې هلته کښې ئے ځکه غایه یو راوړے دے.

**وقد جاء لولاك وعساك الی آخرها** لولاك او په عساك کښې دوه مذهبه دی یو مذهب د اخفش دے او بل

مذهب د سیبویه دے په نزد د اخفش بانده ما بعد د لولا نه ضمیر مجرور واقع دے په مقام د مرفوع کښی. ځکه چه ضمائر د یو بل په ځائے بانده واقع کیږی اؤ د سیبویه په نز. لولا په دے مقام کښی حرف جر دے اؤ ما بعد د دے مجرور په خپل ځائے بانده واقع دے. اؤ ما بعد د عسیٰ نه ضمیر منصوب دے په نز. د اخفش چه واقع دے په موقع د مرفوع اؤ عسیٰ محمول دے په لعلّ باندے ځکه چه د وا ړو په معنی د اُمید کښی متقارب دی. په نزد سیبویه بانده اؤ ما بعد د دے نه ضمیر منصوب دے چه واقع دے په خپل مقام کښی. خلاصه د اختلاف دا دہ چه اخفش تصرف په معمول کښی کوی اؤ سیبویه تصرف په عامل کښی.

په ضمائر کښی یو یاءِ هم دہ چه دا راځی د پارہ د واحد متکلم اؤ د دے الحاق د آخر د فعل پورے کیږی. د دے خاصه دا دہ چه د دے نه مخکښی نون وقایه راځی. د پارہ د دے چه آخر حرکت د هغه فعل ملحق به هغه محفوظ شی. لکه مثلاً ضرب پورے یٓ ملحق کړے شی بغیر د نون وقایه نه. نو ضَرَبِیْ به اوګرځی د بلحرکتبه د یاءِ د وجے نه په کسرے بدل شی اؤ چه هرکله ورسره نٓ وقایه ملحق شی نو د باء حرکت د فتحے به محفوظ شی اؤ بله وجه دا دہ چه کچرته ویاء د وجے نه ورباندے کسره راشی نو کسره داخو خاص دہ په اسم پورے. ځکه مصنف اووئیل

| | |
|---|---|
| **ونون الوقایة مع الیاء لازمة فی الماضی** | د نون اضافت وقایه ته دا د قبیلے د اضافت د سبب نه مسبب ته دے. وقایه په معنی د حفاظت سره راځی |
| **وفی المضارع عریاً من نون الاعـــراب** | اؤ په آخر د مضارع پورے هم الحاق د دغه نون وقایه راځی ولے په حال د کون د دے مضارع کښی |

چه خالی وی د نون اعرابي نه. د پارہ د دے چه آخر د فعل مضارع دا محفوظ اوګرځی د کسرے نه چه دا خاص دہ په اسم پورے. اؤ په تضربین کښی چه کومه کسره راغلے دہ دا په وسط کښی راغلے دہ ځکه چه په دے کښی یا ضمیر د فاعل دے. اؤ دا کالجزء دے د کلمے نه. سوآل دا دے چه لم یکن الذین کفروا کښی لم یکن فعل دے اؤ په آخر کښی ئے کسره راغلے دے. جواب دا دے چه دا عارضی دہ اؤ د عوارضو اعتبار نشته. ځکه دا د قبیلے د الساکن اذا حرک حرك بالکسر نه دہ.

سوآل مادے چه کسره د مَا قبل د یاء د متکلم نه هم عارضی ده پکار داده چه په ګډے بانډِ نون د وقایه را نشی. جوآب مادے چه عروض په دوه قسمه دے یو د جهته د ممتنع نه دے اوٌ هغه التقاء د ساکنینو ده اوٌ بل د جهته د امر مناسب نه اوٌ هغه اقتضاء د یاء ده کسرے د ما قبل لره پس اولنے عروض معتبر دے لکه په لم یکن الذین کفروا کښ اوٌ ثانی غیر معتبر دے لکه په ماضی کښ.

**وانت مع النون الاعرابية فيه ولدن وانّ واخواتها مخير**

اوٌ ته اختیار دے په لحوق د نونِ وقایه کښ د هغه صیغو سره چه په هغے کښ نون اعرابی دے.

اوٌ د هغه شان په لدن اوٌ د حروف مشبهه بالفعل پورے الحاق د نون وقایه کښ اختیار دے د پاره د محا فظت د حرکت بنائی سِوا د لدن نه. اوٌ که لحوق د نون وقایه نه کوے نوهم اختیار دے د پاره د دے چه اجتماع د نونا تو را نه شی اګر که حکمًا وی لکه په لعلّ کښ. ځکه د لعلّ په آخر کښ خو نّ نشته ولے لام قریب دے نون وته په مخرج کښ سوآل دادے چه په لعل کښ خو لام قریب المخرج دے نون سره ولے لیت کښ خو نّ نشته بلکه تاء ده چه دا قریب المخرج نه ده. نون وته پکار داده چه الحاق د نونِ د ورسره اوشی. جواب دادے چه د لیت عمول کړے شوے دے. په خپلو اخواتو بانډِ

**ويختار في ليت ومن وعن وقد وقط**

اوٌ مختاره دے لحوق د نون وقایه په لیت کښ ځکه چه څه مانع نشته دے اوٌ حمل په اخواتو بانډ خلاف الاصل دے اوٌ په من عن قط اوٌ قد کښ هم مختاره لحوق د نون دے د پاره د محافظت د سکون چه هغه اصل دے په بناء کښ.

**وعكسها لعلّ** اوٌ دے په عکس بانډِ لعل دے. د وجے د ثقل د تضعیف اوٌ د کثرة حروفو د وجه نه ترك د نونانو چه ځکه مختاره په لعلّ کښ دے د هغه شان په کانّ اولکنّ کښ هم دے لیکن مصنفؒ هغه ذکر نه کړو. اوٌ اکتفاء ئے اوکړو په لعل بانډِ. ځکه چه په لعل کښ هرکله اختیار د ترك دے. سره د دے نه چه په دیکښې تضعیف حکمًا دے. نو په کانّ کښ خو په طریقه اولی ترك پکار دے ځکه چه هلته کښې تضعیف حقیقتًا دے قرآن پاك کښې ارشاد دے. یلیتنی مت قبل هٰذا

يٰليتني لم اوت كتابيه . لعلي اعمل صالحا الآية.

**ويتوسط بين المبتدا والخبر قبل العوامل و بعد ما**

اوُ د مبتدا اوُخبر په ما بين كښ مخكښ د عواملو اوُ روستو د عواملو نه متوسط كيږي

**صيغة مرفوع منفصل مطابق للمبتدا**

ضمير د مرفوع منفصل چه هغه به موافق وي د مبتدا سره په افراد تثنيه اوُ جمع كښ د غه شان په تذكير په تكلم په تخاطب اوُ په غيبة كښ د پاره د دے چه مطابقت راشي په ما بين د راجع اوُ مرجع كښ. سوآل دادے چه د مصؒ په عبارت كښ استدراك دے. ځكه چه توسط خو په بين باندې دلالت كوي نو د بين راوړلو ضرورت نه وو جواب دادے چه دلته كښ د توسط په معنى كښ مونږ ته تجرید كړيدے. اوُ دا به په معنى د وقوع واخلو اوُ يا دا بين ئے د پاره د تاكيد د توسط ذكر كړيدے پيا سوآل وارديږي چه اطلاق د مبتدا اوُ د خبر مخكښ د عواملو لفظيه نه حقيقت دے ولے پس د داخليد و د عواملو لفظيه نه مجاز دے اوُ دا به په اعتبار د ما كان وي پس لازميږي جمع په مابين د حقيقت اوُ د مجاز كښ. جواب دادے چه دا جمع په اعتبار د عموم مجاز دي چه د مبتدا نه مراد مسند اليه دے اوُ د خبر نه مراد مسند دے يا دا چه مصؒ مالكي المذهب دے. د هغوئ په نز باندې جمع بين الحقيقة والمجاز كښ جائز دي. سوآل دادے چه مصؒ صيغه مرفوع اووے اوُ ضمير د مرفوع ئے اوُ نه ويل جواب دادے چه په ضمير كښ اختلاف دے. اوُ دلته كښ فصل دپاره صورت د ضمير اختيار كړے شي. د پاره د دے چه په دے گمان د صفت اونكړے شي. ځكه چه ضمير نه صفت واقع كيږي اوُ نه موصوف اوُ ضمير د مرفوع ئے راوړو ځكه چه د دے مناسبت شته دے د طرفينو سره اوُ منفصل ځكه چه د دے اتصال نشته دے د عامل سره.

**ويسمي فصلا ليفصل بين كونه نعتا وخبرا**

د پاره د دے چه فرق راشي په ما بين د خبر اوُ د نعت كښ كه چرته په هغوئ كښ صلاحية وي لكه زيد هو القائم يا لكه كنت انت الرقيب عليهم والله هو العمور الرحيم. علمت زيدًا هو القائم . ما زيد هو الكريم . اوُ په هغه ځايونو كښ

چرته چه التباس نه وی نو هلته هم دا ضمیر راوړلے شی۔

**وشرطه ان یکون الخبر معرفة** اؤ شرط د دے فصل دادے چه خبر معرفه وی ځکه چه په صورت د تعریف د خبر کښ التباس راځی د صفت سره۔

**اوافعل من کذا** یا دا خبر اسم تفضیل وی چه مستعمل وی په من سره ځکه چه دے ملحق دے د معرفے سره په امتناع د دخول الف ولام کښ په دے باندې اؤ هغه اسم تفضیل چه په لام سره وی یا په اضافت سره وی نو دا داخل دی په معرفه کښ۔ اؤ ذکر د تعریف د مبتداء ئے او نکړو۔ سره د دے چه دا هم شرط دے دا په دے وجه چه د دے پته د خبر نه لګی چه هرکله خبر معرفه وی نو لابدی ده د تعریف د مبتداء نه۔

**مثل کان زید هو افضل من عمرو** د لته کښ ئے صرف یو مثال ذکر کړو چه هغه اسم تفضیل مستعمل دے په من سره چه پس د دخول د عواملو نه وی اؤ د نورو مثالو نه ئے ذکر نه کړل ځکه چه د هغے مثالونه واضح اؤ ښکاره دی۔ اؤ دا چه مصنف مثال د هغه ذکر کړو چه په هغے کښ التباس نشته نو په صورت د التباس کښ به په طریقه اولیٰ سره دا ضمیر راوړلے شی۔

**ولا موضع له عند الخلیل** د دے د پاره محل د اعراب نشته په نزد خلیل نحوی باندې ځکه چه دا حرف دے اؤ د حرف د پاره محل د اعراب نشته۔

**وبعض العرب یجعله مبتداء ومابعده خبر.** اؤ بعض نحاة دے لره ګرځوی مبتداء اؤ مابعد د دے خبر کړی ته مرفوع وی اؤ کوم ته منصوب وی بیا ضمیر د فصل به وی۔

**ویتقدم قبل الجملة** او راوړلے کیږی مخکښ د جملے نه۔ د لته کښ سوال راځی چه ذکر د قبل پس د یتقدم نه زائد دے ځکه چه یتقدم په قبلیت دلالت کوی۔ جواب دادے چه معنیٰ د یتقدم کښ موږ تجرید کوو اؤ یا دا قبل د پاره د تاکید راغلے دے۔ اؤ د لته کښ تاکید نه په دے وجه ضرورت راغے ځکه چه تقدیم د ضمیر په مرجع باندې نا آشنا امر دے نو ضرورت پکښ راغے تاکید ته۔ اؤ یا دا چه معنیٰ د یتقدم دا ده چه واقع کیږی به متقدم په مرجع باندې اؤ دا په اعتبار د مفهوم سره

اعم دے چه قبل الجملة وی که بعد الجمله وی یا قبل المفرد وی او یا بعد المفرد نو دے وئیل چه قبل الجملة.

**ضمیر غائب یسمّی ضمیر الشان** | ضمیر د غائب چه هغے ته ضمیر شان وائی. او دا به مذکر وی. او په هغه وخت کښې به مذکر وی چه کله په کلام کښې یا په جمله کښې مذکر وی یا په جمله کښې بیان د مذکر وی.

**والقصة** | او دے ته ضمیر قصه هم وائی چه کله ضمیر مؤنث وی. او دا به په هغه وخت کښې وی چه کله په جمله کښې عمده مؤنث وی یا په جمله کښې بیان د مؤنث وی. حاصل د خبرے دا دے چه د ضمیر نه رو ستو چه کومه جمله ذکر کیږی دا به خالی نه وی یا به پکښې بیان د حال د مذکر وی فقط او یا به د مؤنث وی فقط. او یا به د دواړو وی کچرته اول وی هغے ته ضمیر شان وائی او که دویم وی هغه ته ضمیر قیصه وائی لکه هو زید قائم. او هی هند قائمة. او کچرته دریم قسم وی نو بیا به خالی نه وی یا به عمده پکښې مذکر وی او یا به مؤنث وی که اول وو نو ضمیر شان او که دوئم وی نو ضمیر قیصه لکه هو ضرب زید هنداً. او کچرته دریم وو نو ضمیر قصه لکه هی ضربت هندٌ زیداً. سوال دا دے چه یسمّی ضمیر الشان والقصة دا صفت دے دپاره د غائب. او اصل په صفاتو کښې احتراز دے نو پکار داده چه دا قید دے داخل شی په بیان د دے قاعدے کښې. جواب دا دے چه یسمّی ضمیر الشان والقصة دا جمله معترضه ده راوړے شوے ده دپاره د بیان د واقعے. او په بیان د قاعدے کښې داخله نه ده ځکه چه دا حکم ثابت دے مطلقا برابره خبره ده چه دا تسمیه ئے وی او که نه وی. او د دغه مثان لازمیږی استدراك د دے قول چه یفسر بالجملة بعده ځکه چه دا را غلے دے دپاره د خروج د ماعدا د ضمیر الشان دپاره. سوال دا دے چه دا قاعده منقوضه شوه په دے قول چه الشان هو زید قائم ځکه چه دا ضمیر د غائب دے چه واقع شوے دے مخکښې د جملے نه او مفسّر دے په جملے سره او حالانکه دا ضمیر شان نه دے. جواب دا دے چه پکښې نه دے داخل ځکه چه دے راجع دے شان ته او حالانکه د دے ضمیر دپاره مرجع نه وی. نو د دا کړو دا خبره چه دپاره د ایراد د ضمیر شان څو شرطونه دی. اول دا دے چه دے به په هغه جمله کښې

راځئ چه حکم یکښې معظم وی. ددے شرط فائده دا ده چه هو زید قائمٌ نه شی وئیلے کیدے. چه کله قیام د زید حکم عظیم نه وی. او دا شرط ځکه راوړے شو چه هرکله په دے کښې حکم عظیم وی. نو لابدی ده یکښې د ایراد د دے ضمیرنه چه دلالت اوکړی په تعظم د حکم باندې په ذکر د هغه سره مرتین یو ځل سبب اجمالی شی او په دویم ځل په تفسیر شی. دویم شرط دا دے چه دے به متقدم وی په جملے باندې ځکه چه دے راځی دپاره د تعظیم د حکم او حکم په جمله کښې وی په مفرد کښې نه وی. دریم شرط دا دے چه دا به ضمیر د غائب وی ځکه چه متکلم او مخاطب دا مبهم نه وی. څلورم شرط دا دے چه دده تفسیر په جملے سره وی د وجې د ابهام نه.

| ویکون متصلا ومنفصلا مستترا وبارزا علی حسب العوامل | او دے به متصل وی او منفصل مستتر به وی او بارز په حسب د تقاضا د عواملو مختلفه سره |
|---|---|

ځکه چه عامل ددے به یا صالح دپاره د اتصال وی یا نه. که نه وی نو منفصل او که چرته صالح وی دپاره د اتصال نو بیا به یا قابل دا ستتار وی یا به نه وی که ثانی وو نو بارز او که اول وو نو مستتر.

| مثل هو زید قائم | مثال دپاره د منفصل. |
|---|---|
| او کان زید قائم | مثال دپاره د متصل مستتر. |
| انه زید قائم | مثال د متصل بارز. |
| وحذفه | او حذف د ضمیر شان سره د بقا هغه نه په نیت کښې. |
| منصوبا ضعیف | چه منصوب وی مرفوع نه وی ضعیف دے یعنی جائز دے سره د ضعف نه هرچه سره جواز هغه په دے وجه چه دے واقع |

شوے دے په صورت د فضلے باندے. او هرچه دے ضعف هغه په دے وجه چه دلته کښې حذف د هغه ضمیر راغلے دے. چه هغه مراد دے بیله د دلیل نه.

سوال دا دے چه دلیل په دے باندې خبر دے ځکه چه خبر بغیر د مبتدا نه نه راځی

جواب دا دے چه خبر کلام مستقل دے. دے دا تقاضا نه کوی چه د ده ارتباط راغلے

وي په غير پوره ـ مثال ئے لکه دا قول د شاعر شو ـ چه ان من يدخل الكنيسة يوما يلق فيها جآذرا وظباء ـ دلته کښې حذف را غلے دے د وجے د وجود د قرينے نه چه هغه دخول د انّ دے په شرط باندې ځکه چه انّ نه دا خليږي په شرط باندې ـ لو معلومه شوه چه اسم د دۀ محذوف دے چه هغه ضمير شان مقدر دے الا مع ان جائز دے په جميع اوقاتو کښې مکسوره دانّ نه ـ

**اذا خففت** | چه کله مخفف کړے شي ـ

**فانه لازم** | په دغه وخت کښې لازم دے جائز نه دے ـ لکه وآخر دعوا هم ان الحمد لله رب العلمين ـ ځکه چه اعمال د اَن المذكورة داموجود دے په کلام د عربو کښې ـ ځکه چه په اِنّ کښې تخفيف کولے شي ـ د وجے د ثقل د تضعيف نه لکه په دے قول د باری تعالی کښې و ان كلا لما ليوفينهم ـ اؤ اعمال د اَن مفتوحه نه دے موندلے شوے په کلام د عربو کښې نو فرض کړے شو عمل د دۀ په ضمير شان مقدر کښې د پاره د دے چه زيادت د فرعے را نشي په اصل باندې ـ ځکه اَن مفتوحه اصل دے اؤ مکسوره فرع دۀ ـ سوآل دا دے چه مزية و فرع په اصل باندې را غلے دے په دے شان سره چه ان مکسوره په ظاهر کښې عمل کوي ـ اؤ مفتوحه په مقدر کښې ـ اؤ عمل په مقدر کښې دا اسهل دے د عمل نه چه ظاهر کښې جوآب دا دے چه ان مفتوحه عامل دے په مقدر کښې دوامًا او لزومًا اؤ ان مکسوره عامل دے په ملفوظ کښې احيانًا وجوازًا ـ اؤ عمل په مقدر کښې دوامًا لزومًا اولی دے د عمل نه په ملفوظ کښې احيانًا جوازًا ـ

**اسماء الاشارة ما وضع لمشار اليه** | دا هغه اسم دے چه وضع شوے وي د پاره د معنی هغه معنی چه مشار اليه وي په اشاره حسيه سره په اعضاء اؤ جوارحو سره وي حقيقةً وي که حکمًا ـ سوآل وارديږي چه ستا دا تعريف جامع نه دے خپلو افرادو لره اؤ مانع نه دے د دخول د غير نه هر چه دے عدم جمعية هغه په دے چه خارج شو دينه اسم اشاره ځکه چه دے دا افرادو د محدودنړی څخه داخل نه دے په محدود کښې ځکه چه دے غير موضوع دے د پاره د معنی مشار اليه او هر چه دے عدم منعية هغه په دے چه داخل شو پکښې لفظ د مشار اليه ځکه چه دے وضع شوے دے د پاره د مشار اليه سره

دد ينه داد محدود نه دے. جواب دا دے چه مراد په اسماء اشاره سره هغه دی چه هغه شمیرلے کیږی په مبنیاتو کښ. نو دد ے په خروج باندې څه نقصان نه راځی.
سوال دا دے چه ستا دا تعریف مستلزم دے دور لره. او د دغه شان تعریف د اسم اشاره په مشارالیه سره دا تعریف بنفسه دے. د تعریف بنفسه وجه دا ده چه معرفة د محدود موقوف دے په معرفه د جمیع اجزاء د حد باندې او بعض د هغې نه مشارالیه دے او مشارالیه دا مشتق دے دا شارے نه. او معنی د مبادیو ملحوظ وی په مشتقاتو کښ. نو تعریف د اشارے راغے په اشارے سره. او هرچه ده دا خبره چه دا تعریف مستلزم دے دور لره هغه په دے وجه چه معرفة د اسم اشارے موقوف دے په مشارالیه باندې او معرفت د مشارالیه موقوف دے په اسم اشارے باندې.
جواب دا دے چه اشارے نه مراد په جانب د محدود کښ اصطلاحی او په حد کښ لغوی معنی مراد ده. پس جهت نه بدل شو. نو دور لازم نه شو. سوال دا دے چه ما د څه نه عبارت دے کیږته عبارت شی دا اسم نه صحیح دے ارجاع د ضمیر دوضع ده ته. ولے صحیح نه دے حمل په اسماء باندې ځکه چه لازمیږی حمل د واحد په جمع او که چرته کیښ دے نه مراد اسماء شی نو حمل خو به صحیح شی لیکن صحیح نه دے ارجاع د ضمیر د واحد متعدد ته. جواب دا دے چه کلمه د ما عبارت دے د اسماء نه. او افراد د ضمیر د وضع په اعتبار د تاویل سره دے او تاویل به شی د کل واحد منهما او یا دا چه کلمه د ما عبارت دے د جنس اسم نه.

| لمشاراليه | یعنی د پاره د معنی د مشارالیه چه هغه مدلول خارجی دے نه لفظ د مشارالیه په اشارے حسیه سره نه ذهنیه سره مشارالیه حقیقةً وی او که حکمًا. هرکله چه مونږ اشاره معتبره کړه په قید د حسیه سره نو نقضا او اعتراض وارد نه شو په ضمیر د غائب سره او په لام ذهنی سره ځکه چه دا وضع شوی وی د پاره د مشارالیه ذهنی. او هرکله چه اشاره حسیه کښ مونږه تعمیم اوکړو چه حقیقیه وی او که حکمیه د پاره د دے چه اعتراض وارد نه شی په مثل د دے قول د باری تعالی سره ذالکم الله ربکم. ځکه چه دا د وجه د زیات د تمکن نه محسوس شوے دے په منزله د محسوس.

| وهي ذاللمذكر | سوال دا دے چه جار او مجرور چه کله واقع شی په نیو. کلام کښ نو لا بدی ده پکښ د اعراب نه. نو دے ... ۲۲

اعراب څه دے. جواب دادے چه دا ډے اعراب د نصب دے بنا بر حاليت. چه دا حال واقع شوے دے د ذا نه. اعتراض راديږي چه حال يا د فاعل نه راځي يا د مفعول نه ذا خو نه فاعل دے او نه مفعول. جواب دادے چه ذا مفعول مالم يسم فاعله دے د پاره د فعل معنوي چه فهم كيږي د نسبت د خبر نه مبتداء ته نو تقدير د عبارت به داسے شي يُنسَبُ ذا الى اسماء الاشارة حال كونها كا ئنا للمذكر.

**ولمثناه ذان وذين** او د تثنيه د مذكر د پاره ذان او ذين راځي. سوال دا دے چه ذان او ذين معطوف دي په ذا باندې او لمثناه حال دے د دے نه نو په دغه وخت كښ لازميږي تقديم د حال په عامل معنوي باندې او دا باطل دے. جواب دادے چه حال ئے مقدم كړو د پاره د دے چه ضمير خپل مرجع ته قريب شي. او دا په نزد د اخفش باندې جائز دے. لكه دا مسئله په بخلاف الظرف كښ تيره شوے ده. او د لته كښ تقديم د عطف راغلے دے په ربط باندې پس لازم نه شو حمل د واحد په متعدد باندې.

**وللمؤنث تا وذي** سوال دا راځي. چه د دے د پاره خو نور هم لغات دي نو مصنف ولے دا دواړه مقدم كړل په نورو باندې.

جواب دادے چه دا دواړه متفق عليه دي او دا اصل دي هرچه دے اصالة د تا نو د دے تثنيه د تان راځي او هرچه دے اصالة د ذي نو دغه په دے وجه باندې چه دا په مقابله د ذا كښ دے چه هغه راځي مذكر. و تي وته وذه وذهي وتهي الخ يعني تنسب الى اسماء الاشارة هذه اللغات حال كونها كائنة للمؤنث.

**ولمثناه تان وتين** يعني تنسب تان وتين حال كونهما كائنتين لمثناه او حال ئے مقدم كړو د پاره د دے چه ضمير مرجع ته قريب شي. د لته سوال واريږي چه اختلاف د ذان او ذين او د تان او تين په اختلاف د عواملو سره اګرڅه خو ښيږي د اخبره چه دوئ معرب دي او حالانكه دا مبني دي. جواب دادے چه دا اختلاف په سبب د اختلاف د عواملو نه دے بلكه ذان او تان موضوع دي د تثنيه د مرفوع او ذين او تين د تثنيه د منصوب او د مجرور د پاره دي. او هرچه دے واقع كيدل د دوئ په صورت د معرب كښ دا اتفاقي دي. د قصد د اعراب د پاره نه دي ځكه چه علت د بنا په دوئ كښ موجود دے لكه چه څنګه په نورو

ممکن دے۔

**ولجمعها اولاء** یعنی ینسب الی اسماء الاشارۃ اولاء حال کونه کائنا لجمعها اؤ وجه د تقدیم د حال ممکن ذکر شوے دہ۔

**مدّا وقصرا** په حال دکون دے چه ممدود وی اؤ یا مقصور وی دلته کښ به مدّا په معنی د ممدوداً اخلوا اؤ قصرا به په معنی د مقصوراً د پاره دے چه لازم نه شی حمل د مصدر وصف په ذات باندې ځکه چه حال دا محمول وی په ذوالحال باندې۔

**ویلحقهما** اؤ داخلیږی په سبیلے د لحوق اؤ د عروض سره په اوّل دا سمائے اشارتو کښ په اعتبار د اصالت سره دلته کښ سوال واردیږی چه الحاق خو په آخر د شی پورے راځی اؤ حرف تنبیه خو په اوّل پورے ملحق کیږی د دے اسماؤ نو تاځکه اوویل چه ویلحقهما الخ جواب دادے چه دلته کښ ذکر د خاص اؤ مراد ترے نه عام یعنی ذکر د لحوق اؤ مراد ترے نه دخول بیا پے سوال راځی چه ابتداءً بے د دخول ذکر کړے وو چه ویدخلها جواب دادے چه دخول په سبیلے د لحوق اؤ عروض سره دانه معلومیږی د لفظ د دخول نه۔

**حرف التنبیه** د پاره د تنبیه په مشار الیه باندې ځکه د تلفظ نه په هغه باندې۔

**ویتصل بها حرف الخطاب الخ** اؤ متصل کیږی په اخر ددے پورے حرف خطاب چه هغه کاف خطابی دے د پاره د تنبیه په حال د مخاطب باندې چه مفرد دے که تثنیه دہ که جمع دہ مذکر دے که مؤنث دے دلته کښ حرف خطاب ئے اووے او ضمیر د مخاطب ئے اؤ نه وے ځکه چه اسم ظاهر دہ په ځائے باندې نه واقع کیږی۔ دلته کښ سوال راځی چه عدم واقع کیدل د اسم ظاهر په ځائے دیو شی باندې دا تقاضا د حرفیة د هغه نه کوی۔ مثلاً د فعل د ضمیر په ځائے اسم ظاهر نه راځی د غه شان د لاتفعل په ځائے باندې۔ جواب دادے چه عدم واقع کیدل د اسم ظاهر په ځائے د مظهر باندې تقاضا د حرفیة کوی په هغه وخت کښ چه بله علامه نه وی په اسمیة باندې۔ او دلته کښ قرینه موجود دہ چه هغه اسناد دے دہ ته۔

**وهی خمسة فی خمسة** چه هغه پنځو له په پنځو کښ ضرب ورکړے یعنی پنځو ضمیرونو له په پنځو انواعو کښ ضرب ورکړے۔ قیاس خو دا تقاضا۔

کله چې شپږ ولادے په پنځو کښې ضرب ورکړے شي. ولے تثنيه مشترکه ده په مابين د مذکر اؤ د مؤنث کښې په دے وجه باندے د دوو صيغو د پاره ۲ يو صيغه راغله.

**فيكون خمسة وعشرين** | نو حاصل د ضرب به پنځويشت راځي.

**وهي** | يعني دا مجموعه چه مشتمله ده په پنځو صورتونو باندې مفرد مذکر چه ملحق شويدے ورپورے حرف خطاب چه ابتداء ئے د واحد مذکر شوے ده اؤ انتهاء ئے په جمع مؤنث مخاطبې باندې راغلې ده.

**من ذاك الى ذاكن** | چه ذا پورے داضمائر ملحق کړے شي.

**وذانك الى ذانكن** | چه ذان پورے الحاق د دے ضمائرو راشي اؤ دغه شان دا نور.

**ويقال ذا للقريب** | ځکه چه قلت د حروفو دلالت کوي په قلت د مسافت باندې.

**و ذالك للبعيد** | ځکه چه کثرت د حروفو دلالت کوي په کثرت د مسافت باند

**وذاك للمتوسط** | ځکه چه حروف د دے متوسط دي په مابين د ذا اؤ ذالك کښ. دلته کښې سوآل راځي چه ذاك به وړو ستو د ذا نه ذکر کړے وو د پاره د دے چه موافقت راشي په مابين د وضع اؤ د طبع کښې جوآب دادے چه دا وسط مرتبے تعين پس د تصور د طرفينو نه کيږي. سوآل دادے چه مصنف ولے او وئيل چه ويقال يعني صيغه د مجهول ئے ذکر کړه. جوآب دادے چه هرکله مصنف اوليدو کثرت استعمال د دغه کلماتو چه دوئ د يو بل په ځائے استعماليږي په دے وجه ئے حوالې په غير ورکړه.

**وتلك وتانك وذانك مشددتين** | يعني تانك ذانك په تشديد د نون سره.

**واولالك مثل ذالك** | په افادے د بعد کښې اؤ تاك اؤ تانك اؤ ذانك چه خفيفتين دي. دلته په تشديد د نون کښې اختلاف دے په نزد مبرد نحوي باندې نون بدل د لام نه راغلے دے ځکه چه اصل د دے تانلك اؤ ذانلك دے. لؤ دوه قريب المخرج حروف جمع شول. لام په نون باندې بدل شو اؤ بيا اجتماع د دوو حرفو د يو جنس نه راغله پس ادغام پکښې اوکړے شو. دلته کښې

سوآل راځي چه دا ادغام خو مخالف د قاعدے دے ځکه چه هغه قلب داول دے ثاني وته اؤ دلته کښې عکس اوشو. جوآب دادے دا مخالفت په وجه د يو نکتے نه اوشو هغه بقاء د نون دے چه دالت په تثنيه بانده.

اؤ دمبرد نه علاوه د نورو نحاتو په نز بانده تشديد بدل دے د الف محذوفه نه په واحد کښې ځکه چه الف د ذانك الف د تثنيه دے اؤ الف د واحد محذوف دے د وجه د التقاء د ساکنين نه. اؤ د هغے په عوض کښې نون راوړلے شو اؤ نون په نون کښې مدغم کړے شو.

## واما ثَمّ وهنا وهنا فللمكان خاصه

دا الفاظ راځي د پاره د مکان خاصه اؤ د زمان د پاره استعماليږي مجازاً. لکه په دے قول د باری تعالیٰ کښې. هنالك الولاية لِلّٰهِ الحق. سوآل دادے چه دا اسمائے ولے په تعداد د اسمائے اشاراتو کښې ذکر نه کړل. باوجود د دے نه چه دا هم اسمائے اشاراتو کښې داخل دی. جوآب دادے چه په دے سره مکان ته اشاره کيږی. اؤ نور اسمائے اشارات عام دی. مکان اؤ غير مکان دواړو ته پے اشاره کيږی.

**فائده** کله استعاره د زمان راځي د پاره د تعبير د مکان اؤ کله استعاره د مکان راځي د پاره د تعبير د زمان. د تعبير د مکان د پاره لکه قول د فقهاء کښې مواقيت الاحرام يعني مواضع الاحرام. دلته کښې سوآل راځي چه مصنف دلته کښې دا حکم په اتا سره ولے ذکر کړو. جوآب دادے چه په دے کښې اشاره ده دے طرفته چه دا حکم متفق عليه دے.

## الموصول

دا سمائے اشاراتو د تفصيل نه پس مصنف د موصولاتو بيان کوی دلته کښې سوآل راځي چه مصنف ولے مخالفت اوکړو د اجمال نه په دے شان سره چه په اجمال کښې ئے موصولات جمع ذکر کړے وے اؤ دلته کښې ئے مفرد صيغه راوړه. جوآب دادے چه دا مقام د تعريف دے اؤ تعريف د جنس کيږی اؤ په اجمال کښې ئے صيغه د جمع راوړے ده. دا په اعتبار د کثرت د انواعو ده.

## مالايتم جزءًا الابصلة وعائد

دے جزء نه واقع کيږی د جملے نه مگر صله چه ده سره صله ذکر شی اؤ ضمير به وی په صله کښې.

چه دا جمع به وی موصول ته سوآل وارديږی چه دلته کښې تعريف کښې دور لازميږی اؤ اخذ د محدود راځي په حد کښې. ځکه چه د موصول د پاره ابتداء اؤ منصدر صله ده. اؤ

تا په تعریف کښې هم صله راوړو. داخو نه دے مګر اخذ د محدود په حد کښې. یالازم شو دور. او دور باطل دے. جواب دادے صله چه کوم ماخوذ دے په محدود کښې د هغې نه مراد اصطلاحي صله ده. لهٰذا دور لازم نه شو. سوال دادے چه عبارت د مصنف سره مقصود نه اداکیږي. ځکه چه مقصود ځمونږ نفي د تمام ده د جزئیت نه او د مصنف د عبارت نه معلومیږي. نفي د جزئیت د تمام والي نه. دا هله چه جزء منصوب اوګرځي بنا بر حالیت ځکه چه حال قید دیاره د عامل د ذوالحال او نفي چه متوجه شي یو شي ته چه هغه شے مقید وي په یو قید سره. نو په نفي سره مقصود قید وي. جواب دادے چه جزءًا منصوب دے بنا بر تمیز. او دا موصوف دے په صفة مقدره سره چه هغه تامًا. او یا داچه لا یتم په معنی د لا یصیر سره دے یعنی د افعال ناقصه نه دے. او جزء به ورله خبر شي چه موصوف دے په صفت مقدره سره. تقدیر د عبارت به داسے شي. چه الموصول مالا یصیر جزءًا تامًا اِلا بصلة وعائد او مراد په جزء تام سره دادے چه دے محتاج نه وي. په کید لو د دې کښې جزء اول انضمام د یوامر آخر ته برابره خبره ده چه عمده وي که فضله. په دے سره غرض او مقصود رد دے په شارح رضی باندې چه هغه وائي چه مراد په جزء تام سره هغه دے چه هغه رکن وي د کلام نه لکه مسند او مسند الیه شو د دې نه علاوه نور فضله نه دي. سوال دا راځي چه جزء تا مردے واغستلو او جزء مطلق دې وا نه وئیل. یعني نفي د جزء تام د او کړله او د مطلق دې او نه کړله. جواب دادے چه موصول سره د صلے نه داجزء تام دے د مرکب نه او موصول تنها جزء د جزء دے. او جزء د شي اګر که جزء تام نه دے لیکن جزء ناقص دے. سوال دادے چه معرفة د صلے ما موقوف دے په معرفت د موصول باندې او معرفة د موصول دا موقوف دے په معرفت د صلے باندې دے سره خو لازمیږي دور او دور باطل دے. یا سوال په دے طریقے سره دے چه مراد یا په صلے سره معنی لغوي ده او یا معنی اصطلاحي. کچرته اول معنی اخلے نو دا حقیقة مهجوره دے او حقیقة مهجوره دا مشابهه ده د مجاز سره او په مجاز کښې لابدي ده د قرینے نه نو د لته کښې څه قرینه ده په معنی لغوي باندې. او کچرته معنی اصطلاحي اخلے. نو بیا به خالي نه وي یا به اخذ د موصول په تعریف د صلے کښې کیږي په دے طور سره چه صله جمله ده چه ذکر کیږي پس د موصول نه. او یا به پکښې اخذ د موصول نه کوئ په دے شان سره چه ته او وائے چه صله جمله خبریه ده. اس کچرته اخذ د موصول پکښې

کوے نو لاز میږی دور اوکه نه کوے نو بیا خو لاز میږی دا خبره چه هره جمله خبریه صله ده. جواب داده چه مراد په صلے سره معنیٰ لغوی ده او دا هغه جمله ده چه ذکر کیږی پس د شی نه چه د هغے شی اتمام بغیر د دغه جملے نه نه راځی په دغه صورت کښی بیا هغه ټولے جملے پس د اذ، اذا، او د حیث نه راځی. هغه پکښی داخلے شوے. ځکه چه مراد دے نه نه تمامیږی مگر په دغه جمله باندې. نو د دے اعتراض د نفعیه راغله په وعائد سره. ځکه چه هغه محتاجه نه دی عائد ته او قرینه په مراد کولو د معنیٰ لغوی باندې داده چه مصنفؒ وعائد ذکر کړے دے. او کچرته معنیٰ اصطلاحی مراد وے نو بیا به ذکر د عائد مستدرك او زائد وو. او که یا چه دلته کښی مراد معنیٰ اصطلاحی ده او دور نه لازمیږی ځکه چه تعریف د صلے به په داسے طریقه سره اوکړو چه الصلة جملة متصلة باسم لا یتم جزءا الا مع هٰذه الجملة مشتمله علی عائد الیه. او په دغه صورت کښی به ذکر د عائد تصریح بما علم ضمنا اوګرځیږی. او دا به مبالغه شی په احتراز کښی دا ذاؤ د حیث نه.

هرکله چه صله په اعتبار د دواړو معنینو سره عامه وه مفهوما چه هغه جمله انشائیه وی که خبریه او مراد دلته کښی جمله خبریه ده. او عائد عام دے چه ضمیر وی او که غیر ضمیر وی لیکن واقعة به ضمیر وی. او ضمیر عام دے چه راجع وی موصول ته که غیر ته خو واقعة به موصول ته راجع وی. نو اشاره ؁ اوکړه مصنفؒ تعین د دے امورو ته او اوے وئیل چه.

**وصلته** او صله د دے موصول به.

**جملة خبرية** جمله خبریه وی هرچه ده جمله هغه په دے وجه چه صله راځی د پاره د بیان د موصول او بیان نه حاصلیږی مگر په جملے سره. او هر چه ده خبریه هغه په دے وجه چه صله مربوطه وی د موصول سره او جمله انشائیه نه وی مربوطه او بله وجه داده چه د جملے خبریے نه علاوه موضح نه دی د پاره د موصول نو او صله کښی شرط داده چه دا به موضحه وی د پاره د موصول

**والعائد ضمیر له** د پاره د ربط په مابین د موصول او د صلے کښی او بله وجه داده چه ضمیر په لما موعوانو کښی اظهر دے.

**وصلة الالف واللام اسم الفاعل والمفعول** او د الف لام چه اسمی موصولی دی د دوئ صله به اسم فاعل یا اسم مفعول راځی. ځکه چه لام اسمی دا مشابهه دے د

لام حرفي سره . نو صله ددے دپاره دا سے پکار ده چه جمله وی معنًا او صورةً مفرد وی چه عمل راشی په مشبهه او په حقیقة .

وهی | او موصولات

الذی | دپاره د مفرد مذکر .

والتی | دپاره د مفرد مؤنث .

واللذان | دپاره د تثنیه مذکر .

واللتان | دپاره د تثنیه مؤنث

بالالف | په حالت رفعی کښ .

والیاء | په حالت نصبی او جری کښ .

والاولی | دپاره د جمع مذکر او مؤنث دواړو .

والذین | دپاره د جمع مذکر .

واللائی واللاء واللاءِ | دا راځی دپاره د جمع مذکر او مؤنث دواړو ولے استعمال ئې مشهور په جمع مؤنث کښ مشهور دے د لته کښ وصل جاری شویدے په مجری د وقف باندِ . او التقاء د ساکنینو په وقف کښ جائز دے ځکه چه امتداد صوت د قائم دے په مقام د حرکت باندِ .

واللاتی واللواتی | دا راځی دپاره د جمع مؤنث خاصةً په اللاتی کښ یو لغت الاتِ هم دے او په اللواتی کښ اللوا هم راغلے دے په حذف د تاء او د یاء سره او ما په معنی د الذی سره دپاره د غیر ذوی العقول غالبًا خو کله کله په ذوی العقول کښ استعمالیږی . لکه والسماء وما بنٰها . او مَن په معنی د الذی دپاره د ذوی العقول غالبًا . او په دے کښ مذکر او مؤنث دواړه برابر دی . او کله کله غیر ذوی العقولو کښ هم راځی لکه ومنهم من یمشی علی بطنه .

وایة | په معنی د التی .

وذو الطائیة | او ذو چه منسوب دے بنو طے قبیلے ته . یو معنه ذو دے . چه معنه د

اسمائے ستّه مکبره نه دے اوٌ بل داچه په معنی د الذی یا التی راغلے دے. دوارو کښې فرق دادے چه ذوَ چه اسمائے ستّه کښې استعمالیږی هغه به اسم جنس ته همیشه مضاف وی. اوٌ معرب دے. او د ذو الطائیه نه روستو به جمله راځی اوٌ هغه به صله وی. اوٌ ضمیر به پکښې موجود وی یا لفظاً یا تقدیراً. لکه په دے قول د شاعر کښې. فان الماء ماء ابی وجدی. و بیری ذو حفرت وذو طویت. یعنی التی حفرتها والتی طویتها. اوٌ د لته کښې عائد محذوف مقدر دے. اوٌ

**ذابعد ماللاستفهام** | اوٌ ذا هم د موصولاتو نه دے چه کله دے واقع شی. پس د ما نه هغه کا ئن وی د پاره د استفهام لکه ماذا صنعت یاوَ ماتلك بیمینك یاموسیٰ.

**والالف واللام** | چه په معنیٰ د الذی یا التی یا الذان یا التان اوٌ یا الذین یا اللاتی بنا په اختلاف د صفت سره چه هغه صله ده.

**والعائد المفعول یجوز حذفه** | چونکه دا عائد مفعول دے اوٌ مفعول فضله دے اوٌ د فضله حذف جائز دے. لکه الله یبسط الرزق لمن یشاء. ای لمن یشاءه. سوآل وارد یږی. چه په سمع الله لمن حمده کښې خو دا ضمیر د مفعول دے. اوٌ حذف ئے نه دے جائز. جوآب دادے چه مراد په عائد سره هغه دے چه راجع وی موصول ته اوٌ دلته کښې داموصول ته نه دے راجع. سوآل داراځیٌ. چه ستا داقاعده ۲ منقوضه شوه په دے ترکیب سره چه الذی ضربته فی داره ځکه چه عائد په دیکښې مفعول دے اوٌ راجع دے موصول ته خو حذف ئےٌ جائز نه دے. جوآب دادے چه دلته کښې ورسره اعتبار د قید شته دے. اوٌ هغه دا چه په وخت د عدم د مانع کښې اوٌ دلته کښې مانع موجود دے چه هغه اجتماع د ضمیرینٌ دے.

دلته کښې نحاتو یو باب وضع کړیدے چه هغې ته و ښُیلے شی. اخبار په الذی سره اوٌ غرض د دے نه تمرین او مشق د متعلمینو دے په مسائلو د دے فن کښې. مصنف اشاره اوکړه دے باب ته نو اوئے وئیل.

**واذااخبرت** | اوٌ په هغه وخت کښې چه ته خبر ورکړے د جزء د جملے نه.

**بالذی** | په الذی سره. لو الذی دا به آله د اخبار وی. داسے نه چه مخبر به ده

**صدرتها** | واقع به کړے کلمه د الذی په صدر د جمله ثانیه کښې.

**وجعلت موضع المخبرعنه** | او او به کرځوے په ځائے مخبرعنه په الذی سره او مراد په موضع د الذی سره هغه دے چه په اولی جمله کښې دے.

**ضميرلها** | ضمیر ددے د پاره.

**واخرته** | او مؤخر به ئے کړے په حال د کون دده کښې خبرا عنه چه خبر وی د الذی. اُس ئے ورته مثال ذکرکوی د پاره د وضاحت.

**فاذا اخبرت عن زيد** | پس په هغه وخت کښې چه ته خبر ورکوے د زید نه

**من** | په دے جمله کښې چه.

**ضربت زيدا قلت الذی ضربته زيد** | په ځائے د مخبرعنه به ضمیر راوړے.

**وكذالك الالف واللام** | او د الذی په شان الف لام هم دی ځکه چه صله د الف لام نه وی مګر اسم فاعل یا اسم مفعول او ممکن نه دے اخذ ددے مګر د جملے فعلیے نه. د لته کښې سوال واردیږی چه دا ستا قاعده منقوضه شوه په دے ترکیب سره چه لیس زید قائما چه دا جمله فعلیه ده او صحیح نه دے اخبار ددے نه په الف لام سره. جواب دا دے چه مراد په جمله فعلیه سره هغه دے چه فعل پکښې متصرف وی. او لیس فعل جامد دے. سوال دا دے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په سیقوم زید یا سوف یقوم زید ځکه چه دا جملے فعلیے دی. او فعل پکښې هم متصرف دے او صحیح نه دے اخبار ددے نه په الف لام سره. جواب دا دے چه مراد په جملے فعلیے سره هغه دے چه فعل پکښې متصرف وی او دے مصدر نه وی په داسے حرف سره چه د هغه معنی د اسم فاعل یا د اسم مفعول نه نه مستفاد کیږی. او د لته کښې دا په داسے حرف مشتمل دے.

**فان تعذرا مرمنها** | پھرته متعذر او ګرزی یو امر په دے امورو ثلاثه کښې چه هغه تصدر د موصول دے. وضع د ضمیر ده په ځائے د مخبر عنه یا نه او تاخیر د دغه اسم.

**تعذر الاخبار** | بیا داسے قسم اخبار متعذر دے. ځکه چه داسے قسم اخبار مشروط دے په دے شروط ثلثه.

**ومن ثمّ** اؤ د دے وجې چه یو امر د دے امورو ثلٰثه نه معدوم شی متعذر دے د اقسم اخبار۔

**امتنع** ممتنع دے اخبار په الذی سره۔

**فی ضمیر الشان** په ضمیر شان کښې د وجې د فوت کید لو د دوه شرطونو نه یه دیکښې۔ یو امتناع د تصدیر د الذی اؤ دویم تاخیر د ضمیر ځکه چه ضمیر شان مقدم وی په جمله باندې وجوبًا۔

**والموصوف** اؤ په موصوف کښې بغیر د صفت نه۔

**والصفة** بغیر د موصوف نه په صفت کښې لکه په دے ترکیب کښې چه ضربت زید العاقل په دیکښې داسے نشی ویلے چه الذی ضربته العاقل زید یا الذی ضربت زیدا ایاه عاقل۔ په دے کښې شرط ثانی فوت شوے دے۔ چه هغه وضع د ضمیر ده په ځائے د مخبر عنه باندې اؤ ګرځته داسے او شی۔ نو په اول صورت کښې به ضمیر موصوف شی۔ اؤ په ثانی صورت کښې به صفت شی۔ اؤ ضمیر نه صفت واقع کیږی اؤ نه موصوف۔

**والمصدر العامل** اؤ د غه اخبار په الذی سره نه صحیح کیږی د هغه مصدر نه چه هغه عامل وی۔ اؤ معمول ورسره نه وی۔ نو په دے ترکیب کښې چه عجبت من دق القصار الثوب په دے کښې داسے نه شی ویلے چه الذی عجبت منه الثوب دق القصار۔ ځکه چه په دغه وخت کښې اعمال د ضمیر لازمیږی اؤ ضمیر عامل نه واقع کیږی۔ اؤ ګرځته مصدر اؤ معمول د واړه دی۔ نو دا ترکیب جائز دے الذی عجبت منه دق القصار الثوب۔ اؤ چه مصدر غیر عامل وی نو هم جائز دے لکه او ائے چه عجبت من ضربك په دے کښې چه اخبار په الذی سره ورکړے۔ لکه الذی عجبت منه ضربك۔

**والحال** اؤ د غه شان د حال نه هم اخبار په الذی سره نه شی واقع کید ے ځکه چه حال واجب التنکیر دے اؤ ضمیر معرفه ده۔

**والضمیر المستحق لغیرها** اؤ هغه ضمیر چه رجوع ئے واجبه وی غیر د الذی نه په دے کښې هم اولنے شرط اؤ دریم شرط مفقود دے۔ چه هغه تصدیر د الذی دے۔ ځکه چه په دغه صورت کښې لازمیږی۔ رجوع د ضمیر

موصول ته نو بیا غیر بلا عائده پاتے کیږی او که غیر ته ئے راجع کوو نو بیا لازمیږی موصول بلا عائده

**والاسم المشتمل علیها** یا هغه اسم چه مستحق دده غیروی لکه زید ضربت غلامه په دے ترکیب کښ دا سے نشی وئیلے چه الذی زید ضربته غلامه. که ضمیر په ضربته کښ راجع کوو مبتدا ته نو موصول بلا عائد پاتے کیږی او که موصول ته ئے راجع کوو نو مبتدا به عائده پاتے کیږی او دا دواړه صورتونه باطل دی.

**وما الاسمیة** او بل د موصولاتو نه ما اسمیه دے نه حرفیه موصولة لکه عرفت ما اشتریته

**واستفهامیة** او ما استفهامیه لکه ما عندك. او شرطیة او ما شرطیه لکه ماتصنع اصنع.

**وموصوفة** او یا موصوفه برابره خبره ده چه موصوف په مفرد سره وی لکه مررت بما معجب لك یا په جملے سره لکه په دے شعر د شاعر کښ.

ربما تکره النفوس من الامر + له فرجة کحل العقال.

**وتامة بمعنی شئ منکر** او ما تامه چه په معنی د شئ سره وی په نزد ابوعلی نحوی لکه نعما هی په نزد ابوعلی نحوی با ندې نعم شیئا خکه دا ما تمیز واقع شوے دے د نسبة د نعم نه چه راغلے دے ضمیر ته. او تمیز نکره وی همیشه. او په نزد سیبویه باندې دا معرف دے ځکه چه ما په نعما کښ دا فاعل دے د نعم د پاره چه هغه خالی دے د ضمیر نه او فاعل د فعل مدح نه وی مګر معرفه نو تقدیر به بنا په دے مذهب دا سے شی. نعم الشئ.

**وصفة** او یا دا ما صفت واقع شوے وی لکه مثلاما یعنی ای مثال کتابا ما یا ضربا ما.

**ومن کذالك** او من هم پشان د ما دے په دے ټولو مذکوره صورتونو د ماکښ موصوله هم راځی لکه من جاءك استفهامیة لکه من غلامك شرطیه لکه من تضرب اضرب او موصوفه چه په مفرد سره وی یا په جملے سره چه په مفرد سره وی لکه په دے شعر کښ.

کفی بنا من غیرنا - حب النبی محمد ایانا.

**الا فی التامة والصفة** مګر ما چه ځکه تامه او صفتیه راځی من به نه راځی.

**وایّ وایّةٌ کمَن** اوُ بل د موصولاتونه ایّ او ایّةٌ دی پشان د مَن په دغه امورار بعه کښې. اوَ په انتفاء د تامه اوُ صفتیه کښې. مثال د موصوله لکه اضرب ایهم لقیت، مثال د استفهامیه لکه ایهم اخوك مثال د شرطیه ایا ما تدعوا فله الاسماء الحسنٰی موصوفه لکه یا ایّها الرجل. سوال داراځي چه تشبیه د ایّ د مَن سره نه صحیح کیږی ځکه چه ایّ راځي صفت اتفاقا لکه مررت برجل ای رجل یعنی رجل کامل فی الرجولیة اوُ کلمه د مَن صفت نه واقع کیږی اتفاقا جواب دادے چه ایّ بارے ترکیب کښې استفهامیه دے په اصل کښې ځکه چه معنی د مررت برجل ای رجل، رجل اعظم دے اوُ عظمت منشاء د سوال دی ځکه چه دا هرچاته نه دی معلوم. اوُ سوال په استفهام باندې دلالت کوی بیا دا منتقل شو د استفهام نه صفت ته.

**وهی** یعنی هر واحد د ایّ او ایّة نه معرب دی بالاتفاق. **وحدها** علاوه د نور و موصولاتونه خو په تثنیه دے کښې اختلاف دے. اوَ د غه شان ډیر په نزد بنی طے ځکه چه ایّ لازم الاضافةٌ دے مفرد ته اوُ اضافةٌ مفرد ته دا د خواصو د اسم نه دے. اوُ اصل په اسماء کښې اعراب دے.

**الّا اذا حذف صدر صلتها** مگر په هغه وخت کښې چه صدر د صلے ئے حذف کړے شی لکه په دے آیت کښې ثم لننزعن من کل شیعة ایهم اشد علی الرحمٰن عتیا. یعنی هو اشد ځکه چه دده مشابهت د حرف سره متاکد دے اول په دے چه دے محتاج دے نفس صلے ته اوُ بیا دا چه دے محتاج دے صدر د صلے ته. اوُ مبنی اوکرځولے شو په ضمه باندې ځکه چه د دهٔ تشبیه راغلے ده د غایاتو سره. سوال دادے چه ایّ موصوفه خو هم مبنی ده نو د هغے د بنا استثناء ولے او نه کړے شوه. جواب دادے چه د هغے بنا په باب د منادیٰ کښې ذکر ده. نو دوباره په دے ځائے کښې د هغے د ذکر ضرورت نشته.

**وفی ماذا صنعت وجهان** اوُ په دے ترکیب کښې چه ماذا صنعت د وه وجهے دی مراد په دے سره هر هغه ترکیب دے چه ذآ واقع شوے دی پس د مآ نه اوُ روستو ترینه فعل مخاطب وی. چه مشتمل نه وی په ضمیر باندې.

**احدهما ما الذی** یو دا ده چه ما په معنی د ایّ شیٔ سره شی اوُ ذا په معنی د الذی سره شی. اوُ مابعد د دے نه صله شی موصول سره د صلے نه. ما به یا خبر شی یا مبتداء په دغه صورت کښې سوال به جمله اسمیه شی.

**وجوابه رفع** جواب به ئے په دغه وخت کښ رفع وی . چه موافقت په مابين دسوال او جواب کښ راشی لکه الذی صنعته هو الاکرام .

**والاخرای شئ** بله وجه داچه مآ په معنی د ای شئ سره شی او ذا زائد اوګرځی نا په دے جواب سوال جمله فعليه او جواب نصب چه موافقت راشی په مابين دسوال او د جواب کښ لکه صنعت الاکرام په اول صورت کښ نصب او په دو نم صورت رفع هم صحیح کیږی ولے موافقت نشته په دغه صورت کښ په مابين دسوال او د جواب کښ .

## أسْمَاءُ الْأفْعَالُ

هر کله چه اصل په اسماء کښ اعراب وو . خو چه کله انتقال د اسماء افعال راغے معنی د ماضی او امر ته . نو دے لره محل د اعراب پاتے نه شو .

ماهيت د هغه اسم چه مسمیٰ کولے شی . په اسم فعل سره په اصطلاح د نحاتو کښ

**ما كان بمعنى الأمر والماضى** هغه دے چه وی په معنی د امر یا د ماضی سره .

سوال وارد بیږی چه ستا دا تعریف جامع نه شو ځکه لو افراد ولره اخارج شو ترینه اُف چه په معنی د اتضجر یا اوه چه په معنی د اتوجع دے دا په معنی د مضارع باند دی او سره ددے نه چه دا اسماء افعال دی . جواب دا دے چه اُف په اصل کښ تضجرت او اوه په اصل کښ توجعت وو لیکن تعبير ددوئ نه په مضارع حالی سره او شو ځکه چه معنی ددوئ بنا ده په انشاء باندی او انشاء سره حال انسب دے . اسماء افعال سماعی په نهه قسمه دی . ښیب په معنی د امر او درے په معنی د ماضی . او قیاسی یکښ هغه دی چه په وزن د فعال دی او په معنی د امر دی .

**مثل رويد زيدًا اى امهله و هيهات ذاك اى بعد** او مثال د هغه چه په معنی د امر وی لکه رويد شو چه په معنی د امهل دے . او مثال د ماضی لکه هيهات چه په معنی د بعد دے .

سوال دا دے چه مثال د اسم فعل چه په معنی د امر دے دائے ولے مقدم کړو په هغه باند چه هغه په معنی د ماضی دے. جواب دا دے چه اسماء افعال چه هغه په معنی د امر دی دا کثیر دی (چه هغه شپږ دی) او کوم چه په معنی د ماضی دی هغه قلیل دی او العزة للتکاثر. سوال دا دے چه هر کله اسماء افعال په معنی د امر او د ماضی دی. نو ولے ئے دوی مستی کړو په اسماء سره او د افعالو د قبیلے نه ئے او نه کړځول. جواب دا دے چه صیغے د دے مخالف دی د صیغو د افعالو نه او تصرف په دے کښې کیږی پشان د تصرف د اسماء او تصرف په دے کښې پشان د افعالو نه کیږی سوال واردیږی چه ستا دا تعریف مانع او نه کرځیدو د دخول د غیرنه او داخل شو ضارب په دے ترکیب کښې چه زید ضارب امس ځکه چه دے دلالت کوی په معنی د ماضی باندې نو پکار دا ده چه دا د اسم فعل او کرځی. جواب دا دے چه مراد په دلالت سره دلالت دے په اعتبار د اصل وضع سره او د دلالت کښې دلالت په عارض سره دے او العوارض لا تعتبر.

**وفعال** او موزون په وزن د فعال چه کائن وی.

**بمعنی الامر المشتق من الثلاثی المجرد قیاس** په معنی د امر سره چه مشتق وی د ثلاثی مجرد نه قیاسی دے. په دے عبارت سره مصر د اسماء افعالو دریم قسم ذکر کوی. چه هغه اسماء افعال قیاسی دی. سماعی هغه دی چه موزون نه وی په وزن د فعال سره او قیاسی هغه دے چه موزون وی په وزن د فعال باندې قیاسی په تاویل د قیاسی یا په تاویل د ذو قیاس سره د پاره د دے چه حمل د صرف وصف را نه شی.

**کنزال بمعنی انزل** لکه نزال په وزن د فعال دے دا په معنی د انزل دے.

**وفعال مصدرا معرفة کفجار** او هر هغه اسم چه په وزن د فعال باندې موزون وی په حال د کون د دغه اسم کښې چه کائن وی په معنی د مصدر معرفه باندې لکه فجار شو چه کائن دے په معنی د الفجور باندې.

**وصفة** یا کائن وی په معنی د صفت باندې د پاره د مؤنث لکه یا فساق چه په معنی د فاسقة باندې دے.

**مبني في الحجاز** مبنی دے هر واحد د دے دواړو نه په لغت د حجازئین کښې.

ځکه چه دوئ مشابه دی د هغه فعال سره چه پهٔ معنی د امر دی په عدل اؤ په وزن کښې هغه مبنی دی نو دوئ به هم مبنی وی. هرچه دے په عدل کښې نو هغه په دے طریقه چه فعالِ په معنی د امر معدول دے د امر فعلی نه دغه شان فساق معدول دے د فاسقة نه. او فجار معدول دے د الفجرة نه. اؤ هرچه دے وزنًا نو هغه خو ظاهر دے. سوال دا دے چه اسماء افعال څنګه معدول دی د الفاظو د فعل نه. ځکه چه عدل تغیر د لفظ دے فقط نو څرنګه خارج شو فعل په عدل سره د فعلیة نه اسمیة ته. پکار دا وه چه مصنف وئیلی وے لمشابهته له مبالغة ووزنًا. ځکه چه مبالغه موجوده ده په جمیع اسماء افعالو کښې. جواب دا دے چه مراد په عدل سره اشتقاق دے اؤ په اشتقاق سره شئ د خپل حقیقت نه اوځی.

| وفعال علما للعیان | او هغه اسم چه موزون وی په وزن د فعال په حال د کون دد غه اسم کښې چه پو عین وی د اعیانو نو مؤنثو نه. |
|---|---|

| کقطام وغلاب | لکه قطام اؤ غلاب شو دا مبنی فی الحجاز په لغت د حجازئینو کښې مبنی دی. ځکه چه دا مشابه دی هغه فعال سره چه په معنی د امر دی. په عدل اؤ په وزن کښې. |
|---|---|

| ومعربٌ فی تمیم | او په لغت د بنی تمیم کښې معرب دی. ځکه چه اصل په اسماء کښې اعراب دے. اؤ د وجه د عدم قلت دینا نه. |
|---|---|

| الا ما کان فی آخره راء | مګر معرب به نه وی په هغه وخت کښې چه کله د دے په آخر کښې راء راغلے وی. ځکه چه راء حرف ثقیل دے. د دے رجے نه چه دے کالمکرر واقع کیږی په مخرج کښې. نو دا په دغه وخت کښې مبنی اوکرځولے شو د پاره د خفت. ځکه چه سلوک په طریقه واحده بانډ دا اسهل دے د سلوک نه په طرقِ مختلفو بانډ. |
|---|---|

| فائدہ | فعال علمی په دوه قسمه دے یو هغه دے چه ذوات الراء وی دویم هغه چه ذوات الراء نه وی. نو بنی تمیم په ذوات کښې موافق دی د حجازئینو سره په بناء کښې او په غیر ذوات الراء کښې مخالف دی د حجازئینو سره ځکه چه په دے کښې کمال المشابهت نشته د فعال امری سره. ځکه چه مبالغه نه متصور کیږی په اعلام د اعیانو کښې اؤ بنی تمیم نه مراد اکثریت د دوئ دے ځکه چه بعض بنی تمیم هغوئ فرق نه کوی |
|---|---|

په ذوات الراء او غیر ذوات الراء کښې

# اَلْاَصْوَاتُ

مراد په دے سره هغه الفاظ دی چه جاری دی په لسان د انسان باندې او غیر موضوعه للمعنی دی

**كل لفظ حكی به صوت** داهر هغه لفظ دے چه جاری دے په لسان د انسان باندې او انسان حکایت کوی په دے سره د صوت د شی آخر نه یا هر هغه لفظ دے چه جاری دے په لسان د انسان باندې دپاره د ادّعا د بها ئمو۔

**فالاول كغاق والثانی كنخ** داول مثال لکه غاق شو چه دے سره حکایت کولے کیږی د صوت د غراب نه او د دوئم مثال لکه نخ شو دپاره داناخت د بعیر (یعنی دپاره د کښېنولو داوښ) زده کړه داخبره چه اصوات په پنځه قسمه دی۔ وجه د حصر دا ده چه دا اصوات به خالی نه وی یا به منقول وی د صوتیه نه مصدریه ته لکه واها دپاره د تعجب۔ او یا به د صوتیه نه مصدریه ته او بیا د مصدریه نه منقول شوے وی اسم فعل ته لکه صهٖ مهٖ۔ دا نقل شو د صوتیه نه معنی د سکوت ته او بیا د سکوت نه منتقل شو اسکت ته۔ او مهٖ نقل شو د صوتیه نه معنی د منع ته او د هغه نه بیا امنع ته او یا به غیر منقول وی نو دا بیا په درے قسمه دے اول هغه دے چه عارضیږی انسان ته په وخت د عروض د معنی کښې۔ لکه قول د متندم او د متعجب وی۔ وخ۔ د وئم هغه دے چه جاری شی په ژبه دانسان باندې صوت د غیر په سبیلے د حکایت سره۔ دریم هغه چه انسان به هغے باندې ادعاء او تصویت د بهائمو کوی یا د غیر او د لته کښې مص صرف دوه قسمه ذکر کړل ځکه چه مراد غیر منقوله دی۔ هرچه دے قسم اول چه منقول دی هغه داخل دی په مصادرو کښې او دوئم قسم په اسماء افعالو کښې۔ او قسم اول د غیر منقول ئے هم ذکر نه کړو۔ ځکه چه قسمین اخیرین ملحق دی په اسماء مبنیه پورے سره د تعلق د دوئ نه په غیر انسان پورے نو د هغه قسم اول به په طریق اولی سره مبنی کیږی دوجے د علم تعلق د دوئ نه په غیر پورے۔ او اصوات مبنی او کرځیدل ځکه چه ترکیب

په دوئ کښې نشته ۔ سوآل داواردیږی چه هر کله علت د بناء د اصواتو عدم ترکیب دے سره دغې نه بیا پکار داده چه کله ئے ترکیب د غیر سره راشی ۔ داد معرب اوګرځی لکه مثلاً ته اوواے چه قال زید عند التعجب وَیْ یا قال زید غاقٍ جواب داد ے چه دا به دے وخت کښې هم مبنی دے ۔ د دے حیثیت نه چه دا حکایت دے د اصواتو نه سوآل داراځی چه هر کله اصوات د لالت نه کوی په اصل وضع کښې په معنی باندې نو دا اسماء او نه ګرځیدل ۔ چه هر کله اسماء او نه ګرځیدل نو په اسماء مبنیه کښې ئے ولے ذکر کوی جوآب دا دے چه دا چونکه جاری شوی دی په مجرای د اسماء مبنیه په دے وجه د هغې په حکم کښې دی۔

# المرکبات

**کل اسم رکب من الکلمتین لیس بینهما نسبة**

داهر هغه اسم دے چه مرکب وی د دوؤ کلمتینو نه کلمتین عام دی حقیقة وی که حکما او د دوئ په مابین کښې څه نسبت نه وی نه قبل العلمیة او نه بعد العلمیة دا تعریف داسم مرکب دے. سوآل وارد یږی چه تعریف د مرکباتو جامع نه شو خپلو افرادو لره او خارج شو ترنه په مثل د سیبویه ۔ ځکه چه دے مرکب دے د کلمے او د صوت نه نه د کلمتین نه جوآب دادے چه کلمتین عام دی حقیقة وی که حکما سوآل دادے چه ظاهر متبادر د کلمتین نه هغه دے چه مرکب وی دا سمین نه او یا داسم او فعل نه. بنا په دے باندې بیا خارج شو ترنه هغه اسم چه مرکب وی د دوؤ فعلین نه یا د دوؤ حرفینو نه او یا مختلفین وی ۔ جوآب دادے چه کلمتین عام دی چه اسمین وی یا حرفین یا فعلین وی او یا مختلفین وی. سوال دا دے چه تعریف د مرکباتو جامع نه شو خپلو افرادو لره ځکه چه خارج شو ترنه مرکب تعدادی لکه خمسة عشر ځکه چه په مابین د دواړو جزئین کښې نسبت د عطف دے د دے سوال دوه جوآبه دی یو جوآب دادے چه مراد په نسبت سره غیر نسبت د عطف دے ولے دا جواب ضعیف دے ځکه چه په تعریف کښې لیس بینهما نسبة کښې نسبت نکره ده چه واقعه شوے ده په سیاق د نفی کښې ۰ او نکره چه په سیاق د نفی کښې

واقع شي نو دا عموم فائده کوي نو په دے ځائے کښې خصوصي نسبة اخستل شوې دقرينے دعموم نه مشکل دے پس اصل جواب دادے چه مراد په نسبت سره هغه نسبت دے چه په فهم کښې راځي د ظاهر هيئة د ترکيب د يو د کلمتين سره د بلے نه. مثلاً د هيئة د ترکيب د عبدالله نه نسبت اضافيه معلوميږي. او د ظاهر هيئة د ترکيب د تأبط شرا نه نسبة د فعل او د مفعول معلوميږي او په خمسة عشر کښې ظاهر ترکيب په دا قسم نسبت د لالت نه کوي.

سوال دادے چه عکښې هوبږ ويلي دي چه ترکيب سبب د منع صرف دے او دلته کښې وائے چه ترکيب سبب د بناء دے. نو په دواړو ترکيبونو کښې څه فرق دے جواب دادے چه ترکيب په دوه قسمه دے. يو هغه دے چه په مابين داجزاؤ د هغے کښې نسبت وي. او دوئم هغه دے چه مابين د اجزاء د هغے کښې نسبت نه وي. نو اولنے ترکيب نه بناء فائده کوي او نه عدم انصراف او دوئم ترکيب به خالي نه وي يا به جزء ثاني متضمن وي حرف عطف لره او يا به نه وي اولنے موجب د بناء دے په دواړو جزئونو کښې او که چرته متضمن نه وي حروف عطف لره بيا به خالي نه وي يا به مبني وي قبل د ترکيب نه او يا به نه وي که اول وو نو مبني لکه سيبويه او دوئم موجب د بناء دے په جزء اول کښې او موجب د منع صرف دے په جزء ثاني کښې. او دا قسم ته مرکب امتزاجي ويلے شي.

| فان تضمن الجزء الثاني حرفا | که چرته جزء ثاني متضمن وي حرف لره حرف عطف وي يا غير حرف عطف. |
|---|---|

**بنيا** دا دواړه به مبني وي. هرچه دے اولنے نو دا په دے وجه بانديے چه دا واقع شويدے په وسط د کلمے کښې او وسط د کلمے محل د اعراب نه دے او هرچه دے جزء ثاني نو دا په دے وجه چه دے متضمن دے معنی د حرف لره. لکه خمسة عشر او يا حادي عشر وغيره. سوال دادے چه مثال راجمع د پاره د توضيح د ممثل او داخل حاصليږي په يو مثال سره نو دوه مثالونو راوړلو ته څه ضرورت دے. جواب دادے چه دوه مثالونه ئے په دے وجه بانديے راوړل چه په دے کښې تنبيه ده په دے خبره چه دا مرکبات ثابت

دی. برابره خبره ده چه یوجزء ئے عدد مرکب وی. سره د عشرة او یا صیغه د اسم فاعل وی چه مشتق وی دده نه سوال دادے چه نو منم داخبره چه جزء ثانی په حادی عشر کښ متضمن دے معنی د حرف لره کچرته دا یے شی نوفساد به په معنی کښ لازم شی. جواب دادے چه تضمن د معنی حرف عام دے حقیقتاً وی او که حکماً او په حادی عشر کښ اګرکه تضمن د معنی د حرف حقیقتا نشته لیکن متضمن دے معنی د حرف لره حکما په اعتبار د مشتق منه سره ځکه چه حادی عشر مشتق دے د احد عشر نه او هغه متضمن دے معنی د حرف لره حقیقتا

**الا اثنی عشر** دلے مستثنیٰ دے ددے قاعدے نه اثنی عشر. ځکه چه په دیکښ د واړه جزئین مبنی نه دی. بلکه اول ئے جزء معرب دے ځکه چه دے مشابهه دے. د مضاف سره په سقوط د نون اعرابی کښ. او اضافت د خواص معظمه مکبره د اسم نه دے. او جزء ثانی مبنی دے ځکه چه دے متضمن دے معنی د حرف لره.

**والا** او کچرته کښ جزء ثانی متضمن نه وی معنی د حرف لره.

**اعرب الثانی** جزء ثانی به معرب وی د وجے د عدم علة د بناء نه په دے کښ چه هغه تضمن د معنی د حرف دے. **کبعلبك** لکه بعلبك شو. او اول ئے جزء به مبنی وی ځکه چه اخر دده په وسط کښ واقع دے.

**فی الاصح** بناپه اصح مذهب باندِ یا لغت باندِ. په دے سره ئے راغلو په نورو دوګو لغتونو باندِ. یو دا چه د واړه جزئین به معرب وی. په دے شان سره چه جزء اول به مضاف وی ثانی ته او ثانی به غیر منصرف وی دویم مذهب یا لغت دادے چه دواړه جزئین به معرب وی په دے شان چه جزء اول به مضاف وی ثانی ته او ثانی به منصرف وی.

# الکنایات

کنایات جمع د کنایة ده او دا په لغت کښې په معنی د پټ والی باندې راځی او په اصطلاح کښې وهغې شی دیته چه تعبیر اوشی د یو شی معین نه په لفظ غیر صریح سره د پاره د یو غرض د اغراضو نه. لکه ابهام شی په سامعینو باندې. مثلاً جاءنی فلان او ته په فلان سره اراده کوې د زید چه یو شخص معین دے. دلته کښې سوال واردیږی چه الکنایات جمع د کنایة ده. او دا یو معنی مصدری ده او مبنیات د قبیلې د الفاظو نه دی. نو شمیرل ستا کنایاتو لره د مبنیاتو نه صحیح نه شول. او بل دا نقصان راځی چه حمل به د ذات راشی په صرف وصف باندې. ځکه چه الکنایات مصدر دے صرف وصف دے او کم وکذا خبر دے. نو لازم میږی حمل د صرف وصف په ذات باندې جواب دادے چه مراد په دے سره ما یکنیٰ به ده معنی مصدری نه ده. او معبر به د قبیلې د الفاظو او د ذات نه دے.

سوال دادے چه کچرته په کنایاتو سره کل کنایات وی نو بیا خو پکښې فلان هم داخل دے. او حالانکه دا خو معرب دے مبنی نه دے. جواب دادے چه مراد په دے سره بعض دی بیا سوال واردیږی چه د بعضو نه مراد یا بعض مطلق وی یا بعض معین. کچرته بعض مطلق وی نو فلان پکښې داخل شو. او که بعض معین وی نو دلته کښې قرینه په دے بعضو باندې نشته جواب دادے چه مراد په دے سره بعض معین دی. او کچرته ته وائے چه قرینه نشته نو مونږ وایو چه قرینه په دے باندې اصطلاح د نحاتو ده ځکه چه نحاة کله په مبنیاتو کښې ذکر د کنایاتو کوی نو د هغې نه د بعض معین مراد دی چه هغه دا څلور دی. سوال دادے چه بحث د یو شی نه موقوف دے په معرفت د نفس د هغه باندې. نو پکار دا وه چه اول به ئے تعریف بکړے وو. بیا به ئے ترینه بحث کړے وو جواب دادے چه د دے د

پاره یو مفهوم مشترك پکار وو. او هغه نه وو موجود. یا دا چه تعریف وی د پاره دیو شی چه کله افراد د هغه متعدد او غیر محصور وی او افراد د کنایاتو چه معدود دی د مبنیاتو نه هغه محصور دی. او هغه څلور دی اول په هغې کښې کم دے وجه د بناء د دے وضع ده په موضع دحرف بانډې چه هغه تنالی دے. او یا دا چه کم په دوه قسمه دے یو کم استفهامیه دے او بل کم خبریه دے. چونکه کم استفهامیه دے متضمن دے معنی دحرف لره نو کم خبریه په هغې بانډې حمل کړے شو.

**وکذا** او بل د کنایاتو نه کذا دے. وجه د بنا د دے داده چه دے مرکب دے د کاف تشبیهی نه او د ذا اسم اشارے نه. بیا دا مجموعه کلمه واحده اوګرځولے شوه. په معنی دکم بانډې. او ذا په اصل بناء بانډې پریښودے شو

**وکیت وذیت** دا کنایه راغلی دی د واقع او د جملے نه وجه د بنا دوی په دے چه هریو واحد دے نه کلمه دا چه واقع ده په موقع د جملے بانډې او جمله من حیث الجمله نه استحقاق د اعراب لری او نه د بناء. پس هر کله چه واقع شی مفرد په ځائے د جملے. نو دلته کښې ترجیح بنا ته ورکړے شوه. ځکه چه بنا اصل ده. په کلما تو کښې قبل الترکیب. بعض د کنایاتو نه کأیّ دے. وجه د بنائے داده. چه دا مرکب دے د کاف تشبیهی او د لفظ دایّ نه دا مجموعه کلمه واحده اوګرځیده. په معنی د کم خبری بانډې نوپس دے اوګرځیدو لکه اسم مبنی چه مبنی وی په سکون لکه د کم.

سوال داده چه هر کله کأیّ د کنایاتو نه دے. نو مصنف دا ولے ذکر نه کړو جواب داده چه مرتبه ددے په بناء کښې داکه ده د خپلو اخواتو نه. ځکه چه دا مرکب دے. د کاف تشبیهی او د ایّ نه. او ایّ د موصولاتو نه دے. چه دا معرب دے لیکن هر کله چه دا دواړه کلمه واحده اوګرځیدل. او په معنی د کم خبری شو په دے وجه دا معرب اوګرځیدل په اعتبار د اصل او مبنی اوګرځیدل فی الحال او کذا مبنی دے فی الحال او فی الاصل دواړه.

**فکم الاستفهامیة** پس کم استفهامیه چه دے متضمن دے معنی د استفهام لره.

**مميزها منصوب مفرد** تمیز به ئے مفرد وی او منصوب به وی سوال دا راځی. چه اضافت د ممیز کم ته نه صحیح کیږی ځکه چه دلته په کم کښې هیڅ قسم څه ابهام نشته نه په صورت کښې او نه په معنی کښې. په صورت کښې پدے طور سره چه داخری حرف کاف دے او بل میم دے. او په معنی کښې په دے طریقه سره چه دا راځی د پاره د عدد. جواب دادے چه دا اضافت د وجه د ادنی ملا بسه نه دے. دا به منصوب په دے وجه وی چه دا تمیز دے او تمیز منصوب وی. او مفرد به وی. ځکه چه دا راځی د پاره د مطلق عدد. نو د دے له تمیز د عدد اوسط ورکړے شو د پاره د دے چه لازم نه شی ترجیح بلا مرجح

**وکم الخبرية** اوکم خبریه ممیزها مجرور تمیز به ئے مجرور په اضافت سره وی. مفرد ومجموع کله به مفرد وی او کله به مجموع هرچه دے افراد ئے په دے وجه چه دا کنایه ده د عدد کثیر نه او ممیز د دے مفرد راځی. او هر چه جمعیة ئے په دے وجه چه عدد په دوه قسمه دے یو صریح دے او بل کنایه. په صریح کښې کثرة د عدد صراحةً موجود وی. او په عدد کنائی کښې تصریح په کثرت د عدد نه وی. پس په دے کښې لا بدی شوه د جمعیة د تمیز نه چه دا جبیره اوګرځیږی د پاره د ما فات چه صراحت دے.

**وقد تدخل من فيهما** او کله کله داخلیږی من په تمیز د کم استفهامیه کښې او د کم خبریه کښې ځکه چه تمیز راځی د پاره د بیان او من هم راځی د پاره د بیان نو دواړو کښې مناسبت موجود شو. دلته کښې سوال واردیږی چه دخول د من په کم خبریه کښې صحیح دے ځکه چه دے موافق دے د اعراب د تمیز دده سره. او په تمیز د کم استفهامیه کښې نه دے صحیح. ځکه چه دے موافق نه دے د اعراب د تمیز د هغه سره. جواب دادے چه کم به دے قول د باری تعالی کښې چه سَلْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِنْ اٰيَةٍ بَيِّنَةٍ. په دے کښې احتمال د کم استفهامیه هم دے او د کم خبریه هم دے. او په دواړو تقدیرونو کښې من داخل دے په تمیز کښې.

**ولهما صدر الكلام** او د دے دواړو د پاره برابره خبره ده چه کم استفهامیه وی او که کم خبریه وی صدارت د کلام دے. د پاره د دے چه داقل

وملة نه دلالت اوکړی په نوع دکلام با ندِ. هرچه دے کم استفهامیه نو هغه متضمن دے معنی د استفهام لره او هغه مقتضی د صدارت دے. او هرچه دے خبریه نو هغه دلالت کوی په انشاء دتکثیر باندِ دا هم یو نوع د انواع دکلام نه نو په هغے باندِ هم تنبیه پکار ده د اول امر نه د لته کبنِ سوال واردیږی چه په کم خبریه کبنِ خبر او انشاء څنګه جمع کیدے شی ځکه چه په دوی دواړو کبنِ منافاة ده خبر احتمال د صدق او د کذب لری او انشاء احتمال د صدق او کذب نه لری. جواب دادے چه ددے دواړو په مابین کبنِ منافاة نشته چه کله حیثیتونه او جهتونه مختلف شی.

| وکلاهما یقع مرفوعا ومنصوبا ومجرورًا | او هر واحد ددے دواړو نوعینو نه مرفوع هم واقع کیدے شی کله کله. منصوب هم |
|---|---|

واقع کیدے شی کله کله، او مجرور هم. ځکه چه دا اسماء دی په شان د نورو اسماء مبنیه او هغه واقع کیږی په محل د رفع کبنِ نصب کبنِ او جر کبنِ نو دغه شان دا هم واقع کیږی.

| فکل مابعده فعل غیرمشتغل عنه بضمیره کان منصوبا معمولا علی حسبه | پس هر واحد دکم استفهامیه او خبریه چه د هغه روستو فعل وی یا شبهه فعل لفظا وی که تقدیرا غیرمشتغل |
|---|---|

وی د دغه په ضمیر سره یا په متعلق سره دے به منصوب وی او معمول به وی د هغه په حسب د اقتضاء یعنی کچرته فعل مقتضی وی د نصب بنا بر مفعولیة نو دے به منصوب وی بنا بر مفعولیة او کچرته مقتضی وی د نصب بنا بر ظرفیة نو دے به منصوب وی بنا بر ظرفیة او کچرے دے مقتضی وی د نصب بنا بر مصدریة نو دے به منصوب وی بنا بر مصدریة. ولے تعین د دے دپاره دیو منصوبالو هغه د تمیز نه معلومیږی. که تمیز ئے مفعول وی نو دے به منصوب وی بنا بر مفعولیة لکه کم رجلا ضربت. او که تمیز ئے ظرف وی نو دے به منصوب وی بنا بر ظرفیة لکه کم یوما سرت. او کچرته تمیز ددهٔ مصدر وی نو دے منصوب وی بنا بر مصدریة لکه کم ضربة ضربت.

**وكل ما قبله حرف جر اوْ مضاف فمجرور** اوْ هر واحد د كم استفهاميه اوْ كم خبريه نه چه ماقبل د هغه نه حرف جر اوْ يا مضاف وي نو هغه به مجروروي مثال د حرف جر لكه بكم درهمًا اشتريت اوْ مثال د مضاف غلام كم رجلاً ضربت. دلته سوال واردېږي چه هر كله مجرور اوګرځي په حرف جر سره اوْ يا په اضافت سره نو صدارت د ... جواب دادے چه هر كله تقدير د مجرور بي جار با ند ممتنع وو. نو دا كا لكلمة الواحدة اوګرځيدو. اوْ مستحق د صدارت شو.

**والا** يعني كچرته نه وي پس ددې نه فعل نه لفظا اوْ نه تقديرا اوْ نه شبهه فعل اوْ نه مخكښ ددې نه حرف جر اوْ نه مضاف بلكه دے مجرد وي د عوامل لفظيو نه.

**فهو مرفوع** نو دے به مرفوع وي بنا بر ابتدائيت.

**ان لم يكن ظرفًا** كچرته كښ دے ظرف نه وي ځكه كچرته تميز ددې ظرف اوګرځي نو ظرف به اعتبار د متعلق سره جمله وي او جمله صلاحيت دابتدائيت نه لري مثال د كم استفهاميه لكم رجلاً اخوتك اوْ د خبريه مثال لكه كم اخوتك. دلته كښې كم مرفوع دے بنا بر ابتدائيت په نيزد سيبويه اوْ په نزد غير د سيبويه نه دا مرفوع دے بنا بر خبريت.

**وخبرا ان كان ظرفًا** اوْ كچرته ظرف وي نو بيا به خبر وي. لكه كم يوما سفرك په دے مثال كښ كم منصوب دے بنا بر ظرفية ځكه چه كائن مقدر په دې كښې عمل كړيدے نو دا سے به تقدير د عبارت شي كم يومًا كائن سفرك اوْ بيا دا مرفوع اوګرځيدو. ځكه چه دے قائم مقام اوْ نائب مناب شو د متعلق محذوف اوْ په دے كښ صلاحيت د رفع نشته بنا بر ابتدائيت ځكه چه مبتداء خالي وي د عوامل لفظيه نه. **وكذالك** اوْ په مثل د كم وجوه داعراب كښې په شرائط مذكوره سره.

**اسماء الاستفهام والشرط** باقي اسماء استفهام اوْ د شرط دي يعني په نورو اسماء استفهام اوْ د شرط ... دا وجوه اربعه چليږي اوْ جاري كيږي.

زده کړه دا خبره چه اسماء استفهام او شرط من حیث الذات په درے قسمه دی. یو قسم هغه دے چه مشترك دے په مابین د استفهام او د شرط کښ او هغه شپږ دی. مَنْ، مَا، اَیّ، اَیْنَ، اَنّٰی او مَتٰی. دوېم قسم هغه دے چه خاص دے په شرط پورے او هغه إِذَا دے. دریم قسم هغه دے چه خاص دی په استفهام پورے او هغه کیف او ایّان دے. او د حیثیّة دجریان د وجوهِ اربعه نه په دے کښ دا په څلور قسمه دی. وجه د حصر دے په دے څلور قسمه کښ داده چه دا اسماء به خالی نه وی. یا به ظرف وی او یا به غیرظرف وی. که چرته ظرف وی نو بیا به خالی نه وی یا به متضمن وی معنیٰ د استفهام لره او یا به متضمن وی معنیٰ د شرط لره. کچرته متضمن وی معنیٰ د استفهام لره نو جاری کیږی په دے کښ وجوهِ ثلثه د وجوه اربعه نه جر بنا براضافة نصب بنا برظرفیة او رفع بنا بر خبریة. او احتمال د رفع بنا بر ابتدائیة پکښ نشته. ځکه چه رفع بنا برابتدائیة دا خاص ده. په غیر ظرف پورے. او د اقسم خو ظرف دے. او کچرته کښ متضمن وی معنیٰ د شرط لره. نو جاری کیږی په دے کښ دوه وجهین. جرّ بنا براضافة او نصب بنا برظرفیة. او رفع پکښ مطلقًا نه جاری کیږی نه بنا برابتدائیة او نه بنا بر خبریة. هرچه دے عدم رفع بنا بر ابتدائیة نو هغه په دے وجه چه رفع علی الابتدائیة مختص ده په غیر ظرف پورے او دا قسم ظرف دے او هرچه ده عدم رفع بنا برخبریة. نو هغه په دے وجه چه کله دا مرفوع اوکرځی بنا برخبریة نو مابعد ددے به مرفوع وی. بنا بر ابتدائیة حالانکه ما بعد ددے نه فعل دے هغه صلاحیت دا بتدائیة نه لری. او کچرته کښ غیرظرف وی. بیا به خالی نه وی. یا به لازم الاضافت وی یا به نه وی. کچرته وی. نو جاری کیږی په دے کښ وجوه اربعه. جرّ بنا براضافت، نصب بنا برمفعولیة رفع بنا بر ابتدائیة په شرط ددے چه مابعد ددے نه غیرظرف وی. رفع بنا برخبریة په شرط ددے چه ما بعد ددے نه ظرف وی. او کچرته نه وی نو بیا په دے کښ وجوهِ ثلاثه جاری کیږی برابره خبره ده چه متضمن وی معنیٰ د شرط لره یا معنیٰ د استفهام لره. جر بنا بر اضافت، نصب بنا بر مفعولیة، رفع

بنابر ابتدائیة او احتمال یکښې د رفع بنابر خبریة نشته.

**وفی مثل شعر کم عمة لك یا جریر وخالة** او په مثل د دے مصرعے د شعر کښې چه کم عمة لك یا جریر وخالة. ثلثة اوجه. درے وجوهات روا دی مراد په دے ترکیب سره هر هغه ترکیب دے چه هغه احتمال

د کم استفهامیه لری او د کم خبریه هم او د حذف او د ذکر د ممیز.

د لته کښې احتمال د دے خبرے هم دے چه دا وجوه ثلاثه وجاری شی په نفس کم کښې. یو دا چه رفع وی بنابر ابتدائیة کچرته کښې تمیز د دے مذکور وی چه هغه عمة د دے. بیا د دے پس به دا کم خالی نه وی یا به کم خبریه وی یا به کم استفهامیه وی کچرته کم استفهامیه شی نو بیا به عبارة دا سے شی. کم عمةٌ لك یا جریر وخالةٌ او کچرته کم خبریه شی نو عبارة به دا سے شی چه کم عمةٍ لك یا جریر وخالةٍ الخ دوېمه وجه نصب بنابر ظرفیة کچرته تمیز د دے موبن منصوب او منو چه هغه مرةً دے اوس چه کله کم استفهامیه شی نو تقدیر به دا سے شی. کم عمةً لك یا جریر وخالةً. فدعاء قد حلبت علیّ عشاری. نو په دے دوېمه مصرعه کښې به دا سے شی. چه فدعاء کم مرةً. درېمه وجه د نصب بنابر مصدریة کچرته کښې تمیز د دے محذوف وی. چه هغه حلبةً دے. نو کچرته کښې کم استفهامیه وی نو تقدیر د عبارة به دا سے شی کم عمةً لك یا جریر وخالةً. فدعاء کم حلبةً قد حلبت علی عشاری. او که چرته کښې کم خبریه شی نو معنی به دا سے شی چه کم حلبةٍ قد حلبت علی عشاری او دا وجوه ثلثه په تمیز د کم کښې هم جاری کیدېشی یو رفع ده بنابر ابتدائیت کچرته تمیز د کم محذوف وی چه هغه مرةٌ یا حلبةٌ دی نو معنی به دا سے شی بنا په دے تقدیر عمةٌ لك یا جریر وخالةٌ فدعاء کم مرةٌ کچرته کم استفهامیه شی او کم مرةٍ به شی کچرته کم خبریه شی. دوېمه وجه نصب د عمةً کچرته تمیز د کم استفهامیه وو نو معنی به دا سے شی چه کم عمةً لك یا جریر الخ او درېمه وجه جر د عمةٍ هلا کچرته تمیز د کم خبریه شی نو معنی به دا سے شی چه کم عمةٍ لك یا جریر وخالةٍ. ولے اوله توجیه الیق ده د ما سبق سره. ځکه چه بحث په وجوه د اعراب د کم کښې د دے. په خلاف د توجیه ثانی کښې ځکه چه بناء د هغې په حذف د تمیز او په ذکر ده. او هغه عکښې ذکر نه د دے

په دے شعرکښې شاعر فرزدق د جریر هجواؤ مذمت بیانوی. دلته کښې فدعاء دا صفت دے د پارہ د عمة او د خالة په معنی د کوبړ والی. د لاسو د مروند او د پښتو. دلته کښې **سوال** راځی چه مقصود د شاعر هغه مذمت دے. او هغه نه حاصلیږی په فدعاء سره. ځکه چه کیدے شی چه دا عیب په دوی کښې د وجے د کثرت عبادت نه راغلے وی **جواب** دادے چه مراد د شاعر دا دے چه دوی کښې دا عیب د وجے د کثرت خدمت نه پیدا شوے دے یا شاعر دوی ته نسبت د سوء الخلقة کوی. **سوال** دادے چه علی خو صله د پارہ د حلبت نه راځی په دغه وخت کښې بیا معنی کښې فساد راځی. **جواب** دادے چه علی ئے راوړے دے په تضمن د دے سره معنی ثقلت لرہ. او دلته کښې خدمت د مواشیو دا ابلغ دے په مذمت کښې. **سوال** دادے چه ذم خو حاصلیږی په ذکر د عماتو سره نو ذکر د خالاتو ته څه ضرورت دے. **جواب** دادے چه دے کښې اشارہ دہ رزالة د دوی ته په طرفینو کښې یعنی د جانبه د آب او د جانبه د اُم نه په دے کښې رزالة موجود دے **اعتراض** واردیږی چه ذم خو په تقدیر د کم خبریه صحیح کیږی ولے په تقدیر د کم استفهامیه سره نه صحیح کیږی. **جواب** دادے چه ذم په تقدیر د کم خبریه علی سبیل التحقیق دے او په تقدیر د کم استفهامیه علی سبیل التحکم والسخریہ دے.

**وقد یحذف** او کله کله حذف کیږی تمیز د کم استفهامیه یا د کم خبریه **فی مثل کم مالك وکم ضربت** مراد په دے سره هغه ترکیب دے چه په هغے کښې قرینه موجودہ وی په حذف د تمیز باندے او په دے دواړو مثالونو کښې قرینه موجودہ دہ په حذف د تمیز باندے هغه قرینه حالیه دہ. قرینه په کم مالك دا سوال دے د مقدار او د کمیة د مال نه یا اخبار دے په کثرت د مال باندے عرفاً. او بیان د مقدار د مال نه یا اخبار د کثرت د مال نه دا په دراهم او په دنانیرسرہ کیږی عرفاً. نو معلومه شوہ دا خبرہ چه دلته کښې تمیز یا درهما او درهم یا دینارا او دینار دے او قرینه په کم ضربت کښې دادہ چه دا سوال دے د مقدار او د کمیة د ضرباتو نه او یا اخبار دے د کثرت د ضرباتو نه او بیان د مقدار د ضرباتو او یا اخبار

دکثرت د ضربا تو ما کولے شی عرفا په ضربا تو اؤ به مراتو سره . پس معلومه شوه چه تمیز یا ضربةً دے یا ضربۃٍ دے . یا مرّۃً یا مرّۃٍ .

# الظروف

بل قسم د مبنیاتو نه هغه ظروف دی . سوآل وارد یږی چه د لته کښې مخالفت راغلے دے په مابین د اجمال اؤ د تفصیل کښې په دے شان سره چه هلته په اجمال کښې دِ او یُل . چه بعض الظروف اؤ دلته کښې الظروف او وئیل جواب دادے چه دلته کښې الف لام په الظروف کښې عهدی دی . اؤ معهود به دے سره ظروفِ مبنیه دی . یا دا الف لام د پاره د مقصد د بعضو ظروفو لغلی دی . اؤ مراد به ظروفو سره اسم زمان اؤ مکان دی برابره خبره ده چه د هغے ظرفیة معتبر کړے شوے وی اؤکه نه وی . سوآل وارد یږی چه شمیرل د کیف د ظروفو نه نه صحیح کیږی ځکه چه دا اسم د صفة دے اؤ یا حال دے نه اسم زمان یا مکان جواب دادے چه ظروف عام دی حقیقتًا وی یا حکمًا اؤ کیف ظرف دے حکمًا ځکه چه دے محتاج دے متعلق ته لکه ظرف حقیقی . زدا کړه دا خبره چه ظروف جاتر البناء لکه قبل اؤ بعد شو دا به خالی نه وی . یا به دے سره مضاف الیه ذکروی یا به نه وی که چرته مضاف الیه ور سره ذکروی نو دا معرب دے اؤکه نه وی ذکر بلکه حذف وی . نو بیا به خالی نه وی یا به نسیا منسیا وی یا به منوی وی د نسیا منسیا مطلب دا دے چه دا حذف به په لفظ اؤ په نیت دواړو کښې وی . اؤ منوی مطلب دادے چه په لفظ کښې به نه وی ولے په نیت کښې به مراد وی . که نسیا منسیا وی نو معرب پشان د نورو اسماء معربه اؤکه منوی نو بیا به خالی نه وی یا به ور سره د عوض نه وی اؤ یا به بغیر د عوض نه وی که اول وو نو معرب اؤکه ثانی وو نو مبنی .

**منها** | بعض د دغه ظروفو نه مآ هغه ظرف دے . **قطع عن الاضافة** چه قطع کړے شوے وی د اضافت نه چه مضاف الیه حذف کړے شوے وی

په لفظ کښې نه په نیت کښې. کله چې مضاف الیه حذف وي په دواړو کښې نو بیا به معرب وي سره د تنوین نه لکه په دې مصرعه کښې.

ع رُبّ بعدٍ کان خیرا من قبل. او ظروف مقطوعه عن الاضافة ته غایات هم ویلې شي. ځکه چې دا غایة د کلام اوګرځیدو پس د حذف د مضاف الیه نه. او دا به مبني وي په ضمه باندې. هرچه د بناء د دې نو هغه په دې وجه چې د دې مشابهت راغلې دې د حرف سره په احتیاج کښې او هرچه د بنا د دې په ضمه باندې نو هغه په دې وجه چې هرکله د دې نه مضاف الیه حذف شو نو په دې کښې ډیر لوئې نقصان راغې. او د پاره د دغه قوي نقصان د جبیرې ضرورت دې. او اقوی په حرکاتو کښې ضمه ده. په دې وجه دې مبني په ضمه اوګرځیدو.

**کقبلُ وبعدُ** | لکه قبل او بعد شو. لکه په دې قول د باری تعالیٰ کښې لله الامر من قبلُ ومن بعدُ او جائز دې په دغه ظروفو کښې علی سبیل القلة تنوین عوض د مضاف الیه نه لکه په دې شعر د شاعر کښې.

فساغ لی الشراب وکنتُ قبلاً ... اکاد اغص بالماء الفرات.

**واجری مجراها لاغیر ولیس غیر** | او جاری کړے شویدے په مجری د ظروف مقطوعة عن الاضافة لاغیر او لیس غیر په حذف د مضاف الیه کښې او په بناء علی الضم کښې د وجې د مشابهت د دوئ نه په غایاتو پورې هرچه دې پس د لا او د لیس نه هغه په دې چې د لا او د لیس نه بعد غیر کثیر الاستعمال دې. او کثرة استعمال تقاضا د خفت کوی نو تخفیف حاصل کړو شاتو په حذف د مضاف الیه سره.

**وحسبُ** | او دغه شان جاری کړے شوے دے په مجری د ظروف مقطوع الاضافة باندې حسبُ د وجې د مشابهت د دے نه د غیر سره په کثرت استعمال کښې. او په ابهام کښې.

**ومنها حیث** | او بعض د ظروفو نه حیث دے. چې دا راځي د پاره د مکان.

**ولا یضاف الا الی الجملة** | او د دے اضافت نه راځي مګر جملې ته. او دا مبني کړے

شرپه منه بانډ پشانے د غایاتو ځکه چه دے غالب الاضافة دے جملےته اوُاضافة الی الجملة کلا اضافة دے. ځکه چه مضاف جملےته دا په حقیقت کښ مضاف وی مضمون دجملےته. اوُ مضمون د جملے خو دلته کښ ذکرنه دے. اوُ اضافة ئے دمفرد جملےته پشان د قطع داضافت دے. اوُ په وخت د قطع د اضافت کښ ظروف کرځی مبنی۔

**فی الاکثر** یعنی په اکثراستعمالاتوکښ اوُ په استعمال اقل کښ د دهٔ اضافت مفرد ته راتلے شی۔ لکه په دے قول د شاعرکښ ئے۔ اما ترٰی حیث سهیل طالعًا۔ چه کله اضافت د دهٔ مفرد ته اوشی نو په دے قول کښ بیا اختلاف دے۔ بعض وائی چه په دغه صورت کښ هم مبنی د وجے دحمل د اقل نه په اکثر بانډ اوُ بعض نحاة وائی چه معرب دے ځکه چه اصل په اسمار کښ اعراب دے اوُ بله وجه داده چه په دغه وخت کښ په ده کښ علة د بنا نشته۔

**ومنها اذا** بعض د ظروف مبنیه نه اذا دے. برابره خبره ده چه زمانی وی که مکانی وی. وجه د بنائے په حیث کښ ذکرده یعنی د حیث پشان ده. اوُ داراځی د پاره د مستقبل اګرچه داخل وی په فعل ماضی بانډ. ځکه چه داستعمال دپاره د زمانے دازمنه د مستقبل نه چه قطعی وی د وقوع د حدث په هغه کښ په نز د اعتقاد د متکلم. اوُ استعمال دادلیل د وضع دے. اوُ د دے وجه نه غالب ده وقوع دده په کلام د باری تعالیٰ کښ چه علام الغیوب دے ځکه چه هغه په امور آتیه بانډ قطعی طورسره خبردار دے. لکه اذا الشمس کورت. اوُ مراد په استعمال سره استعمال دے علی سبیل الکثرة.

**وفیهامعنی الشرط** اوُ کامنه وی په دے اذا کښ معنی د شرط. چه هغه ترتب د مضمون د جملے دے په مضمون د جملے اُخری بانډ دائے زیل علت د بنا اوګرځیدو. چه دے متضمن دے معنی د حرف شرط لره.

**ولذالك** اوُ د وجے د دے نه چه موجود یږی په دے کښ معنی د شرط.

**اختیربعد ها الفعل** مختاره کرے شویدے بعد د دے نه فعل. ځکه چه د فعل مناسبت د شرط سره شته دے. اوُ بنا په وجه غیر مختاره بانډ اسم د دے نه بعد راتلے شی. د وجه د عدم اصالة نه په شرط کښ.

**وقد تكون للمفاجاة** اوُ كله كله راځي د پاره د مفاجاة اوُ مفاجات ملاقات د يو شي د سره بل شي سره بغير د شعور نه يعني ناڅاپه ملاويدل.

**فيلزم المبتدا بعدها** پس لازمه ده مبتدا پس د دے نه د پاره د فرق په مابين د اذا مفاجاتيه كښې اوُ د شرط كښې. اوُ مراد په لزوم د مبتدا سره غلبه د وقوع د مبتدا ده. زده كړه دا خبره چه په اذا كښې څلور مذهبه دی. يودا چه اذا ظرف د مكان د وقوف د سبع دے. يا ظرف د زمان د وقوف د سبع دے. يا ظرف د پاره د خبر محذوفه اوُ عامل پدے كښې محذوف دے. يا دا ظرف زمان دے چه مضاف دے مابعد ته چه هغه جمله محذوفة الخبر ده. سوال مارا ځي. چه كلمه د اذا هركله مضافه شوه مابعد ته پدے كښې بر خبر محذوف عمل نه كوي. ځكه چه دا خبر د مضاف اليه دے. اوُ دا په مضاف كښې عمل نه كوي. اوُ نه په خرجت كښې د وجه د وجود د فاصل نه چه هغه فاء ده. نودا بلاعامله پاتے شو. جواب دادے چه عامل په دے كښې معنی د مفاجات ده چه هغه فهم كيږي د اذا مفاجاته نه. نو تقدير د عبارة به داسے شي چه خرجت ففاجئت زمان وقوع السبع. سوال دادے چه خرجت فاذا السبع واقف دلته كښې عطف د جملے اسميے راغلے دے. په جملے فعليے باندے. جواب دادے چه ما فاء جزائيه ده عاطفه نه ده.

**ومنها اذ للماضي** اوُ بعض د ظروف مبنيه نه هغه اذ دے. چه كائن دے د پاره د ماضي په غالب استعمال كښې يعني چه موضوع دے د پاره د زمانے د ماضي. اوُ دا مبني دے د هغه وجه نه چه موبز چه حيث كښې ذكر كړيده اوُ يا دا چه د ضع د ده پشان د حرف ده. په ثنائيت كښې. دلته كښې سوال ..... واردیږي چه اذ څنګه راځي د پاره د ماضي، دغه شان د پاره د مضارع هم راځي لكه په دے قول د باري تعالیٰ كښې فسوف يعلمون اذ الاغلال الآية. جواب دادے چه اذ راځي د پاره د ماضي په اعتبار د غالب استعمال سره.

**وقد يقع بعدها جملتان** اوُ كله كله واقع كيږي پس د دے نه دوه جملے. يعني جمله اسميه اوُ جمله فعليه د وجه د عدم اشتمال د دے نه په معنی د شرط باندے چه مقتضي دے د پاره د اختصاص په جملے فعليے پورے اوُ كله كله راځي د پاره د مفاجات. خو دا ډير قليل دے.

**و منها این وانی للمکان استفهاما و شرطا**
او بعض د ظروف مبنیه نه این او انی دے چه کائن دی دپاره د مکان په حال د کون د دے کین چه استفهام وی او که شرط وی.

**ومتی للزمان فیهما**
او متیٰ راځی دپاره د زمان په استفهام او په شرط کبن.

**وایان للزمان استفهامًا**
او ایان راځی دپاره د استفهام د زمانے نه.

**وکیف للحال استفهامًا**
او کیف راځی دپاره د استفهام د حال نه او بنا د دغه ظروفو د وجے د تضمن د دے نه معنی د حرف شرط او استفهام لره. د لته کبن سوال راځی چه کیف کله راځی د پاره د حال نو شمیرل د دؤ د ظروفو نه نه دی صحیح. ځکه چه ظرف خو یا زمان دے یا مکان دے. او کیف راځی د پاره د حال د شی او یا د صفت د شی. جواب دا دے چه دا جاری کړے په مجری د ظروفو باندے ځکه چه دے مؤول دے په تاویل د جار مجرور سره لکه چه ځنګه ظرف مؤول دے په جار مجرور سره.

**ومنها مذ ومنذ**
او بعض د ظروف مبنیه نه مذ او منذ دی وجه د بنا د دوی دا ده چه دا موافق دی د معنه مذ او منذ سره چه کوم د حروف جاره نه دی. او یا دا چه هر واحد د دے دواړو نه متضمن دے معنی د حرف د اضافة لره ځکه چه مذ یوم الجمعة په تاویل د اضافة سره به دا دے شی چه اول مدة زمان الفعل السابق یوم الجمعة او فرق په ما بین د مذ او منذ کبن چه اسمین دی یا حرفین دی ثابت دے لفظاً او معنی دواړه. هر چه دے لفظاً معنه دا چه پس د مذ او منذ چه اسمین وی مرفوع وی او د مذ او منذ چه حرفین دی مجرور. او معنوی فرق دا دے چه دا کله اسمین وی. نو په معنی د اول المدة یا په معنی د جمیع المدة او دا دواړه معنین اسمی دی. او چه کله حرفین وی نو په معنی د من به وی په ماضی کبن چه معنه ابتداء الشیٔ الخاص من الشیٔ الخاص. او یا به په معنی د فی سره په حاضره زمانه او حال کبن. او معنه ظرفیة الشیٔ الخاص للشیٔ الخاص. او هر واحد د دے دواړو نه که ابتداء ده. او که ظرفیة ده معنی حرفی ده.

**بمعنى اول المدة** يعني دى كله كله دا مذ او منذ په معنى د اولے مدے يعني اول مدة زمان الفعل المتقدم عليهما لكه او ئيلے شى ما رأيته مذ يوم الجمعة اى اول مدة زمان عدم روَيتى اياه يوم الجمعة چه كله دا صالح وى د پاره د جواب د متىٰ.

**فيليهما** نو پس راځى به د دے دواړو نه رو ستو بغير د فاصل نه.

**المفرد** مفرد حقيقتاً وى كه حكمًا د حقيقة مثال لكه يوم شو په مثال مذكور كښې او د حكما مثال لكه يومان شو. يا ايام شو. دلته كښې يومان او ايام اگركه مفرد نه دى حقيقتاً ليكن حكمًا مفرد دى ځكه چه ځكښې به دا ملاحظه كړے شى امر واحد بيا به ورباندې حكم د اوليت د مدة لګولے شى ځكه چه اوليت د مدة عبارة دے د امر واحد نه.

**المعرفة** او معرفه به وى او معرفه هم عامه ده، حقيقتاً وى كه حكمًا معرفه به شكه وى. د دے وجه نه چه نشته دے فائده په كوځولو د وخت كښې بجهل د فعل متقدم مه د معنىٰ فى حقيقى مثال لكه يوم الجمعة په مثال مذكوره كښې او د معرفه حكمى مثال لكه چه روستو د دے نه نكره مخصصه ذكرشى دا معرفه حكمى ده.

**وبمعنى جميع المدة** او كله كله وى په معنى د جميع المدة يعني جميع مدة د زمانے د فعل چه صالح وى د پاره د جواب د كم.

**فيليهما المقصود** نو د دے نه روستو به مقصود راځى يعني هغه زمانه چه قصد د بيان د هغې كړے شوے وى.

**بالعدد** په حال د كون د دغې زمانے كښې چه متلبسه وى په عدد سره. [illegible] عدد چه مستغرق وى جميع اجزاء د فعل متقدم مه لره. د پاره د دے چه مطابقت راشى په ما بين د سوال او د جواب كښې او دلته كښې مقصود صفت بحال متعلقه سره او بالعدد جار مجرور متعلق دے په متلبسًا پورے.

**وقد يقع بعدهما المصدر** او كله كله بعد د دے دواړو نه مصدر واقع كيږي لكه ته او وائے ما خرجت مذ ذهابك.

**او الفعل** يا فعل لكه ما خرجت مذ ذهبت. او أنّ يا انّ برابره خبره ده چه مخففه وى كه مشدده وى. لكه ما خرجت من انك ذاهب يا ما خرجت مذ ان ذهبت

**فيقدر** پس مقدر کولے به شي پس د دے دواړو نه.
**زمان** لفظ د زمان **مضاف** چه مضاف به وي يو د دغه اشياء ته دپاره د دے چه صحيح شي حمل د ما بعد په دے باندِ. تقدير به داسے شي. ماخرجتُ من ذ هابك. يعني ما خرجت مذ زمان ذهابك اؤ تقدير د ما خرجت مذ ذهبت داسے شي چه ما خرجت مذ زمان ذهبت. اضافت به په دے صورت کښې جملے ته راشي.
**وهو** اؤ هر واحد د دے دواړو نه **مبتدأ** مبتدا د ه ځکه چه دا دواړه اګرچه نکرتين وي صورة ليکن دوئ معرفتين دی معنیٰ د وجے د وجود د اضافت په معنیٰ د دوئ کښې ځکه چه دا راځي په معنیٰ د اول المدة.
**وخبره ما بعده** اؤ ما بعد د دے به خبر وي. **خلافا للزجاج**. خلاف ثابت دے زجاج لره ځکه چه د هغه په نزد باندِ عکس د دے قول دے، يعنی دا دواړه خبر دی اؤ ما بعد د دوئ نه مبتدا ده. ځکه چه ما بعد د دے نه معرفه ده صورة وله د دے قول ضعيف دے. ځکه چه لازمه نه ده دا خبره چه د دې نه دو ستو معرفه وی لکه مذ يومان کښې سوآل دا دے چه هر کله هر واحد د مذ اؤ د منذ نه مبتداده يا خبر بنا بر اختلاف. نو بيا شمير ل د دوئ د ظروفو نه صحيح کيږی. ځکه چه مبتدا اؤ خبر عمده دی اؤ ظروف فضله دی. جوآب دا دے چه اطلاق د ظرف په دوئ باندِ مجازا دے. په اعتبار د دے سره چه اسمين دی دپاره د زمان يا د مکان.

**ومنها لدیٰ ولدن وقد جاء لَدن ولِدن ولُدْ ولَدْ** دا مختلف لغات په دے کښې راغلی دی اؤ وجه د بنا د دے دا ده چه په دے کښې وضع د بعضو په ځائے د بعضو حروفو راغلے ده اؤ باقي په هغے باندِ حمل کړی شوی دی اؤ دا توول په معنیٰ د عند باندِ دی اؤ فرق په ما بين د دوئ کښې دا دے چه منذ په هغه وخت کښې استعماليږی چه مال حاضر وی اګر که په خزانه کښې وی. اؤ لدیٰ په هغه ځائے کښې استعماليږی چه مال مثلا حاضر وی.

**ومنها قَطّ قَطُّ قُطُّ قِطّ قَطَ** په دے کښې پنځه لغات دی اؤ دا توول **للماضی المنفی** دپاره د فعل ماضی منفی دی. سوآل دا دے چه موصوف د ماضی دا به خالی دی يا به زمان وی يا به فعل وی. يعنی للزمان الماضی اؤ الفعل الماضی

کچرته موصوف ئې فعل وی۔ نو مطلب به دا شی چه قط د اسماء افعال نه دے اؤ په دے باندے څوک هم قائل نه دے۔اؤ کچرته اول شی یعنی زمان ماضی نو صحیح نه دے توصیف د دے په منفی سره. جواب دا دے چه موصوف د دے فعل دے لیکن دلته کښې جار مجرور دا متعلق دی په یستعمل پورے نه په یوضع پورے نو تقدیر د عبارة به داسے شی چه کلها یستعمل لاجل ظرفیة الفعل الماضی المنفی۔ اؤ یا موصوف د دے زمان دے اؤ جار مجرور یعنی ظرف متعلق دے په موضوع پورے. ولے منفی نعت دے د زمان د پاره په اعتبار د متعلق سره نو تقدیر د عبارة به داسے شی چه کلها موضوعة للزمان الماضی المنفی وقوع حدث فیه. اؤ وجه د بنائې دا ده چه په دے کښې بعض وضع دی په وضع د حرف سره. اؤ باقی په هغې باندے محمول دی.

**ومنها عوض** | اؤ بعض د هغې نه عوض دے په فتح د عین اؤ ضمے د ضاد سره. دا په دے کښې مشهور د لغاتو نه دے.

**للمستقبل المنفی** | دا مستعملیږی د پاره د ظرفیة د فعل مستقبل اؤ یا موضوع دے د پاره د زمان مستقبل چه منفی دے وقوع د حدث په دے کښې. وجه د بنائې دا ده چه دے د ظروف مقطوعه نه دے لکه قبلُ اؤ بعدُ شو. اؤ هغه مبنی دی نو دے هم مبنی اوګرځیدو. اؤ غرض د دے نه استغراق د نفی د جمیع ازمنه آتیه دے. لکه لا اراه عوض یعنی لا اراه فی شئ من الازمنة الآتیة.

**والظروف المضافة الی الجملة** | اؤ هغه ظروف چه مضاف وی جملې ته. هرکله چه مصنف فارغ شو د بیان د هغه ظروفو نه چه واجب ده بناء د هغوی نو شروع ئې اوکړه په بیان د هغه ظروفو کښې چه جائز ده بنا د هغوی نو دے وئیل چه والظروف المضافة الخ هغه ظروف چه مضاف وی جملې ته بغیر د واسطے د اذ یا سره د واسطے د اذ نه.

**یجوز بناء ها** | جائز ده بنا د دوی. ځکه چه د دوی اکتساب د بنا کوی د جملې نه جمله چه هغې ته د دوی اضافة شوے وی. اؤ جائز ده دا خبره چه دوی معرب اوګرځی ځکه چه دا استحقاق متحقق دا اعراب دی. اؤ اکتساب د بناء د مضاف الیه نه لازم نه دی اؤ جائز ده بنا د دوی په فتح باندے ځکه چه فتحه اخف الحرکات دے

**وكذالك مثل وغير مع ما وأن وأنّ** اؤ پشان د ظروفو مضافه جملے ته كلمه د مثل اؤ د غير ده چه مستعمل دي سره د مآ اؤ د أنْ اؤ د انّ نه. چه مخفف دي كه مثقل. ځكه چه دوئ مشابهه دي د ظروف مضافه سره په كثرت استعمال اؤ د ابهام كښې لكه قيامي مثل ما قام زيد قيامي مثل ان تقوم قيامي مثل انك تقوم. مثال د غير لكه قيامي غير ما قام زيد قيامي غير ان تقوم يا قيامي غير انك تقوم.

# المعرفة والنكرة

دا خبر دے د مبتدا محذوف اؤ د دے كښې دوه مضافه مقدر دي نو تقدير د عبارة به داسے شي. چه هٰذا باب بيان المعرفة والنكرة.

**المعرفة ما** معرفه دا هغه اسم دے. د دے كښې د "ما" نه تعبير په اسم سره اؤ شو نه په لفظ يا په شي يا په كلمه سره ځكه چه معتبر په تعريفاتو كښې جنس قريب دے اؤ جنس قريب د پاره د معرفے هغه اسم دے. اؤ فصل ترنه خارج شو لكه ضرب چه دا وضع شوے د معنى معين چه هغه حدث خاص دے لكن دا داخل نه دے په جنس كښې په دے وجه نه دے د اخراج د پاره د قيد راوړلو ضرورت نشته

**وضع** چه وضع كړے شوے وي برابره خبره ده، چه وضع كلي وي يا جزئي.

**لشئ بعينه** د پاره د يو شي چه هغه متلبس وي په تعين سره چه ملحوظ وي په لحاظ د معلوميت اؤ معهوديت سره په ما بين د متكلم اؤ د مخاطب كښې په خارج كښې.

وضع په دوه قسمه ده يو خاصه ده او بله عامه ده وضع خاصه اول چه ده يا به ئے تعلق راغلے وي په امر واحد پورے برابره خبره ده چه موضوع له شخصي وي لكه په اعلام شخصيه كښې. يا امر كلي وي لكه په اسماء اجناس كښې يا اعلام جنسيه كښې. لكه أسد اؤ أسامه چه دا دوا ړه موضوعين دي د پاره د مفهوم كلي چه هغه حيوان مفترس دے نو وضع په دے دواړو كښې خاص ده چه تعلق ئے په امر واحد پورے راغلے دے چه هغه مفهوم كلي دے اؤ موضوع له عامه ده. ځكه

چه دا مفهوم کلی صادق دے په افرادِ کثیره باندِ. دوئم هغه چه تعلق ئے په امور متعدده پورے راغلے وی. برابره خبره ده چه موضوع له امر جزئی وی لکه په مضمراتو، اسمائے اشاراتو او موصولاتو کښ یا امر کلی وی لکه په مشتقاتو کښ نو عمومیة او خصوصیة د وضع په اعتبار د تعلق د دے په امر واحد پورے یا امور متعدده پورے او عمومیة د موضوع له یا خصوصیة د هغے ما به اعتبار د کیدلو ده ملحوظ په عموم او په خصوص سره. نو دلته کښ څلور قسمه موجود شول. وضع خاص موضوع له خاص. وضع عام موضوع له عام وضع خاص موضوع له عام وضع عام موضوع له

**وهی** یعنی دا معرفه په استقراء سره په شپږ قسمه ده. **المضمرات** اول قسم مضمرات دی. او دائے مقدم کړل په ټولو معارفو باندِ ځکه چه مضمرات اعرف المعارف دی. وضع په دے کښ عامه ده ځکه چه د دے تعلق په امور متعدده پورے راغلے دے. او موضوع له خاص دے.

**والاعلام** دوئم قسم د معارفو نه اعلام دی. برابره خبره ده چه علم شخصی وی او که علم جنسی وی. علم شخصی لکه مونږ تصور د مفهوم د زید او کړو چه هغه حیوان ناطق دے مع التشخص او وضع د لفظ د زید په مقابله د مفهوم د زید کښ او شوه د حیثیته د معلومیة او معهودیة نه په مابین د متکلم او د مخاطب کښ. او علم جنسی لکه تصور د مفهوم د اسد او شو چه هغه حیوان مفترس دے او لفظ د اسامه په مقابله د دغه مفهوم کښ وضع کړے شی. چه دا معلوم دے په مابین د متکلم او د مخاطب کښ په خارج کښ.

فرق په مابین د اسم جنس او د علم جنس کښ دا دے. چه اسم جنس هغه دے چه وضع شوے وی په مقابله د مفهوم کلی کښ بغیر د معهودیة نه په مابین د متکلم او د مخاطب کښ. لکه لفظ د اسد دے چه وضع شویدے په مقابله د اسد کښ. او په علم جنس کښ معهودیة شرط دے په مابین د متکلم او د مخاطب کښ لکه اسامه شو په اسم جنس باندِ احکام د نکره جاری کیږی. او په علم جنس باندِ احکام د معرفه. په دے وجه باندِ نه داخلیږی الف لام په اسامه باندے.

**والمبهمات** او دریم قسم د معارفو نه هغه مبهمات دی. او هغه اسمائے اشارات

او موصولات دی دوئ ته مبهمات وائی. ځکه چه اسم اشاره بغیر د مشار الیه نه مبهم دے. او دغه شان موصول بغیر د صلے نه مبهم دے. دلته کښې موضوع له خاص دے او وضع عامه ده.

**وماعرف باللام** | څلورم قسم هغه دے چه معرف وی په الف لام سره. برابره خبره ده چه الف لام جنسی وی که استغراقی وی او که عهدی وی سوال دا دے چه مصنف دا سے ولے او نه وئیل چه وما دخلت علیه اللام. جواب دا دے چه بیا پکښې الف لام زائد هم داخلیدل. چه هغه راځی د پاره د تحسین د لفظ.

**والنداء** | او یا معرف دی په نداء سره لکه یارجل شو چه مراد په دے سره معین دی. دے موضوع مے په د وضع کلی سره.

**والمضاف الی احدها** | چه مضاف وی یو د دے امورو مذکوره ته. معنیٰ یعنی په اضافت معنویه سره نه په اضافت لفظیه سره ځکه چه اضافت لفظیه تعریف نه فائده کوی. سوال دا دے. چه بعض د دے امورو مذکوره نه منادی ده او اضافت منادیٰ ته ممتنع دے جواب دا دے چه مراد په احدها سره دا دے چه یمع کونه مضافا الیه او منادیٰ کښې دا صلاحیت نشته. او مضاف الی احدها دا عام دے چه بالذات وی که بالواسطه وی. د بالذات مثال لکه غلام زید او د بالواسطه لکه غلام ابیك.

سوال دا دے چه د مثل او د غیر اضافت چه راشی نو هم تعریف نه فائده کوی. جواب دا دے چه دا حکم سیوا د مثل او د غیر نه دے. ځکه چه په دوئ کښې د وجے د توغل فی الابهام نه په اضافت سره هم تعریف نه راځی.

**العلم ما وضع لشئ بعینه** | علم سره د ټولو قسمو چه لقب دے کنیة دے او اسم محضه دے هغه دے چه وضع کړے شوے وی د پاره د یو شئ معین یعنی چه ملحوظ وی په لحاظ د معهودیة او معلومیة سره په مابین د متکلم او د مخاطب کښې په خارج کښې.

سوال دا دے چه ستا دا تعریف د علم جامع نه شو ځکه افراد ولړا ځکه چه خارج شو ترینه اعلام غالبه ځکه چه تعین په هغې کښې په حسب د غلبے د استعمال سره دے. ځکه چه په دے کښې خو وضع نشته دے. جواب دا دے چه اعلام غالبه داخل دی په تعریف کښې ځکه چه استعمال د مستعملینو په منزله د وضع د واضعینو دے.

نوخلاصه د جواب دا شو چه وضع عامه ده حقيقي وي که حکمي. د حکمي مثال لکه اعلام غالبه سوال دا دے چه علوے ولے خاص کړو په تعريف سره په مابين د ټولو معارفو کښ. جواب دادے چه تعريف د مضمراتو موصولاتو اؤد اسماء اشاراتو هغه خو مخکښ ذکر شوے دے. اؤ معنی د مضاف يو دے اورو ته هغه هم ظاهر دے اؤ معرف باللام اؤمعرف بالنداء داهم د تعريف نه مستغني دی. نو پاتے شو تعريف د علم په دے وجه با نلهٖ دا خاص اوکرځيد و په تعريف سره.

**واعرفها المضمر المتكلم** | اؤ اعرف المعارف په دوي کښ ضمير د متکلم دے ځکه چه په دے کښ التباس نشته دے.

**ثم المخاطب** | بيا ورپسے ضمير د مخاطب دے ځکه چه په بعض احيانوکښ په دے کښ التباس راځي. چه کله تعدد د مخاطبينو راشي. بيا ور پسے په درېم مرتبه کښ ضمير د غائب دے. اؤ مصنفؒ داذکرنه کړو. ځکه چه هر کله د متکلم اؤ مخاطب مرتبه متعينه شوه. نو ددے مرتبه هم معلومه شوه. دلته کښ سوال واردېږي چه څۀ وجه ده چه مصؒ تفاوت بيان کړو. په مابين د اصنافو د مضمراتو کښ. اؤ په نورو معارفو کښ ئے بيان نه کړو. جواب دادے چه په نورو اصنافو د معارفو کښ تفاوت نشته دے سوا د اصنافو د مضاف نه يو دوي ته. ليکن تفاوت د هغوي معلومېږي د مضاف اليه.

**والنكرة ما وضع لشيء لا بعينه** | نکره يو اسم دے چه وضع کړے شوے وي د پاره د يو شي چه نه وي ملحوظ په لحاظ د معلوميت اؤ معهوديت سره په مابين د متکلم اؤ د مخاطب کښ په خارج کښ ما وضع لشيء دا جنس شو نکره اؤ معرفه دواړو پکښ داخل شو. لشيء لا بعينه. دا فصل دے معرفه ترنه خارجه شوه.

**اسماء العدد** | بل قسم د مبني نه هغه اسماء عدد دي. سوال واردېږي چه دا اسماء عدد به خالي نه وي يا به معرب وي يا به مبني وي. که معرب وي نو داخل دي په معرب کښ اؤکه مبني وي نو داخل دي په مبني کښ بيا مستقل ذکرکولو ته ددے څه ضرورت وو. جواب دادے چه ددے څه خاص احکام دي. چه هغه د نورو اسماء د پاره نشته په دے وجه ئے دا خاص کړه بالذکر

**ما وضع لكمية آحاد الاشياء** هغه دي چه وضع شريدي د پاره د مقدار د هرواحد دافرادو د معدودالو نه ـ آحاد عبارة دے د هرواحد نه۔ او كمية د آحادو داعبارة دے د هغه مرتبے نه چه وا قع دلا په جواب د سوا ل د سائل كښ په كم سره۔ او هغه الفاظ چه دال دي په د غه كمياتو با ندِ دے ته اسماء عدد د و ئيلے شي۔ سوال وارديږي چه ستا دا تعريف ما نع اونه گرځيد و د دخول د غير نه او ما خل شو يكښ رجل او رجلا ن ـ منّ، منّان ، ذراعٌ ، ذراعان ـ ځكه چه دا خوهم دلالت كوي په كمية د آحادو د اشيا ؤ با ندِ حالا نكه دا خواسماء عدد نه دي۔ جواب دا دے چه موضوع له د پاره د اسماء عدد د كمية د آحادو د اشيا د دے فقط بغير د دلالت نه په جنسية با ندِ او دا الفاظ دلالت كوي په كمية با ندِ سره د دلا لت نه په جنسية۔

**اصولها** يعني اصول د اسماء عدد چه د هغې نه باقي مشتق كيږي ـ يا په الحاق د علامه د تانيث سره يا په اسقاط د هغې سره يا په تثنيه او په جمع سره يا په تركيب اضافي سره يا په تركيب امتزاجي سره. يا په عطف سره۔

**اثنتا عشرة كلمة** ـ دوولس كلمے دي ـ واحد الى عشرة د واحدة نه ترعشرة پورے **ومائة والف** ـ مائة او الف ـ تقول واحد اثنان په مذكر كښ واحدة اثنتان يا ثنتان ـ په مؤنث كښ دا به تيا سا وي يعني په مذكر كښ به بغير د تاء نه وي ـ او په مؤنث كښ سره د تاء نه ـ وثلثة الى عشرة او د ثلثه نه ترعشرة پورے ـ د پاره د مذكر به په تا سره او د پاره د مؤنث به بغير د تاء نه وي يعني خلاف القياس به وي۔

**لطيفه** يغوا به طالبانو د يو بل نه سوال كولو چه هغه كوم ځائے دے چه سري په كښ پروني او برقع اچوي ـ او ښځے بے پروني او بے برقعو گرځي نوجواب به ئے وركولو ـ چه هغه دا اسماء عدد دي د ثلثه نه ترعشرة پورے ـ چه مذكر د پاره با لتاء دي او د مونث د پاره عدد بغير التاء وي۔

**وثلاث الى عشر** بغير د تاء نه د پاره د فرق په مابين د مذكر او د مؤنث كښ او د دلته كښ د مذكر اعتبار اوكړے شو ـ د وجه سبقيت نه

**احد عشر واثنا عشر** يعني د دواړو جزئين به مذكر وي د پاره د مذكر هرچه دے تذكير د جزء اول هغه بدے چه مركبات فرع د مفرداتو دي او جزء اول به

مفرداتو کښې قیاسي دے نو دغه شان دلته به هم د غسې وي او هرچه د تذکیر د جزء ثاني هغه د پاره د موافقت د جزء ثاني سره په ټولو مرکباتو کښې

**واحدی عشرة واثنتا عشرة وثنتا عشرة** | دا د پاره د مؤنث راځي. په تأنیث د جزئین سره. هرچه دے تأنیث

د جزء اول هغه په دے وجه چه مرکبات فرع د مفرداتو دي. او جزء اول سره مفرداتو کښې قیاسي دے. نو دغه شان دلته هم دے. او هرچه دے تانیث د جزء ثاني نو د پاره د موافقت د جزء ثاني سره په ټولو مرکباتو کښې.

**ثلثة عشر الى تسعة عشر** | دا د پاره د مذکر دي په تانیث د جزء اول سره. او په تذکیر د جزء ثاني سره هرچه دے تانیث

د جزء اول هغه په دے وجه چه مرکبات فرع د مفرداتو دي او اول د دے سره مفرداتو کښې خلاف القیاس دے. نو دغه شان دلته کښې دا سے او کړے شو. او هرچه دے تذکیر د ثاني هغه په دے وجه چه دوه علامتین د تانیث په هغه کښې را نشي چه هغه کالکلمة الواحدة دے. دلته کښې سوال راځي چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په احدی عشرة سره چه په کالکلمة الواحدة کښې دوه علامتین د تانیث راغلي دي. جواب دا دے چه مراد په علامتینو سره هغه دي چه د یو جنس وي او دلته کښې دا نه دي. بیا اعتراض لازمیږي چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په ثنتا عشرة سره ځکه چه په دے علامتین د تانیث د جنس واحد نه راغلي دي. جواب دا دے چه مراد په علامتینو سره دا دے. چه دا به د جنس واحد نه وي. او محض د تأنیث د پاره به وي. او دلته کښې دا بدل دے د یاء نه یعني په ثنتا کښې. بیا په سوال واردیږي چه په اثنتا عشرة کښې علامتین د تانیث دي او محض د پاره د تانیث وي جواب دا دے چه دا محمول دے په ثنتا عشرة . بابه.

**وثلث عشرة الى تسع عشرة للمؤنث** | په تذکیر د جزء اول او په تأنیث د جزء ثاني سره. هرچه دے تذکیر د جزء اول ځکه چه مرکبات فرع د مرکباتو دي او جزء اول په مفرداتو کښې خلاف القیاس دے نو دلته کښې هم خلاف القیاس دے. او هرچه دے تانیث د جزء ثاني نو هغه د وجے د عدم د مانع نه چه هغه التباس دے. التباس رفع شویدے په جزء اول سره.

**وتميم تكسر الشين في المؤنث** او بنو تميم شين له كسره وركوي د پاره د دے چه توالی د اربع فتحاتو رانشي سره د ثقل د ترکيب نه

**والحجازيون يسكنونه** او حجازيين ورله سكون وركوي په مؤنث كښې. هغوئ ثقل د توالی ختموي په سكون سره.

**وعشرون واخواتها فيهما للمذكر والمؤنث.** او قول كوي ماتن په عشرون او د هغې په نظائرو چه هغه عقود دی چه مذکر او په مؤنث کښې بغير د فرق نه. ځکه که چرته فرق کړے نو علامه به يا قبل النون راوړے او يا بعد النون. بنا په اول باندې لازميږی اراده د علامے په وسط کښې حکما او دا روا نه دی. او که چرته بعد النون ئے راوړے نو لازميږی اراده د علامے په کلمه اُخری کښې حقيقتاً او دا صورت هم ناجائز دے. ځکه چه دا نون مشابهه دے د نون د جمع سره او هغه کلمه اُخری ده.

**احد وعشرون** دا راځی د پاره د مذکر په واحد کښې به تغير او شی احد ته.

**احدی وعشرون** د پاره د مؤنث د واحدة نه تغير او شی احدی ته د پاره د تخفيف

**ثم بالعطف بلفظ ما تقدم** پس له هغې به ته وائے او قول به کړے دا سے قول چه متلبس وی د عطف د عقودو سره په مازاد باندې. په حال د کون د مازاد کښې چه کائن وی په صورت د ما تقدم سره يعنی په دے زوائدو کښې به تغير نه کوی.

**الی تسعة وتسعين ومأة والف ومأتان والفان فيهما** يعنی د تسعه نه تر تسعين پورے او په مأة او په الف باندې او دغه شان د دے په تثنيانو باندې په مذکر او مؤنث کښې بغير د فرق نه په مابين د مذکر او د مؤنث کښې. هرچه دے مأة کښې الحاق د علامے د تا نيث. نو په هغې کښې فرق کښې نه تا موجوده ده. اُس چه بله "تا" ورسره ملحقه کړو. نو دا مستکره ښکاری او دا باقی ور باندې محمول دی. طرداً للباب.

**ثم بالعطف** بيا چه کله عدد زيات شی په مأة او الف باندې او په تثنيه د دے باندې په عطف سره يعنی که دا زائد ور باندې عطف کړے او که په زائد باندې ئے عطف کړے او په دے کښې دا دواړه وجے جائز دی ځکه چه عدد کثير ثقيل دے

من حيث المعنیٰ نو جائز شو يکښې دوه استعماله (دوه طريقې د استعمال) د پاره د حصول د خفت متکلو ته پکښې اختيار دے چه کومه يو طريقه اختيار روی.

**على صورة ماتقدم** | په حال د کون د ما زاد کښې چه کا ئنږ په صورة د ماتقدم سره.. بغير د تغير نه.

**وفي ثماني عشرة فتح الياء** | ثماني عشر چه د پاره د مؤنث راځي په دے کښې مختلف اقوال دی فتحه د ياء ځکه چه دا اصل دے په بنا د صدور د اعداد مرکبه کښې. لکه ثلاثة عشر دو دوم قول د سکون د ياء دے لکه چه دا فرمائيلی دی مصنف.

**وجاز اسكانها** | او جائز دے سکون د ياء. ځکه چه دا عدد مرکب دے په دے سبب پکښې ثقل پيدا شويدے. دريم قول د حذف دے يعني چه ياء حذف شي او نون له سکون ورکړے شي لکه چه څنګه فرمائيلی دی مصنف.

**وشذ حذفها بفتح النون** | او شاذ دے حذف د ياء سره د فتح د نون. وجه د شذوذ ئے داده چه دا حذف دے بلا دليل. او څلورم قول دا دے چه حذف د ياء راشي سره د کسرے د نون نه د پاره د دلالت په حذف د ياء باندے. وجه اول اصل ده. دريمه وجه شاذ ده. دويمه او څلورمه په مرتبه متوسطه کښې ده يعني نه شاذ ده او نه اصل.

**ومميز الثلثة الى عشرة مخفوض مجموع لفظاً** | په دے عبارة سره مصنف بيان د تميز د عدد کوی. نو وے فرمائيل چه مميز د ثلاثه نه وا خله تر عشرة پورے دا به مجرور وی. او جمع به وی لفظا وی که معنا د لفظا مثال لکه ثلاثة رجال. او د معنا مثال لکه ثلثة رهط. او دا تميز د دا سے عدد به مخفوض او مجموع په دے وجه باندے وی ځکه چه دا عدد اقل دے او دا کثير الاستعمال دے او کثرت استعمال تقاضا د خفت کوی. نو په اضافت سره په دے کښې تخفيف او کړے شو. د پاره د دے چه تنوين ترنه حذف کړے شی او دا چه هر کله مضاف اليه او ګرځيدو. او مضاف اليه مجرور وی نو دا به هم مجرور وی او هر چه دے کيدل د دے مجموع د پاره د دے چه د معدود مطابقت راشي د عدد سره.

**الا في ثلثمائة الى تسعمائة** | مګر خو مجموع به نه وی تميز د عدد اقل په صفه وخت

**وكان قياسها مآت اومئين** كښې چه تميز د دې لفظ د مأة وي قياس خو دا تقاضا کوله چه تميز دے د جمع راشي په مآت يا په مئين سره د لته کښې په حقيقت کښې ماد فع د سوال د ده سوال راځي چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په ثلثمأة سره. ځکه چه دا عدد اقل دے. او تميز ئے مخفوض مجموع نه دے نو مصنف جواب اوکړو چه إلا في ثلثمأة الخ ځکه چه د مأة د پاره دوه جمع راځي يو په صورة د جمع مذکر سالم کښې او بل په صورة د جمع مؤنث سالم کښې. اس کچرته تميز دے په جمع مذکر سالم سره راولو، نو لازميږي اجتماع د علامتينو د تذکير او د تانيث په هغه ځائے کښې چه هغه كالكلمة الواحدة دے. او دا ناجائز دے او کچرته تميز وړله جمع مؤنث سالمه راولو نو دا اګر که تميز دے ليکن دا هم عدد دے او دے بل تميز غواړي او دا مستکره دے. ځکه چه تميز د عدد نيولے دے په وقوع سره پس د هغه اعدادو نه چه په صورت د جمع مذکر سالم کښې دی. نو مستکره شو وقوع د ده پس د هغه اعدادو نه چه په صورت د جمع مؤنث سالم کښې وی.

**ومميز احد عشر الى تسعة وتسعين منصوب مفردًا** هر کله چه مصنف فارغ شو د بيان د تميز د عدد اقل نه نو شروع ئے اوکړه په تميز د عدد اوسط کښې نو وئيل چه ومميز احد عشر الخ او تميز د احد عشر نه واخله تر تسعة وتسعين پورے منصوب به وی او مفرد به وی هرچه دے نصب هغه په دے وجه چه نصب بنا بر تميز ته محل هغه جر دے بنا بر اضافت او هغه دلته کښې مفقود دے. هرچه دے په مفقود و کښې هغه په دے وجه چه کچرته ته اضافت کوے نو دا نون به يا ساقط کيږی د اضافت د وجے نه او يا به نه ساقطيږی که ساقطيږی نو دا باطل دے ځکه په دا خو نون د جمع مذکر سالم نه دے چه ساقط شی په اضافت سره

اوکه نه نے ساقطوی نو دا نون خو په صورت د جمع مذکر سالم کښې دے
پکار داده چه ساقط شی. نو اضافت بالکلیه ممتنع شو. او هرچه دے په
مرکباتو کښې د پاره ددے چه لازم نه شی جعل د کلماتو ثلثه کلمه
واحده او هر چه دے افراد هغه په دے وجه چه هر کله دے منصوب
او کر حُید و بز دے فضله شو او اصل په فضله کښې قلّت دے. او قلیل
نه وی مگر مفرد.

**ومميز مأة وألف وتثنيتها** او تمیز د عدد اکثر چه مأة او الف دے
او تثنیه ددے دواړو.

**وجمعه** او جمع د الف اُس دلته کښې سوال واردیږی چه جمعها ئے
ولے او نه ویئیل لکه چه ځنګه ئے او ویئیل و تثنیتها. جواب دے چه
جمع د مأة ؤ دا متروک ده په اعدادو کښې

**مخفوض مفرد** مجرور او مفرد به وی، هر چه دے مجرور د وجه د اضافت
د عدد نه تمیز ته. او هر چه دے مفرد د پاره د رعایت
د تعادل د عدد اکثر د عدد اقل سره.

**واذا كان المعدود مؤنثا** هغه وخت کښې چه معدود مؤنث وی او
هغه لفظ چه دال وی په هغے باند هغه مذکر وی

**او بالعكس** یعنی معدود مذکر وی او تعبیر تر نه په لفظ د مؤنث سره کاوشی

**فوجهان** نو په عدد کښې دوه وجې جائز دی. مثال د اوّل چه معدود
مؤنث وی او تعبیر په لفظ د مذکر سره او شی. لکه ثلاثة
اشخص من النساء دلته کښې نساء مؤنث دے او تعبیر تر نه په اشخص سره
شوے دے. نو تانیث د عدد په نظر سره تذکیر د لفظ معبر به ته او تذکیر
د عدد دے په نظر سره تانیث د معنی معدود ته او مثال د ثانی لکه ثلاثة
انفس من الرجال تذکیر د عدد دے په نظر سره تانیث د لفظ معبر به ته

اؤتانیث د عدد دے په نظر سره تذکیر د معنی معدود ته۔

**ولا یمیز واحد واثنان** | او واحد او اثنان سره تمیز نشی ذکرکولے او عدد پرینبودے شی۔

**استغناء بلفظ التمیز عنهما** | د وجے د استغناء نه په لفظ د تمیز سره د واحد او د اثنین ولته سوال واردیږی چه په عبارة د مصؒ کښې تضاد دے ځکه چه د اقول د مصؒ ولا یمیز واحد واثنان د دلالت کوی په دے خبره چه د دوی د پاره تمیز نشته۔ او استغناء بلفظ التمیز نه معلومیږی چه دوی د پاره تمیز شته دے۔ جواب دادے چه دوی د پاره تمیز موجود دے او د لا یمیز واحد واثنان معنی داده چه لا یذکر الواحد والاثنان مع ممیزها۔ یا داچه مراد په تمیز سره صالح وی د پاره د تمیز په تقدیر د ذکر د تمیز سره د داهو سره چه هغه مفرد دے په واحد کښې او مثنیٰ ده په اثنین کښې۔ مثل رجل و رجلان ځکه چه د صیغے د رجل نه وحدة او جنسیة فهم کیږی او د صیغے د رجلان نه تثنیة او جنسیة فهم کیږی نو ذکر د واحد یا د اثنین ته ضرورت نشته۔

**لافادته النص المقصود بالعدد.** | د وجے د افادے د لفظ د تمیز نه تصریح لره په عدد باندے چه هغه مقصود دے پس حاجت نشته دے ذکر د عدد ته ثانیا ځکه چه مقصود په عدد سره هغه دلالت دے په وحدة په تثنیه باندے هغه حاصل شویدے په ذکر د تمیز سره سره د تعین د جنسیت نه - زده کړه دا خبره چه صیغه د اسم فاعل د اسماء عدد نه د استعمال ده په دوه معنو سره یو په معنی د تصیر او بل په معنی د حال۔ اول چه په معنی د مصیّر دے یعنی دے مصیرد ے عدد ا نقص لره د مشتق منه نه ازید په یو مرتبے سره او ابتداء به د دے کیږی د اثنین نه نه د واحد نه ځکه چه د واحد نه تحت عدد نشته حتی چه د واحد د پاره ٭ صیر واحد

اوکرځیږی. او دغه شان اضافت به ئے راځی اقل ته نه مساوی او یا اکثر او اعلیٰ ته. ځکه چه معنی ددے جعل او تصیر دے او دا راځی په اقل کښ نه په اکثر او په مساوی کښ او نه به راځی په ما فوق د عشرة کښ ځکه چه اسم فاعل ددے نه نه راځی. لکه اوو ئیلے ثالث اثنین. یعنی مصیر الاثنین ثلثة. په انضمام ددغه مصیرسرة. او دوئم قسم دلالت کوی په واحد باندِ هغه واحد چه واقع دے په مرتبه کښ هغه مرتبه چه واقع دة پس دعدد نه په هغه غدد باندِ چه هغه مشتق وی ددے اسم فاعل نه او علامه ئے دادة چه ابتداء به اوکړی د واحد نه ځکه چه دے دلالت کوی په مرتبے باندِ او د واحد دپارة هم مرتبه شته. او اضافت د دے مساوی او ما فوق ته هم راځی. او ادنی ته نه راځی، دپارة ددے چه لازم نه کښی کذب او په دغه دوئم صورت کښ تجاوز په عشرة باندِهم جائز دے چه بیان د مرتبے خاص نه دے په مادون ددے پورے.

| او ته به وائے په وخت د اراده د واحد کښ د متعدد | وتقول فی المفرد من المتعدد باعتبار تصیرة الثانی الثانیة الی العاشر والعاشرة لاغیر |
|---|---|

نه په اعتبار د تصییرسرة یعنی چه عدد نه صیغه د اسم فاعل راغلے وی او هغه په معنی د تصییر سرة وی او ابتداء د هغے دثانی نه کیږی په مذکر کښ به وائے چه الثانی او په مؤنث کښ به وائے الثانیة تر العاشر او العاشرة پورے. لاغیر یعنی متجاوز به نه وی د عشرو نه.

# المذكر والمؤنث

چونکه په اسماءِ اعدادو کښې ذکر د مذکر اؤ د مونث راغلے دے په دے وجه باندې مصنفؒ اس مستقل بحث د مذکر اؤ د مؤنث کوی دلته کښې په اجمال کښې ئے مذکر مقدم کړو ځکه چه دے اصل دے. اؤ په تفصیل کښې ئے مؤنث مقدم کړو ځکه چه تعریف د مذکر عدمی دے اؤ د مؤنث وجودی دے اؤ وجودی اشرف دے د عدمی نه.

**المؤنث مافيه** المؤنث داهغه اسم دے چه ثابت وی په دے کښې

**علامة التانيث** علامه د تانيث لفظًا اؤ تقديرًا دغه علامه ملفوظه وی که مقدره. چه ملفوظه وی نوعامه ده حقيقةً وی که حکما د حقيقتًا مثال لکه امرأة اؤ ناقة شو اؤ د حکما مثال لکه عقرب شو ځکه چه حرف رابع په مؤنثاتو سماعیه کښې په منزله د تاء د تانيث دے د دے وجے نه اظهار د تاء د تانيث په دے کښې نه کیږی. په وخت د تصغير کښې د پاره د دے چه اجتماع د نائب اؤ د منوب رانشی تقديرا علامه د تانيث هغه ته وائی چه په لفظ کښې ظاهره نه وی لکه دار شو نار شو قدم اؤ نعل وغیره

**والمذكر بخلافه** اؤ مذکر هغه اسم دے چه هغه متلبس وی بخلاف د دے باندې يعنی علامه د تانيث په دے کښې نه لفظا وی اؤ نه تقديرا.

**وعلامته** اؤ علامه د تانيث **التاء** هغه تاء مدوره ده چه بدلیږی په حالت د وقف کښې په هاء سره اؤ ما قبل به د دے نه مفتوح وی په دے سره تر نه تاء د اخت اؤ تاء د بنت اؤ تاء د مسلمات وغیره خارج شول.

**والألف مقصورة** اوُ الف په حال دكون دده چه مقصوره وى. چه اسم وى لكه سلمٰى چه صفت وى لكه حُبلٰى اوَ **ممدودة** يا په حال د كون ددے الف كبني چه ممدوده وى چه اسم وى لكه صحراء اوُ چه صفت وى لكه حمراء **سوآل** دا وارديږى چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په عصٰى رُحى اوُ ارطٰى اوُ قبعثرىٰ سره حُكه چه په آخر ددے كبنې الف مقصوره دے اوُ مؤنثات نه دى. دغه شان منقوضه شوه په ردار په كساء اوُ په علباء سره حُكه چه آخر ددے كبنې الف ممدوده دے اوُ سره ددے نه د مؤنثا تو نه نه دى. **جوآب** دادے چه مطلق الفِ مقصوره علامه د تانيث نه ده بلكه هغه دے چه زيادت د هغے راغلے وى د پاره د غير الحاق اوُ د پاره د غير تكثير دا بنيه وُ. نو په دے قيد سره ترنه عصٰى اوُ رحى او وتل حُكه چه الف ددوئ زائد نه ده دے بلكه منقلب دے د لام د كلمے نه. اوُ الف د ارطى ترنه خارج شو حُكه چه زيادة د الف دده را غلے دے د پاره د الحاق په حبلٰى پورے. اوُ دغه شان خارج شو الف د قبعثرى حُكه چه دا راغلے دے، د پاره د تكثير دحماسى. اوُ هم دغه شان الف ممدوده مطلقا د پاره د تانيث نه دے راغلے بلكه هغه دے چه پس د هغه نه همزه زائده ده د پاره د غير الحاق راغلے وى لو كسار اوُ ددار ترنه خارج شو حُكه چه همزه په دے كبنې بدل د واوُ نه اوُ د يا نه راغلے دے چه هغه لام د كلمے دے لوُ الف د علباء ترنه خارج شو حُكه چه همزه په دے كبنې د پاره د الحاق ده په قرطاس پورے.

**وهو** اوُ دا اسم مؤنث په دوه قسمه دے يو مؤنث حقيقى بل مؤنث لفظى **فالحقيقى ما** مؤنث حقيقى دا هغه اسم دے **بازائه** چه په مقابله د مدلول د هغه كبنې **ذكر من الحيوان** يو مذكروى د جنس حيوان نه **كامرءة** لكه امرءة شوه **فى مقابلة رجل** په مقابله د رجل كبنې وناقة اوُ ناقه شوه په مقابله د جمل كبنې دا يو مثال د انسان شو اوُ دا بل مثال د لالسنان

نه علاوه د بل حیوان شو سوال وارد یږی چه مصنف داسے ولے او نه ویل
چه ان المؤنث الحقیقی ماله فرج. جواب دادے چه تلفظ کښې کراهیة محسوسیږی
بله وجه دا ده چه خنثیٰ مشکل مذکر دے چه کله علامات د تذکیر پکښې
غالب وی سره ددے نه دے صاحب فرج دے.

**واللفظی بخلافه** یعنی مؤنث لفظی متلبس دے په خلاف ددے باندې چه په
مقابله ددې کښې به مذکر حیوان نه وی بلکه تانیث دده منسوب دے لفظ
ته د وجے د وجود د علامے د تانیث نه په لفظ دده کښې حقیقةً یا حکماً
یا تقدیراً. **کظلمة** د حقیقت مثال لکه ظلمت شو د تقدیراً مثال لکه
**وعین** شو ځکه چه علامه د تانیث په دے کښې مقدره ده دلیل ورباندې
وجود د تاء دے په تصغیر دده کښې ځکه چه تصغیر دده عیینة دے
او د حکماً مثال لکه عقرب شو۔ او دا مثال مصنفؒ ذکر نه کړو. ځکه چه
دا قلیل دے.

**واذا اسند الیه الفعل فبالتاء** او هغه وخت کښې چه اسناد د فعل یا
د شبه فعل او کړے شی دے مؤنث حقیقی ته بالاصاله نه بالواسطة نو
په فعل کښې به تا راوړے کیږی د پاره ددے چه د اول وهلة نه معلومه
شی چه فاعل مؤنث دے. **سوال** دادے چه ستا دا خبره منقوضه شوه
په دے ترکیب سره چه ضرب الیوم امرأة په دے شان سره امرأة مؤنث
دے او سره ددے نه فعل ئے مؤنث نه دے راوړے. **جواب** دادے
چه مراد په اسناد سره اسناد بالاصاله دے بیا **سوال** راځی چه ستا دا
قاعده منقوضه شوه په دے ترکیب سره چه طلع الشمس په دے شان
سره چه دلته کښې اسناد بالاصالة مؤنث ته راغلے دے او سره ددے نه
فعل مؤنث نه دے. **جواب** دادے چه مراد په مؤنث سره مؤنث
حقیقی دے او دلته کښې شمس مؤنث غیر حقیقی دے.

دلته په مرجع د ضمير د اليه كښې اختلاف دے په ما بين د شارح هندی او شارح جامی كښې. شارح هندی وائی چه دا ضمير راجع دے مؤنث حقيقی ته يا ضمير د مؤنث ته ځكه كه چرته دا راجع شی مطلق مؤنث ته نو لازميږی تناقض په عبارت د مصنفؒ كښې چه فبا التاء وجوبًا او بالخيار. او مذهب د شارح جامی دادے چه دا ضمير راجع دے مطلق مؤنث ته ځكه چه بحث په مطلق مؤنث كښې دے او تعريف هم د مطلق مؤنث دے. او بيا عبارة د مصنفؒ بنا په دے تقدير باندے مشتمل دے په تفصيل بانډ بعد الإجمال. او كه چرته ته وائې چه تناقض لازميږی نو زه وايم چه نه لازميږی ځكه چه وانت فی ظاهر الخ په منزله د استثناء دے د دے قاعدے نه ځكه چه مصنفؒ كله ذكر كړه يو قاعدهٔ كليه بيائے بعض افراد د هغے نه مخالف ذكر كړل نو دا په منزله د استثناء او كرځيدل د دے قاعدے كليے نه او بله وجه دا ده چه كله خاص په مقابله د عام كښې راشی. نو مراد په د غه عام سره ما سوئ د دغه خاص د افرادو نه وی.

**وانت فی ظاهر غير الحقيقی بالخيار** په تذكير او په تانيث كښې تا ته اختيار دے چه كله مؤنث غير حقيقی فاعل واقع شوی وی طلع الشمس هم وئيلے شي او طلعت الشمس هم وئيلے شي. او چه كله ئے ظاهر اووے. نو په دے سره احتراز راغے د اسناد د فعل نه ضمير د مؤنث غير حقيقی ته

**وحكم ظاهر الجمع** يعنی حكم د فعل په تذكير او په تانيث كښې چه كله اسناد ئے او شی ظاهر د جمع ته په دے سره احتراز راغے د ضمير د جمع نه **غير الجمع المذكر السالم** مراد جمع مذكر سالم نه ځكه كه چرته دا جمع مذكر سالم وی نو بيا جائز نه دے تانيث د فعل ځكه چه دا اشرف الجموع دے پس جائز نه دے تاويل د دے په مؤنث سره. چه هغه تاويل د جماعة دے. **مطلقًا** برابره خبره ده چه جمع سالمه مؤنثه

وي يا جمع مذكر مكسره دى لكه مؤمنات يا رجال

**حكم ظاهر غير الحقيقي** ددے حکم د مؤنث غیرحقیقي دے چه ظاهر وی په جواز د تذکیر او د تانیث کښ او بله خبره

دا چه جمع په تاویل د جماعة سره مؤنث دہ۔

**وضمير العاقلين** او ضمير د جمع مذكر عاقلين **غير المذكر السالم** سوا د جمع مذکر سالم نه **فعلت وفعلوا** هرچه دے فعلت نو هغه په دے وجه چه جمع په تاویل د جماعة سره مؤنث دے او هرچه دے فعلوا نو هغه په دے وجه چه واو موضوع دے ددے قسم نوع د جمع د پاره دہ۔

**والنساء والايام فعلت وفعلن** او هغه ضمير چه هغه ته اسناد د فعل شوے وی او دا ضمير راجع وی جمع مؤنثے ته برابره خبره ده چه سالمه وی او که مکسره وی۔ **والايام** او دغه شان هغه ضمير چه هغه ته اسناد د فعل شوے وی او دغه ضمير راجع وی جمع د ذكور د غیر عقلاء ته فعلت وفعلن هرچه دے فعلت په نساء کښ ځکه چه جمع په تاویل د جماعة سره مؤنث دے هرچه دے فعلن نو نون موضوع دے د دغه نوع د جمع نه او ایام دا محمول دی په نساء باندې. په دیکښ حمل د عديم العقل راغلے دے په ناقص العقل باندې او بل حمل د ناقص العقل راغلے دے په عديم العقل باندې۔

# المُثَنّٰی

**المثنی مالحق آخرہ** مثنی دا هغه اسم دے چه ملحق وی په آخر د مفرد دهٔ لپاره ددے حیثیت نه چه دا آخر د مفرد د مثنی دے
دلته کښې **سوال** وارد یږی چه دا آخرهٔ ضمیرچه کوم په تعریف کښې دے دا راجع دے مثنی ته نو دا خو لازمیږی اخذ د محدود په حد کښې یا لازمیږی دور او دور باطل دے **جواب** دادے چه کوم مثنی په جانب د معرف کښې دے د هغې نه مراد اصطلاحی دے او کوم چه په جانب د تعریف کښې دے د هغې نه مراد لغوی دے او مثنی په لغت کښې دوکردن ته وئیلے شی او اصطلاحی تعریف ئے مصنف پخپله کړیدے او دلته مونږه په عبارت کښې تقدیر راویستو دپاره د دفع دا اعتراض **اعتراض** دا وارد یږی چه ستا دا تعریف مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو پکښې مفرد ځکه چه دا اسم دے چه ملحق کیږی په آخر د هغه کښې الف یا یاء او نون یعنی لحوق د زوائدو په آخر د مفرد پورے کیږی **جواب** دادے چه دلته په عبارت کښې تقدیر دے. یعنی مالحق آخره مفرده یا لحق په معنی د یکون دے یعنی مایکون آخره الخ او یا دا چه المثنی اسم لحق آخره الف او یاء و نون مع لواحقه او اسمیة د مفرد بغیر د لواحقو نه دے او یا دا چه لحق په معنی د یکون دے.

**الف** الف به وی په حالت رفعی کښې او **او یاء مفتوح ما قبلها** او یا یاء وی په حالت نصبی او جری کښې ماقبل به د هغې نه مفتوح وی. د یاره د فرق په مابین د تثنیه او د جمع کښې دلته کښې **سوال** راځی چه دا فرق خو په عکس سره هم راتلو. نو عکس ئې ولې ونه کړو **جواب** دادے چه تثنیه کثیره ده او فتحه اخف الحرکات ده او کثرت تقاضا د خفت کوی. **ونون** او نون به وی دا به په عوض د حرکة کښې وی یا د تنوین کښې هرځ دے نفس عوض د هغې وجه دا ده چه هغه اسم چه کوم لوعاری وی د بنا نه جائز نه دے خالی کیدل د حرکة یا د تنوین نه. اُس ددے په آخر کښې خو الف دے الخ الف ساکن وضعی دے نه حرکة قبلوی نه تنوین اُس د بعضو په نز با نون دا عوض، دے

دحرکة نه. نهٔ دتنوین نه ځکه چه حرکة ثابت دے سره دالف لام اؤ تنوین سره د الف لام نه نهٔ دے ثابت. اؤ بعضو نحاة وائي چه داعوض دے دتنوین نه ځکه چه ..... دا ساقطیږی په وخت داضافت کښ کیږی ته داعوض وو دحرکة نه لوبیا به نه ساقطیدو اؤ بعض نحاة وائي چه داعوض دے د دواړو نه. ځکه چه تثنیه دافرع دواحد ده اؤ حرکة اؤ تنوین دادواړه په واحد کښ راځي نو په تثنیه کښ به هم راځي سوال دادے چه عرضیة خو په الف کښ مسلم دے ځکه چه دے حرکة اؤ تنوین نه قبلوی اؤ په یا کښ نه دے مسلم ځکه چه یا خو حرکة اؤ تنوین قبلوی جواب دادے چه یا په تثنیه کښ حرف اعرابي دے اؤ دے ساکن وی ابداً۔

**مکسورة** | دا نون به مکسوروی دپاره ددے چه لازم نه شی توالی د اربع فتحا تو په صورة اؤ په حالة رفعی کښ. ځکه چه د الف نه ماقبل فتحه ده اؤ الف قائم مقام دفتحتین دے اؤ چه فتحه دنون شی نو دا به خلور فتحات اوګرځی اؤ حالت نصبی اؤ جری طرداً للباب حمل کړے شو په حالت رفعی باندې

**لِيَدُلَّ** | دپاره ددے چه دلالت اوکړی دا لحوق یعنی الحاق د دے امورو. سوال دادے چه لیدل کښ ضمیر دمفرد دے. اؤ مرجع الف، یاء اؤ نون دی نو داخو مطابقت لا نغے په مابین دراجع اؤ دمرجع کښ جواب دادے چه ضمیر راجع دے لحوق یا الحاق ته۔

**علی ان معه مثله من جنسه** | په دے خبره چه سره ددے مفرد نه په مثل د ده دے په وحدة کښ اؤ دجنسه ددہ نه سوال دادے چه لیدل ضمیر کله راجع شو لحوق ته. اؤ لحوق خو مشتمل دے په لحوق دنون هم اؤ دے خو دلالت نه کوی علی ان معه مثله من جنسه جواب دادے چه دے هم په دے دلالت کوی اؤ کیږی ته داخبره اومنو چه دے په دے دلالت نه کوی نو بیا دا نسبة تغلیبا دے. ځکه چه هر کله په درے امورو کښ دوه امرین دلالت کوی په یو شی باندې نو نسبة د هغه دلالت دریم ته تغلیبا دے. سوال دادے چه مناسب ده داخبره چه مراد و په مثل سره مثل په وحدة اؤ په جنسیة کښ وی نو ذکر د من جنسه مستدرک دے جواب دادے چه مراد په مثل سره دابه خالی نه وی یا به مثل وی په وحدة کښ فقط یا په جنسیة کښ فقط یا په دواړو کښ که په دواړو کښ اراده

دیراوکړو نوبل خارجیږی اوکچرته دوارواړه کړو نو لازمیږی عموم د مشترك نو لازم شو ذکر د من جنبه اوُ معنی د مجانسة دادا چه وی به دادواړه داخل په حقیقة مشترکه کښې . ددغې وجې نه جائزنه دی تثنیه د اسم په اعتبار د معنیین مختلفینو لکه داجائزنه دی چه قرءان اوُ معنی ترینه د حیض اوُ د طهر واخستےشی سوال دادے چه ستا قاعده منقوضه شوه په ابوین اوُ قمرین سره ځکه چه دا تثنیه داسم ده په اعتبار د معنیینو مختلفینو سره حالانکه داجائزه ده جواب دادے چه دا تثنیه دباب د تغلیب نه ده اوُ معنی د تغلیب دادا چه ام مسمی کړےشی په اسم داب سره مجازًا د وجے دقوة د تناسب نه په مابین د دواړو کښې ځکه چه دا دواړه والدین دو لددی اوُ بیا مؤول کړےشی اب په مسمی بالاب سره چه حاصل شی مفهوم مشترك په دواړو کښې چه هغه شرط دے په تثنیه کښې نو دا دواړه په مفهوم کښې متجانس اوګرځیدل مختلفین نه دی ځکه چه معنی د دے مسمیان بالاب شوه

**فالمقصور** پس هغه اسم چه د هغه په آخر کښې الف مقصوره راغلے وی .

**ان کان الفه عن الواو** دا الف به خالی نه وی یا به بدل راغلے وی د واوُ نه بیا دا واوُ عام دے حقیقة وی که حکما . حقیقة لکه عصا شو چه الف د دے بدل دے د واوُ نه اوُ د حکما چه مجهول الاصل وممال لکه الی اوَ هغه ثلاثی وی .

**قلبت واوًا** نو دا الف د دے به بدلیږی په واوُ باندی د پاره د رعایت د اصل حقیقة وی که حکمًا . **وإلاَّ** اوُ کچرته بدل د واوُ نه نهٔ وی راغلے بلکه د یاء نه راغلے وی حقیقة وی که حکمًا حقیقة لکه رحی دا په اصل کښې یاء وه بیا په الف بدله شوې ده اوُ حکما هغه ته وائی چه هغه مجهول الاصل وی لکه متی اوُ یا زیات وی په دریے حروفو باندِ اوُ چه الف ممدوده وی نو بیا به خالی نه وی یا به همزه د هغه اصلی وی یعنی نه زائده وی اوُ نه منقلب د اصلی وی اوُ نهٔ د زائد نه دا به په خپل حالت باندِ وی د وجے د اصالت نه لکه قرءِ .

**وان کانت للتانیث قلبت واوا** اوُ کچرته الف ممدوده د پاره د تانیث وی . بیا به په واوُ باندِ بدلیږی . ځکه چه همزه حرف ثقیل دے د جنس د الف نه نو مستکره دے واقع کیدل د دے په مابین د الفین کښې اوُ واوُ اقرب دے همزې ته د یاء نه .

**والا** اؤ کچرته همزه نه اصلیه وی اؤ نه د یاره د تانیث وی بلکه د یاره د الحاق وی لکه علباء ، یا منقلب وی د واو اؤ د یاء اصلین نه لکه په کساء او په رداء کښې . **فالوجهان** نو په دے کښې دوه وجے روادی یعنې ثبوت د همزه یا قلب د دے چه واؤ دے یعنې ثبوت د همزه ځکه چه دے په مکان د اصلی کښې دے د وجه د الحاق د دے نه په معنه پورے اؤ قلب د دے ځکه چه دے مشابه دے د همزه د تانیث سره په عدم کون د دے کښې اصلیه .

**ویحذف نونه للاضافة** اؤ حذف کیږی نون د مثنٰی د وجه د اضافة نه ځکه چه اضافة تقاضا د اتصال کوی اؤ دا نون د یاره د انفصال راځی . اؤ د دواړو په ما بین کښې تبائن دے .

**وحذفت تاء التانيث في خصيان و اليان** اؤ حذف کولے شی تاء د تانیث په خصیة اؤ په الیة کښې یعنې چه کله د دے الفاظو تثنیه مقصود وی . نو دا تاء به ترحذف کیږی اؤ د دے علاوه په نورو اسماء کښې به نه حذف کیږی . **لشدة اتصالها بالكلمة** اؤ په دے کښې ځکه حذف کیږی چه د وجه د اتصال نه د ایه منزله د مفرد دی په دے عبارة سره مصنف دفع د اعتراض کوی سوال دا دے چه هذا اسم چه متلبس وی په تاء د تانیث سره په وخت د تثنیه کښې د هغے تاء نه حذف کیږی . دا قاعده ستا منقوضه شوه په خصیان اؤ په الیان سره نو مصنف جواب اوکړو چه د حذفت الخ سوال دا دے چه کافیه متن دے اؤ بناء د متن په اختصار ده یکاردا وه چه مصنف ویلی وو ویحذف نونه بالاضافة وتاء التانيث الخ جواب دا دے چه حذف د نون قاعده مستمره ده اؤ حذف د تاء د خلاف القیاس دے .

**المجموع ما دل على احاد مقصودة بحروف مفردة بتغيير ما** دا هغه اسم دے چه دلالت کوی په آحاد مقصوده باندې په حروف مفرده سره په یو نوع تغییر سره برابره خبره ده چه دا تغییر زیادة سره وی اؤ که په نقصان سره اؤ که په اختلاف د حرکاتو اؤ سکناتو سره وی مثال د زیادة لکه رجال مثال د نقصان لکه طلبة او اختلاف د حرکاتو اؤ سکناتو عام دے حقیقة وی لکه اُسدٌ اؤ حکما لکه فلكٌ ځکه چه ضمه د دے کله فرض کړے شی په شان

د ضمے د تُقُل ۔ نو دا به مفرد وی ۔ اوّ په هغه وخت کښې چه فرض کړے شی پېښان د ضمے د اُسد نو دا به جمع وی ۔ دلته کښې ماعبارة دے د اسم نه او په دے کښې اشاره ده دے خبرے ته چه تثنیه او جمعیة خاص وی په اسم پورے ۔ او په فعل کښې تثنیه او جمعیة په اعتبار د فاعل سره دے ۔ او فاعل اسم دے سوال دادے چه تعریف د جمع دا مانع او نه ګرځیدو د د دخول د غیرنه او داخل شو یکښې اسم مستغرق لکه ان الانسان لفی خسر لانه دل علی احاد ۔ جواب دادے چه مراد په دلالت سره دلالت دے په جمله آحادو ۔ او په اسم مستغرق کښې دلالت په سبیلے د انفراد سره دے ۔ او د غه شان دلالت په کل الناس او په کل القوم کښې حاصل دے د مضاف الیه نه نه د نفس اسم نه ۔

په هر یو تعریف کښې لابدی دی ده ذ جنس او د فصل نه په تعریف د مجموع کښې ما دل علی آحاد د جنس دے جمع اسم جمع اسم عدد او اسم جنس ټولو له شامل دے ۔ اسم جنس اګرچه په آحادو باندِ وضعاً دلالت نه کوی لیکن استعمالاً دلالت کوی بیا دا اسم جنس به خالی نه وی یا به مقصود په هغے سره ماهیت وی او یا به افراد وی کچرته مقصود ماهیت وی نو دا خارج شو په مقصود ة سره او کچرته مقصود افراد وی نو هغه خارج وی بحروف مفردة سره او د غه شان اسم جمع او اسم عدد تر نه خارج شو ځکه چه د هغے د پاره مفرد نشته ۔ دے نه معلومه شوه چه تمرٌ او رکبٌ جمع نه دی په صحیح قول باندِ بلکه اسم جنس دی او ثانی اسم جمع دے ۔ او فرق په دواړو کښې دادے چه د اسم جنس اطلاق په واحد او په اثنین باندِ وضعاً واقع کیږی او د اسم جمع اطلاق دا سے نه دے وضعاً سوال دادے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په لفظ د کلم باندِ ځکه چه دا اسم جنس دے ۔ ولے بیا هم دده اطلاق په کلمه او یا کلمتین باندِ نه کیږی ۔ **جواب** دادے چه دلالت نه مراد دلالت په اعتبار د اصل وضع سره دے ۔ او په اعتبار د اصل وضع سره دوئ دلالت په دے کوی او په اعتبار د استعمال سره دوئ دلالت په دے نه کوی ولے استعمال له اعتبار نشته ۔

**وهو صحیح ومکسر** او دا جمع په دوه قسمه ده یو صحیح ده او بل مکسر او وجه د حصر ئے داده ۔ چه دا جمع به خالی نه وی یا به بنا د مفرد پکښې سالمه وی او یا به نه وی ۔ که سالمه وی نو جمع صحیح او که نه وی نو مکسر انکسار عام دے حقیقة وی که حکما د حکما مثال لکه فلک

**فالصحیح لمذکر ولمؤنث** | جمع صحیح د مذکر نه هم راځي او د مؤنث نه هم راځي لکه جمع مؤنث سالمه جمع مذکر سالمه۔

**فالصحیح المذکر** | پس جمع سالم د پاره د مذکر

**مالحق آخره واو مضموم ما قبلها او یاء مکسور ما قبلها ونون مفتوحة**

داهغه اسم دے چه ملحق شوی وی د آخره مفرد د ده پورے واؤ چه ماقبل ترینه مضموم وی په حالت رفعی کښې یا یاء وی چه ما قبل ترینه مکسور وی (په حالت نصبی کښې او په حالت جری کښې) او ورو ستو به ترینه نون مفتوحه وی د پاره د تعادل۔

**لیدل** د پاره د دے چه دالحوق دیاء او د واؤ دلالت او کړی په دے

**علی ان معه اکثر منه** | چه دے اسم سره نور هم دی د جنس د ده نه سوال دا دے چه اکثر صیغه د اسم تفضیل ده او دا ثابتوی ثبوت د اصل فعل په مفضل علیه کښې او دلته کښې په واحد کښې کثرة نشته دے۔ جواب دا دے چه ثبوت د اصل فعل عام دے چه حقیقتاً وی او که اعتباراً او دلته کښې اګر که حقیقتاً نشته دے لیکن اعتباراً شته دے۔ لکه و سُئِلَ شئ فلان افقه من الحمار۔

**فان کان آخره یاء قبلها کسرة** | کچیرته په آخره د هغه کښې یاء وی چه د هغې نه ماقبل کسره وی۔ **حذفت** نو دا کسره به حذف کیږی د وجے د التقاء د ساکنینو نه۔ چه هغه یاء ده او واؤ دے **مثل قاضون** دلته کښې به واؤ او په یاء کښې التقاء د ساکنینو راغلے ده۔

**وان کان آخره** | او کچیرته په آخره د هغه اسم کښې چه د هغې جمع مقصد وی مقصوره الف مقصوره وی۔ **حذفت الالف** نو دا الف به حذف کیږے شی د وجے د التقاء د ساکنینو نه۔

**وبقی ما قبلها مفتوحا** | او باقی به پاتے شی ماقبل د دے نه مفتوح د پاره د دے چه دلالت او کړی په دے خبره چه دلته کښې الف حذف شوید ے **مثل مصطفون** د دے مفرد مصطفٰی دے په آخر کښې الف مقصوره دے دلته کښې التقاء د ساکنینو راغلو په مابین د الف او د واؤ کښې الف ترینه حذف کړے شو او په فاء باندی فتحه برحال خود پریخودے شوه چه دلالت او کړی په حذف

دالف باندې.

**وشرطه إن كان اسمًا فمذكر علم يعقل**

يعنې شرط هذا النوع من الجموع دا دے چه په دے كښې ذكورة وي علمية وي او عقل وي. ځكه چه دا نوع د جموعو اشرف انواع الجموع دے. ځكه چه بناء د واحد په دېكښې سالمه دے او مذكر عاقل اشرف دے د غيرنه. نو اشرف له موزون اشرف وركړو. دلته كښې سوال واردېږي چه شرطه مبتداء دے او مذكر ورله خبر دے او خبر محمول وي په مبتداء باندې نو دلته كښې لا زمېږي حمل د ذات په وصف باندې نو دا حمل نه دے صحيح؟ جواب دادے چه دا موول دے په تاويل د كون سره يعنې كونه مذكرًا سوال دادے چه توصيف د علم په عاقل سره نه صحيح كېږي ځكه چه مدار د توصيف د شي په مشتق باندې قيام د مبداء د دغه مشتق دے په دغه شي پورے او عقل خو قائم نه دے په علم پورے. جواب دادے چه توصيف د علم په عاقل پورے په اعتبار د مسمّٰى سره دے او عقل قائم دے په مسمّٰى د دغه علم پورے او مراد په مذكر سره هغه دے چه مجرد وي د تاء نه برابره خبره ده چه ملفوظه وي كه مقدره وي او په انكان اسمًا كښې مراد د اسم نه اسم ذاتي دے. **وان كان صفة** او هغه اسم چه د هغه د جمعيت اراده كړے شوې وي هغه اسم صفتي دے. **فمذكر يعقل** چه هغه د مذكر عاقل وي ځكه چه جمع مذكر سالم اشرف الجموع ده او دغه صفت په تعدد صفاتو كښې اشرف دے نو اشرف له موزون اشرف وركړو د پاره د مناسبت

**وان لا يكون افعل فعلاء**

او بل عدمي شرط ورله دادے چه دا اسم صفتي د اسم تفضيل نه وي هغه چه مؤنث ئے په وزن د فعلاء راځي لكه احمر حمراء ځكه چه افعل فعلاء هغه په دے جمع باندې جمع كېږي لكه افضلون نو كچرته كښې افعل فعلاء هم په دے وزن جمع شي نو التباس به راشي په مابين د افعل كښې چه د پاره د تفضيل كښې او په مابين د افعل صفتي كښې. سوال چه التباس خو په عكس سره هم دفع كيدو نو عكس د ولې او نكړو. جواب دادے چه افعل تفضيل اصل دے په نسبت سره افعل صفتي ته ځكه چه دا كامل دے په دلالت كښې په معنى وصفي كښې.

**و لا فعلان فعلیٰ مثل سکران سکریٰ** اوٌ بل داچه داد وزن د فعلان نه وی چه مؤنث ئے فعلیٰ راځی لکه سکران سکریٰ. ځکه چه فعلان چه مؤنث ئے فعلانة راځی. هغه په دے جمع باندے جمع کیږی نو ګرته دے جمع هم دا راشی نو لازم به شی التباس. **سوال** دا دے چه دا التباس خو دفع کیږی په عکس سره هم **جواب** دا دے چه عکس نه شی کیدے ځکه چه فعلان فعلانة اصل دے په نسبت سره فعلان فعلیٰ ته. ځکه چه فرق په دے کښې په تا ء سره دے او دا موضوع ده د پاره د فرق.

**ولا مستویا فیه** او نه به مستوی وی په دے وصف کښې مذکر مع المؤنث سره د مؤنث نه **مثل جریح و صبور** په دے کښې مذکر او مؤنث برابر وی لکه و یلے شی. رجل صبور امرءة صبور رجل جریح امرءة جریح. اس دے په جمع کښې مونږ جریحون یا صبورون نه شو ویلے. او نه صبورات او جریحات و یلے شو ځکه چه هر کله دا صیغے خاص نه دی په مذکر پورے او یا په مؤنث پورے نو مناسب نه ده دا خبره چه مونږ ئے یو پورے مخصوص کړو.

**و یحذف نونه** او د دے نون به حذف کیږی د وجے د هغے نه چه مخکښې ئے د ذکر شوه دلته کښې **سوال** واردیږی چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په دے چه ارضین جمع دا رض ده او مؤنث دے او سنین جمع د سنة ده او دا هم مؤنث دے. بیا هم جمع ئے په واو نون او په یا نون سره راځی نو مه" **جواب** او کړو **و قد شذ نحو سنین وارضین** چه دا شاذ دی لکه چه ځکه جمع د مذکر په الف او په تاسره شاذ ده.

**المؤنث ما لحق آخره الف وتاء** جمع مؤنث سالم هغه ده چه د هغے په آخر د مفرد پورے الف او تاء ملحق وی **وشرطه** او شرط د دغه اسم چه هغه جمع کیږی په الف او په تاء سره **ان کان صفة** که چرته دغه اسم صفتی وی **وله مذکر** او حال دا دے چه د ده دپاره مذکر دی. **فان یکون مذکره بالواو والنون** پس وی به مذکر د دے مؤنث یاد دے اسم متلبس په واو او په نون سره دپاره د دے چه فرع موافق شی د اصل سره او مزیة د فرع په اصل باندي رانه شي.

**وان لم یکن له مذکر** | او که چرته د دے اسم دپاره مذکر نه وی **فان لا یکون مجردا** نو بیا شرط ورله وادے چه دے د مجرد عن التاء نروی ځکه که چرته دا سے قسم اسم جمع شی په الف او په تا سره نو بیا به ئے التباس راشی د ذی التاء سره **کحائض** لکه حائض چه دا اسم مجرد دے د تاء نه د دے جمع حائضات نه راځی بلکه حوائض راځی. **سوال** دادے چه عکس اوکړه په دے شان سره چه جمع د حائض حائضات راشی او جمع د حائضة د حوائض راشی - **جواب** دادے. چه په کوم اسم کښی تاء صراحة موجوده ده هغه د دے خبرے ډیره لائقه ده چه په جمع د هغې کښی د تاء راشی -

**والا جمع مطلقا** | او که چرته داسے نه وی نو بیا به مطلقا جمع کیږی یعنی بغیر د څه شرط نه ځکه چه جمع مؤنث سالمه په اسم د ذات د مؤنث کښی سماعی ده. نو په دے باندی پوهے نه شی قیاس کیدلے پس و یُلے شی هندات وغیرها

**جمع التکسیر ما تغیر بناء واحده الخ** | جمع تکسیر یا جمع مکسره هغه اسم دے چه بناء د واحد یکښی متغیره وی. او دا تغیر عام دے حقیقة وی که تقدیرا. حقیقة مثال ظاهر دے او هر چه دے تقدیرا لکه فلک کښی. **سوال** دادے چه ستا دا تعریف مانع او نه ګرځید و د دخول دغیرنه ځکه جمع سالمه یکښی داخله شوه ځکه چه په هغې کښی خو هم بناء د مفرد متغیره شوے وی. **جواب** دادے چه مراد په تغیر سره تغیر دے په نفس مفرد کښی بیا **سوال** واردیږی چه ستا دا تعریف مانع نه شو د دخول د غیرنه او داخل شو یکښی مثلاً مُصطفون یا معلون مثلاً ځکه چه دوئ کښی تغیر راغلے دے په اعتبار د ذات سره - **جواب** دادے چه مراد په تغیر سره هغه تغیر دے چه هغه دپاره د حصول د جمعیة وی او په دے اسماؤ کښی تغیر راغلے دے پس د حصول د جمعیة نه. **کرجال وافراس** لکه رجال چه مفرد د ئے رجل دے او یا افراس چه جمع د فرس ده. **جمع القلة** په دے مصنف تقسیم د جمع کوی قسمین نه چه یو جمع قلت ده او بل جمع کثرت ده. د جمع قلت اطلاق د ثلاثه نه واخلے تر عشره دے. **کا فعل** لکه وزن د افعل دے چه په وزن باندے افلس راځی جمع د فلس ده **وافعال** لکه افراس شو چه جمع د فرس ده. **وافعلة** وزن د افعلة دے لکه ارغفة جمع د رغیف ده (ورے ته ډوډئ ته و یلے شی)-

**وفعلة** وزن دفعلة دے لکه غلمة شو چه جمع د غلام ده **والصحيح** يعني ابنيه د جمع قلت دا څلور دی او دد ے سره جمع سالمه **وما عدا ذلك جمع كثرة** او دد ے علاوه بيا نور ے صيغ د جمع هغه جمع كثرت ده ۔ جمع كثرة هغه ته وائي چه اطلاق ئے د ثلاثه يا د عشرة نه وا خلے تر مالا نهايه له پور ے وی ۔ او كله دا دواړه جمع په ځائے ديو بل استعماليږی ۔

**المصدر اسم للحدث الجاری علی الفعل** مصدر اسم د ے د هغه حدث چه جاری وی په فعل باندے مراد په حدث سره هغه د ے چه قائم بالغير وی ۔ برابره خبره ده چه صادر وی د غير نه او يا نه وی چه صادر وی د غير نه لکه ضرب او اكل شو او چه نه وی لکه طول او قصر شو او جاری وی په فعل باند ے مطلب دا د ے چه دا به را ځی پس د اشتقاقه د فعل د ده نه ډيا ره د تاكيد د فعل يا د پا ره د بيان د نوع يا د پا ره د بيا ن د عدد سوال دا د ے چه مكښې خو مفعول مطلق بيان شو يد ے نو دلته كښې د مصدر د تعريف د ذكر كولو ضرورت نشته د ے ځكه چه مفعول مطلق او مصدر يو شئے د ے جواب دا د ے چه مفعول مطلق او په مصدر كښې فرق د ے مصدر هغه ته وائی چه هغه لره به فعل من لفظه وی او په مفعول مطلق كښې دا شرط نشته

**وهو من الثلاثی المجرد سماع** او د مصدر اوزان د ثلاثی مجرد نه سماعی دی ۔ سماع به يا په تاويل د سماعی سره وا خلو يا په تاويل د مسموع سره چه اوزان ئے ۳۲ ۔ يا ۳۴ دی ۔ لکه چه په علم صيغه كښې ذكر دی ۔

**ومن غيره قياس** يعني د ثلاثی مجرد نه علاوه نور اوزان د مصدر هغه قياسی دی قياس به تاويل د قياسی يا د ذو قياس سره وا خلو ۔ لکه افعال تفعيل مفاعله تفاعل يا تفعل وغيره يعني د مزيد مصادر ۔ **ويعمل عمل فعله** او دا مصدر د ے عمل كوی پشان د عمل د فعل خپل يعني كچرته دا مصدر د فعل لازم نه وی ۔ نو د ے به صرف عمل د رفع كوی په فاعل كښې او كه دا د فعل متعدی نه وی نو بيا به عمل د رفع كوی په فاعل كښې او عمل د نصب به كوی په مفعول كښې ۔ لکه اعجبنی قيام زيد او اعجبنی ضرب زيد عمرًا ۔ **ماضيا وغيره** دا حال واقع شو يد ے يعني حال كښې ما ضيا وغيره سره كان بمعنی الماضی لکه اذكرضربی امس زيدًا او غير الماضی چه يا حال وی او يا استقبال

لکه ضربي زيدا الآن یا ضربي زيدا غدا شديد. ځکه چه عمل دده د دوه وجهو د مناسبت د اشتقاق نه دے نه د وجه د مشابهت نه په دے کښې اشتراط د زمان نشته دے.

**اذا لم یکن مفعولا مطلقا ولا یتقدم معموله علیه** په هغه وخت کښې چه دے مفعول مطلق نه وی واقع شوے چه کله دے مفعول مطلق واقع شی نو په دغه وخت کښې به عمل د فعل کوی ځکه چه فعل قوی دے او مصدر ضعیف دے نو په وخت د وجود د اقوی کښې ضعیف عمل نشی کولے د عدم تقدیم وجه دا ده چه مصدر په حیز د عمل کښې دے مؤول دے په تاویل د فعل سره د أنْ نه. أنْ موصول حرفی دے او ما بعد د دے نه صله ده او تقدیم د صلے په موصول باندې ممتنع دے. نو دغه رنګ تقدیم د معمول د صلے په موصول باندې په طریقه اولیٰ سره ممتنع دے. **ولا یضمر فیه** یعنی لا یضمر فاعله ځکه چه که چرته په مفرد کښې اضمار کوو نو بیا به په تثنیه او په مجموع کښې هم اضمار کوو د وجه د قیاس نه په مفرد باندې. بیا په دغه صورت کښې اجتماع د تثنیتین او د جمعین راځی لوبه په نظر سره مصدر ته نشی او بله په په نظر سره فاعل ته شی او هر چه دے تثنیة او جمعیة په افعالو کښې نو دا په اعتبار د فاعل سره دے ولا یلزم ذکر الفاعل او لازم نه دے د مصدر سره ذکر د فاعل نه مضمرًا او نه مظهرًا ځکه چه نسبت الی فاعل ما غیر ماخوذ دے په مفهوم د مصدر کښې فلا یتوقف تصور مفهومه علیه. **ویجوز اضافته الی الفاعل** او جائز دے اضافت د مصدر فاعل ته لکه اعجبني دق القصار الثوب لکه چه څنګه اسناد د فعل او شی فاعل ته **وقد یضاف الی المفعول** او کله کله اضافت د مصدر مفعول ته او شی مثلاً ضرب اللص الجلادُ لکه اسناد د فعل چه مفعول ته او شی اسنا د مصدر فاعل ته د حقیقت دے او مفعول ته مجاز دے او حمل د کلام په حقیقة باندې دا اولیٰ دے د حمل ددې نه په مجاز باندې.

**واعماله باللام قلیل** او اعمال د مصدر هغه مصدر چه معرف باللام وی دا قلیل دے ځکه چه مصدر په حین د عمل کښې دے مؤول دے په تاویل د ان سره د فعل نه او د خول د لام په فعل باندې ممتنع دے سوال دا دے چه هر کله په فعل باندې د خول د لام ممتنع دے. نو په مصدر باندې هم په حین د عمل کښې عمل د لام ممتنع شی او ته خو وائے چه قلیل دے نه ممتنع. جواب دا دے چه هغه

دے په مابين د نفس شى کښ اؤ د عامل بالتشى کښ لکه په دے قول کښ چه لا يحب الله الجهر بالسوء **وان كان مطلقا** اؤ کچرته دا مصدر مفعول مطلق وى اؤ فعل د دهٔ حذف شوے نه وى په حذف وجوبى سره **فالعمل للفعل** نو بيا به عمل د فعل وى د پاره د دے چه لوزم نه شى اعمال د ضعيف سره د وجود د قوى نه **وان كان بدلا منه** اؤ که چرته دا مفعول مطلق بدل راغلے وى د فعل نه يعنى فعل حذف شوے وى په حذف وجوبى سره اؤ مصدر د هغه په ځائے اودريدلے وى **فوجهان** نو په دغه صورت کښ دوه وجے جائز دى اعمال د فعل د وجے د اصالة نه او اعمال د مصدر د وجے د نيابت نه اؤ دا دواړه وجے ځکه جائز دى په دے مقام کښ چه مصدر قوى دے من حيث الذكر اؤ ضعيف دے من حيث الفرعية اؤ فعل قوى دے من حيث الاصالة اؤ ضعيف دے من حيث الحذف . نو دواړو حيثيتونه برابر دى

**فائده** د لته کښ عمل د مصدر په قسم اول کښ اظهر اؤ اکثر دے .

**اسم الفاعل** اسم فاعل چه دے **ما** دا هغه اسم دے **اشتق من فعل** چه مشتق وى د فعل نه **لمن قام به** د پاره د هغه ذات چه قائم وى په هغه پورے برابره خبره ده چه صادر وى ترڅو که نه وى چه صادر وى لکه ضرب اؤ صادر نه وى لکه طال **بمعنى الحدوث** په معنى د حدوث سره نه په طريقه د ثبوت سره به هر يو تعريف کښ لا بدى دے د جنس اؤ د فصل نه په تعريف د اسم فاعل کښ ما اشتق من فعل جنس دے اسم فاعل اسم مفعول اسم تفضيل اؤ صفت مشبهه ټول پکښ داخل شو - لمن قام به يو فصل دے په دے سره ترے نه اسم مفعول خارج شو اؤ دا خو ظاهر دے ځکه چه اسم مفعول لمن وقع عليه د پاره راځى اؤ په دے سره ترے نه اسم تفضيل هم خارج شو ځکه چه په هغے کښ من حيث الزيادة قيد معتبر دے اؤ چه بمعنى الحدوث ئے اووے په دے سره صفت مشبهه خارجه شوه ځکه چه په هغے کښ ثبوت دے حدوث نه دے يعنى معنى مصدرى پکښ په طريقه د ثبوت وى نه د حدوث

**سوال** دا دے چه ستا دا تعريف جامع نه شو ځکه دا فراد دواړه اؤ خارجه شوے ترے نه صيغه د مبالغے ځکه چه موضوع له د صيغے د مبالغے هم لمن قام به مع الزيادة دے **جواب** دلته چه کچرته صيغه د مبالغے خارجه شوه نو په دے کښ څه نقصان نشته دے ځکه چه مصنف اوزان د اسم فاعل ذکر کړيدى چه هغه محصور دى او صيغے د مبالغے په دے اوزانو

باندِ نه دی . اؤ یا داچه احکام د مبالغې په مثل داحکامو داسم فاعل دی . اؤ مثل د شئ غیر د شی نه وی عین نه وی

**وصیغته من الثلاثی علی فاعل الخ** اؤ صیغه د اسم فاعل د ثلاثی مجردنه په وزن دفاعل ده . **ومن غیره علی صیغة المضارع بمیم مضمومة وکسرما قبل الاٰخر** اؤ د غیر ثلاثی مجردونه به راځی صیغه داسم فاعل په صیغې د مضارع سره خو په ځائے د حرف مضارعة به میم مضمومه وی . اؤ ما قبل آخر حرف به مکسور دی . **نحو مدخل و مستخرج** مدخل صیغه د اسم فاعل ده د باب افعال نه دد ے مضارع یُدخِلُ دے . حرف مضارعة په ځائے باندِ میم مضمومه راوړے شویدے اؤ دلته کښ صرف حرف بدل شویدے او حرکت نه دے بدل شوے اؤ مستخرج داد باب استفعال نه صیغه د اسم فاعل ده د یستخرج نه جوړ شویدے دلته کښ حرف هم بدل شویدے . اؤ حرکة هم بدل دے ځکه چه دے کښ حرف مضارعة مفتوح دے اؤ چه حرکة د ما قبل آخر بدل شوے وی نکه متقابل ځکه چه دادیتقابل نه جوړ یے چه په مضارع کښ حرکة د ما قبل آخر مفتوح دے اؤ په صیغې د اسم فاعل کښ مکسور دے

**ویعمل عمل فعله بشرط معنی الحال والاستقبال** او اسم فاعل عمل کوی د فعل خپل چه د کوم فعل نه دے مشتق دے لازم وی که متعدی مقدم وی که مؤخر په حال د کون ده کښ چه دے به متلبس وی په شرط د کون ده چه دے به په معنی د حال یا د استقبال وی ځکه چه عمل د اسم فاعل دوجے د مشابهت نه دے د مضارع سره . اؤ مضارع خپله معنی د حال اؤ د استقبال دواړو راځی . نو دے به هم هله عمل کوی چه معنی د حال اؤ د استقبال وی . د یا نه د دے چه مخالفت رانشی دلته **سوال** راځی چه ته خو وائے چه دے به په معنی د حال یا د استقبال وی هله به عمل کوی دا خبره ستا منقوضه شوه په دے ترکیب سره چه وکلبهم باسط ذراعیه بالوصید . ځکه چه اسم فاعل په دے کښ عامل دے سره د دے نه په معنی د حال یا د استقبال نه دے . بلکه په معنی د ماضی دے . **جواب** دادے چه مراد په حال اؤ استقبال سره عام دے حقیقة وی که حکایة . دلته کښ اګر په معنی د حال حقیقة نه دے لیکن حکایة دے ځکه چه دلته دا حکایة الحال دے . **اوالاعتماد علی صاحبه** اؤ بل شرط دپاره د عمل د اسم فاعل دادے چه اعتماد پرے کړے وی په ما قبل باندِ یعنی یا به ترے نه ماقبل مبتدا

وی یا د موصوف وی یا د موصول وی او یا ماقبل به دے نه ذوالحال وی او دے به یا خبر وی یا صفت وی یا صله او یا حال واقع شوے وی ځکه چه اصل په عمل کښې فعل دے. او وضع د فعل د پاره د عمل ده او ما سوا د دے نه چه څه عمل کوی هغه دو جے د مشابهت نه او فعل خو اعتماد کریدے په فاعل باندې نو هغه شی چه هغه صاحب با ندکوی. د پاره د دے چه مزیة د فرع په اصل باند رانشی او الهمزة اوما یا به ئے اعتماد کړے وی په همزهٔ استفهام میه باندې او یا په حرف نفی ځکه چه دوی د واړه نه داخلیږی مګر په فعل باندې غالبًا هرکله چه دوی داخل شو په اسم فاعل . نو جهت د مشابهت د فعل کښې قوی شو اس چه اعتماد ئے نه وی کړے په دے مذکوره امور وکښې په یو شی باندې نو بیا جائز نه دے عمل د دے لکه ضارب زیدٌ عمروا. دا په نزد سیبویه او د بصریانو او په نزد د اخفش او د نحا تو د کوفے نو هغوی جائز ګرځولے دے اعمال د اسم فاعل بغیر د اعتماد مذکوره نه د هغوی په نز باندې نفس مشابهت کافی دے د پاره د اعمال -

## وان کان للماضی وجبت الاضافة معنی

او کچرته دا اسم په معنی د ماضی وی برابره خبره ده چه عین ماضی وی یا په ضمن د استمرار کښې وی. نو بیا شرط دا دے چه دے به مضاف وی په اضافة معنو سره. په دے سره احتراز راغے د اضافت لفظیه نه خلافا للکسائی خلاف ثابت دے کسائی لره ځکه چه د هغه په نزد باندې اضافة نه دے شرط بلکه مطلق عمل کوی برابره خبره ده چه په معنی د حال وی که د استقبال وی او که د ماضی وی لکه په دے قوله باری تعالی کښې وکلبهم باسط ذراعیه بالوصید . او د غه شان کسائی ورسره قید د اضافة معنویه هم نه لګوی بلکه اضافة لفظیه به وی ځکه چه دا د قبیلے د اضافت د صفت نه دے معمول خپل ته . دلته سوال دا دے چه ستا دا خبره منقوضه شوه په دے ترکیب چه زیدٌ معطی عمرو درهما امس ځکه چه معطی صیغه د اسم فاعل ده. او په معنی د ماضی ده او عمل د نصب ئے کړیدے په درهما کښې. نو جواب او کړو مصنف په دے قول سره چه فان کان له معمول آخر کچرته وی د پاره د هغه اسم فاعل چه په معنی د ماضی دے بیل معمول سوا د هغه نه چه دے ورته مضاف دے چه دے مشتق وی د داسے فعل نه چه هغه تقاضا د دوو مفعولین کوی . فبفعل مقدر نو دے به معمول وی د پاره د فعل مقدر یعنی چه کوم شی پکښې منصوب دے هغه به په دے صیغے د اسم فاعل

د مشابهت د فعل دوه وجې نو عملکوی مفصل په طریق اول سره اعتماد په خپل

نږدې منصوب لکه زید معطی عمرو درهما امس. د لته کښې درهما منصوب دے په فعل مقدر سره چه هغه اعطاه دے. او دا جمله مستانفه ده لکه چا او وئیل چه زید معطی عمرو امس نو سائل تپوس اوکړو ما اعطاه چه جواب کښې ورته او وئیل شو اعطاه درهما **فان دخلت اللام استوى الجميع** کهٔ چرته په اسم فاعل باندې الف لام داخل شو. نو بیا به دے کښې ټولے زمانے برابرے دی ځکه چه دے فعل دے حقیقتاً لیکن عدول اوکړے شود فعل نه اسم ته ځکه چه الف لام په فعل نه داخلیږی لکه په دے ترکیب کښې مررت بالضارب زیدا الان او غدا او امس. **وما وضع منه للمبالغة** او هغه چه وضع شوی دے د اسم فاعل نه د پاره د مبالغے یعنی هغه صیغے چه په فاعل کښې د پاره د مبالغے وضع دی **کضراب وضروب ومضراب وعليم وحذر مثله** پشان د اسم فاعل دی چه په هغے کښې مبالغه نږدی ځکه چه په صیغے د مبالغے کښې اګرکه مشابهت لفظیه نږدے باقی لیکن زیادة فی المعنی قائم دے په مقام د منافات چه هغه مناسبت لفظیه دے **والمثنى والمجموع مثله** او تثنیه د اسم فاعل او جمع د اسم فاعل پشان د مفرد د اسم فاعل کښې دی په عمل او په اشتراط کښې ځکه چه په صیغے د مفرد کښې خلل نه واقع کیږی په لحوق د زوائدو سره. **ويجوز حذف النون مع العمل والتعريف تخفيفا** او جائز دے حذف د نون د تثنیے او د جمع د اسم فاعل نه سره د کیدو د اسم فاعل نه سره د کیدو د اسم فاعل نه عامل بغیر د اضافت نه مفعول ته. او سره د تعریف باللام نه د پاره د حصول د تخفیف د وجے د طول د صلے نه لکه والمقيمى الصلوٰة په نصب سره یعنی په نصب د صلوٰة سره ځکه چه لام موصول دے او صله کښې طول راغلے دے په نصب د مفعول سره نو جائز شو تخفیف په حذف د نون سره لکه چه څنګه حذف د نون راغلے دے د پاره د تخفیف د موصول نه په دے قول کښې و خضتم كالذى خاضوا. د لته کښې كالذى په اصل کښې كالذين وو خلاصه دا ده چه اسم فاعل دا هغه اسم دے چه مشتق وی د فعل نه او دلالت کوی په هغه ذات باندې چه په هغه پورے قیام د فعل راغلے دی برابره خبره ده چه دا فعل هغه نه صادر وی او که نه وی او معنی مصدری په دے کښې په طریقے د حدوث سره وی

**اسم المفعول** اسم مفعول اګرچه په حقیقت کښې مصدر دے لیکن مفعول ورته په دے وجه باندې وائی هو الذى يفعله الفاعل او د لته کښې تر ....

اسم مفعول به مراد دے الذی فعل به الفعل او وقع علیه الفعل لکه د مثلے شی فعلت به الضرب ای اوقعته علیه بیا حرف جار حذف شو او ضمیر مرفوع پکښې مستتر شو۔
**ما اشتق من فعل** ما په منزله د جنس شوه تمام اسماء پکښې داخل شو برابره خبره ده چه مشتق وی که غیر مشتق چه اشتق ئے اوویل په دے سره تر نه غیر مشتق خارج شول۔ **لمن وقع علیه** په دے سره ترنه نور اسماء مشتقه خارج شول لکه اسم فاعل، اسم تفضیل وغیره۔ **و صیغته من الثلاثی المجرد علی مفعول** او صیغه د دے د ثلاثی مجرد نه په وزن د مفعول راځی او د ثلاثی مجرد نه علاوه **علی صیغة الفاعل** په وزن د صیغے د اسم فاعل راځی خو فرق دادے چه په اسم فاعل کښې ما قبل آخر حرف هغه مکسور وی او په اسم مفعول کښې به مفتوح وی **بفتح ما قبل الآخر** حکمه فتحه اخف الحرکات دے او مفعول کثیر دے او کثرة تقاضا د خفت کوی کستخرج لکه د باب استفعال نه مستخرج شو۔ **وامره فی العمل** او شان د اسم مفعول په عمل کښې یعنی په کیدو د ده کښې عامل **والاشتراط** او په اشتراط کښې **کامر الاسم الفاعل** پشان دامر د اسم فاعل دے یعنی چه څنګه هغه عمل کوی هغه شان به دے هم کوی۔ او د هغه د عمل د پاره چه کوم شرائط دی هغه د ده هم دی په وجوب د اضافت معنوی کښې کچه چه دے په معنی د ماضی وی لکه زید معطی درهم امس۔ او د اسم فاعل په شان به دے هم عمل کوی چه کله په معنی د حال او د استقبال وی مګر که معرف باللام وی نو بیا پکښې حال او استقبال شرط نه دی او د غه شان اعتماد به ئے کړی وی په امور دسته باندے۔ **زید معطی غلامه درهما** الآن او غدا او امس۔ خلاصه دا ده چه اسم مفعول دا هغه اسم دے چه مشتق وی د فعل نه او دلالت کوی په هغه ذات باندے چه فعل په هغه باندے واقع وی۔

**الصفة المشبهة** هغه صفت چه مشبهه دے د اسم فاعل سره په افراد تثنیة جمعیة او په تذکیر او په تانیث کښې **ما اشتق** دا هغه اسم دے ما په منزله د جنس شو ټول اسماء لره شامل دے چه مشتق وی په دے سره تر نه غیر مشتق خارج شو۔ **من فعل لازم** د فعل لازمی نه په دے سره احتراز راغے د اسم فاعل او د اسم مفعول نه چه متعدی ئین دی۔ **لمن قام به علی معنی الثبوت** د پاره د هغه ذات چه قائم وی په هغه باندے فعل په طریقه د ثبوت او د دوام سره په دے سره احتراز راغے د اسم فاعل نه یعنی صفت مشبهه ما هغه اسم دے چه مشتق وی د فعل لازمی نه او دلالت کوی په هغه

ذات بانډې چه فعل په هغه پورې قائم وي او معنی مصدري پکښې په طريقه د ثبوت او دوام سره وي
دلته کښې سوال وارديږي چه ستا دا تعريف جامع او نه کرځيدو ځيني افراد ئې او خارج شو
رحيم ددې نه ځکه چه دې د فعل لازمي نه مشتق نه دې بلکه د فعل متعدي نه دې چه
رَحِمَ دې. جواب دادې چه لازم عام دې ابتداءً دي او که په وخت د اشتقاق کښې وي رحم
ابتداء په کسرې د عين سره دالازم نه دې خوچه کله رحُمَ ضمې د عين ته منتقل شو. نو
اوس دې لازمي او کرځيدو. سوال دادې چه ستا دا تعريف مانع او نه کرځيدو د دخول د غير
نه او داخل شو پکښې ضامر او طالق ځکه چه دا په معنی د ثبوت دي. جواب دادې. چه دا په
اصل کښې د حدوث د پاره دي. او ثبوت ورته عارض دې او العوارض لا تعتبر.

**وصيغتها مخالفة لصيغة الفاعل** او صيغه د صفت مشبهه دا مخالفه ده د صيغې د
اسم فاعل نه **على حسب السماع** په اندازه د سماع ده د وا ضع نه يعني اوزان د اسم
فاعل جُدا دي د اوزانو د صفت مشبهه نه او يا دا چه صيغې د اسم فاعل قياسي دي او صيغې
د صفت مشبهه هغه سماعي دي د عربو نه. دلته کښې على حسب السماع يا دا منصوب دې بنا
بحاليت د هغه ضمير نه چه په مخالفة کښې دې او راجع دې صيغې ته. نو معنی به داسې شي
چه حال کون الصيغة كائنة على قدر مسموع غير متجاوزة عنه. او يا منصوب دې بنا بر
مصدريت نو معنی به داسې شي چه مخالفة كائنة على قدر مسموع الخ سوال دادې چه صيغه
د صفت مشبهه چه ځنګه مخالفه ده د صيغې د اسم فاعل نه نو دغه رنګه مخالفه ده د صيغې
د اسم مفعول نه هم نو صيغه د اسم فاعل ئې ولې خاصه کړه په ذکر سره. جواب دادې چه
د صيغې د صفت مشبهه ډير مشابهت ده د صيغې د اسم فاعل سره نو ځکه ئې صيغه
د اسم فاعل خاص کړه په ذکر سره. **كحسن وصعب وشديد** لکه حسن او صعب او
شديد شو سوال دادې چه ستا دا حصر په دې درې صيغو کښې باطل دې ځکه
چه د دې نه علاوه نورې صيغې هم د مبالغې شته لکه احمر يا سکران جواب دادې چه
غرض دلته کښې استقصاء د تمامو صيغو نه ده. حتی چه د حصر اعتراض وارد شي.

**وتعمل عمل فعلها مطلقا** او صفت مشبهه عمل کوي د خپل فعل چه د کوم نه مشتق وي.
مطلقا بغير د څه شرط او د قيد د زمان نه سوال دادې چه تا او وئيل مطلقا د دې
مطلب دادې چه په دې کښې هيڅ څه قيد نشته نو بيا خو پکار دا دې چه دا عمل کوي
بغير د اعتماد نه جواب دادې چه د عدم قيد مطلب دادې چه په دې کښې قيد د زمانې

نښته او صرحیح دے اشتراط داعتماد نو هغه شته دے. سیوا داعتما د نه په لام موصول باندې حکم چه الف لام موصول داخلیږی په اسم فاعل او په اسم مفعول باندې **ولقتیم مسائلها** او تقسیم د مسائلو د صفت مشبهه چه هغه ۱۸ قسمه دی دا دے دلته کښې مصنف د صفت مشبهه اقسام جوړوی او د هر قسم علیحده علیحده حکم بیانوی. **ان تکون الصفة باللام او مجردة عنها** چه دا صفت مشبهه به خالی نه وی. یا به معرف باللام وی او یا به معرف باللام نه وی. **و معمولها اما مضاف او باللام او مجرد عنهما** او معمول د صفة مشبهه به خالی نه وی. یا به مضاف وی یا به معرف باللام او یا به مجرد وی د دوا رو نه یعنی نه به مضاف وی او نه معرف باللام. **فهذه ستة** نو دا شپږ اقسام شو چه حاصل شو د ضرب دا شپږ نه په ثلاثه کښې **و المعمول فی کل واحد منها مرفوع و منصوب و مجرور** او معمول د هر واحد د دے شپږو اقسامو یا به مرفوع وی یا به منصوب وی او یا به مجرور **فصارت ثمانیة عشر قسما** نو د دینه اتلس قسمه حاصل شو. **فالرفع علی الفاعلیة** رفع د معمول بنا بر فاعلیة ده. **والنصب علی التشبیه بالمفعول فی المعرفة وعلی التمیز فی النکرة** او نصب د معمول د وجے د تشبیه د صفت مشبهه نه په مفعول پورے لکه الحسن الوجه په نصب سره دا مشابهه دے د مفعول به سره او مفعول به بعینه نه دے. ځکه چه فعل د صفت مشبهه غیر متعدی دے. نو معمول منصوبه د دے مفعول به نشی کیدے لیکن هر کله چه صفت مشبهه مشابهه دے د اسم فاعل سره نو مشابهه او کرځیدو منصوب د دے په مفعول سره او که چرته معمول د صفت مشبهه نکره وی او منصوب وی نو هغه به منصوب بنا بر تمیز وی لکه الحسن وجها **والجر علی الاضافة** او که معمول د صفت مشبه مجرور وی نو هغه به بنا بر اضافة وی **و تفصیلها** او مفصل کوونکے د اقسامو دا دے. **حسن وجهه** چه صفت مشبه غیر معرف باللام او معمول ئے مضاف وی ضمیر ته **ثلاثة** یعنی ذو ثلاثة چه مرفوع هم او دلته شی منصوب هم او مجرور هم **و کذالک حسن الوجه** او په شان د حسن وجهه حسن الوجه دے چه صفت مشبهه غیر معرف باللام وی او معمول معرف باللام وی او غیر مضاف وی. په د یکښی هم درے اعرابه دی رفع، نصب او جر. **حسن وجه** دا مثال د هغه دے چه صفت مشبهه غیر معرف باللام وی او معمول ئے هم غیر معرف باللام وی او غیر مضاف وی. او معمول باندې د ریواړه اعرابات راتلی وی. رفع، نصب او جر.

**الحسن وجههٗ** چه صفت مشبهه معرف باللام دی او معمول ئے مضاف وی ضمیرته او غیرمعرف باللام وی په دے کښ هم درے اعرابه دی. **الحسن الوجهُ** چه صفت معرف باللام او معمول هم معرف باللام غیرمضاف په دے کښ هم درے اعرابه دی. **الحسن وجهٌ** چه صفت یکښ معرف باللام وی او معمول غیرمعرف باللام او غیرمضاف او په دیکښ هم درے اعرابات دی. **سوال** داد ے چه مصنفؒ ولے حروفِ عاطفه پریښودل په هغه کښ چه هغه معرف باللام وی. **جواب** داد ے په دیکښ اشاره ده دے خبرے ته چه دلته کښ شروع په قسم آخر د صفت مشبه کیښ ده مخکښ چه کوم مثالونه دی هغه د هغه قسمونو وو چه مجرد وو د الف لامؒ او دا هغه صفتونه دی چه معرف باللام وی بیا **سوال** داچے چه مصنفؒ ولے په تفصیل کښ مخالفت د اجمال نه اوکړو په دے شان سره چه کوم صفت معرف باللام دے هغه ئے مقدم کړے دے په هغه باندِ چه غیرمعرف باللام دے او په تفصیل کښ ئے مؤخر کړے دے **جواب** داد ے د معرف باللام مفهوم وجودی دے او د غیر معرف باللام مفهوم عدمی دے او وجودی اشرف دے د عدمی نه په دے وجه ئے مقدم کړو په اجمال کښ او په تفصیل کښ ئے چه مؤخر کړو هغه په دے وجه باندِ چه د غیرمعرف باللام صفت اقسام تول صحیح وو. صرف یو قسم پکښ مختلف فیه وو. او د معرف باللام صفت اقسام تول صحیح نه دی بلکه دوه قسمه پکښ ممتنع دی **اثنان منها ممتنعان** په دے آتلسو وجوهو کښ دوه وجے ممتنع دی. **مثل الحسن وجههٖ** یو هغه ده چه صفت پکښ معرف باللام وی او معمول مضاف وی ضمیرته او دا معمول مجرور وی. **الحسن وجهٍ** دویم هغه چه صفت پکښ معرف باللام وی او معمول ئے غیرمضاف وی او مجرور وی. وجه د امتناع ئے داده چه فائده د اضافت لفظیه هغه تخفیف دے په جانب د مضاف او یا د مضاف الیه کښ هرچه دے تخفیف په جانب د مضاف کښ هغه حذف د تنوین دے یا قائمقام د تنوین دے چه هغه یا نون د تثنیے دے یا نون د جمع او هرچه دے په جانب د مضاف الیه کښ هغه حذف د ضمیر دے او استتار دے په صفت کښ او دلته کښ یو هم نه دے موجود شوے. یعنی نه په جانب د مضاف کښ تخفیف راغلے دے او نه په جانب د مضاف الیه کښ او د الحسن وجهٍ وجه د امتناع داده چه دلته کښ اګرکه تخفیف حاصل شویدے په حذف د ضمیر سره او په استتار سره په صفت کښ لیکن دلته کښ اضافة د معرفے راغلے دے نکرے ته حالانکه اضافة د نکرے معرفے ته کیږی. **واختلف فی حسن وجهه**

اؤ اختلاف کیږي شوي دے په صحة د حسن وجهه کښي یعني په هغه صورت کښي چه صفت یکښي مجرور وي د الف لام نه چه مضاف وي معمول ته اؤ د هغه اضافة ضمیر ته راغلي وي. د بصریانو په نیز بائد دا ترکیب جائز دے سره د قبح نه ځکه چه فائده د اضافة لفظیه چه هغه تخفیف دے په جانب د مضاف اؤ د مضاف الیه کښي اؤ په دے صورت کښي تخفیف حاصل شویدے په جانب د مضاف کښي په حذف د تنوین سره اؤ په مضاف الیه کښي تخفیف نه دے راغلے ځکه چه ضمیر په هغه کښي حذف شوي نه دے اؤ د کوفیانو په نیز بائد دا ترکیب جائز دے بغیر د قبح نه ځکه چه د هغوي په نیز بائد فائده د اضافت هغه مطلق تخفیف دے اؤ هغه حاصل شویدے

بعض نحاتو دلیلی دي چه دا ترکیب نه دے صحیح ځکه چه دلته کښي لازمیږي اضافة د شي نفس ته. اؤ بعض والي چه صحیح دے ځکه چه حسن عام دے د وجه نه. والبواقي اؤ باقي اقسام پس د اسقاط د مسئلتین نه هغه په درے قسمه دي. ماكان فيه ضمير واحد منها احسن چه په کوم اقسامو کښي یو ضمیر موجود دے هغه احسن دے. ځکه چه دا قسم مشتمل دے په محتاج الیه بائد بغیر د زیادة نه اؤ هغه نهه اقسام دي چه تفصیل ئے دا دے الحسن الوجهَ په نصب د معمول اؤ په جر سره او صفت معرف باللام وي. حسن الوجهِ په نصب د معمول اؤ د جر سره صفت به یکښي غیر معرف باللام وي. الحسن وجهًا معمول یکښي منصوب وي اؤ صفت معرف باللام وي حسن وجهًا په نصب د معمول سره اؤ صفت غیر معرف باللام. حسن وجهٍ چه صفت غیر معرف باللام وي اؤ معمول مجرور وي. والحسنُ وجهُه چه معمول یکښي مرفوع وي اؤ صفت معرف باللام وي. حسن وجهُه چه معمول یکښي مرفوع وي اؤ صفت غیر معرف باللام وي. وماكان فيه ضميران حسن اؤ هغه اقسام چه په هغے کښي دوه ضمیره وي نو هغه حسن دي. ځکه چه دا قسم مشتمل دي په محتاج الیه بائد اؤ حسن په دے وجه بائد نه دي ځکه چه په دے کښي زیادة په محتاج الیه بائد راغلے دے.. اؤ حسن دوه قسمه وي حسن وجهه په نصب د وجهه سره او الحسن وجهه په نصب د وجهه سره. وما لا ضمير فيه قبيح اؤ هغه قسم چه په هغے کښي ضمیر نشته دے قبیح دے د وجے د عدم د ربط نه په ما بین د صفت اؤ د موصوف کښي ځکه چه دا مشتمل نه دے په محتاج الیه بائد اؤ دا څلور قسمه دي. الحسن الوجه حسن الوجه حسن وجه الحسن وجه په رفع د معمول سره ومتى رفعت بها اؤ چه کله ته رفع ورکړے په دے صفت سره فلا ضمير فيها نو بیا په دے کښي ضمیر نه وي د پاره د دے چه لازم نه شي تعدد د

دفاعل چه یو ضمیر وی او یو اسم ظاهر وی او بیا معمول به ئے خالی نه وی یا به پکښې ضمیر وی یا به نه وی که وی خو احسن او که نه وی نو قبیح **فهی کالفعل** نو دا صفت به په شان دفعل وی لکه چه څنګه فاعل چه کله ظاهر وی نو فعل تثنیه یا جمع کیږی نه. **والا** یعنی وان لم یرفع بها **ففیها ضمیر الموصوف** نو بیا په دیکښې ضمیر د موصوف وی دپاره ددے چه هغه فاعل شی بیا معمول به ئے خالی نه وی یا به پکښې ضمیر وی یا به نه وی کچرته وی نو هغه حسن او که نه وی نو احسن بیا به دا صفت مؤنث هم راځی. تثنیه هم راځی او جمع هم راځی ځکه حال د صفت پشان د حال د فعل دے او د فعل اسناد چه کله ضمیرته اوشی نو فعل به د هغے موافق راځی. **واسما الفاعل والمفعول غیر المتعدیین مثل الصفة فیما ذکر** او اسم فاعل او اسم مفعول چه غیر متجاوزین د فاعل او د مفعول مالم یسم فاعله نه دا پشان د صفت مشبهه دی په دغه ۱۸ مسا ئلو کښې چه کومے ذکر شوے په دے سره احتراز راغے د هغه نه چه تجاوز ئے کړیوی. ځکه چه جائز نه دے اضافة د دوئ هغه ته چه چا ته تجاوز کړیوی او نه ئے جائز دے نصب دپاره ددے چه لازم نه شی التباس ئے د مفعول سره لکه ته او وائے چه زید ضارب اباه یا زید معطی اباه نو دا معلومه نه شوه چه اباه په مثال اول کښې دا مفعول د ضارب دے او یا فاعل دے. خو منصوب دے د وجے د تشبیه نه په مفعول پورے. او په مثال ثانی کښې اباه مفعول ثانی د معطی دے او که مفعول اول دے قائم دے په مقام د فاعل او منصوب دے د وجے د تشبیه نه په مفعول پورے او مفعول ثانی محذوف دے

نقشه د مسائلو د صفت مشبهه په راتلونکے صفحه ده.

پیش آمد آں دلبر مرا گفتم تنہا کم کن بلا
گفتم تنہا در پردہ ها خود را چرا داری نہاں
گفتا برو گر عاشقی ہم در بلا افزوں کنم
گفتا کہ گر بیروں شوم سی صد چو تو مجنوں کنم

حضرت شمس تبریزؒ

| | قسم معمول | حالت رفعی | حالت نصبی | حالت جری |
|---|---|---|---|---|
| صفت مشبهہ معرف باللام | چه معمول مضاف وی | زید الحسن وجهُهٗ | زید الحسن وجهَهٗ | زید الحسن وجهِهٖ |
| | چه معمول معرف باللام وی | زید الحسن الوجهُ | زید الحسن الوجهَ | زید الحسن الوجهِ |
| | چه معمول نه معرف باللام وی نه مضاف | زید الحسن وجهٌ | زید الحسن وجهًا | زید الحسن وجهٍ |
| صفت مشبهہ غیر معرف باللام | چه معمول مضاف وی | زید حسن وجهُهٗ | زید حسن وجهَهٗ | زید حسن وجهِهٖ |
| | چه معمول معرف باللام وی | زید حسن الوجهُ | زید حسن الوجهَ | زید حسن الوجهِ |
| | چه معمول نه معرف باللام او نه مضاف | زید حسن وجهٌ | زید حسن وجهًا | زید حسن وجهٍ |

**اسم التفضیل ما اشتق من فعل لموصوف بزیادة علی غیره** اسم تفضیل دا هغه اسم دے چه مشتق وی د فعل نه دپاره د موصوف سره د زیادة نه په غیر باندې یعنې معنی مصدری په ده کښې زیاته وی په نسبت د غیر باندې. او په مبالغه کښې هم زیادة شته دے ولے هغه په نسبت د غیر سره نه دے. او د لته کښې مع" لموصوف او ویل او لمن قام یا لمن وقع ئے او نه ویل دپاره د دے چه دا دواړو نوعینو لره شامل شی ځکه چه تفضیل څنګه په فاعل کښې راځی نو دغه شان په مفعول کښې هم راځی. لکه اضرب او اشهر نو په ضارب کښې او بل په مشهود کښې. په هر یو تعریف کښې لا بدی ده د جنس او د فصل نه ما اشتق من فعل دا په منزله د جنس دے اسم تفضیل او غیر اسم تفضیل دواړو لره شامل دے لکه اسم فاعل شو اسم مفعول، آله ظرف او صفت مشبهه و غیره لموصوف دا یو فصل دے په دے سره تر نه ظرف او اسم آله خارج شول ځکه چه مراد په موصوف سره ذات مبهمه دے او په ظرف او آله کښې ابهام نشته دے. بزیادة علی غیره دا بل فصل دے په دے سره تر نه اسم فاعل اسم مفعول او صفة مشبهه خارج شول. **سوآل** دا دے چه ستا دا تعریف د اسم تفضیل مانع نه شو د دخول د غیر نه او داخل شو پکښې غالب زائد او فاضل ځکه چه دا مشتق دی د هغه فعل نه چه موضوع دی دپاره د ذات هسے ذات چه هغه موصوف دے په زیادة سره په غیر باندې. **جواب** دا دے چه مراد په زیادة سره زیادة دے په اصل د دغه فعل کښې او د دغه اسماء دلالت کوی په مطلق زیادة باندې نه په هغه زیادة باندې چه په اصل د دغه فعل کښې وی. **وهو افعل** او صیغه د دے دپاره د مذکر د افعل په وزن راځی او دا وزن د افعل عام دے فی الحال وی او که فی الاصل وی نو اعتراض په خیر او په شر سره وارد نه شو او د مونث دپاره به وزن د فعلی راځی. **وشرطه ان یبنی من الثلاثی المجرد لیمکن بناء افعل منه الخ** او شرط د اسم تفضیل دا دے چه بناء د ده به د ثلاثی مجرد نه راځی. دپاره د دے چه ممکن او کرځی وزن د افعل. ځکه که چرته دا صیغه مونږ د مزید نه جوړه وو مثلا د استخرج نه. نو یا به زائد حروف حذف کوو او یا نه کچرته زائد حروف نه حذف کوو نو وزن د افعل نه جوړیږی او کچرته حذف کوو نے نو بیا فرق نه راځی په ما بین د مزید او د مجرد کښې. **ولیس بلون ولا عیب** او د دے تعلق به د لون (رنګ) یا د عیب سره نه وی **لان منهما افعل لغیره** ځکه چه د لون او د عیب نه افعل وزن دپاره د غیر د اسم تفضیل راځی که چرته د دغه وزن ترنه دپاره د تفضیل راځی

نو بیا به التباس راشی لکه احمر اصفر یا اعمٰی اوا عور به دے صیغو کښی چه دلون او د عیب نه دی په دوئ کښی زیادة نشته. سوال دا دے چه دا قاعده منقوضه ده په اجهل او په ابله باندې ځکه چه دا دواړه مشتق دی د جهل او د بلد هت نه او د دے تعلق د عیب سره دے جواب دادے چه مراد په عیب سره عیب ظاهری دے او دا عیوب باطنی دی. سوال دا دے چه بیا خو به احمق باندې اطلاق د شذوذ او نه شی جواب دا چه مراد په عیب سره ظاهری دے عام ددے نه چه حقیقةً وی او که حکمًا او دلته کښی اګر که عیب ظاهر حقیقةً نه دے لیکن حکمًا ظاهر دے ځکه چه آثار ئے ظاهر دی لکه و بیلے شی احمق من هبنقه مثل زید افضل الناس لکه و بیلے شی زید افضل الناس. فان قصد غیره کچرته کښی قصد کړے شوے وی اداد معنی د تفضیل د غیر د ثلاثی مجرد و نه. توصل الیه باشد نو توصل به کیږی تفضیل ته په اشد سره و نحوه یا د دے پشان بله صیغه شوه.

مثل هو اشد منه استخراجا و بیاضا و عمیا دلته کښی استخراج باب استفعال دے او دا مزید دے په دیکښی تفضیل مطلوب دے نو د مصدر نه ئے مخکښی اشد راوړے شو. او بیاض دالون دے په دیکښی تفضیل مطلوب دے نو او به و بیلے شی چه اشد بیاضا. او عمیا عیب دے په دے کښی تفضیل د پاره به اووائے چه اشد عمیا. د دغه مصادر به ذکر شی د پاره د تمیز.

وقیاسه للفاعل او اسم تفضیل کښی د قیاس تقاضا دا ده چه اشتقاق د ددهٔ د پاره د فاعل وی یعنی تفضیل د په فاعلیة کښی وی نه په مفعولیة کښی ځکه کچرے د دواړو د پاره دا صیغه راشی نو بیا به التباس راشی چونکه په فاعل او په مفعول کښی اشرف هغه فاعل دے په دے وجه باندې اکتفار په فاعل اوکړے شوه. وقد جاء للمفعول او تفضیل دا صیغه او وزن د پاره د مفعول هم راغلے دے نحو اعذر والوم و اشغل و اشهر اعذر تفضیل دے په معذور کښی یعنی اکثر معذوریة. اکثر ملومیة اکثر مشغولیة اکثر مشهوریة. ویستعمل علی احد ثلثة اوجهٍ او دا اسم تفضیل مستعملیږی په یو د طرقو ثلاثو باندې مضافا او بمن او معرفا باللام دا بدل دے د علی ثلثة اوجهٍ نه د پاره د دے چه مفضل او مفضل علیه مقدم شی او هغه نه حاصلیږی مګر په دے درے امورو سره لکه زید افضل القوم زید افضل من عمرو زید الافضل فلا یجوز زید الافضل من عمرو دا ترکیب نه دے جائز یعنی جمع په ما بین دا مرین کښی نه ده جائز ددے امور ثلاثو نه ځکه چه په دے کښی یو امر لغو شی. سوال دا دے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په دے شعر د شاعر

سره سره لست بالاکثر منهم حصیً ۔ وانما العزة للتکاثر ۔

دلته کښې الف لام هم دے او من هم را غلے دے۔ **جواب** داد ے چه دا من د پاره د تبعیض دے نه د پاره د تفضیل **ولا زید افضل** او نه دا ترکیب جائز دے چه اسم تفضیل یو هم د دے طرق ثلثه نه نه وی استعمال شوے د د پاره چه غرض فوت نه شی چه هغه تفضیل دے په غیر باندې. **سوال** داد ے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په دے ترکیب سره چه الله اکبر۔ دلته کښې اسم تفضیل را غلے او مستعمل نه دے په یو هم د دے طرق ثلثه سره نو معلوم جواب او کړو **الا ان یعلم** مګر په هغه وخت کښې چه مفضل علیه معلوم وی په یو قرینے سره چه لفظیه وی که عقلیه ۔ دلته کښې الا ان یعلم مستثنیٰ مفرغه ده معنی ئے دا ده چه یستعمل مع احد ثلثة اشیاء فی جمیع الاوقات الا وقت معلومیة المفضل علیه الله اکبر من کل کبیر زید کریم وعمرو اکرم منه ۔ او یا دا اسم تفضیل خالی کړے شی د معنی د تفضیل نه بیا په دے صورت کښې ور سره معطوف محذوف به را اوباسو او یخرج اسم التفضیل عن معنی التفضیل فیستغنی عن استعماله باحد ثلثة اشیاء **فاذا اضیف** په هغه وخت کښې چه اضافت د اسم تفضیل او کړے شی **فله معنیان** نو د ده د پاره بیا د وه معنے دی په وخت د اضافت کښې **احدهما** یو په دے دواړو معنی کښې داده **وهو الاکثر** چه دا معنی اکثره ده.
**ان تقصد به الزیادة** چه قصد کړے شی په دے سره زیادة **علی معنی اضیف الیه** چه چاته د ده اضافة کړے شوے وی الیه ضمیر من ته راجع دے عقلاء وی که غیر عقلاء وی تغلیبا **فیشترط** نو بیا شرط کړے شوے دے په استعمال کښې په دے معنی باندې **ان یکون** چه وی دا موصوف **بعضا منهم** بعض د قوم نه یعنی موصوف د داخل وی په مضاف الیه کښې په حسب د مفهوم سره او خارج وی په حسب د اراد ے سره هر چه دے دخول د د ځکه چه غرض د اسم تفضیل نه تفضیل د موصوف دے په هغه چا باندې چه هغه ده سره په عام مفهوم کښې شریک وی او هر چه دے خروج د ده په اعتبار د اراد ے سره د پاره د دے چه لازم نه شی تفضیل د شی په خپل نفس باندې.
**مثل زید افضل الناس** دلته کښې زید بعض او جز دے د الناس نه.
**فلا یجوز یوسف احسن اخوته لخروجه عنهم باضافتهم الیه** پس جائز نه دے دا ترکیب چه یوسف احسن اخوته ۔ ځکه چه په دغه وخت کښې اجتماع د نقیضینو لازمیږی ځکه چه اضافة د اخوة اوشی هغه ضمیر ته چه کوم راجع دے یوسف ته نو بیا پکار د اده چه دے د

خارج شی د دوئ نه او په تقدیر د دے سره چه شرط په دے اضافت کښ دا دے چه مضاف د مضاف الیه نه وی. نو په دغه صورت کښ هم به داخل شی او هم به خارج شی دا اجتماع د نقیضینو دہ. **والثانی** او معنی ثانی دا دہ **ان تقصد زیادۃ مطلقۃ** چه زیادۃ مطلقہ قصد کړے شی یعنی غیر مقید وی په زیادۃ سره علی من اضیف الیه **و یضاف للتوضیح** او دلته کښ اضافۃ د پاره د توضیح راغلے وی نه د پاره د تفضیل پشان د نورو سمائے منفتیه. او دلته کښ معنٰی توضیح او وئیل اوتخصیص ئے او نه وئیل ځکه چه لفظ د تخصیص خاص دے په اضافۃ کښ نکرالوته. نو په دے کښ شرط دا نه دے چه موصوف و داخل وی په مضاف الیه کښ. بلکه مضاف به وی یو جماعت ته چه دے به داخل وی په هغه جماعت کښ. لکه محمد صلی الله علیه و سلم افضل القریش یعنی افضل الناس من قریش **فیجوز یوسف احسن اخوته** ځکه چه په دغه وخت کښ اجتماع د نقیضینو نه راځی چه مے داخل نه دے په مضاف الیه کښ. **ویجوز فی الاول** او جائز دے د اسم تفضیل په اوله نوعه کښی یعنی چه مضاف دے په معنی اولے سره. **الافراد** افراد په جمیع احوالو کښ ځکه چه دے مشابه دے د هغه اسم تفضیل سره چه مستعمل دے په من سره په هغے کښ افراد دے نو په دے کښ به هم افراد وی لکه زید افضل القوم الزیدان افضل القوم الزیدون افضل القوم. **والمطابقۃ** او مطابقۃ **لمن هو له** د هغه سره چه چا سره اسم تفضیل ثابت دے ځکه چه دے مشابه دے د هغه اسم تفضیل سره چه هغه معرف باللام دے او په هغے کښ خو مطابقۃ دے نو په دے کښ به هم وی لکه زید افضل القوم، الزیدان افضلا القوم، الزیدون افضلوا القوم -

**واما الثانی** او هر چه دا دوئمه نوعه د اسم تفضیل چه په اضافت سره مقصود زیادۃ مطلقہ دے. **والمعرف باللام** او هغه چه معرف باللام دے **فلا بد من المطابقۃ** نو په هغے کښ لابدی دہ د مطابقۃ نه یعنی د موصوف سره مطابقۃ راغلے وی په افراد تثنیۃ او جمعیۃ کښ او په تذکیر او په تانیث کښ ځکه چه اصل هغه مطابقۃ دے په ما بین د موصوف او د صفت کښ په وخت د عدم مانع کښ **والذی بمن** او هغه اسم تفضیل چه مستعمل دے په من سره **مفرد مذکر** هغه به مفرد مذکر وی **لاغیر** یعنی د دے د دوارو نه علاوہ بل به نه وی ځکه چه کچیرته مطابقۃ راولے نو علامه به یا خکښ د من راولے او یا وروستو د من نه. که مخکښ د من نه راولے نو لازمیږی

اجزاء د علامے په وسط کښې د کلمے حکمًا اوُ دا ناجائز دی. اوُ که درو ستو د مَن نه ئے راوړے
نو لاز میږی اجراء د علامے په کلمے اُخری باندِ حقیقتًا اوُ دا خبره هم باطله ده **ولا يعمل**
**الرفع** اوُ اسم تفضیل عمل د رفع نه کوی بنا بر فاعلیة **في مظهر** په اسم ظاهر کښې.

اسم تفضیل په دوه قسمه عمل کوی یو عمل د نصب اوُ بل عمل د رفع دے عمل د نصب
عام دے چه بنا بر مفعولیة ئے کوی یا بنا بر ظرفیة اوُ حالیة یا تمیز ئے کوی. هر چه
عمل د نصب بنا بر مفعولیة نو دا سره نه واقع نه دے ځکه چه مفعول د اسم تفضیل نه دے
مگر مفضل علیه اوُ مفضل علیه چه کله مذکور وی نو هغه به مجرور وی خو په دے باندِ
سوال وارد یږی. سوال دا دے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په دے قول د باری تعالیٰ
هو اعلم من يضل. ځکه چه اعلم صیغه د اسم تفضیل ده اوُ مَن لره ئے نصب ورکړے
دے **جواب** دا دے چه مَن د لته کښې مفعول د فعل محذوف دے چه هغه یعلم دے تقدیر
د عبارة به دا سے شی هو اعلم من كل احد يعلم من الخ اوُ هر چه دے عمل د نصب بنا بر
ظرفیة یا حالیة یا تمیز نو هغه واقع دے بلا شرطه ځکه د عمل بنا بر ظرفیة یا حالیة د پاره
ادنیٰ رائحه د فعل بکار ده. اوُ په اسم تفضیل کښې معنیٰ د فعل موجود ده لکه زيد احسن
منك اليوم راكبا اوُ هر چه دے تمیز نو تمیز منصوب کړے شی په هغه شی سره چه
هغه خالی وی د معنیٰ د فعل نه اوُ په اسم تفضیل کښې معنیٰ د فعل موجوده ده لکه زيد
افضل ابًا.

اوُ عمل د رفع هم په دوه قسمه دے یو عمل د رفع دے په ضمیر کښې اوُ بل عمل د رفع
دے په اسم ظاهر کښې. عمل د رفع په ضمیر کښې واقع دے بلا شرطه. ځکه چه عمل په ضمیر
کښې عمل دے په مقدر کښې اوُ هغه اسهل دے قوة د عامل ته محتاج نه دے اوُ هر چه دے
عمل د اسم تفضیل په ظاهر کښې نو دا مشروط دے په شروط ثلاثه سره ځکه چه اصل په
عمل کښې هغه فعل دے ځکه چه فعل واضع وضع کړے دے د پاره د عمل اوُ ما سوا د فعل نه چه
کوم شے عمل کوی نو هغه د وجے د مشابهت نه د فعل سره اوُ اسم تفضیل مشابهه نه دے د
فعل سره. ځکه چه ده د پاره دا سے فعل نشته دے چه هغه د دے په معنیٰ باندِ وی په
زیادة کښې ليعمل عمله.

سوال دا دے چه مناسب دا ده چه اسم تفضیل د عمل اوکړی د رفع بنا بر فاعلیة په
اسم ظاهر کښې ځکه چه دے مشابهه دے د فاعل سره په افراد تثنیة او جمعیة کښې. اوُ په

تذکیراو په تانیث کښې لکه د صفت مشبهه . **جواب** دا دے چه دا یے نه شی کیدے ځکه چه اصل په اسم تفضیل کښې هغه دے چه مستعمل دے په مِنْ سره . او هغه مفرد مذکر وی ابدًا . او دوے نوره دواړه قسمونو اعتبار نشته دے . **بیا سوال** واردیږی چه اسم تفضیل د عمل د رفع اوکړی بنا بر فاعلیة ځکه چه ده کښې اګرکه مشابهة لفظیه د فعل سره قوت شوے دے لیکن دا زیادة په معنی کښې دا و تا ځمقام اوکرځی د هغې لکه په صیغو د مبالغې کښې **جواب** زیادة په اسم تفضیل کښې زیادة مضافه دے او اضافت د خواصو د اسم نه دے نو جهت د اسمیة پکښې قوی دے او جهت د مشابهت د فعل پکښې ضعیف شو . او په صیغو د مبالغې کښې مطلق زیادة دے **الا اذا كان صفة** مګر عمل به کوی اسم تفضیل د رفع په اسم ظاهر کښې چه دے په لفظ کښې صفة د یو شی وی یعنی یا نعت وی یا خبر وی یا حال وی دپاره د دے چه دے په هغه باندې اعتماد اوکړی **و هو فى المعنى لمسبب** او دے په معنی کښې صفت د شی آخروی دپاره د مسبب د د غه شی دپاره د دے چه ده لره اسم ظاهر پیدا شی او دے پکښې عمل اوکړی . **مفضل باعتبار الاول** مفضل وی په اعتبار د تعلق د ده په شی اول باندې **على نفسه باعتبار غيره** او مفضل علیه وی په اعتبار د تعلق د ده په غیر د موصوف اول نه معنی یعنی مفضل او مفضل علیه متحدان بالذات وی او متغایرین بالاعتبار دپاره د دے چه ضعیف اوکرځی زیادة تفضیلیه چه هغه مقتضی دے دپاره د مغایرت په مابین د مفضل او مفضل علیه کښې . **منفيا** او اسم تفضیل به منفی وی په حرف نفی سره دپاره د دے چه دا زیادة تفضیلیه زائل اوکرځی په حرف نفی سره او اصل فعل باقی پاتے شی .

خلاصه دا ده چه عمل د اسم تفضیل په اسم ظاهر کښې مشروط دے په شروط ثلاثه سره اول دا چه دے به په لفظ کښې صفت د یو شی وی او په معنی کښې د صفة د بل شی وی دویم دا دے چه مفضل او مفضل علیه به متحدین بالذات او متغائر بالاعتبار وی . دریم دا چه منفی به وی او وجوهاتو ته د دله موږ ته اشاره اوکړه . اول شرط په دے چه موجود شی دلالت معتمد علیه . ثانی دپاره د دے چه ضعف په معنی تفضیلی کښې راشی او ثالث په دے چه نفی چه متوجه شی قید او مقید ته نو مقصود په دے سره نفی د قید وی .

**مثل ما رأيت رجلا احسن فى عينه الكحل منه فى عين زيد** لکه دا ترکیب شو دلته په دے ترکیب کښې احسن صیغه د اسم تفضیل ده . او دا په لفظ کښې صفة د رجل دے ځکه چه دا جاری دے په رجل باندې او معرب دے په اعتبار د رجل او په معنی کښې صفت

دکحل دے ځکه چه ددے اسناد کحل ته شوید ے او کحل مفضل دے په اعتبار دعین د رجل مفضل علیہ دے په اعتبار دعین دزید او اسم تفضیل منفی دے په حرف ما سره. ولئه
**سوال** چه داخبره نه منم چه کحل مفضل دے په اعتبار دعین د رجل سره او مفضل علیہ دے په اعتبار دعین دزید سره بلکه امر بالعکس دے. ځکه چه مقصود د مدح دکحل دعین دزید ده نه مدح دکحل دعین د رجل - **جواب** داچه مفضل او مفضل علیه په دوه قسمه دی مفضل او مفضل علیه په اعتبار د لفظ سره او مفضل مفضل علیہ په اعتبار دقصد سره کحل مفضل په اعتبار دعین د رجل سره او مفضل علیه په اعتبار د عین دزید سره دا په اعتبار د لفظ دی او په اعتبار دقصد او اراده سره امر بالعکس دے. **لانه بمعنی حسن** دلته کښ زیادة تفضیلیه دازائله شوے دے په حرف نفی سره او دا په معنی د حسن په دے وجه باندے دے ځکه چه د احسن معنی ده زیادة په حسن کښ چه کله په دے باندے ما داخل شو نو دا متوجه شو قید ته ځکه چه نفی کله متوجه شی یو کلام ته او په هغے کښ قید وی نو نفی د هغه قید کوی نو نفی به داسے شی چه لیس حسن کحل عین رجل زائد علی حسن کحل زید. اوس چه هر کله د احسن نه زیادة نفی شو نو باقی پاتے شو مساواة او دنوے بیا زائله شو مساواة په قرینے دعرف سره ځکه چه مساواة آئی دے د مقام د مدح نه نو دنوے پاتے شو نو په دے وجه باندے احسن په معنی د حسن او کرځیدو
**سوال** دادے چه یکار داده چه احسن دے مرفوع او کرځی په خبریة سره او کحل د مرفوع شی په ابتدائیت سره نو په دے صورت کښ لازم میږی نه عمل د اسم تفضیل د رفع په فاعلیت سره په اسم ظاهر کښ نو مصنف **جواب** او کړو چه **مع انهم لو رفعوا لفصلوا بینه وبین معموله با جنبی وهو الکحل** که چیرته رفع ورکړے شی احسن له بناء په دے چه دے خبر شی او کحل مبتداء شی نو لازم به شی فصل په اجنبی سره چه هغه کحل دے په مابین د عامل او د معمول کښ چه هغه مابعد دکحل نه دے چونکه په احسن کښ معنی د فعلیة پرته ده په دے وجه به دے عامل شی او معمول ئے منه دے. **سوال** دادے چه احسن دے مرفوع شی بنا بر ابتدائیت او فصل په اجنبی سره نه راځی ځکه چه په نزد د بعض نحاتو باندے خبر عامل دے په مبتداء کښ. **جواب** دادے چه مراد په معمول سره مطلق معمول نه دے بلکه معمول د اسم تفضیل دے د دے حیثیت نه چه دا معمول د اسم تفضیل دے چه په هغے کښ معنی د فعل ده. او خبر عامل په مبتداء کښ د دے

حیثیت نه نهٔ دے **سوال** دادے چه احسن د مرفوع شی بنا بر خبریت او کحل د مرفوع شی بنا برابتدائیت او فصل د را نشی په اجنبی سره ځکه چه مبتدا او خبر معمولین د عامل معنوی دی **جواب** دادے که عامل په دواړو کښی معنوی هم شی نو دوی دا جنبیت سره نهٔ اوځی . بیا **سوال** دادے چه احسن د مرفوع شی بنا برخبریت او کحل د مرفوع شی بنا برابتدائیت او منه فی عین زید دا د مقدم شی په کحل باندې نو فصل به را نشی په اجنبی سره **جواب** دادے چه په دے صورت کښی اګر چه فصل نه راځی په اجنبی سره ولے لازمیږی تعقید په کلام کښی من حیث اللفظ هم چه ضمیر اضمار قبل الذکر دے او رکاکة لازمیږی من حیث المعنی چه ضمیر قصر د صفت دے قبل د تمام والی نه ځکه چه تمام والے د صفت خوراځی په مسندالیه سره او ضمیر لا نه دے مذکور او دغه معنی د دے له په مختصر و الفاظو سره هم ادا کیدے شی لکه مصنف فرمائی . **ولك ان تقول ما رایت رجلا احسن فی عینه الکحل من عین زید** دا عبارة قصیر دے د ماقبل عبارة نه ځکه په دے کښی ضمیر مجرور هم نشته دے او فی یکښی هم نشته دے . او که احسن حذف شی نو هم په کلام کښی څه نقص نه راځی ځکه چه معنی مقصود یکښی ظاهره ده **سوال** دادے چه مقصود حسن د کحل د عین د رجل دے په حسن د کحل د عین د زید باندې نه تفضیل د حسن د عین د رجل دے په ذات د زید باندې . **جواب** دادے چه معنی مقصود دلته کښی ظاهره ده ځکه چه مفضل او مفضل علیه د جنس واحد نه دی . **فان قدمت ذکر العین** کچرته ذکر د عین په اسم تفضیل باندې مقدم کړے په طریقه د تشبیه سره چه په دغ کښی کحل مفضل علیه وی **قلت ما رایت کعین زید احسن فیها الکحل** د دے ترکیب دادے چه ما رایت عینا احسن فیها الکحل منه فی عین زید . بیا هر کله چه په اسم تفضیل باندې ذکر د عین مقدم شو په حیلے د تشبیه سره ځکه چه کحل په دے کښی مفضل علیه دے حاجت نشته دوباره ذکر د عین ته نو تقدیر به داسے شی چه ما رایت کعین زید احسن فیها الکحل . خو په دے صورت کښی **سوال** واردیږی چه بنا په دے تقدیر باندې لازمیږی مساواة د شی په شی پورے په وصف کښی او تفضیل د شی په شی باندې په دغه وصف کښی داخو نه دے مکر منا فاة . **جواب** دادے چه مساواة په تکحل کښی دے او زیادة په صفت د حسن کښی دے نو بیا به تقدیر داسے شی چه ما رایت عینا مماثلة لعین زید فی اصل التکحل احسن فیها الکحل .

**مثل ولا داري في قطعة** | د دغه تعبيرات ثلاثه چه څنګه جاري کېږي په مارايت کښې لوديغه شان دا تعبيرات ثلاثه جاري کېږي په مثل د دې ترکيب کښې چه په قطعه د شعر کښې دے. ے مررت على وادي السباع ولا ارى

كوادي السباع حين يظلم واديا

اقل به ركب اتوه تأيية

واخوف الا ما وقى الله ساريا

يعني لا ارى كوادي السباع حين يظلم واديا اقل به ركب. دا يو عبارة دے. عبارة طويله دا دے مررت على وادي السباع ولا ارى واديا اقل به ركب منهم في وادي السباع اتوه تأيية و اخوف الا ما وقى الله ساريا. او عبارة قصيره دا دے. مررت على وادي السباع ولا ارى واديا اقل به ركب من وادي السباع اتوه تأية اخوف الدما وقى الله ساريا. او عبارة متوسط دا دے ولا ارى كوادي السباع حين يظلم واديا اقل به ركب اتوه تأية واخوف الا ما وقى الله ساريا. **سوال** دا دے چه مصنفؒ ولے موصوف دا حسن په مثال مشهوره کښې پرېښودو. او په قول د شاعر کښې ئې ذکر کړو سره د دے نه چه کمال مماثلة په ذکر د موصوف کښې دے **جواب** دا دے چه مصنفؒ اول په مقام د بيان د اختصار کښې دے او ثانيا ذکر د تنبيه کړې

معنی د شعر ونو دا ده. چه تلل او مرور م اوکړو په يوه کنده باندې چه په هغې کښې درنده حيوانات وو او حال دا دے چه ما اوليدل په شان د هغه کنده چه يکښې درندګان پاتې کيدل په هغه وخت کښې چه تيارے په هغې باندې احاطه کړې وي يو کنده هسے کنده چه لږ وي په دے سواره اتوه چه را تلل مے کندے ته د پاره د توقف او دے او ډيره خوفناکه مګر چه حفاظت اوکړي الله د يو تلونکي او د مسافر د شپے يعني دے کندے ته څوک نه راځي او نه پکښې د مه کوي ډيرے نه مګر هغه څوک چه د هغه حفاظت الله اوکړي

# الفعل

هر کله چه مصنفؒ فارغ شو د تقسیم اول د کلمے نه چه هغه اسم دے او د هغه د متعلقاتو نه
نو شروع ئے اوکړه په قسم ثانی د کلمے کښ چه هغه فصل دے نو دے وئیل چه الفعل په الفعل
کښ الف لام عهدی دی او معهود په دے سره هغه فعل دے چه کوم ئے په تقسیم کښ
ذکر کړے دے.

**مادل علی معنی فی نفسه** | ما هغه کلمه ده چه دلالت کوی په معنی باندے هسے معنی چه
حاصله او ثابته وی په ذات د دے کلمے کښ هغه معنی چه مقترن نه وی په یو د ازمنهٔ ثلثه
مخصوصه پورے. په اعتبار د اصل وضع سره

په کلمے د ما کښ هم هغه تحقیق دے چه کوم په تعریف د اسم کښ مونږ ذکر کړے دے
او په دل کښ تذکیر د ضمیر په اعتبار د لفظ سره دے دلته کښ **سوال** وارد یږی
چه مبتدا او خبر کله دواړه معرفه وی نو لابدی ده په کښ د ضمیر فصل نه لګیګار وله
چه مصنفؒ وئیلی وو الفعل هو ما دل. **جواب** دادے چه دا اعتراض به هله وارد یدو کله
ملته کښ ما موصوله وے او دلته کښ ما موصوفه ده **سوال** دادے چه ضمیر د فی نفسه
به خالی نه وائے یا به راجع وی کلمے ته او یا معنی ته او دواړه صورتونه نه دی صحیح
هر چه دے عدم صحة کلمے ته هغه په دے وجه چه دلته کښ فی داخلے دے. او دا
راځی دپاره د ظرفیة او کلمه خو نه ظرف زمان دے او نه ظرف مکان او د غه شان
مطابقة هم نه راځی په مابین د راجع او د مرجع کښ او کچرته معنی ته ئے راجع کړو. نو
لازمیږی ظرف د شی دپاره د خپل نفس او د غه شان لازمیږی مخالفة په مابین
د اجمال او د تفصیل کښ. **جواب** دادے چه دلته کښ ضمیر راجع دے کلمے ته او دلته
کښ کلمه د فی دپاره د ظرفیة نه ده بلکه دپاره د اعتبار ده لکه والی الدار فی نفسها
حکمها کذا او تذکیر د ضمیر په اعتبار د تعبیر سره دے او یا جواب دادے چه دلته
کښ ضمیر راجع دے معنی ته او ظرفیة د شی نه راځی د خپل نفس دپاره. ځکه چه فی
دپاره د ظرفیة نه ده. او مخالفة نشته دے په مابین د اجمال او د تفصیل کښ ځکه
چه کینونة د معنی په نفس کلمه کښ او یا کینونة د کلمے په نفس کلمه کښ دا امر واحد دے

چه هغه استقلال بالمفهومیة دے **سوآل** مادے چه د معنی نه به مراد یا معنی مطابقی اخلی یا بتضمنی اخلی او یا التزامی او یا مطلق معنی او پوهم نه صحیح کیږی معنی مطابقی خو ځکه نه صحیح کیږی ځکه چه په دے کښی نسبة دے او هغه غیر مستقل دے او مرکب د مستقل او غیر مستقل نه هغه غیر مستقل وی اوکه معنی تضمنی اخلے. نو یا به ترینه نسبة اخلے یا حدث او یا زمان که نسبة اخلے نو هغه غیر مستقل اوکه زمان اخلے نو بیا لازمیږی اقتران د زمانے په زمانے پورے او حدث اگرکه مستقل دی او مقترن دے په یو دانړ منه پورے لیکن لو زمیږی ترجیح بلا مرجح او اخذ د معنی التزامی مهجور دے په تعریفاتو کښی او د مطلق خو وجود بغیر د مقید نه نشته. هغه اعتراضات چه کوم په مقید وارد یږی هغه په مطلق هم واردیږی **جواب** مادے چه مراد په معنی سره مطلق معنی ده او فصل په اعتبار د معنی تضمنی سره چه هغه حدث دے مستقل بالمفهومیة دے او دلته کښی خبر تضمن نه پیرا راده کښی ده نه په وجود کښی او د مطلق اراده کیدے شی بغیر د مقید نه او مراد په اقتران سره اقتران دے په اعتبار د اصل وضع سره نه په اعتبار د استعمال سره په دے سره تعریف د فعل جامع او مانع او ګرځیدو۔

په دے تعریف کښی لا بدی ده د جنس او د فصل نه نو په تعریف د فصل کښی ما دل په منزله د جنس دے د کلمے تولو اقسامو له شامل دے او فی نفسه دا یو فصل دے په دے سره ترینه حرف خارج شو او مقترن بأحدالازمنة الثلثة دا بل فصل دے په دے سره ترینه اسم خارج شو او چه مونږ ورسره قید د بحسب اصل الوضع او لګو نو هغه نور نقوض وارد نه شو

**ومن خواصه** | او بعض د خواصو د فعل نه هغه د **خول قد** داخلیدل د قد دی لکه قد خرج قد یخرج ځکه چه دا قد وضع دے د پاره د تحقیق د فعل یا د تقلیل یا د تقریب د ماضی حال ته او دا مختص دی په فعل پورے. لنو هغه لفظ چه کوم دال دے په دے باندے هغه هم مختص دے په فعل پورے دلته کښی قد مؤول دے په تاویل د لفظ سره نو مضاف الیه واقع کیدل ئے صحیح دی

**والسین وسوف** او سین او سوف داخلیدل هم د خواصو د فعل نه دی ځکه چه سین دال دے په استقبال قریب باندے او سوف دال دے په استقبال بعید

بانڈِ اوُ استقبال قریب یا بعید خاص دی په فعل پورے نو هغه لفظ چه دال دے په دے بانڈِ هغه هم خاص دے په فعل پورے لکه سیخرج او سوف یخرج۔ دلته کښې استقبال نه مراد استقبال وضعی دے۔ سوال دادے چه السین ئے معرف باللام راوړے اوُ سوف ئے غیر معرف راوړے ددے څه وجه ده جواب دادے چه دا الف لام عهدی دی اوُ معهود په دے سره سین داستقبال دے نه سین د استفعال دے اوُ نه سین دتحقیق یا سین د کسکسه۔ لکه استغفر، یا ساطلب یا اکی متکس، اوُ سین داستقبال قریب دپاره راځی ځکه ئے دامقدم کړو په سوف بانڈِ۔ والجوازم اوُ دخول دجوازمو دام دخواصو د فعل نه دی لکه

ان ولم لما و لام امر و لائے نهی نیز        پنج حرف جازم فعلند هر یک بے دغا

ځکه دے کښې بعض دنفی دفعل دپاره دی۔ لکه لم او لما۔ اوُ بعض دپاره د طلب د فعل دی لکه لام دامر شو اوُ یا د نهی د فعل دپاره دی لکه لا د نهی یا دپاره د تعلیق د شی دی په فعل پورے اوُ دا نول امور اوُ معانی موجود یږی په فعل کښې لکه لم یضرب یا لا تضرب وغیره۔ ولحوق تاء التانیث اوُ لحوق د تاء تانیث دلته داعبارة عطف دے په دخول بانڈِ نه په قد۔ ځکه چه اضافت د دخول لحوق ته نه صحیح کیږی اوُ دا لحوق د تاء تانیث په فعل پورے خاص دے ځکه چه دا دلالت کوی په تانیث دفاعل بانڈِ لوُ فاعل وی دپاره دفعل اوُ صفاتو سره دغے تاء دلکولو ضرورت نشته۔ ساکنة۔ په حل دکون ددے تاء کښې چه دا به ساکنه وی په دے سره احتراز راغلو د تاء متحرکه نه ځکه چه هغه خاص ده په اسم پورے ځکه چه اسم ضعیف دے اوُ تاء متحرکه ثقیله ده نو خفیف له ثقیل ورکړے شو دپاره د تعادل۔ اوُ فعل ثقیل دے نو هغه تاء ساکنه ورکړے شوه اوُ په ضربتا کښې چه تاء متحرکه راغلې ده د احرکت دکه عارضی ده۔ ونحو تاء فعلت مراد په دے سره هغه ضمائر متصله بارزه دی چه متحرکه اوُ مرفوعه دی۔ اوُ دا خاص په فعل پورے په دے وجه ده۔ چه دا تاء ضمیر دفاعل دے اوُ فاعل نه وی مگر دفعل سوال دادے چه فاعل ځنګه دپاره د فعل وی نو دغه نشان دپاره د فروعاتو د فعل هم وی نو پکار دادے چه هغه پورے دِ هم ملحق شی دا ضمیر جواب دادے چه په دغه صورت کښې بیا دفرع اوُ داصل په مابین کښې تسا وی راشی سوال دادے چه تسا وی خو په دے سره هم دفعه کیدِه چه ضمیر مستتر به ئے پکښې نه وو راوړے

ضمیر مستکن اخف او اخصر دے نو ځکه اولیٰ دے په تعمیم سره په دے وجه نے ضمیر بارز خاص کړو په منع سره.

**الماضی ما دل علی زمان قبل زمانك** | هر کله چه مصنف فارغ شو د بیان د تعریف دفعل نه او د هغے دخواصو نه. نو شروع

نے اوکړه په اقسامو کښ او وے ویل چه الماضی او ماضی نے مقدم کړه په مضارع باندې ځکه چه په طبع کښ ماضی مقدم ده په مضارع باندې نو وضعًا نے هم مقدم کړه د پاره د دے چه موافقت راشی په مابین د وضع او د طبع کښ. ماضی دا هغه فعل دے چه دلالت کوی په هغه زمانه باندې چه هغه مخکښ ده ستا د تکلم یا قبل زمانِ انت فیه او مراد په دلالت سره په اعتبار داصل وضع سره دے په دے قید سره دفع د سوال راغله سوآل دا دے چه ستا دا تعریف جامع او مانع نه دے. جامع په دے وجه نه دے چه د نه خارجه شوه هغه ماضی چه هغے باندې ادوات د شرط لکه ان ضربتَ ضربتُ. او هر چه دے عدم د دے مانع د دخول د غیر نه هغه په دے طریقه چه په دے کښ فعل مضارع چه مجزوم ده په لم سره هغه پکښ داخله شوه ځکه چه هغه په معنی د ماضی ده جوآب دا دے چه مراد په دلالت سره دلالت دے په اعتبار داصل وضع سره نه په اعتبار د عارض سره. او په مذکوره صورتونو دا دلالت عارضی دے والعوارض لاتعتبر. اعتراض دا وارد یږی چه تا او ویل مادل علی زمان قبل زمانك او متبادر دقبلیة نه قبلیة زمانی دے نو په دغه صورت کښ لازم یږی د زمانے د پاره زمانه. جوآب دا دے چه دلته کښ د قبلیة سره مراد قبلیة ذاتی دے. چه هغه په مابین د اجزاء د زمانے کښ دے. ځکه چه تقدم د اجزاء د زمانے د بعضو په بعضو باندې هغه ذاتی دے. نه زمانی د پاره د دے چه لازم نه شی د پاره د زمانے زمانه. او مراد په لفظ د ما سره فعل دے. نه لفظ او یا شے د پاره د دے چه اسم پکښ داخل نشی. **مبنی علی الفتح** دا به مبنی وی په فتح باندې لفظًا وی که تقدیرًا په وخت د عدم د مانع او د عارض کښ. مبنی یا خبر دے او مبتداء نے محذوف ده چه هو دے یا دا خبر بعد خبر دے هر چه ده بنا د دے هغه په دے وجه چه د دے کښ علة د اعراب هغه نشته چه هغه عروض د معانی معتوره دی او یا مشابهة دے د اسم سره مشابهة تامه. او هر چه ده بنا د دے په حرکت سره نه په سکون سره چه هغه اصل دے په بناء کښ هغه په دے وجه چه د دے مشابهة راغلے دے د فعل مضارع

سره اوبل ځا واقع کیږی په موقع د اسم باندې او هر چه دره بنا دے په فتح باندې ځکه چه فتح اخف الحرکات دے او فعل ثقیل دے نو دے سره تخفیف مناسب دے. او فتحه عامه ده لفظا وی که تقدیرًا د پاره د دے چه اعتراض په دعا او په رمیٰ هم راشی

**مع غير الضمير المرفوع المتحرك** مونږ ورسره دا قید اولګوو چه په وخت د عدم د مانع او د عارض کېښ هغه مانع دا دے

چه دے سره به د ضمیر مرفوع متحرك لحوق نه وی کړے وی نو بیا به آخر د دے ساکن وی د پاره د دے چه توالی د اربع حرکا تو متوالیه را نشی په هغه صیغه کېښ چه هغه کالکلمة الواحد ه ده. دا خبره مونږ په دے وجه اوکړه چه سوال واردیږی چه توالی د اربع حرکا تو په کلمه واحد کېښ صحیح نه دے او هر چه په کلمتین کېښ نو دا خو جائز دے او دلته کېښ خو کلمتین دی. نو مونږ اووئیل فیما هو کالکلمة الواحدة ځکه چه ضمیر مرفوع متصل د وجے د شدة د اتصال د دے د فعل سره په منزله د کلمے واحدے اوګرځیدو.

**والواو** او دغه شان ماضی به مبنی نه وی په فتحه باندې په وخت د اتصال د واو سره ځکه چه واو دا تقاضا کوی چه ماقبل د ځکېښ ضمه وی په دغه وخت کېښ به ماضی مبنی وی په ضمه باندې لفظا وی او که تقدیرًا لفظا لکه ضربُوا او تقدیرًا لکه رموا. دلته کېښ اګر که په ظاهر کېښ فتحه ده لیکن حقیقة کېښ ضمه ده ځکه چه دا په اصل کېښ رمیوا وو. او په متحرك سره احتراز د ضربا ه نه راغلو.

**المضارع ما اشبه الاسم باحد حروف ثابت** مونږ قسم د فعل هغه مضارع ده دا هغه فعل دے چه مشابهه وی د اسم سره په سبب د زیادت د یو د حروف اربعه نه چه مجموعه ئے نأیت ده چه دے ته حروف مضارعت وئیلے شی چه مجموعه ئے نأیت، اتین، نأتی راځی دلته کېښ سوال واردیږی چه تا ولے عدول اوکړو د مشهور الطلاق نه چه په اطلاق مشهوره کېښ د دے مجموعه اتین ده جواب دا دے چه په اتین کېښ یو نقصان دا دے چه تفریق راځی په مابین د حرفینو د متکلم کېښ. او تقدیم د حرف خطاب راغلے دے چه تاء ده په یاء باندې چه هغه د یاء ره د غیبة راځی. او دا خلاف دے د ترتیب نه ځکه چه ترتیب کېښ غائب متوسط دے په مابین د متکلم او د مخاطب کېښ او منتهی د کلام په مخاطب باندې راځی لیکن ترکیب د اتین په دے مقام کېښ مناسب دے لفظا او معنًا هر چه دے لفظا هغه په دے وجه دے متضمن دے حروف اربعه لره

او هر چه دے معنا نو دے ترکیب کښې ما ملاحیۃ شته دے چه دے صفة واقع شی دپاره د حروفِ مذکوره لانها اٰتیة فی اول المضارع ۔ نو ما ترکیب او ترتیب په دے مقام کښې اجنبی نه دے او نا یتِ الرکه مشتمل دے په هغه فوائدو باندِ چه مونږه ذکر کړے لیکن دے مقام سره به دے کښې بُعد دے ځکه داد نَاْیْنَاءْ نه دے په معنی د بعد سره

**لوقوعه مشترکا بین الحال والاستقبال وتخصیصه** د وجې د واقع کیدو د دے مضارع نه مشترک که په مابین د حال او د استقبال د زمانے کښې ۔ دلته کښې مصؒ وجه د مشابهة د فعل مضارع د اسم سره بیانوی لکه چه څنګه اسم مشترک واقع کیږی په متعدد و معانی باندِ راځی ۔ لکه عین شو دغه شان فعل مضارع هم مشترکه ده په مابین د زمانه حال او استقبال کښې ۔ او چه څنګه تخصیص د اسم مشترک راځی په قرینے سره دپاره د یوے معنی نو دغه شان تخصیص د فعل مضارع راځی دپاره د یوے معنی په سین او په سوف سره ۔ دلته کښې **سوال** واردیږی چه مصؒ ولے مخالفت اوکړو د تعریفاتو مشهوره نه چه د مضارع په تعریف کښې وئیلے شی ما فی اوله احد حروف الزوائد الاربعة یا مادل علی زمان یترقب

**جواب** دا دے چه مصؒ عدول اوکړو د مشهورو تعریفاتو نه دپاره د یوے فائدے هغه دا ده چه په دے تعریف سره وجه تسمیه د فعل مضارع ته اشاره اوشوه ۔ مضارع مشتق ده د مضارعة نه او مضارعة په معنی د مشابهة سره راځی او په دے کښې شک نشته چه مضارع مشابهه ده د اسم سره ځکه ئے په تعریف کښې اوفرمائیل ما اشبهه ۔

**نکته** مضارع مشتق ده د مضارعة نه او د مضارعة دپاره مبدأ هغه ضرع ده او ضرع د غوا یا د میښے او د بزے کښے وغیره تو ته و ئیلے شی ګویا دوی د یو تو نه پئ رودلی دی ۔ داپه منزله د رونړو خویندو اوګرځیدل ۔ او په هغوی کښې مشابهة موجود دے ۔

**فالهمزة للمتکلم** په دے عبارة سره مصؒ تفصیل د دے حروفو بیانوی نو وئیل چه فالهمزة للمتکلم مفرداً همزه راځی دپاره د واحد متکلم برابره خبره ده چه مذکر وی او که مؤنث وی دا مفرداً حال واقع شوے دے همزه د مبتدا د مخارجو نه ده او متکلم مبتدا د کلام دے ۔ **والنون له** او نون دپاره د متکلم دے ۔ **مع غیره** سره د غیر نه دا مع غیره حال دے او تقدیر د عبارة به

ماسبے شی حال کو نه مقروناً مع غیرۂ چه هغه واحد وی که تثنیه وی که جمع وی مذکر وی که مؤنث ځکه دا ماخوذ دی دانا او نحن نه

**والتاء للمخاطب مطلقا** اؤ تاء راځی دپاره د مطلق مخاطب یعنی د جنس مخاطب دپاره برابره خبره ده چه مفرد وی که تثنیه وی که جمع وی که مذکر وی که مؤنث داتآء په اصل کښی واؤ وه بیا دا بدله شوه په تاء باندې دپاره ددے چه اجتماع د واوا تو رانشی په یَوَوُجَل کښی په صورت د عطف کښی اؤ بله دجه دا ده چه په ضمائرو د مخاطب کښی تاء راغلے ده.

**وللمؤنث والمؤنثین غیبة** اؤ د غه شان تاء راځی دپاره د واحدے تثنیے مؤنثے په حال د کون ددے کښی چه غائبے وی. **سوال** دادے چه د مذکر غائب صیغو دپاره ئے یآ ورکړیده او د مؤنث دے صیغو لره ئے ولے یآ ورنکړه **جواب** دادے چه بیا التباس راتلو په مابین د مذکر اؤ د مؤنث د غائبو په صیغو کښی په دے صورت کښی خو هم التباس راځی په مابین د غائب مؤنث اؤ د مذکر مخاطب کښی جواب دادے چه دلته چونکه مخاطب محسوس دے په دے وجه التباس مدفوع دے.

**سوال** دادے چه غیبةً حال دے د للمؤنث والمؤنثین نه اؤ مابین د حال اؤ د ذوالحال کښی مطابقة پکار دے په افراد تثنیه جمع په تذکیر اؤ په تانیث کښی اؤ دلته کښی مطابقة نشته **جواب** دادے چه غیبة مؤول دے په تاویل د غائبات سره په نظر سره معنی د مؤنث اؤ مؤنثین وته یا دلته په عبارة کښی تقدیر دے اؤ دا محمول دے په حذف د مضاف سره چه ذاغیبة.

**والیاء للغائب غیرهما** اؤ یا راځی ددے دپاره نه (مؤنث اؤ مؤنثین نه) علاوه دپاره. ځکه یا دوسط د مخارجو نه ده اؤ غائب متوسط دے بین المتکلم والمخاطب غیرهما یا صفة دے دپاره د غائب اؤ یا بدل دے د غائب نه. اؤ دواړه صورتونه نه صحیح کیږی. ځکه چه صفت شی نو الغائب معرفه ده اؤ غیرهما نکره ده. ځکه چه غیر دوجے د توغل نه په ابهام کښی په اضافت سره هم په دے کښی تعریف نه راځی اؤ په مابین د موصوف اؤ د صفت کښی مطابقت پکار دے. اؤ بدل په دے وجه صحیح کیږی چه نکره کله بدله د معرفے نه راشی نو د هغے توصیف واجب دے اؤ دلته توصیف ئے نه دے شوے لکه بالناصیة ناصیة کاذبة **جواب** دادے چه دا بدل دے

په سبيلے د تسامح سره او په حقيقة کښ دا صفة د پاره د بدل دے او تقدير د عبارة داسے چه غائب غيب ها او ياداچه غيرها اګرچه په اضافت سره معرفه نه ده ليکن اُس د ا محض نکره هم نه ده پاتے. نو ما په توګه د نکرے موصوفے کښې اوګرځيد و . او دا غير ها حال دے او حالية دا صورة ئے اولی دے چه موافقة راشي د سابق سره لکه محکښې ئے اوفرمائيل للمتکلم مفرداً. او دا سے ئے اونهٔ وئيل چه للمفرد المتکلم.

**وحروف المضارعة مضمومة فى الرباعي**! او حروف د مضارعة دا به مضموم وی په هغه صيغو کښې چه ماضی يې څلور و حرفونو والا وی په دے عبارة سره مصنف حرکات د دے حروفو ذکر کوی. اصل خو په دے کښې فتحه ده ولے دلته کښې عدول اوکړے شو د فتح نه ضمے ته د پاره د دے چه فرق راشي په ثلاثی او په رباعی کښې. او عکس ئے اونکړو ځکه چه رباعی اقل دی. او چه ماضی څلور و حرفونو والا وی عام دے خبرے نه چه اصلی وی لکه دحرج او يا نه وی لکه افعل فعّل او فاعل. هرچه ده ضمه په باب افعال کښې د پاره د دے چه لازم نه شي التباس د مضارع د ثلاثی مجرد سره او نور بابونه په دے باندے حمل کړے شو طرداً للباب. **ومفتوحة فيما سواه** او د دے علاوه به مفتوح وی ځکه چه ما سوا د دے نه کثير وی من حيث الاستعمال او من حيث الحروف او کثرة تقاضا تخفيف کوی. دلته کښې سوال وارديږی چه بيان د مضمومية د حروف مضارعة يا مفتوحية دا خو وظيفه د علم صرف ده نه د نحو. نو په نحو کښې ولے تا دا بحث راوړو. **جواب** دا دے چه دلته کښې دا بحث، تبعاً او استطراداً دے.

**ولا يعرب من الفعل غيره** په افعالو کښې سوا د فعل مضارع نه بل فعل معرب نه دے ځکه چه په دوی کښې علت د اعراب نشته دے. او د فعل مضارع مشابهت راغلے دے د اسم سره نو په دے وجه باندے دا معربه اوګرځيده. **اذا لم يتصل به نون التاکيد او نون جمع المؤنث** الخ په هغه وخت کښې چه نون د تاکيد خفيفه وی که ثقيله وی نه وی متصل شوے يا نون د جمع مؤنث. ځکه چه کله ورسره نون د تاکيد متصل شي. نو دا په مبنی اوګرځی. چرنکه نون تاکيد د وجے د شدة اتصال نه په منزله د جز د کلمے اوګرځيد و. نو کچيرته اعراب د دے مخکښې راشي نو لازميږی دخول د اعراب په وسط کښې. او که اعراب په دے باندے داخل شي نو لازميږی اجراء د اعراب په کلمے اجنبي باندے حقيقة او هرچه دے نون د جمع مؤنث نو هغه په دے وجه چه نون د

جمع مؤنث ماضی سره مشابهه دے د هغه نون سره چه کوم په جمع مؤنث ماضی کښې دے. نو داقتضا کوی چه ماقبل د دے نه ساکن وی لکه چه څنګه په ماضی کښې دے.

دلته په عبارة د معږ کښې اشکال دے هغه دا چه د دے عبارة نه داخبره معلومیږی چه غیرالمضارع من الفعل لا یعرب اذالم یتصل به النون المذکورة ویعرب اذااتصلت به حالانکه مراد خو دا نه دے . ځکه چه سوا د مضارع نه خو د سره فعل معرب نشته جواب دا دے چه دلته کښې اذالم یتصل الخ داقید دپاره د مذکور نه دے بلکه قید دپاره د مقدر دے. او تقدیر د عبارة به داسے شی چه ولا یعرب من الفعل غیرہ بل یعرب المضارع اذالم یتصل نو دا عبارة په قوت د دے کښې شو چه انما یعرب المضارع اذالم یتصل الخ

**واعرابه رفع ونصب وجزم** | او اعراب د فعل مضارع رفع نصب او جزم دی. د اسم اعراب هم په درے قسمه دے او د فعل هم. جزم خاص دے په فعل پورے لکه چه جر خاص دے په اسم پورے **فالصحیح المجرد عن ضمیر بارز مرفوع** پس صحیح چه په اصطلاح د نحا تو دے ما لایکون فی آخره حرف علة. صحیح چه خالی وی د ضمیر بارز نه هغه ضمیر بارز چه مرفوع وی. په دے عبارة سره مصنف بیان د تفصیل دا صنافو د فعل مضارع دا عراب کوی د پاره د دے چه هر یو قسم ته مستقل اعراب او رسی. **للتثنیة والجمع والمخاطب المؤنث بالضمة والفتحة والسکون** حالت رفعی به ئے په ضمے سره وی. حالت نصبی به ئے په فتحے سره وی او حالت جزمی به ئے په سکون سره وی. **مثل یضرب ولن یضرب ولم یضرب** یضرب حالة رفعی دے. لن یضربَ حالت نصبی او لم یضربْ حالة جزمی دے. **والمتصل به ذلک بالنون وحذفها** او اعراب د مضارع چه هغے پورے ضمیر بارز مرفوع متصل وی په حالت رفعی کښې به په ثبوت د نون سره وی او په حالت نصبی او جزمی کښې به په حذف د نون سره وی په دے کښې نصب تابع د جزم دے. لکه چه څنګه نصب تابع د جر دے په اسماء کښې **مثل یضربان و یضربون وتضربین** په حالت رفعی کښې په دے کښې ثبوت د نون دے او په حالت نصبی او جزمی کښې سقوط د نون دے.

**والمعتل بالواو والیاء بالضمة تقدیرا والفتحة لفظا والحذف** . او کوم چه دا فعل مضارع معتل واوی یا معتل یائی وی نو هغه په حالت رفعی کښې به ضمے سره وی تقدیرا ځکه چه ضمه ثقیله ده په واو او په یاء باندے لکه یدعو او یرمی. او په حالت

نصبي کښې به يکښې لفظاً فتحه وي ځکه چه دا اخف الحرکات دے. لکه لن يدعوَ لن يرميَ. اُو په حالة جزمي کښې به په حذف دد غه واؤ او يا سره وي. ځکه چه هر کله حرف جازم (عامل جازم) اونه مونده لو حرکت نو ساقط ئے کړه غه حرف چه کوم مناسب ووده حرکت سره لکه لم يرم اؤلم يدعُ **والمعتل بالالف بالضمة والفتحة تقديرا والحذف** اؤ کړينه دا فعل مضارع معتل وي په الف سره يعني په آخر کښې ئے الف وي نو په حالة رفعي اؤ نصبي کښې به يکښې ضمه اؤ فتحه تقديري وي ځکه چه الف ساکن وضعي دے حرکة نه قبلوي اؤ په حالة جزمي کښې به الف ساقطيږي. **ويرتفع اذا تجرد عن الناصب والجازم نحو يقوم زيد.** اؤ کړيته عامل ناصبه يا عامل جازمه يکښې نه وي نو بيا به فعل مضارع مرفوعه وي. زده کړه دا خبره چه په عامل د فعل مضارع کښې دوه مذهبه دي يو مذهب د کوفيانو دے اؤ بل مذهب د بصريانو دے. مذهب د کوفيانو دا دے چه هوالتجرد عن الناصب والجازم اؤ مذهب د بصريانو دا دے چه هو وقوعه موقع الاسم يعني واقع کيدل دي په موقع د اسم باندې. ځکه چه دا هر کله واقع شوه په موقع د اسم باندې نو دا پشان د اسم شوه نو دے له قوي اعراب د اسم ورکړے شو. سوال دا دے چه مضارع د ير ځله اؤ د ير کرته واقع کيږي مرفوعه اؤ واقع نه وي په موقع د اسم باندې لکه الذي يضرب يا يقوم الزيدان. جواب دا دے چه مضارع دلته کښې واقعه ده په موقع د اسم باندې ځکه چه الذي يضرب په اصل کښې دے الذي ضارب هو اؤ يقوم الزيدان په اصل کښې قائمان الزيدان. اؤ د غه شان کښې سين په مضارع داخل شي يا سوف نو هم به مضارع واقع وي په مقام د اسم باندې

| | |
|---|---|
| **وينصب بان ولن واذن وكي وبان مقدرة بعد حتى ولام كي ولام الجحود** | اوس مصنف په دے عبارت سره مواضع د نصب د فعل مضارع ذکر کوي نو وائي وئيل چه وينصب |

چه دا فعل مضارع به منصوبه کرځي په سبب د دخول د ان اِل سره لکه شاعر وائي.

ے ان ولن پس کے اذن اين چار حرف معتبر

نصب مستقبل کند اين جمله دائم اقتضاء

اؤ د غه شان فعل مضارع به منصوبه وي په هغه ان سره چه هغه مقدر وي پس د حتى لام کے اؤ د لام جحد نه. دا په دے وجه چه حتى يا لام جحد يا لام کے دا حروف جاره دي اؤ حروف جاره داخليږي په اسم باندې نو ځکه نو په فعل مضارع باندې ان مقدر کړے د پاره

ددے چه دا په تاویل د مصدر سره اسم اوګرځیږی نو دخول د حروفِ جاره به ورباندِ صحیح شی۔ **والفاء** او پس دفاء نه لکه زرنی فاکرمك **والواو** لکه لاتاکل السمك وتشرب اللبن حُکه چه دا دواړه حروفِ عاطفه دی چه واقع شویدی پس د انشاء نه او عطف د خبر په انشاء باندِ ممتنع دے په دے وجه ان ئے پکښې مقدر کړو چه په تاویل د مفرد سره اوګرځی ۔ **واَوْ** او د دغه شان پس د او هم ان مقدر دے لکه اوواَ چه لالزمنك او تعطینی حقی ۔ یعنی الی ان تعطینی حقی یا الا ان تعطینی ۔ دلته کښې إلّا د ادواتو د استثناء نه دے او الی د حروفِ جاره نه دے ۔ او د ادواره خاص دی په اسم پورے

**فان مثل ارید ان تحسن الیّ** | مصنفؒ شروع اوکړه په تفصیل د دے عواملو کښې نو مے فرمائیل چه ان چه په دے سره فعل مضارع منصوب کړے شی لکه اوواَ ارید ان تحسن الیّ تحسن فعل مضارع دے لره ئے نصب ورکړو ما مثال د نصب دے بالفتحه یا **ان تصوموا خیر لکم** ما مثال د نصب دے په حذف د نون سره ۔ دلته کښې سوال واردیږی چه ان ناصب دے فعل مضارع لره نو په در ته او ښایم چه فعل مضارع به وی سره د دخول د ان نه به مرفوعه وی لکه علم ان سیکون منکم نو جواب اوکړه مصنفؒ **والتی تقع بعد العلم** یعنی ان چه کله واقع شی پس د باب د علم نه یا هغه چه په معنی د یقین سره وی ۔ **هی المخففة من المثقلة** ما مخفف دے د مثقل نه ۔ **ولیست هذه** او هغه دا ان نه دے چه کوم ناصب د فعل مضارع دے ان مثقله دال دے په تحقیق باندِ نو دے سره علم او یقین مناسب دے او ان ناصبه مصدریه دا دال دے په رجاء او په امید باندِ نو دے سره علم مناسب نه دے ۔ **نحو علمت ان سیقوم وان لایقوم** دا به مرفوع و ویلے شی۔

نده کړو داخبره چه دلته کښې مصنفؒ دوه مثالونه ذکر کړل او په دے کښې ئے لوئے قاعدے ته اشاره کړیده هغه دا چه په مابین د دغه ان مخففه عن المثقلة کښې یا سین راغلے وی لکه په دے پورته مثال کښې یا به سوف وی لکه په دے قول د شاعر کښې ۔ اعلم فعلم المرء ینفعه ان سوف یأتی کل ما قدر ۔ یا به قد واقع وی ۔ لکه لیعلموا ان قدابلغوا رسالات ربهم ۔ یا به حرفِ نفی وی لکه افلا یرون ان لایرجع الیهم قولا ۔ یا لکه علمت ان لم یقم او دلته کښې دا فعل لازم اوګرځیدو ۔ چه دا د محذوف

نه عوض اوګرځي ځکه چه دلته کښې یولزون حذف شوی دے او بل اسم چه هغه ضمیر شان دے او بله وجه دا ده چه فرق راشي په مابین د دے ان کښې چه مخفف عن المثقل دے. او په مابین د ان مصدریه او د فعل په مابین کښې فصل نه راځي په یو د دے حروفو سره ځکه چه ان مصدریه سره دخیل مدخول نه په تاویل د مصدر دے.

**والتی تقع بعد الظن ففیها الوجهان** او هغه ان چه واقع شي پس د باب د ظن نه نو په هغې کښې دواړه وجې جائز دي

چه ان مخفف عن المثقل شي په دے اعتبار سره چه په ظن کښې دلالت دے په غلبه باندې نو دا مناسب شو د ان مخفف عن المثقل سره او چه د دے جهت ته او کورے چه عدم تیقن دے یکښې نو یکار ده چه دا ان مصدریه اوګرځي **ولن** او د حروف ناصبه نه چه فعل مضارع لره نصب ورکوی لن دے.

**فائده** لن په نزد سیبویه باندې حرف مستقل دے د دے د پاره څه اصل نشته چه د هغې نه ماخوذ شي. د فراء په نزد باندې په اصل کښې لا دے بیا الف په نون باندې بدل شو او د خلیل په نزد باندې د دے اصل لا ان وو بیا الف ترهم لرے کړے شو او همزه هم د وجې د کثرة استعمال نه لکه ایش شو په ای شئ کښې.

**مثل لن ابرح ومعناها نفی المستقبل الخ** او معنی د دے د پاره د نفی د مستقبل ده. او دلته کښې د نفی نه مراد نفی موکده

ده نه مؤبده. کچرته دا نه شي نو تناقض به لازم شي. په دے قول د باری تعالیٰ کښې لن ابرح الارض حتی یاذن لی ابی ځکه چه لن د پاره د تابید شي او حتی د پاره د انتهاء شي نو بیا خو به په دواړو کښې تناقض راشي. واذن بل د عوامل ناصبه د فعل مضارع نه اذن دے د سیبویه په نزد باندې دا حرف دے مستقل او بعض نحاة وائي چه اصل د دے اذان دے بیا پکښې تخفیف اوشو.

**اذا لم یعتمد مابعدها علی ماقبلها** هغه وخت کښې چه اعتماد نه وی کړے مابعد د دے په ما قبل باندې نو دلته کښې د عمل د پاره د نصب

د اذن دوه شرطونه دی اول دا چه مابعد د دے بر اعتماد و نه کړی ماقبل باندې ځکه چه په دغه وخت کښې لازم مینځ ته راځي د دو عاملینو مختلفینو په معمول واحد باندې. چه هغه

یواذن دے اؤ بل ماقبل د دے **وکان الفعل مستقبلا** اؤ دریم شرط دا دے چہ فعل بہ مستقبل وی ځکہ چہ داجزاء هم دہ اؤ جواب هم دے۔ اؤ دادوارہ په استقبال کښې ځی اؤ دغه شان چہ کله مابعد د دے اعتماد په ماقبل کړے وی نو هغه به په حکم د متقدم کښې شی اؤ اذن ضعیف العمل دے په ما بعد کښې عمل کولے شی اؤ په مقدم کښې نه شی کولے مثل اذن تدخلُ۔ **الجنۃ** لکه اسلم اذن تدخل الجنۃ۔ ځکه چه د خول د جنت په آخرت کښې دے۔ اؤ هغه مستقبل کښې دے۔ اس نمونه په دے دواړو شرطونو کښې یو هم فوت شو اؤ یا دواړه فوت شول نو بیا به عمل نه شی کولے کقولك لمن یحدثك بشئ اذن اظنك کاذبا۔ یاانا اذن احسن الیك۔ یالکه انا اذن اظنك کاذبا۔

**واذا وقعت بعد الواو والفاء ففیها الوجهان** اؤ په هغه وخت کښې چه واقع شی اذن پس د واؤ یا د فاء نو په دغه دوه وجه یکښې جائز دی نصب هم اؤ رفع هم۔ لکه انا آتیك فاذن اکرمك۔ یا واذن لایلبثون خلافك الاقلیلا۔ په دے کښې رفع هم جائز دہ ځکه چه اعتماد مابعد په ماقبل باندے کړے دے۔ اؤ نصب هم جائز دے ځکه چه فعل سره د فاعل نه چه کله مفید دپاره د مستقبل وو قطع نظر د حرف عاطف نه نو ګویا دے غیر معتمد دے په ماقبل باندے۔

**وکے مثل اسلمت کے ادخل الجنۃ** اؤ بل عامل ناصبه دپاره د فعل مضارع هغه کے دے اؤ ما قبل به سبب دپاره د مابعد وی اؤ د دے نه بعد به منصوب وی په اضمار د أن سره د وجے د داخلیدو د لام جاره نه په دے باندے لکه لکیلا یکون علی المؤمنین حرج۔ **ومعناها السببیۃ** اؤ معنی د دے سببیت دے لکه سببیت د اسلام دپاره د دخول د جنت **وحتی اذا کان مستقبلا بالنظر الی ماقبلها** د حتی نه وروستو فعل مضارع به منصوبه وی۔ اؤ دلته کښې به ان مقدر وی اؤ دا به مستقبل وی په نظر سره ماقبل ته ځکه چه ان ناصبه دپاره د طمع اؤ د رجاء راځی اؤ دا نه متصور کیږی مګر په استقبال کښې۔ یعنی مدخول د حتی به په وخت د تکلم کښې مستقبل وی۔ برابره خبره دہ چه مستقبل په نظر سره زمانے د تکلم ته وی اوکه نه وی هو برابره خبره دہ چه مستقبل عند الاخبار وی اوکه نه وی اؤ په دے تعمیم لو سره احتراز راغے د هغه نه چه فعل بعد د دے نه حال وی په نظر سره ماقبل ته بیا په دغه صورت کښې مرجوح في ابتداء وی۔

**بمعنی کے اوالی** یعنی په معنی دکے یاد الی سره دیاره ددے چه دانص اوګرځی په معنی حتی جاره کښی او دا باعث اوګرځی په تقدیر دان ناصبه مقدره.

**مثل اسلمت حتی ادخل الجنة** دا مثال د حتی دے چه په معنی دکے دے او استقبال د مضارع په نظر سره ماقبل ته دے. او په نظر سره زمانے د متکلم ته هم دے. ځکه چه دخول د جنت به په زمانه مستقبل کښی وی. یعنی دلته مستقبل تحقیقا دے **وکنت سرت حتی ادخل البلد** مثال د حتی دے چه په معنی د کے دے یا په معنی د الی دے او استقبال د مضارع په نظر سره ماقبل ته دے. او چه دے په نظر سره زمانے د تکلم ته، نو په دے کښی احتمال د ماضی هم شته دے د حال هم شته دے او د استقبال هم شته دے. **و اسیر حتی تغیب الشمس** دا مثال د حتی دے چه په معنی د کے او یاد الی سره دے په معنی دا انتهار د غایئے دے ځکه چه سفر سبب د پاره د غیبوبة د شمس نه دے. او استقبال د مضارع په نظر سره ماقبل ته دے او په نظر سره زمانے د تکلم ته هم دے یعنی مابعد دے نه مستقبل تحقیقا دے. **فان اردت الحال تحقیقا او حکایة کانت حرف ابتداء.** کله چه ته اراده د حال لوے، تحقیقًا یا حکایة نو دا حرف ابتداء دے یعنی د دے به دماقبل سره ارتباط لفظی نه وی من حیث الاعراب او نه به یئے مشارکت راغلے وی په عامل کښی د حیثیة د تعلیق د جار او د مجرور نه په فعل پورے. بلکه دا به په جمله جدیده کښی وی.

دلته کښی تحقیقا او حکایة په نزد د شارح جامی باندے تمیز واقع دی د حال نه او په نزد د نورو بعض شارحینو باندے دا حال واقع دی، د حال نه. تقدیر د عبارت به داسے شی چه ای حال کون الحال محققة او محکیة. حال تحقیقی خو ظاهر دے. او هر چه دے حال حکائی نو هغه دا چه متکلم خپل ځانله داسے فرض کړی چه دے تکلم کوی په دغه حال کښی. یا هغه حال د متکلم د تکلم په وخت کښی وی. **فترفع** نو مابعد د دے نه به واقع وی ځکه چه په دغه وخت کښی به دا حرف جر نه وی. ځکه چه په دغه صورت کښی د دے نه روستو ان مقدر کیدے شی نو ان داخلیږی په مستقبل باندے د پاره د طمع او د رجاء او دلته منافاة دے په مابین د حال او د استقبال کښی. **و تجب السببیة** او هر کله چه دا حرف ابتداء شو نو واجب شو سببیة د ماقبل د پاره د مابعد. د پاره د دے چه اتصال معنوی حاصل شی اګر چه اتصال لفظی نشته دے. **مثل مرض حتی لا یرجونه** مرض دا سبب او ګرځیدو د پاره د عدم رجاء د حیاة دا حبابو او د اقاربو.

**ومن ثمّ امتنع الرفع** اؤ د وجې د دے خبرے نه چه حتی په وخت دارادے د حال کښې حرفِ ابتداء دے اؤ جاره نه دے۔ اؤ چه حتی کله حرفِ ابتداء شی نو ممتنع دہ رفع په دے ترکیب کښې چه **کان سیری حتی ادخلها فی الناقصة** په دے ترکیب کښې چه کله کان ناقصه شی نو د حتی نه وروستو رفع ممتنع دہ۔ ځکه چه په دغه صورت کښې به حتی حرفِ ابتداء شی ۔ اؤ په هغې کښې د مابعد تعلق د ما قبل سره نه وی نو کان ناقصه به بلا خبره پاتے شی ۔ چه دا موجب دپاره د فساد د معنی دے په فی الناقصة کښې حذف د مضافین راغلے دے یعنی وقت تحقق الناقصة۔ **و اسرت حتی تدخلها** په دے ترکیب کښې به هم حتی نه روستو مرفوع نه شی ویلے کیدے ځکه چه دلته کښې ممکن نه دے سببیة د ما قبل دپاره د مابعد ځکه چه ماقبل د حتی نه مشکوك الوجود دے ۔ ځکه چه په هغې کښې حرفِ استفهام دے اؤ مابعد د حتی نه مقطوع الوجود دے بیا په دغه صورت کښې لازمیږی حکم په وقوع د مسبب باندې سره د شك نه په سبب کښې او دا صورت محال دے۔

**وجاز فی التامة** چه کله کان تامه وی نو جائز دہ رفع پس د حتی نه لکه کان سیری حتی ادخلُها۔ ځکه چه کان تامه تقاضا د خبر نه کوی کچرته ما بعد د حتی نه منقطع اوکرځی د ماقبل نه نو څه ۔نقصان په معنی کښې نه راځی ۔ **وایهم سار حتی یدخلها** دلته کښې هم د یدخلُ رفع صحیح دہ۔ ځکه چه دلته کښې سیر متحقق دے لیکن شك په تعین د فاعل کښې دے ۔ نو دا پوښتنې استحاله نه لازمیږی۔

**ولام کے مثل اسلمت لادخل الجنة** دلته کښې به فعل مضارع منصوب وی ځکه چه د لام نه پس ان مقدر دے اؤ دے لام ته لام کے ځکه وائی چه د دے معنی د کے دے۔ اؤ د دے نه روستو فعل به مؤول وی په تاویل د اسم سره

**ولام الجحود لام تاکید بعد النفی لکان** او لام جحود دا لام دپاره د تاکید د نفی راځی چه هغه نفی په کان داخله وی اؤ جحد په معنی د انکار راځی دے لام ته لام جحود ځکه وائی چه دا راځی په مقام د انکار کښې۔ **مثل وما کان الله لیعذبهم** دلته کښې سوال وارديږی چه دلته کښې لازمیږی حمل د مصدر په ذات باندې ځکه چه دا فعل به په تاویل د مصدر شی۔ **جواب** دا دے چه دلته کښې حذف د مضاف دے په جانب د اسم کښې ای ما کان صفة الله تعذیبهم ۔ یا مضاف حذف دے په جانب د خبر کښې ای ماکان الله ذا

تعذیبهم. یا مصدر مؤول دے په تاویل د فاعل سره یعنی ماکان الله معذبهم.

**والفاء بشرطین احدهما السببیة** یعنی د فاء نه روستو چه ان مقدر وی په دوه شرطونو سره وی یو په دے دواړو شرطونو کښ دادے چه ماقبل به د مابعد د پاره سبب وی ځکه چه عدل د رفع نه نصب ته د پاره د تنصیص دے په سببیة باندے دے حیثیت نه چه تغییر د لفظ دلالت کوی په تغییر د معنی باندے.

**والثانی یکون قبلها امر او نهی او استفهام او نفی او تمنی او عرض** او دویم شرط دادے چه ماقبل د فاء نه یو د دے امور ستة نه موجود وی د پاره د دے چه ځما وهم او نه شی چه مابعد دا عطف دے په ما قبل باندے لکه زرنی فاکرمك، لا تشتمنی فاضربك، هل عندکم ماء فاشربه، ماتأتینا فتحدثنا لیت لی مالاً فانفقه، الا تنزل بنا فتصیب خیرًا.

دلته کښ **سوال** راځی چه څنګه مضارع منصوب په وی پس د امر او د نهی نه پس ان مقدر سره نو دغه رنګ پس د دعا هم منصوبه وی لکه اللهم اغفرلی فافوز، لا تؤاخذنی فاهلك **جواب** دادے چه دعا مندرج ده په امر او یا په نفی کښ **سوال** دادے چه مضارع څنګه منصوبه ده پس د ان مقدر سره پس د نفی نه نو دغه شان پس د تحضیض نه خو هم منصوبه ده.

لکه لولا انزل علیه ملك فیکون معه نذیرًا. **جواب** دادے چه تحضیض مندرج دے په نفی کښ ځکه چه دا مستلزم دے نفی د فعل لره. **سوال** دادے چه نصب د مضارع خو په ترجی سره هم راځی لکه چه څنګه په تمنی سره راځی. لکه لعلی ابلغ الاسباب اسباب السموٰت فاطلع الی اله موسیٰ **جواب** دادے چه ترجی په تمنی کښ داخله ده **سوال** دادے چه د دے نه علاوه خو هم فعل مضارع منصوبه کرځی لکه په دے شعر کښ. سا ترك منزلی لبنی تمیم والحق بالحجاز فاستریحا. **جواب** دادے چه دا مجهول دے په ضرورة شعری باند. خلاصه دا شوه چه په امر او په نهی کښ د عا داخله ده تحضیض په نفی کښ او ترجی په تمنی کښ داخله ده.

**والواو بشرطین الجمعیة** او پس د واؤ نه به ان مقدر وی په دوه شرطونو سره یعنی احدهما الجمعیة د پاره د مصاحبة د ماقبل د مابعد سره ځکه چه عدول د رفع نه نصب ته د پاره د تنصیص په مصاحبة چه تغییر د لفظ دلالة اوکړی په تغییر د معنی باندے. **وان یکون قبلها مثل ذالك** او بل شرط دادے چه ماقبل د دے نه هم هغه اشیاء ستة وی چه کوم په فاء کښ ذکر شو.

**واَوْ بشرط الی ان والاٰن** یعنی داَوْ نه بعد به ان مقدر وی چه دا په معنی دالیٰ ان وی یا اِلاٰن وی **سوال** دا دے چه دلته کښې خو تکرار دان لازمیږی. **جواب** دا دے چه ان د مفهوم دالیٰ ان یا الاٰن نه نه دے بلکه مفهوم د الیٰ یاد الاٰن سره هغه ان دے چه مقدر دے پس د دوئ نه یکه لالن منك اوتعطینی حقی. یعنی الی ان تعطینی حقی یا الاٰن تعطینی حقی. **والعاطفة** اَوْ ان به مقدر وی پس د حروف عاطفه نه اَوْ ددے نه روستو چه مضارع راځی هغه به منصوب به وی.

**اذا کان المعطوف علیه اسما صریحا** په هغه وخت کښې چه معطوف علیه اسم صریح وی دلته کښې **سوال** واردیږی چه ددے عبارت نه ظاهر دا معلومیږی چه مراد په حروف عاطفه سره هغه حروف عاطفه دی چه کوم مخکښې ذکر شویدی حالانکه دا حکم چه څنګه په دے مذکور حروف عاطفه کښې جاری کیږی د غه شان به نورو حروف عاطفه کښې هم دے. **جواب** دا دے چه دلته مراد تر نه مطلق حروف عاطفه دی برابره خبره ده چه مذکور وی که غیر مذکور وی اوٌ چه کله معطوف علیه اسم صریح وی نو ان به څنګه مقدرکوی چه د اپه تاویل د مصدر سره اوګرځی څکه چه عطف د جملے په مفرد باندے جائز نه دے. لکه اعجبنی ضربك زیدًا او تشتم یا فتشتم یا ثم تشتم **سوال** دا دے چه والعاطفة یا به مرفوع وائے په دغه صورت کښې به دے معطوف اوګرځی وحتی اذا کان الخ باندے اوٌ یا به مجرور وائے اوٌ دے به معطوف شی په ان المقدرة باندے. که اول وی نو بیا مراد په حرف عاطفه سره یا مطلق حروف عاطفه وائے یا مذکوره باندے. بنابراول باندے لازمیږی په تفصیل کښې ذکر د هغه شی چه په اجمال کښې نشته سابقه. بنابه ثانی باندے لازمیږی تخصیص د حکم په بعض پورے اوګرځیته دامعطوف وی په بان المقدرة باندے نو پکار دا وه چه دائے دوه ځله ذکر کړے وو مرة فی الاجمال اوٌ مرة فی التفصیل لکه د نورو حروف عاطفه. **جواب** دا دے چه دا مرفوع دے او معطوف دے په حتی باندے لکه معٌ ونیلی دی وحتی اذا کان مستقبلاً. لیکن دا حروف عاطفه به دوه قسمه دی یو هغه دی چه د هغې نه روستو ان مقدر وی خو مشروط وی په شرطین یو شرط مخصوص او بل شرط مشترك په ما بین ددے حروف عاطفه مذکوره کښې او دپه لوړو کښې. او ددے نه علاوه بل قسم چه تقدیر دان پس د حروف عاطفه مذکوره نه وی هغه مشروط دے په شرطینو سره یو شرط هغه دے چه مخصوص دے په دوئ پورے اوبل هغه دے

چه مشترک دے په دوئی کښې او دوئی نه علاوه په نورو کښې. نو مصنفؒ صرف ذکر اوکړو په دې شرط مخصوصه او بیا سره د شرط مشترکه نه. او د عبارت تقدیر داسې دے ځکه حکم الحروف العاطفة حاصل اذا الخ **و یجوز اظهاران مع لام کے والعاطفة** او جائز دے اظهار د ان سره د لام چه په معنی د کے سره دے او د لام زائده نه او سره د حروف عاطفه نه په اسم باندې. ځکه دا ثلثه چه دی دا داخلیږی په اسم صریح باندې نو جائز دے سره اظهار د هغه چه فعل منقلب کړی اسم صریح ته او هغه مصدر په دے اتم چه دے لام جحود هغه په اسم صریح باندې نه داخلیږی. د هغه نه رو ستو د ان داظهار ضرورت نشته دے. او د غه شان حتی هم دے ځکه چه حتی غالب الاستعمال په معنی د کے سره دے. او هغه په دے معنی سره نه داخلیږی په اسم صریح باندې. او هغه چه دے حتی په معنی د الی باندې نو هغه هم محمول دے په اول باندې ځکه چه اول معنی داغالبه ده په هغه حتی کښې چه د هغه نه روستو مضارع وی. او هر چه دے واو فاء او او نو دوئی تقاضا د نصب د مابعد کړی دپاره د تنصیص په معنی د سببیة او جمعیة. نو دا په شان د خوالی زار به اوکړی ځکه سوال دا دے چه مصنفؒ ولے دلته کښې لام او ذکر نه کړو. **جواب** دا دے چه دا لام داخل دے په لام کے کښې.

**و یجب مع لا فی اللام علیها** او واجب دے اظهار د ان سره د لا نه هغه وخت کښې چه د هغه نه بغیر لام کے وی دپاره د دے چه اجتماع د لامین

---

رانشی چه هغه لام کے دے. او لام داوده لکه په دے قول د باری تعالیٰ کښې لئلا یعلم اهل الکتاب د لام کے نه روستو حرف نفی راوړو ځکه چه هغه تقاضاه تصدیر او د صدارت کوی **سوال** دا دے چه ځنګه په دے مواضعو کښې ان مقدر دے دغه علاوه په نورو ځایونو کښې هم دے لکه تسمع بالمعیدی خیرٌ من ان تراه. **جواب** دا دے چه مراد د مصنفؒ تقدیر د ان په دغه مواضعو کښې سره د عمل نه دے او تقدیر د ان په دے قول د شاعر کښې بغیر د عمل نه دے **سوال** دا دے چه ډیر مواضع دی چه په هغې کښې ان سره د عمل نه مقدر دے او هغه د دے مواضعو نه علاوه دی لکه په دے قول د شاعر کښې. الا ایها اللائمی احضر الوغی **جواب** دا دے چه تقدیر د ان په داسې مثال کښې سره د عمل نه شاذ دے. اعتبار ورله نشته.

**و ینجزم بلم و لما و لام الامر و لا فی النهی و کلم المجازاة.** او جزمه

کړځي فعل مضارع په لم لما لام امر لائے نهي او په کلم المجازاة سره لکه شاعر وائي چه .
ــه ان ولم ولما ولام امر ولائے نهي نیز ــه ــ پنج حرف جازم فعل اند هریك بے دغا .
ددے اختصاص په فعل پورے راغلے دے لکه په ابتداء د بحث د فعل کښې وئیلې شویدی .

**وهي ان ومهما واذما وحیثما واین ومتى وما ومن وای وانى** او کلم المجازاة دا مذکوره کلمات دی کلم المجازاة ورته په دے وائي چه دا شرط او جزاء دی لکه ان تکرمني اکرمك مهما تأتني آتك اذ ما تأتني اکرمك حیثما تجلس اجلس متى تخرج اخرج من یأتني اکرمك ما تصنع اصنع ایا تضرب اضرب انى تذهب اذهب . دلته کښې سوال راځي چه څنګه مضارع په دے کلماتو سره مجزومه کرځي نو دغه شان کیفما او اذا سره هم کرځي نو هغه دِ وے ذکر نه کړل . **جواب** دا دے چه مصنف دے پخپله جواب اوکړو .

**واما مع کیفما واذا شاذ** وجه د شذوذ دادہ چه د کیفما معنی دادہ چه مثلا یو سړے او وائي چه کیفما تقرء اقرء یعنی چه په کوم کیفیت او حال باندے ته قراءة کوے نو زه به هغے قراءة کوم او محال او متعذر ده دا خبره چه استواء راشي په قراءة کښې دبل قاري سره په تولو احوالو کښې او هرچه دہ وجه د شذوذ دا اذا هغه په دے وجه چه دا کلمات مضارع له جزم ورکوی په دے وجه چه دا مشتمل دی په معنی د ان باندے . او اذا مشتمل نه دے په معنی د ان باندے ځکه چه ان راځي دپاره د ابهام او اذا راځي دپاره د قطع او په مابین د ابهام او د قطع کښې منافاة ظاهر دے . **وبان مقدرة** او په ان سره هسے ان چه مقدر وی . یا په حال د کون د ان کښې چه مقدر وی . دا عطف دے په بلم باند .

**فلم لقلب المضارع ماضیا ونفیه** په دے عبارة سره مصنف تفصیل شروع کړو نو دے وئیل چه فلم الخ لم په مضارع کښې دوه قسمه عمل کوی لفظا او معنًا هم . هرچه دے لفظا هغه خو ظاهر دے چه جزم ورکوی او هرچه دے معنًا نو هغه مضارع په معنی د ماضي منفي باندے کرځوی نو لم یضرب په معنی د ما ضرب زید دے دلته کښې اضافت د قلب او د نفي مضارع ته دا د قبیلے د اضافة د مصدر نه دے مفعول ته او ماضیا دا مفعول ثاني دے دپاره د قلب .

**ولما مثلها** او لما په شان د لم دے په قلب د مضارع کښې ماضي منفي او په جزم کښې لیکن فرق پکښې په استغراق او په توقع کښې دے ځکه مصنف اوفرمائیل .

**وتختص بالاستغراق** یعنی په استغراق د نفي کښې په جمیع ازمنه ماضیه پورے

ځکه چه زیادت د حروف دلالت کوی په زیادت د معنی باندې لکه لما یرکب الامیر یعنی انتفی رکوبه من ابتداء زمان عدم الرکوب الی زمان التکلم **و جواز حذف الفعل** دا عطف دے په استغراق باندې یعنی حذف د فعل د لما جائز دے ځکه چه میم زائده په دے کښې قائم دے په مقام د فعل باندې **ولام الامر** او لام امر **المطلوب بها** چه مطلوب وی په استعانة د دے سره فعل المطلوب بها الفعل دلته کښې الفعل مفعول مالم یسم فاعله دپاره د مطلوب دے

**فائده** دلته په لام دامر کښې لام د دعا لکه لیغفر لنا الله داخل دے. **وهی مکسورة ابدًا** او دا لام به همیشه مکسور وی د دوؤ وجهین نه. اوله وجه دا ده چه التباس رانشی د لام ابتدائیه سره. دویمه وجه دا ده چه دا لام مشابه دے د لام جاره سره په اختصاص کښې او هغه خو مکسور وی نو دا به هم مکسور وی. او دلته کښې عکس نے اونکړو ځکه چه لام ابتدائیه کثیر الاستعمال دے او کثرة استعمال تقاضا د خفت کوی او فتح اخف الحرکات دے

دا لام کله کله ساکن هم راځی پس د واو د فاء او د ثم نه لکه ولتأت طائفة لم یصلوا فلیصلوا ثم لیقضوا. او کله کله مفتوح هم راځی ولے اعتراض وارد دی چه مصنف ابدًا ولې دی د تابید باخه معنی جواب دا دے چه د تابید نه مراد شیوع یعنی شائع والې شی.

**ولا النهی المطلوب بها الترك** او لا د نهی چه مطلوب په دے سره ترک د فعل دے او دخول دے په مخاطب او په غائب باندې علی السویه دے او په طریقې دقلة سره په متکلم هم داخلیږی **وکلم المجازاة تدخل علی الفعلین** او کلم المجازاة چه هغه تقاضا د جزاء کوی دا داخلیږی په دوؤ فعلیو باندې.

**لسببیة الاول** دپاره د افادے د سببیة داول. **ومسببیة الثانی** او د مسببیة د ثانی **سوال** دا دے چه سببیة داول نه صحیح کیږی په مثل د دے ترکیب کښې ان تکرمنی الآن فقد اکرمتك امس. یا په دے قول د باری تعالی کښې ان تعذبهم فانهم عبادك وان تغفرلهم فانك انت العزیز الحکیم - **جواب** دا دے چه د لته کښې جزاء مقدر دے او علة قائم مقام د جزاء او د رولے شویدے. نو اصل عبارة به داشی چه ان تکرمنی الآن فقد ادبت حقی لانی قد اکرمتك امس. ان تعذبهم فلا تظلم فی شئ لانهم عبادك. **سوال** وادیری چه کلم المجازاة خو یو شی د بل دپاره سبب نه کرځی نو ته ځنګه وائی لسببیة الاول و مسببیة الثانی **جواب** دا دے چه په نفس الامر او په واقع کښې کلم المجازاة یو شی سبب او بل مسبب نه کرځی بلکه په دے کښې اعتبار د متکلم لره د خل دے متکلم ملزومیة د یو شی

دبل شي دپاره راوستے شي برابره خبره ده چه شي اول سبب حقيقيه وي دپاره دشي ثاني او که نه وي لکه ان تشتمني فاکرمتك نو دلته کښ خو شتم سبب حقيقي دپاره د اکرام نه دے بلکه دلته کښ متکلم اظهار د مکارم اخلاق کوي يعني چه شتم سبب داهانة دے په نزد خلقو او د متکلم په نزد اسبب داکرام دے. **ويسميان شرطاوجزاء** او دے دواړو ته شرط او جزاء وائي اول ته چه شرط وائي دا په دے وجه چه دا شرط دے دپاره د تحقق د ثاني او ثاني ته چه جزاء وائي دا په دے وجه چه دے بناء دے په اول باندې لکه بناد شرط په جزاء. **فان كانا مضارعين اوالاول** که چرته دادواړه فعل مضارع وي او يا اول فعل مضارع وي **فالجزم** يعني فالجزم واجب يامتعين نو بيا جزم لازم دے لکه ان لم تقم اقم ملته کښ دواړه معرب دي او جازم هم موجود دے او که چرته شرط مضارع وي او جزاء ماضي وي نو اول به مجزوم وي لکه ان تضرب ضربت ځکه چه اول معرب دے او جازم موجود دے **وان كان الثاني فالوجهان** او که چرته ثاني فعل مضارع وي يعني شرط ماضي وي او جزاء مضارع وي نو بيا دوه وجهے جائز دي يعني جزم هم او رفع هم. هرچه دے جزم منه په دے وجه چه فعل مضارع معرب ده او جازم هم موجود دے. او هرچه ده رفع منه په دے وجه چه حرف شرط هرکله عمل اونکړو په شرط کښ چه منه قريب دے دا ته نو به جزاء کښ به په طريقه اولیٰ عمل نه کوي ځکه چه جزاء ليرې ده. لکه ان ضربت اضرب. **واذا كان الجزاء ماضيا بغيرقد لفظا اومعنى** په هغه وخت کښ چه جزاء ماضي وي بغير د قد نه په حال د کون د دے ماضي کښ چه ملفوظه وي لکه ان ضربت ضربت يامعنوي وي لکه ان خرجت لم اخرج. ماضي معنوي ديته وائي چه په فعل مضارع باندې لم داخل شوے وي **لم يجز الفاء** نو جائز نه دي راوړل د فاء په ده کښ ځکه چه حرف شرط په دے کښ تاثير کړيدے په معنیٰ کښ چه ماضي ئے په معنیٰ د مضارع کړځولے ده نو حاجت پاتے نه شو ربط ته په فاء سره. چه بغير قد ئے اوويل نو پدے سره احتراز راغے د هغه نه چه متلبسه وي په قد سره ځکه چه بيا په دغه صورت کښ دخول د فاء په جزاء باندې واجب دے. ځکه چه قد محقق دے دپاره د ماضي په خپله معنیٰ کښ او منع کوي حرف شرط له د تغيير نه نو لا بدي شوه پکښ د ربط آخر نه چه هغه فاء ده لکه ان يسرق فقد سرق اخ له. **وان كان** او که چرته وي جزاء **مضارعا مثبتا اومنفيا بلا** مضارع مثبته يا منفي په لا سره. **فالوجهان** يعني فالوجهان جائزان

دواړه وجې جائز دي راوړل دفا او ترك دفا هرچه دي راوړل دفا هغه په دے وجه چه حرفِ شرط اثر نه دے کړے په معنیٰ کښې لکه چه څنګه اثر ئے کړي دي په ماضي کښې مثلاً ان قمت فیقوم دا جز د پاره د مبتداء محذوفے دے چه فهو یقوم او ترك دفاء په دے وجه چه حرف شرط مؤثر دے په معنیٰ کښې په دے شان سره چه معنیٰ ئے خاص کړيده په استقبال پورے. نو من وجه تاثیر پیدا شو. اګرچه ضعیف دے مثال دا تیان مفا لکه دا قول دباری تعالیٰ ومن عاد فینتقم الله منه او مثال د ترك دفا ان یکن منکم الف یغلبوا الفین. او د ترك دفا په صورت کښې دا خبر د پاره د مبتداء محذوفے نه دے لکه ان قمت یقم ځکه چه دا جواب د شرط دے او چه کله جزا مضارع منفي وي په لا سره. نو په دے کښې هم جوز دو جهینو دے ترك دفا او اتیان په فا سره لکه فمن یؤمن بربه فلا یخاف بخساً ولا رهقاً ځکه چه دالا د پاره د نفي داستقبال شي نو بیانه د حرفِ شرط د پاره تاثیر نه وي ځکه بیا لازم میږي اجتماع د علتین مستقلتین په معمول واحد باندې دغه شان ترك دفا جائز دے چه کله دالا د پاره د مجرد نفي اوګرځولے شي نو حرف شرط د پاره به تاثیر وي **والا** یعني ان لم یکن الجزاء ماضیا او دغه چه کوم مذکور شول **فالفاء** نو بیا راوړل دفا لازم دي د پاره ددے چه د دواړو په مابین کښې ربط راشي مثلاً چه ماضي مصدره وي په قدسره یا جمله اسمیه وي یا امر یا نهي یا تمني او یا عرض وي نو په دے ټولو مواضعو کښې د حرف شرط تاثیر نشته نو لا بدي شوه د یو رابطے او هغه فاده.

**ویجیئ اذا مع الجملة الاسمیة** او اذا مفاجاتي راځي سره د هغے جملے اسمیے نه **موضع الفاء** په ځائے دفا باندې لکه وان تصبهم سیئة بما قدمت ایدیهم اذاهم یقنطون. ځکه چه معنیٰ دا اذا مفاجاتیه دا قریبه ده فا ته اذا مفاجاتیه دا راځي د پاره د تعقیب لکه دفا او بله وجه داده چه اذا مفاجاتیه دا تنبیه ورکوي په حدوث د امر پس د امر نه نو د ده مشابهة د جزاء سره راغے په دے وجه ده سره فا مقارنه وي لکه خرجت فا ذا السبع - **وان مقدرة** او فعل مضارع مجزومه کرځي په ان سره چه هغه مقدر وي یا په حال کون د ده کښې چه مقدر وي. **بعد الامر والنهي والاستفهام والتمني والعرض اذا قصد السببیة** - پس د دے اشیاء خمسه نه په هغه وخت کښې چه قصد اوکړے شي د سببیة د ماقبل د مابعد د پاره ځکه چه دا اشیاء داخلیږي په طلب باندې. او طلب غالباً متعلق وي په هغه مطلوب

پورے چه په هغه باندِ فائده مرتبه وی د پاره د دے چه دا مطلوب سبب د پاره د هغه فائدے سببیة او مسببیة باندِ نه دے مکرحرف شرط او حرف شرط چه کله لفظا موجود نه وو نو مونږ ۲ مقدار او منلو۔ **نحو اسلم تدخل الجنة** ان تسلم تدخل الجنة ځکه چه اسلام سبب د پاره د دخول د جنت دے۔ **ولا تکفر تدخل الجنة** ان لا تکفر تدخل الجنة ځکه چه نهی قرینه د فعل منفی ده۔

**وامتنع لا تکفر تدخل النار** | ځکه چه تقدیر به دا شی لا تکفر ان لا تکفر تدخل النار نو عدم کفر خو سبب د دخول د نار نه دے

**خلافا للکسائی** | خلاف ثابت دے کسائی لره ځکه چه د هغه په نزد دا ترکیب جائز دے د هغه په نزد معنی دا ده ان تکفر تدخل النار۔ **لان التقدیر الا تکفر** دا دلیل د جمهور دے او د کسائی په نزد باندِ دلالة کبنی قرینه عرف دے چه مراد ترے شرط مثبت دے **سوال** دا دے چه ولی تاسو د مضارع نه تمکین امروی او دا مضارع مجزوم نه وی لکه فهب لی من لدنک ولیا یرثنی۔ یا لکه ثم ذرهم فی خوضهم یلعبون او یا لکه په دے قول د شاعر کبنی چه ے وقال رائدهم ارسوا نزاولها ۔ فکل حتف امرء یجری بمقدار **جواب** دا دے چه دا جزم به هله وی چه قصد د سببیة او مسببیة او شی او چه کله قصد د سببیة نه وی نو بیا واجبه ده رفع یا په د صفیة سره لکه په اول مثال کبنی یا په حال سره لکه په ثانی مثال کبنی او یا په استیناف سره لکه په ثالث مثال کبنی۔



# الأمر

هر کله چه مصنف فارغ شو د بیان د فعل مضارع نه نو شروع ئے اوکړه په بیان د امر حاضر کبنی پس او وئیل چه

**الامر صیغة یطلب بها الفعل من الفاعل المخاطب** | دا یو صیغه ده چه طلب کړے شی په واسطے او د استعانت د مے فعل د فاعل مخاطب نه دلته کبنی مراد د امر نه هغه امر دے چه جمع ئے اوامر راځی نه امور او نه دا

تعریف د مطلق امر دے چه شامل شی امر غائب للمعلوم وی که مجهول یا امر حاضر مجهول یا

امر متکلم معلوم وی که مجهول. **بحذف حرف المضارعة** په حذف د حرف مضارعة سره چه هغه تآدرٔه په هر یو تعریف کښې لا بدی دهٔ د جنس او د فصل نه چه صیغة یطلب بها الفعل ئے اووے په دے کښې امر تمام اقسام داخل شو من الفاعل المخاطب دا یو فصل دے په دے سره تو به غائب او متکلم اووتل او د غه شان امر مخاطب مجهول. او چه بحذف حرف المضارعة ئے اووئیل نو په دے سره احتراز راغے د دے قرأة شاذهٔ نه چه فبذالك فلتفرحوا. او یا لکه د دے قول نه چه اما تضرب زیداً. **وحکم آخره حکم المجزوم**.

او حکم د آخر د بناء د امر حکم د آخر د مجزوم دے لکه په مجزوم کښې که په آخر کښې حرف صحیح وی نو هغه به ساکن وی. او که نون د اعراب وی هغه به ساقطیږی او که حرف علة وی هغه به حذف کیږی. نو په نزد د بصریانو باندې امر مبنی دے په سکون باندې او په نزد د کوفیانو امر معرب دے او مجزوم حقیقةً. ځکه چه دے مثال دے د هغه امر سره چه په هغې کښې لام دے د هغه د غه حکم دے نو د دے امر هم دغه حکم دے.

**فائده** د امر حاضر د جوړولو طریقه دا دهٔ چه حرف مضارعة به حذف کړے پس د حذف د حرف مضارعة نه به اوګورے چه ورپسے بل حرف ساکن دے که متحرک دے کچرته ساکن وی نو عین کلمه به یا مفتوحه وی یا مکسوره او یا مضمومه. کچرته مفتوحه او یا مکسوره وی نو همزه د وصل به مکسوره راوړے. او بیا آخر کلمے ته چه لام کلمه دهٔ هغے ته به اوګورے یا به حرف علة وی یا به حرف صحیح وی که حرف علة وی ـ نو ساقط به شی او که چرته حرف صحیح وی نو ساکن به کړے شی. او کچرته عین کلمه مضمومه وی نو همزه د وصل به مضموم راوړے. او لام کلمه کښې به سابق عمل اوکړے شی. لکه اِعلَم، اِضرِبْ، اُقتُلْ، اِخشَ، اِرمِ، اُدْعُ.

او کچرته پس د حذف د حرف مضارعة نه متحرک وو. نو بیا لام کلمه یا به حرف صحیح وی یا به حرف علة وی. که حرف صحیح وی. ساکن به کړے شی او که حرف علة وی نو ساقط به کړے شی لکه عِدْ شِوا او یا قِ.

د لته کښې **سوال** واردیږی چه پس د حذف د حرف مضارعة نه که عین کلمه مضمومه وی نو همزه د وصل مضموم دے او که مفتوحه یا مکسوره وی نو همزه د وصل مکسوره دے د لته کښې د مفتوح په صورت کښې همزه د وصل مفتوح ولے نه راوړلے کیږی. **جواب** دا دے چه دا د پارهٔ د رفع د التباس. ځکه چه په د غه صورت کښې التباس راځی د صیغے د متکلم سره په حالت د وقف کښې.

**فان کان بعدهٔ ساکن ولیس برباعی** | کچیرته پس د حذف د حرفِ مضارعة نه ساکن وی او حال دا دے چه دا فعل محذوف نیه څلور حرفو والا نه وی په کسره احتراز راغے دا کرم نه. **زدت همزة وصل** همزه د وصل به زیات کړے یعنی په ابتداء کښ همزه وصلی راوړے. کچیرته پس د ساکن نه عین کلمه مضمومه وی. همزه خو به په دے وجه زیاتیږی چه ابتداء بالساکن راننشی او مضمومه به په دے وجه وی چه موافقة ئے راشی د عین کلمے سره.

**ومکسورة فیما سواه** | او همزه د وصل به مکسوره وی کچیرته عین کلمه مفتوحه یا مکسوره وی مثل **اُقتل واضرب واعلم وان کان رباعیًا** | او کچیرته دا فعل محذوف نیه رباعی وی **فمفتوحة مقطوعة** | نو همزه د وصل به مفتوح وی او دا به قطعی وی مثلاً په باب افعال کښ په تکرم کښ یکرم و بیلے شی ځکه چه دا همزه په اصل کښ مفتوح او اصلی وه په باب افعال کښ یکرم په اصل کښ یأکرم وو. په صیغه د واحد متکلم کښ أاکرم راتلو په مے سره اجتماع د همزتینو راتله. نو ددے نه لپوه همزه حذف کړے شو بیا طرداً للباب د یکرم تکرم او نکرم نه هم همزه حذف کړے شوه.

**فعل مالم یسم فاعله** | دلته کښ دا موصوله عبارة دے د فعل نه بیا و ر باندِ سوال وارديږی چه هر کله دا عبارة دے د فعل نه نو اضافة د شی راغلو خپل نفس ته. **جواب** دا دے چه دلته کښ اضافة بیانیه دے او لم یسم په معنی د لم یذکر فاعله سره دے. **هو ماحذف فاعله** دا هغه دے چه فاعل ئے حذف شوے وی او مفعول د هغه په ځائے باندِ راوړے شوے وی دلته کښ ئے ور سره دا ذکر نه کړو چه واقیم المفعول مقامه ځکه چه دا ئے مخکښ ذکر کړیدے.

**فان کان ماضیًا** | یعنی کچیرته وی هغه فعل چه اراده د حذف د فاعل د هغه شوے وی ماضی. دلته کښ **سوال** راتلو چه کان کښ ضمیر راجع دے هغه فعل ته چه حذف د فاعل ئے راغلے وی نو مطلب دا شو چه ان کان الفعل الذی حذف ماضیًا ضم اوله وکسر ما قبل آخره. نو په دغه صورت کښ مطلب صحیح نه جوړیږی او لازمیږی ضرر مضموم **جواب** دا دے چه دلته کښ تقدیر دا سے دے چه ان کان الفعل الذی ارید حذف فاعله یعنی اراده موږنه مقدر راوړو لکه اذا قرءت القرآن ای یعنی اذا اردت قراءة القرآن او یا دا چه دلته کښ ضمیر په کان کښ راجع دے هغه فعل ته چه

فاعل ئې حذف شوی دی خو په طریقې د مجاز سره یعنی په اعتبار د مایؤول الیه لکه په دې حدیث کښې راغلی دی من قتل قتیلا فله سلبه

**ضُمَّ اوله وکسر ما قبل آخره** | اول حرف لره به ورله ضمه ورکړې شي او ماقبل آخر به ئې مکسور کړې شي د پاره د دې چه

غرابة د وزن دلالت اوکړي په غرابة د معنی باندې او دا وزن ځکه غریب دی چه دلته کښې خروج د ضمې نه کسرې ته راغلی دی او دا ثقیل دی وکل ما هو ثقیل فهو غریب سوال دا دې چه وزن د فُعِلَ خو هم غریب دی نو دا وزن ورله ولې ورنکړې شو جواب دا دې چه مقصود د غرابة حاصل شو یدې په ثقیل سره نو را ؤ ړلو دا ثقل ته ضرورة نشته لکه ضُرِب. اکرِمَ ، اُستخرِج الخ دلته کښې تغییر په صیغه کښې راوستې شو د پاره د دې چه التباس د ماضی مجهول د معروف سره رانشي او دلته کښې تغییر په مجهول کښې راوستې شو ځکه چه دا فرع دی او فرع اَولی بالتغییر دی.

**و بضم الثالث مع همزة الوصل** | او مضموم به کړې شي حرف ثالث په حال د کون د دې کښې چه مقرون وی سره د همزه د وصل نه په هغه صیغه کښې چه هغې کښې همزة د وصل وی لکه اُفتعِلُ اُستفعِلَ

**و الثانی مع التاء خوف اللبس** | او مضموم کړې به شي حرف ثانی په حال د کون د دې کښې چه مقرون وی سره د تاء نه . د پاره د دې چه التباس رانشي د باب تفعیل په تفعل کښې او د مضارع د باب مفاعله سره تفاعل کښې او د مضارع د باب فعللة په تفعلل کښې .

**و معتل العین الا فصح قیل و بیع** | او په ماضی مجرد کښې چه کله صیغه د مجهول راغلې وی او هغه معتل العین وی نو د دې به شي بنا په قول افصح باندې قِیل او بِیع ،

قِیل په اصل کښې قُوِل دی کسرة په واو باندې ثقیله وه هغه موبنرة ماقبل قاف ته ورکړه کسرة دا تقاضا کوی چه ما پسې د روستو یا وی هغه واو موبنرة په یا بدل کړو قِیل شو . او د هغه شان بیع په اصل بُیِع وو . کسرة د یا موبنرة ماقبل ته ورکړه بیع شو . او دلته کښې مراد په معتل العین سره معتل العین دی فقط یعنی صرف په ځائې د عین کلمې به حرف علة راغلی وی نه د بلې کلمې . په دې سره دفع د سوال راغله

**سوال** دا دے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په طوی او روی سره ځکه چه دا معتل العین دے او یا هم په دے کښې الف نه دے بدل شوے. **جواب** دا دے چه مراد په معتل العین سره هغه دے چه عین کلمه ئے فقط حرف علة وی نه چه لام کلمه هم. او دلته کښې ورسره لام کلمه هم حرف علة ده ځکه کچرته لام کلمه هم حرف علة وی نو بیا به په عین کلمه کښې اعلال نه کیږی د یاره د دے چه اجتماع د اعلالینو را نشی په مضارع کښې په یو کلمه کښې. **سوال** دا دے چه دلته کښې به دلیل قیاس اضافه هم کړے وه او وئیلی به ئے وو چه ان یکون معتل العین منقلبة عینه الفا د یاره د دے چه په عُوِرَ او په صید سره بیا اعتراض وارد نه شی. ځکه چه معتل العین دے فقط او عین کلمه کښې ئے اعلال نه دے شوے **جواب** دا دے چه په معتل العین کښې عین په الف بدلیږی چه ما قبل د هغے نه په حکم د سکون کښې نه وی او په عور کښې ماقبل د دے نه په حکم د سکون کښې دے ځکه چه دا د عیوبونه دے. او اصل په هغه افعالو کښې چه د عیوبونه وی هغه مزید دی نه مجرد نو ماقبل د عور په حکم د اعور کښې دے او هر چه د صید نو دا شاذ دے.

**وجاء الاشمام** او په قیل او بیع وغیره کښې اشمام هم راغلے دے. دلته کښې اختلاف دے په مفهوم د اشمام کښې. د قراء او د نحاتو په نیز هوان تمیل بکسرة نحو الضمة فتمیل الیاء الساکنة بعدها نحو الواو قلیلا اذ هی تابعة لحرکة ما قبلها. او بعض وائی چه هو ضم الشفتین فقط مع کسر الفاء خالصا. او بعض وائی چه هو ان تأتی بضمة خالصة بعدها یاء ساکنة. لیکن مراد د اشمام نه په دے ځائے کښې اشمام په معنی اوله با ندے دے. او غرض د اشمام نه دا دے چه خبر دارے وکړے شی په دے خبره چه اصل په اولو ددے حرفو کښې ضمه دے. **وجاء الواو** او په واو سره هم راغلے دے لکه قُول او بُوع شی. **ومثله** او په مثل د باب د ماضی مجهول د معتل العین د ثلاثی مجرد.

**باب اختیر وانقید** په دے کښې د دریواړه راتلے شی اختیر او انقید لکه قیل او بیع اشمام هم پکښې روا دے او واو سره پکښې هم روا دے لکه اختور او انقود.

اختیر د باب افتعال نه دے او انقید د باب انفعال نه دے. **دون استخیر واقیم** ولے دا لغات ثلثه په باب استفعال او افعال کښې چه معتل العین وی نه جاری کیږی ځکه چه اصل د دوی استخیر او اقوم دی او ماقبل د حرف علة نه په دوی کښې ساکن راغلے دے.

**وان كان مضارعاً ضم اوله وفتح ما قبل آخره** او كه چرته مضارع وى نو اول لحرف به مضموم وى او ماقبل آخر به مفتوح وى په دے سره مصنف بيان د فعل مضارع مجهول كوى. دلته كښ اقتصار په يو باندې اوكړو شو چه يا صرف حرف مضارعة مضموم شى او يا صرف ما قبل آخر مفتوح شى چونكه په ماضى حرف اول مضموم وو نو دلته كښ ئے هم مضموم اوګرځو. مضارع په سبب د حرف مضارع د زيادت سره ثقيله اوګرځيده په دے وجه ماقبل آخر ئے ورله مفتوح كړو ځكه چه اخف الحركات دے. لكه يُضرَبُ، يُكرَمُ. يستخرج وغيره. **ومعتل العين ينقلب العين فيه الفاً** او مضارع چه كله معتل العين وى برابره خبره ده چه واوى وى كه يائى وى هغه به په الف باندې بدلينږى. لكه يقال شو يا يباع شو ځكه چه اصل دد دے يُقوَلُ او يُبيَعُ وو. حركة د واو او دياء ما قبل ته وركړے شو بيا د فتح د ما قبل د وجے نه واو او يا په الف باندې بدل شو.

**المتعدى وغير المتعدى** دلته كښ متعدى او غير متعدى دا صفات دى او د هر يو صفت دپاره لا بدى ده د موصوف نه دے دپاره موصوف الفعل دے په قرينے د بحث سره **فالمتعدى ما يتوقف فهمه على متعلق** فعل متعدى هغه ته وائى چه موقوف وى فهم د هغه په متعلق باندې. **كضرب** لكه ضرب شو ځكه چه فهم دده موقوف دے په هغه شى باندې چه هغه پورے متعلق دے ضرب د ضارب او مراد په متعلق سره غير د فاعل ته دے. **سوال** دا دے چه هر يو فعل اګر كه هغه لازمى دے موقوف دے په ظرف چه هغه مفعول فيه دے. او بعض افعال موقوف دى په آله باندې لكه كتابت شو. **جواب** دا دے چه مصنف وئيلے دى ما يتوقف فهمه على متعلق. او توقف د فهم په هغه كښ دے چه داخل وى په مفهوم او په ماهية كښ او متعدى كښ دا شان دے لكه ضرب شو هغه استعمال د آلے د تا ديب دے په هغه محل كښ چه قابل دپاره دايلام وى نو محل چه هغه مفعول به دے داخل دے په ماهية كښ او فعل لازم كښ موقوف نه دے فهم د مفهوم او د ماهية په متعلق باندې او ظرف او آله دا د لوازمو د وجود د فعل نه دى او په جنس د ماهية كښ او په لازم د وجود كښ ډير فرق دے.

**وغير المتعدى بخلافه** او غير متعدى په خلاف د متعدى نه دے يعنى مالا يتوقف فهمه على متعلق دلته كښ غير متعدى مبتدا ده ولے صحيح دے ابتدائيت دده ځكه چه په اضافة سره اګر چه غير اضافة ته راغلے دے چه هغه متوغل دے په ابهام كښ دا نكرة محضه پاتے شوه نو ابتدائيت صحيح شو او بله وجه دا ده چه د متعدى دپاره ضد واحد دے چه هغه

غیر متعدی دے **کقعد** لکه قعد شو دا فعل لازم دے

**فائده** هر کله چه اراده د لوغیر متعدی فعل د متعدی کولو اوکړے شی نو د هغے د پاره درے طریقے دی یا په همزے سره لکه أذهبته یا باب تفعیل ته واوړولے شی لکه فرّحت زیداً او یا په حرف جر سره لکه ذهبت بزید۔

**والمتعدی یکون الی واحد** اؤ فعل متعدی کله متعدی کیږی یو مفعول ته **کضرب** لکه ضرب شو دے یو مفعول غواړی۔ **والی اثنین** یعنی متعدیا الی اثنین دوه مفعوله غواړی **کاعطیٰ** لکه اعطیٰ شو داده مفعوله غواړی **وعلم** او یا لکه علم شو لکه أعطیت زیداً درهما یا علمت زیداً قائما **والی ثلثة** یا متعدی وی درے مفعولو ته **کاعلم** لکه اعلم مثلاً اعلمت زیداً عمراً فاضلاً **وأریٰ** یا لکه أریٰ شو مفاعیل ثلثه ته متعدی کیږی په اصل کښ أعلم او أریٰ ځکه چه دوی دوه مفعولینو ته متعدی کیږی خو چه هر کله ورسره همزه زیات کړے شوه نو د مفعول ثالث یکښ اضافه او شوه۔

**وانبأ ونبّاء واخبر وخبّر وحدّث** دا افعال هم مفاعیل ثلثه غواړی لیکن بنفسه نه بلکه دوی متضمن دی معنیٰ د علم لره۔ **مفعولها الاول کمفعول باب اعطیت** یعنی د دے افعالو مفعول اول پشان د باب اعطیت دے په دے عبارت سره مصنف بیان د احکامو د دغه افعالو کوی۔ په جواز د حذف کښ اؤ د اقتصار په دوه باندے۔ لکه اعلمت زیداً یا اعلمت عمراً منطلقا **والثانی والثالث کمفعولی علمت** په جواز د ذکر کښ اؤ په حذف کښ معاً۔ یعنی کچرے حذفیږے کیږی نو دواړه به حذف کیږی اؤ که ذکرے کیږی نو دواړه به ذکر کیږی اؤ اکتفاء په یو ناجائزه ده۔ ځکه چه مفاد د دواړو یو دے چه یا مضاف اؤ مضاف الیه دی اؤ یا مبتدا اؤ خبر دی

**افعال القلوب** افعال په دوه قسمه دی یو افعال جوارح دی اؤ بل افعال قلوب دی افعال قلوب هغه ته وائی چه د هغوی تعلق د قلب سره وی دے ته افعال الشک والیقین هم ویلے شی ځکه چه بعض په دے کښ د شک د پاره راځی اؤ بعض یقین فائده کوی **سوال** دا دے چه په دے افعالو کښ خو یو هم د پاره د شک نه دے ځکه چه شک متساوی الطرفین ته وائی **جواب** دا دے چه دلته کښ مراد د شک نه ظن دے مجازاً اؤ یا دا چه دلته کښ د شک نه منطقی معنیٰ مراد نه ده بلکه لغوی معنیٰ ترنه مراد ده۔ **ظننت وحسبت وخلت و زعمت وعلمت ورأیت ووجدت** ۔ اؤ افعال قلوب دا اووه افعال دی وے

دلته داخبره دیاد ولو قابله ده چه افعال قلوب په دے اوه کښې منحصر نه دی بلکه دد
نه علاوه نور هم دی لکه عرفت اعتقدت ولے دا افعال ئے ځکه دلته کښې ذکر نه
کړل چه دوئ متعدی کیږی نه د و مفعولینو ته په استعمال کښې او نه په دے باندې احکام د
افعال قلوب جاری کیږی. په دے افعالو کښې اولنی درے دپاره د شک راځی او درے د پاره د
یقین دی او یو چه زعمت دے هغه مشترك دے په مابین د شک او د یقین کښې. سوال
دادے چه افعال شک ئے ولے مقدم کړل جواب دادے چه شک ډیر واقع کیږی او اغلب دے
وقوعًا. **تدخل علی الجملة الاسمیة** دا داخلیږی په جمله اسمیه باندې نه په جملے فعلیے باندې
ځکه چه جمله باندې دا فعل داخلیږی د پاره د عمل یعنی مقصود د دے نه عمل دے په اجزاء کښې او
عمل د فعل په جمله فعلیه کښې متعذر دے ځکه چه کچرته د جملے فعلیے په جزاول کښې عمل کوی نو لازمیږی
عمل د فعل په فعل کښې او د یو فعل عمل په بل فعل کښې متعذر دے او هر چه دے په جزء ثانی
کښې نو جزء ثانی داخر معمول د جزء اول دے نو لازمیږی توارد د عاملینو مستقلینو په معمول
واحد باندې. **لبیان ما هی علیه** د پاره د اظهار د اعتقاد په باره د دغه جمله کښې. یعنی
لبیان اعتقاد تلك الجملة صادرة او ناشئة عنه من علم او ظن او حسبان. ترکیب دد عبارة
دادے چه کلمه د ما موصوفه ده چه دا عبارة ده د علم یا د ظن نه هی مبتداء چه دا ضمیر دے
او راجع دے جملے اسمیے ته، عنه جار مجرور دا متعلق دے په ناشئة یا صادرة پورے. دا خبر
دے د پاره د مبتداء او دا تول جمله صفت شو د پاره د ما. دا مضاف الیه دے او مجرور دے علام

**فتنصب الجزئین** دا نصب ورکوی جزئینو لره بنا بر مفعولیت. **و من خصائصها**
**أنه إذا ذکر احدهما ذکر الآخر** او دد افعال قلوبو د
خصائصو نه یو دا خاصیت دے چه مفعولین د دے کښې چه یو ذکر شی نو بل به هم ورسره ذکر
کیږی ځکه چه مفعولین دد هغه مضمون د جملے دے یعنی ددے دواړه مفعولین چه راواخلی
نو د دویم مفعول مصدر به اول مفعول ته مضاف کړے نو دا به مضاف الیه اوګرځی. او په
مضاف او مضاف الیه کښې شدت اتصال دے. یو یکښې نه شی حذف کیدے لکه علمت
زیدًا فاضلًا. دا به په تاویل دد شی چه علمت فضیلت زید. او بله وجه دا ده چه په دے
باب کښې ذکر د مفعول اول دا توطئه ده ذکر د مفعول ثانی ته او مقصود مفعول ثانی دے
اس کچرته ثانی ذکر شی نو لازمیږی ذکر د مقصود بغیر د توطئے نه. او کچرته اول ذکر کړو
نو لازمیږی ذکر د توطئے او ترك د مقصود. سوال دادے چه ستا دا قول منقوض شو

په دے ترکیب باندِ ولا تحسبن الذين يبخلون بما آتاهم الله من فضله هو خيرا لهم . نو مفعول اول چه بخلهم دے هغه حذف کړے شوے دے یا لکه په دے شعر دشاعر کښ چه، لا تخلنا عن عزائك انا ۔ طالما قد وشى بنا الاعداء . نو دلته کښ مفعول ثانى چه جازعين دے حذف شویدے ۔ **جواب** دادے چه مراد په عدم جواز حذف سره بلا قرینه دے او کوم ته چه قرینه موجوده وى چه هغه دال وى په مفعول اول او یا په مفعول ثانى نو حذف جائز دے او په دے دواړو مثالونو کښ قرینه موجوده ده ۔ **بخلاف باب اعطيت** په خلاف دباب دا عطيت نه ۔ ځکه چه هلته کښ اقتصار په یو مفعول باندِ جائز دے دوجے دعدم دمانع نه په هغے کښ هر یو مفعول مستقل دے او مفعول چونکه فضله وى او حذف دفضله جائز دے ۔ **ومنها جواز الالغاء** او بعض دخصوصیاتو نه افعال قلوب نه جواز دالغاء دے چه دا ملغاة العمل او کړے شى **اذا توسطت** هغه وخت کښ چه دا متوسط واقع شى په مابين دمفعولينو کښ **او تاخرت** او یا متاخر واقع شى **لاستقلال الجزئين كلاما** دوجه داستقلال دجزئينو یعنى مفعولين د دے کلام مستقل دے . دلته کښ کلاما منصوب دے یا بنا بر حالیة او یا منصوب دے بنا بر تمیز . دغه افعال بنا بر تقدیر الغاء دا په معنى دظرف دى نو معنى د زيد ظننت قائم ، زيد قائم فى ظنى . او جائز دے اعمال ددے افعالو هم ځکه چه دا افعال دى او اصل دى په عمل کښ دلته کښ دالغاء نه مراد جواز دے ۔ او په بعض صورتونو کښ الغاء د جوبا ده . او دا جواز الغاء ددے افعالو شائع او کثير دى **ومنها انها تعلق قبل الاستفهام** او بعض دخصوصیاتو دافعال قلوب نه دا خبره ده چه دا افعال قلوب معلق وى مخکښ داستفهام **والنفى واللام** او دنفى او لام ابتداء نه د تعليق مطلب دادے چه وجوب دابطال دعمل دے لفظا نه معنى په سبب دواقع کيدو ددے مخکښ داستفهام دنفى او دلام نه **مثل علمت ازيد عندك ام عمرو** معنى دا نور دوه مثالونه چه پينبودل بالمقائسه . هغه دادى چه علمت مازيد فى الدار او علمت لزيد قائم ځکه چه دادے داره صدارت دکلام غواړى نو کوم ته دا افعال قلوب په دوئ کښ عمل او کړى لفظا بيا به د دوئ صدارت باطل شى پس دلته کښ ددواړو رعايت او لحاظ اوساتلے شو من حيث اللفظ داستفهام دنفى او دلام ابتداء لحاظ او کړے شو او من حيث المعنى ددے افعالو لحاظ او کړے شو **سوال** دادے چه ولے معنى داسے او نه ويل چه قبل حرف الاستفهام **جواب** دادے چه معنى فقط استفهام اوروے او حرف استفهام ئے او نه وے د پاره ددے چه شامل شى اسم له هم لکه لنعلم أى الحزبين الآية او قبل الاستفهام ئے او ويل بعد الاستفهام ئے او نه ويل ځکه چه کوم ته بعد الاستفهام وى بيا داحکم نه دے لکه الهم علمت زيدا

**فائده** فرق په مابین دالغاء او دتعلیق کښ دا دے چه الغاء جائز دے او واجب نه دے او تعلیق واجب دے دویم دا چه الغاء ابطال دعمل دے لفظاً او معناً او تعلیق ابطال دے په لفظ کښ نه په معنیٰ کښ

**ومنها انها يجوز ان يكون فاعلها ومفعولها ضميرين لشئ واحد** | بعض د خواصو دافعالو قلوبو نه دا خبره ده چه جائز دی په افعال

قلوبو کښ چه فاعل د دے افعالو او مفعول دواړه ضمیره وی او مرجع د دواړو یو وی مراد په ضمیرین سره ضمیرین متصلین دی ځکه کچرته یو پکښ منفصل وی نو بیا داحکم نه دے **مثل علمتني منطلقاً** دلته کښ 'ت' 'او' 'ی' ضمیرین دی او مرجع ئے یو ده ځکه چه مفعول د دے افعالو په حقیقت کښ دویم دے او اول ئے مفعول بطور توطیة او تمهید ذکر کیږی نو دلته کښ حقیقتاً اتحاد د فاعل او د مفعول نه راغی او د دے نه علاوه په نورو افعالو کښ دا جائز نه دی لکه ضربتني یا شتمتني بلکه دا سے وئیلے شی ضربت نفسی یا شتمت نفسی **سوال** دا دے چه ضمیرین په ضربت نفسی کښ متفقین دی ځکه چه دواړه ضمیرین متصل دی او نفس عین ضمیر د متکلم دے. **جواب** دا دے چه کله د نفس اضافة ضمیر د متکلم ته او شوه نو ګویا دا مغائر شو ځکه چه په مابین د مضاف او مضاف الیه کښ مغائرة وی **سوال** دا دے چه دا دلیل چه ځکه په غیر افعال قلوبو کښ جاری کیږی دغه رنګ جاری کیږی په افعال قلوبو کښ ځکه چه فاعل او مفعول اول په علمتني منطلقاً کښ متحدان دی لفظاً او معناً نو لږ به دی ده پکښ مغائرة نه لفظاً چه مغائرة حاصل شی بقدر الامکان **جواب** دا دے چه د دے تمرین ته اشاره کړے شوے ده ځکه چه مفعول اول د دے مفعول نه دے په حقیقت کښ بلکه مفعول د دے مضمون د جملے دے او هغه ضمیر نه دے **سوال** دا دے چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په فقدتني او عدمتني سره ځکه چه دا افعال قلوب نه دی بیا هم پکښ ضمیرین د فاعل او د مفعول د پاره د شی واحد راغلی دی **جواب** دا دے چه دا نقیضین د وجدتني دی نو دلته کښ حمل د نقیض په نقیض راغلے دے بیا **سوال** وارد یږی چه افعال قلوب به نه وی او ضمیرین به پکښی لشئ واحد راغلی وی لکه انی ارانی اعصر خمراً او یا دا شعر چه ولقد ارانی للرماح دریئة من عن یمینی تارة وامامی بلکه یو کښ رویة علمیة دے او بل کښ رویة بصریه دے **جواب** دا دے چه دا محمول دی په رویة قلبیة باندے **ولبعضها معنی آخر** او په دے افعال قلوبو کښ د بعض نورے معنیٰ هم دی **يتعدى به الى واحد** چه متعدی کیږی په هغے سره یو مفعول ته **فظننت بمعنی اتهمت** پس ظننت په معنیٰ د اتهمت سره راځی.

**وعلمت بمعنى عرفت ورأيت بمعنى ابصرت ووجدت بمعنى اصبت** | یعنی علمت په معنیٰ د عرفت رائیت نه مراد رویت بصرة شی او وجدت په معنیٰ د اصابت لکه

وجدت الضالة. دلته کښی سوال واردیږی چه دے ته لو افعالِ قلوبو دپاره معنی آخره شته دے نو د تخصیص د بعض ضرورت نشته لکه خلت په معنی د صیرت. اخال حسبت په معنی د صیرت ذاحسب او زعمت په معنی د کفلت. جواب دا دے چه مراد په معنی آخره سره دا دے چه دا معنی آخره بقرینه وی اولے معنی ته چه په هغے کښی داوهم وی چه گنی دا معنی سره به هم متعدی وی مفعولین ته.

الافعال الناقصة وغیر الناقصة | حکم چه افعال ناقصه څخه معدود افعال دی او د هغے نه علاوه نور ټول غیر ناقصه دی او دا تقسیم د فعل دے په اعتبار د تمام والی او نقصان سره. دے افعالو ته افعال ناقصه په دے وجه د ځیلے شی چه دا دلالت نه کوی په حدث باندې او اتمام ئے هم په فاعل سره نه راځی بخلاف د نورو افعالونه ما وضع لتقریر الفاعل علی صفة دا هغه دی چه وضع شوی وی د پاره د ثبوت د فاعل په یو صفت باندې هسے صفت چه هغه خارجی وی. سوال دا دے چه دا افعال خو مشتمل دی په نورو معانی باندې هم سیوا د تقریر نه کله دا ټول په زمان باندې دلالت کوی. او انتقال دوام او استمرار په بعضو کښی. جواب دا دے چه تقریر د فاعل پکښی عمده دے حکه ئے ذکر کړو. سوال دا دے چه ستا دا تعریف مانع او نه گرځیدو د دخول د غیرنه او افعال تامه پکښی داخل شو حکه چه هغه خو هم ما وضع لتقریر الفاعل علی صفة باندې دلالت کوی. جواب دا دے چه مونږ دا وئیل هسے صفت چه خارجی وی او یا ما چه صفت دلته کښی مقید دے په قید د زائد سره یعنی ما وضع لتقریر الفاعل علی صفة غیر مصدر او صفت په افعال تامه کښی عین مصدر دے وهی کان وصار واصبح و امسی و واضحی وظل وبات وآض وعاد و غدا وراح ومازال وما انفك ومافتئ وما برح ومادام ولیس د صار سره نور هم مترادفات شته لکه آل رجع حان استحال تحول انقلب وغیره او چه څنګه کان تامه هم استعمالیږی نو د غه شان د مترادفات ئے هم تامه استعمالیږی. امسی د صبح نه ماخوذ دے او امسی د ماسه. اضحی د ضحی نه وقد جاء ما جاءت حاجتك از د افعال ناقصه نه ماجاء هم راځی لکه په دے ترکیب کښی چه ماجاءت حاجتك ما استفهامیه دے او جاءت په معنی د صارت ناقصه دے او په دے کښی چه کوم ضمیر د تانیث دے هغه راجع دے اسم ته یعنی ای شی صارت حاجتك. او دلته کښی تانیث د ضمیر په اعتبار د خبر سره دے او بعض نحات وائی چه تانیث د ضمیر په دے وجه دے چه ما عبارة دے د حاجة نه یعنی ایة حاجة صارت حاجتك

فائده | دا کلمه د خوارجو ده چه کله حضرت علی رضی الله عنه حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه د دوی طرف ته اولیږلو نو دوی ورته اووے چه ماجاءت حاجتك وقعدت کانها حربة د ماجاء په شان د افعال ناقصه نه قعد هم راځی یعنی په معنی صار. نو دا هسے به عبارة او کړی چه صارت تلك

بل قسم د افعالو نه مغفر افعال ناقصه دی. اس دلچسپی معه داسے او نورو پل چه الافعال.....

الشفرة. هربه ورے نیزه ته اوچاره ته وائی.

**تدخل على الجملة الاسمية ويعطاء الخبر حكم معناها** دغه افعال ناقصه داخلیږی په جمله اسمیه باندې او دا ورکوی خبر ته حکم د معنی د دے افعالو چه هغه یا ماضی یا انتقال یا دوام یا توقیت او یا نفی ده کان په ماضی دلالت کوی صار په انتقال یا دوے چه کوم مرادفات دی په دوام باندې ما زال ما انفک الخ مابرح دلالت کوی او په نفی باندې لیس دال دے مثلاً په صار زید غنیا کښې زید غنی باندې صار داخل شو یعنے دلته کښې غنی خبر دے نو مطلب دا شو چه غنی زید ته منتقل شو.

**فترفع الاول** نو اول لره به رفع ورکوی ځکه چه دا فاعل دے **وتنصب الثاني** او ثانی لره به نصب ورکوی ځکه چه دے مشابه بالمفعول دے په توقف د فعل کښې په ده باندې پس د فاعل نه لکه په فعل متعدی کښې **مثل كان زيد قائما فكان** نو کان سره تفصیل بعد الاجمال کوی پس دا کان به ناقصه وی دپاره د ثبوت د خبر د کان دپاره د اسم د هغه برابره خبره ده چه دا ثبوت په زمانه ماضی کښې دائمی دے او که دائمی نه دی بلکه منقطع وی د اول مثال لکه کان الله غفورا رحیما. د دویم مثال چه منقطع وی لکه کان زید غنیا **وبمعنى صار** او په معنی د صار راځی لکه وکان من الکافرین ترکیب د عبارة به داسے شی تکون ناقصه بمعنی صار **ويكون فيها ضمير الشان** او په دے کښې به ضمیر د شان مقدر وی او روستو جمله به د هغې دپاره تفسیر واقع شی لکه کان زید قائم یا لکه په دے قول د شاعر کښې. اذا مت كان الناس صنفان شامت : وآخر مثن الذي كنت اصنع.

دلته کښې الناس او صنفان دواړه مرفوع دی نو لابدی ده د ضمیر شان نه. **وتكون تامة** او کله د کان تامه هم راځی په هغه وخت کښې دا په معنی د ثبت وی او صرف فاعل به غواړی لکه وان کان ذو عسرة فنظرة الآ **وزائدة** کان زائده هم راځی یعنی په سقوط د ده نقصان په معنی کښې نه راځی لکه په دے شعر کښې شاعر وائی چه. جیاد بنی بکر تسامی ، علی کان المسومة العراب غرض دا دے چه کان ناقصه هم راځی تامه هم او زائده هم.

**وصار للانتقال** اول دا فعال ناقصه نه صار دے دا راځی دپاره د انتقال د یو صفت نه بل صفت ته یا د یو حقیقة نه بل حقیقة ته لکه صار زید غنیا او د یو حقیقة نه چه انتقال راغلے وی بل حقیقت ته. لکه صار الطین حجرا **واصبح وامسى واضحى** دا دریواړه افعال ناقصه راځی **لاقتران مضمون الجملة باوقاتها** دپاره د نزدیکت د مضمون د جملے د خپلو وقتونو سره لکه اصبح زید عالما یعنی په وخت د صبا کښې زید عالم شو امسی زیدا اسیرا زید په وخت د ماښام کښې اسیر شو. اضحی زید عارفا په وخت د ضحٰی کښې زید عارف شو رکوی

**وبمعنى صار** او په معنى د صار هم راځي په دغه وخت کښې به په دے کښې لیاظ د دغه او قاتونه وي لکه اصبح زيد غنيا اي صار زيد غنيا **وتكون تامة** او کله دا درے واړه افعال تامه هم راځي په دغه وخت کښې دوئ خبر ته محتاج نه وي لکه اصبح زيد يعني زيد صبا کړو.

**وظل وبات لاقتران مضمون الجملة بوقتيهما** دا افعال ناقصه نه دا دوه افعال راځي د پاره د اقتران د مضمون په دے دواړو وختونو پورې. لکه ظل زيد معلما. لکه زيد ټوله ورځ تعليم وکړو. او بات زيد مصليا. زيد ټوله شپه په مونځ کښې تيره کړه **وبمعنى صار** او په معنى د صار با ندې هم راځي لکه ظل زيدا اميرا يعني صار زيدا اميرا.

**ومازال ومابرح ومافتئ ومانفك لاستمرار خبرها لفاعلها من قبله** يعني دا څلور افعال چه دي دا راځي د پاره د استمرار د خبر د دے افعالو د فاعل د دے افعالو د پاره چه د کوم وخت نه نے دا خبر قبول کړے لکه مازال زيدا اميرا يعني زيد چه د کوم وخت نه امارت قبول کړ يدے د هغه وخت نه زيد امير دے يعني په زيد کښې د مالدارئ صفت جاري دے او دلته کښې په دے افعالو کښې معنى د نفي ده او ما صم نافيه دے او نفي چه په نفي داخله شي نو اثبات پيدا کوي او استمرار.

**ويلزمها النفي** او د دے افعالو سره نفي لازمه ده بيا به دا ګويا په معنى د كان او ګرځيږي. نو دا ترکيب جائز نه شو چه مازال زيد الاعالما لکه چه څنګه دا ترکيب ته دے جائز چه كان زيد الاعالما او دا لزوم د نفي عام دے لفظا وي که تقديرا لفظا خو معلوم دے او هغه چه دے تقديرا تالله تفتؤ تذكر يوسف يعني لا تفتؤ الخ **ومادام لتوقيت امر بمدة ثبوت خبرها لفاعلها** بل افعال ناقصه نه مادام دے دا راځي د پاره د دلالت د توقيت د فعل چه ترڅو پورے خبر اسم ته ثابت وي يعني مادام لتوقيت امر المخبر بمدة ثبوت خبرها لفاعل مادام لکه اجلس مادام زيد جالسا. يعني ترڅو پورے چه زيد ناست وي ته هم وخته پورے ته کينه دلته کښې د مخاطب د نا سته توقيت تر هغه وخته پورے شو يدے چه ترڅو پورے زيد ناست وي دلته کښې به ما مصدريه شي او مضاف چه زمان دے هغه به وبلره مقدر را او باسو نو تقدير به دا شي اجلس زمان دوام جلوس زيد **ومن ثم** او د وجه د دے خبره نه چه مادام راځي د پاره د توقيت **احتاج الى كلام** دا محتاج دے کلام او جملے ته د پاره د دے چه تعلق ئے ورسره راشي لکه اجلس شو په دے قول کښې اجلس مادمت جالسا او تنها مادمت جالسا نه شي ويلے کيدے **لانه ظرف** ځکه چه دے ظرف دے او ظرف په افاده کښې مستقل نه وي چه ترڅو پورے ئے تعلق چا سره نه وي نو غلط او بل دا چه ظرف

معمول دے دپاره عامل پکار دے دلته کښ دا ما ظرف دے یعنی حینیه دے

**ولیس لنفی مضمون الجملة حالا** او بل د افعال ناقصه لیس دے دے راځی دپاره دنفی د مضمون دجملے په زمانہ حال کښې لکه لیس زید قائما یعنی قیام دزید منتفی دے فی الحال دا مضمون دجمهور ونحاتو دے **و قیل مطلقا** او بعض نحاة وائی چه دمطلق نفی دپاره راځی عام ددے نه چه نفی په زمانه حال کښ وی اوکه په زمانه ماضی کښ وی او یا استقبالی کښ وی

**ویجوز تقدیم اخبارها کلها علی اسماءها** او جائز دے تقدیم د خبرونو د افعال ناقصه په اسماء دے باندې په وخت دعدم دمانع کښ او په وخت دعدم د وجوب دمقتضی دتقدیم او د تاخیر کښ دلته کښ جواز نه مراد امکان خاص دے نو اوس سوال وارد نه شو په کم کان عدوك سره او په صار عدوی صدیقی سره او دا تقدیم په دے وجه جائز دے ځکه چه دا افعال دی او دا عوامل قوی دی په مرتب او غیر مرتب کښ عمل کولے شی . خو په تقدیم دخبر د افعال ناقصه کښ وسعت دے ځکه چه خبر کله معرب وی د افعال ناقصه او ظاهر الاعراب وی نو بیا هم جائز دے تقدیم په خلاف د خبر د مبتداء نه چه په دے صورت کښ جائز نه دے ځکه چه په دے صورت کښ التباس راځی .

**وهی فی تقدیمها علیها** او دا افعال ناقصه په تقدیم داخبارو د افعال ناقصه کښ پرړوی باندې **علی ثلثة اقسام** په درے قسمه دی **قسم یجوز** یو هغه قسم دے چه جائز دے تقدیم . **وهو من کان الی راح** او هغه دکان نه وا خله تر راح پورے ځکه چه عامل په دے کښ قوی دے او په مقدم مؤخر مرتب غیر مرتب دواړو کښ عمل کولے شی . **وقسم لا یجوز** او بل قسم هغه دے چه جائز نه دے تقدیم دخبر په دے افعالو باندې **وهو ما فی اوله ما** دا هغه افعال دی چه په اول د هغې کښ لفظ د ما دے دا په دے وجه چه دری صدارت دکلام غواړی لوکچرته مونږ د وړباندې دا خبر مقدم کړو نو بیا به صدارت دکلام فوت شی . **خلافا لابن کیسان** خلاف ثابت دے ابن کیسان لره دهغه په نزبا ندې په دے کښ تاویل کیدے شی لکه مازال شو دا به په معنی د مثبت شی مالا زید عالما به په تاویل دکان زید عالما سره شی . **فی غیر ما دام** سیوا د ما دام نه ځکه چه په دے کښ تاویل نشی کیدے . **وقسم مختلف فیه** او دریم قسم مختلف فیه دے د سیبویه په نز حکم ددے پشان دحکم دهغه دے چه په سر کښ ئے ما لفظ وی . او هلته کښ خو جائز نه دے تقدیم نو دلته کښ هم جائز او نه گرځید و او د اکثرو بصریانو په نزبا ندې جائز دے ځکه چه حکم ددې پشان دکان دے ځکه چه دے خو صورة ما نه دے . **وهو لیس** چه هغه لیس دے .

# افعال المقاربة

ندہ کړه داخبرچه افعال مقاربه داخوانو دافعال ناقصه نه دی خو دائے مستقل عنوان سره ذکر کړل دد ے وجے نه چه دد ے بعض احکام خاص دی دافعال ناقصه نه ، یوخو داد ے چه خبر دد ے به فعل مضارع وی او تقدیم دخبر دد ے جائز نه د ے په افعالو باند ے۔

**ما وضع لدنو الخبر رجاءً او حصولا او اخذا فیه الخ** دا صفه افعال دی چه وضع شوی وی دپاره دنزدیکت او دقربت دخبرخپل فاعل له برابره خبره ده چه دانزدیکت په اعتبار درجاء او د امید وی یا په اعتبار دحصول یا داخذ او دشروع فی عبروی دلته کښ په اعتبار د ترکیب سره پروے کښ حذف د مضاف راغلے د ے چه دلنو رجاء او دنو حصول او دلنو اخذ فیه ۔ لنو لدنو الخبر حصولا مطلب به داشی چه للدلالة علی قرب حصوله للفاعل۔

**فالاول عسیٰ** پس قسم اول صفه عسیٰ د ے الذی لدنو الخبر رجاءً عسی په اعتبار دامید یعنی چه دخبر دنزدیکت دفاعل سره امید وی صفه دپاره عسیٰ راځی. **وهو غیر متصرف** او داغیر متصرف د ے یعنی ددے نه ګردان د مضارع دفاعل یا د مفعول وغیره نه کیږی د وجه دحمل ددے نه په لعل باند ے لتضمنها بمعنی الانشاء او هر واحد دد ے دوا رو نه دپاره د طمع او د امید دحصول راځی هم داوجه ده چه دا په حالاتو کښ نه استعمالیږی **تقول عسیٰ زید ان یخرج** په ے ترکیب کښ زید فاعل د ے او ان یخرج خبر د ے چه مصدر د ے په ان سره یعنی قارب زید الخروج عسیٰ ان یخرج زید یعنی قرب خروج زید په دے صورت کښ عسیٰ تامه د ے او فعل مضارع په تاویل د مصدر سره دا فاعل د ے دپاره د عسیٰ . **وقد یحذف ان الخ** او کله کله ان حذف کیږی دخبر د عسیٰ نه ځکه چه د ے مشابهه د ے د کاد سره په مقاربت کښ او دکاد خبر بغیر د ان نه جائز د ے

**والثانی کاد** او قسم ثانی کاد د ے یعنی ما وضع لقرب حصول الخبر او په د ے کښ معنی د یقین پر نه ده لکه کاد زید یخرج . یعنی حصول دخروج د زید یقینی د ے. **تقول کاد زید یجیٔ وقد تدخل ان** او کله کله داخلیږی ان په خبر دکاد باند ے تشبیهاله بعسیٰ۔

**واذا دخل النفی علی کاد** او په صفه وخت کښ چه حرف نفی داخل شی په کاد باند ے **فهو کالافعال علی الاصح** نو دا به هم په شان د نورو افعالو وی چه په صغوی باند حرف نفی داخل وی نو معنی د صغوی د نفی وی نو دد ے معنی به هم د

نفي دي (يعني نفي د خبر) او دا اصح مذهب دے يعني چه كله حرف نفي په كان داخل شي نو د هغې په مشتاقو باندي داخل شي نو هغه به نفي فائده كوي **وقيل يكون للاثبات** او بعضو نحاتو ويلي دي چه كاد باندي حرف نفي راشي نو هغه به د پاره د اثبات وي مطلقا برابره خبره ده چه ماضي وي كه مضارع

**وقيل يكون في الماضي للاثبات وفي المستقبل كالافعال** او بعض نحاة وائي چه حرف نفي په فعل ماضي باندې داخل شي نو اثبات به فائده كوي او چه په فعل مضارع باندې داخل شي نو نفي به فائده كوي لكه د نورو افعالو چه كوم نحاة وائي چه كاد باندې حرف نفي داخل شي نو دے به د پاره د اثبات وي مطلقا د هغوی دليل دادے چه فذ بحوها وما كادوا يفعلون د هغوی په نزد معنی دا ده چه بقره هغوی حلاله او ذبح كړه او هغوی د هغې بقرے ذبح ته نزدے وو او كه چرته دلته كښې ما په خپله د نفي په معنی واخلو نو تناقض لازميږی خو د دے دليل نه جواب دادے چه دلته كښې هيڅ قسم څه تناقض نشته دے ځكه چه نفي د قرب د فعل د ذبح محكښې د زمانے د فعل نه وو نو مطلب دا شو چه هغوی ذبح د بقرے اوكړه او د ذبح نه مخكښې هغوی ذبح ته نزدے نه وو (يعني دا نزدې والي نه) نو زمانه جدا شوه پس تناقض رانغے:

**تمسكا بقوله تعالیٰ وما كادوا يفعلون وبقول ذی الرمه** په دال د كين دد وی كښې چه دوی دليل نيولی دی په دے قول د باری تعالیٰ باندې وما كادوا يفعلون چه دلته كښې نفي داخله ده په ماضی باندې او معنی ئے د اثبات ده ځكه كه چرته د نفي معنی اوكړو . نو لازميږی تناقض (د هغې نه ورته جواب اوكړے شو) او په قول د ذوالرمه شاعر باندې.

**اذا غير الهجر المحبين لم يكد ۞ رسيس الهوی من حب مية يبرح .**

دلته په دے شعر كښې يكد راغلے دے چه كاد د مضارع ده د لم د دخول د وجې نه مجزوم كرځيدلے دے لم د پاره د نفي راځی چونكه دا حرف نفي په فعل مضارع داخل دے نو معنی به ئے پښان دا نوره انعا لووی يعني منفي. په دغه صورت كښې معنی د شعر دا ده چه كله هجران او فراق محبت كونكو له متغير كړی نو نه قريب كيږی هغه محبت چه كوم ثابت دے ميته سره زوال په دے صورت كښې په مذهب صح باندې هم معنی صحيح ده او دريم مذهب والا باندې هم معنی صحيح ده او كه چرته دا ئمك د پاره د دويم مذهب د خاوندانو اوكرځی نو بيا پكښې تخطيه د شاعر راځی يعني معنی دا ثبات موږ ته اوكړو لكه وئيلی شوی چه كله ذی الرمه دا شعراو ئيلو او په صورت د لم يكد كښې چه كله معنی د دے د اثبات وانخستے شی نو دا معنی خو صحيح نه ده نو هغه لم يكد په لم يجد باندې بدل كړو ولے د اصح مذهب په بنا باندې معنی د نفي صحيح ده او كه چرته شاعر خپله غلطی تسليم كړيدی نو هغه له دا نه دو پكار.

**والثالث** او دریم قسم د هغو دا د ضع لقرب الاخذ فی الخبر **طفق وکرب وجعل واخذ** مثله طفق کرب جعل او اخذ دی. **وهی مثل کاد** او د دغه افعال په استعمال کښې شان د کاد دی یعنی هر واحد په دوی تقاضا د اسم او د خبر کوی او خبر د دے به مضارع وی بغیر د اَنْ نه. لکه د طفقا یخصفان من ورق الجنة **واوشک مثل عسی** او دریم قسم نه بل اوشک دے او دا په شان د عسی دے **وکاد فی الاستعمال** او د دغه رنګ په شان د کاد دے په استعمال کښې لکه اوشک زید ان یخرج، اوشک ان یخرج زید یا اوشک زید یخرج په اوشک زید ان یخرج زید اسم دے او ان یخرج فعل مضارع سره د اَنْ نه دا خبر شو او اوشک ان یخرج زید دلته کښې ان یخرج فعل مضارع سره د اَنْ نه دا مصدر شو او زید به یا مضاف الیه شی تقدیر د عبارت به دا شی اوشک خروج زید.

**فعل التعجب** مراد د دے نه دوه فعلین د تعجب دی چه یو ما افعله او بل افعل به دی تعجب د یو شی طاری کیدل د یو کیفیت دی په نفس باندې په وخت د لیدو د امر غریب کښې په اصطلاح د نحاتو کښې تعریف ئے دا دے چه ما وضع لانشاء التعجب چه لانشاء التعجب ئے او فرمائیل نو په دے سره ترنه تعجب یا عجبت او تل ځکه چه دا د پاره د انشاء نه دی بلکه د پاره د اخبار د تعجب دی دلته کښې د متن نسخې مختلفې دی بعضو کښې فعل التعجب بعضو کښې افعال التعجب او په بعضو کښې فعلا التعجب. تطبیق ئے دا دے چه افراد د فعل په نظر سره جنس ته او جمعیة په اعتبار د کثرت د افراد و سره او تثنیة په اعتبار سره حقیقة او نو عینو ته دے لیکن په دے ټولو صورتونو کښې تعریف د جنس دے چه مفهوم دے د تثنیې او جمع نه ما عبارت د دے د فعل نه نه د اسم نه لکه بعض نحاتو چه وائی. **وله صیغتان** او د تعجب د پاره دوه صیغې دی **ما افعله وافعل به** په دے سوال وارد یږی چه ما افعله یا افعل به خو جملې دی فعلین نه دی **جواب** دا دے چه دلته کښې اصل عبارت دا دے چه الفصل الواقع فی ترکیب ما افعله وافعل به. **وهما غیر متصرفین** او ما دواړه فعله غیر متصرف دی. یعنی د دوی نه مضارع امر نهی نه راځی او نه تثنیه یا جمع کیږی ځکه چه دا مشابه دی د حرف سره. **مثل ما احسن زیدا واحسن بزید** دا مثالونه د دواړو صیغو دی. **ولا یبنیان الا مما یبنی منه افعل التفضیل** او نه جوړیږی دا صیغې د تعجب مګر هغه نه چه کوم نه صیغه د اسم تفضیل جوړیږی او هغه ثلاثی مجرد دی. چه لون او عیب نه نه دی. او دا په دے وجه چه اسم تفضیل او تعجب دواړه د پاره د مبالغې او د تاکید راځی. او په افعل التفضیل کښې شرط دا دے چه دا فعل به قابل د پاره د زیادت او د نقصان وی. نو دا شرط به

صیغه د تعجب کښې هم دے. او دغه شان د دے بناء هم د پاره د اسم فاعل ده ځکه چه څنګه په تفضیل کښې بناء د پاره د فاعل ده. سوال دا راځي چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په ما اشتهی الطعام او ما امقت الکذب. ځکه چه دا فعل تعجب دے. لیکن په معنی د مفعول باندې دے. نه په معنی د فاعل جواب دا دے چه دا شاذ دے. او شاذ د پاره اعتبار نشته. سوال دا دے چه د کوم ثلاثی نه صیغه د تعجب ممتنع وی. نو هغے کښې به بیا د تعجب اظهار څنګه کیږی. نو مصنف جواب اوکړو **ویتوصل فی الممتنع بمثل ما اشد استخراجه الخ** یعنی مثلا یو صیغه ده چه د هغے نه فعل تعجب ممتنع دے مثل استخراج چه دا باب استفعال دے. نو دلته کښې به شدة مصدر نه صیغه د تعجب جوړه کړو چه ما اشد یا اشد د بره باستخراج. د غه شان د لون او د عیب نه هم. لکه ما اکثر حمرته وما اقبح عوره یا اکثر بحمرته وا قبح بعوره. مصدر د فعل ممتنع به په اول صورت کښې مفعول وی او په ثانی کښې مجرور. **ولا یتصرف فیهما بتقدیم وتاخیر**. او تصرف به پکښې نه کیږی په تقدیم یا په تاخیر سره. ځکه چه هر کله دا منتقل شو صیغے د تعجب نه نو دا جاری شو په مجری د امثالو او امثالو کښې تغییر نه کیږی بقدر الامکان. نو اوس ما احسن زیدا کښې مازیدا احسن نشی وئیلے کیدے او د غه شان احسن بزید کښې بزید احسن نشی وئیلے. او دلته کښې ذکر د تاخیر د پاره د تاکید دے. نه لپاره د تاسیس. **ولا فصل** د فعل تعجب او د معمول په مابین کښې به فصل هم نه راځی. نو دا نشی وئیلے کیدے چه ما احسن الیوم زیدا یا احسن الیوم بزید. البته په کان زائده سره فصل جائز دے لکه ما کان احسن زیدا. **واجاز المازنی الفصل بالظروف**. او مازنی نحوی جائز کړے دے فصل په ظروفو سره. ځکه چه بناء د ظروفو په توسع سره ده جائز دی په دے کښې هغه چه په نورو کښې جائز نه وی. نو ما احسن فی الدار زیدا او احسن الیوم بزید د هغه په نزد باندې جائز دی.

**وما ابتداء نکرة عند سیبویه** په دے عبارت سره د دے ترکیب ته مصنف اشاره اوکړه. چه لفظ د ما په ما احسن زیدا مثلا کښې د پاره د ابتداء دے. او نکره ده په معنی د شئ باندې. **وما بعدها الخبر** او د دے نه ما بعد چه کومه جمله ده دا خبر دے. نو دا سے به شی چه شئ احسن زیدا. **وموصولة عند الاخفش والخبر محذوف** او د اخفش په نزد باندې دا ما موصوله دے. او خبر ئے محذوف دے. تقدیر به دا سے شی. الذی احسن زیدا شئ. الذی موصول احسن زیدا جمله فعلیه صله موصول سره د صلے نه په محل د رفع کښې مبتدا او خبر ئے محذوف دے چه شئ دے. دا به په شان د شر اهر ذاناب اوګرځی. او په نزد د بعض باندې ما استفهامیه دے. او ما بعد د دے نه خبر دے. یعنی ای شئ احسن زیدا.

**وبه فاعل عند سیبویه** دا د فعل تعجب د دویم صیغې د ترکیب بیان دے. نو فرمائی چه وبه فاعل عند سیبویه یعنی با زائده ده او ه ضمیر فاعل دے د پاره د احسن **فلا ضمیر فی افعل**. بیا په دغه صورت په افعل کښې به ضمیر مستتر نه منو یعنی په احسن کښې. **ومفعول عند الاخفش** او د اخفش په نزد باندې مفعول دے دا ضمیر. **والباء للتعدیة** او باء د پاره د تعدیه را غلې ده بیا په دغه صورت کښې دا همزه به یکښې د پاره د صیرورت شی نه د پاره د تعدیه. لو د احسن به مطلب داشو چه صیّره ذا حسن **او زائدة** او یا به دا با زائده شی. لکه ولا تلقوا بایدیکم الی التهلکة **ففیه ضمیر** بیا په دغه صورت کښې په احسن کښې به ضمیر مستتر وی هغه به ئې فاعل وی لکه احسن انت بزید.

# افعال المدح والذم

دا هغه افعال دی چه په اصطلاح د نحاتو کښې د پاره د مدح او د ذم استعمالیږی. او دا معنی مونږ ځکه اوکړه. چه مدحت یا ذممت افعال ترینه خارج شی. ځکه چه دوئ ته په اصطلاح د نحاتو کښې افعال مدح یا ذم نه وئیلے کیدے. **ما وضع لانشاء مدح او ذم** دا هغه افعال دی چه وضع کړیدی شوی دی د پاره د انشاء د مدح او د ذم. نو مدحت یا ذممت شرف کرم قبح او د غیره دا پکښې داخل نه شو. ځکه چه دغه د پاره د انشاء د مدح او ذم نه دی بلکه د پاره د اخبار دی.

**فمنها نعم وبئس** پس بعض د افعال مدح نه نعم دے. او د افعال ذم نه بئس دے سوال دا دے چه د دوی شمیرل په افعالو کښې نه دی صحیح ځکه چه په افعالو کښې دا وزن نشته جواب دا دے چه دا په اصل کښې د فعل په وزن دے بیا کسره د عین منتقله کړے شوه فاء ته. په دے کښې بعض نور لغات هم شته دے. خو غیر مشهور دی. بعض نحاة وائی. چه دا فعلین نه دی بلکه اسمین دی. او د هغوئ مستدل دا دے چه یا حرف ندا په دوئ باندې داخلیږی لکه یا نعم المولیٰ جواب دا دے چه دلته کښې منادی اسم دے او هغه محذوف دے چه یا الله نعم المولیٰ. خو په دے مذهب والو باندې سوال وارد یږی چه کله دا اسم شی نو دے پورے الحاق د تا تانیث ساکنه د لے کیږی لکه فبها ونعمت دا علامه ده د فعلیة ده. **وشرطهما ان یکون الفاعل معرفا باللام** او شرط د دے افعالو د تا ثیر د پاره دا دے. چه فاعل د دوئ به معرف باللام وی او دا الف لام به الف لام عهد ذهنی وی.

ځکه چه مقصود په دے سره مدح او ذم صفه دی چه صفه معهود دی په ذهن کښې. بیا الف لام هم ذهنی یکار دی چه مطابقت راشی د ملفوظ د مقصود سره لکه نعم الرجل زید **او مضافًا الی المعرف بها** او یا چه مضاف وی معرف باللام ته برابره خبره ده چه دا اضافت بالواسطه وی که بلا واسطه. د بلا واسطه مثال لکه نعم صاحب الرجل او چه بالواسطه وی لکه نعم فرس غلام الرجل او نعم وجه فرس غلام الرجل **او مضمرًا ممیزًا بنکرة منصوبة** او دا فاعل به یا مضمر وی او تمیز به ئے دا ظاهر وی په نکره سره چه صفه منصوبه وی. لکه نعم رجلًا زید. یعنی نعم الرجل رجل زید. **او بما** او یا به ئے تمیز لفظ وی په ما سره. خلاصه دا شوه چه فاعل د دے به په یو د درے طریقو سره وی یا به معرف باللام وی. یا به مضاف وی معرف باللام ته او یا به ضمیر وی خو دا ضمیر به مبهم وی نو تمیز به ئے خالی نه وی. یا به نکره منصوبه وی او یا به ما وی. **مثل فنعما هی** دلته دا په اصل کښې نعم ما هی وو. بیا میم په میم کښې مدغم کړے شو. دلته کښې ما نکره ده په معنی د شئ موضع د دے د نصب د دے بنا په تمیز نعم الشئ شیئًا هی. **وبعد ذالك المخصوص** او پس د دے نه مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم وی. د پاره د بیان د فاعل. دلته کښې د بعد نه مراد بعدیت مخصوصه دے. د پاره د دے چه سوال وارد نه شی چه مخصوص خو کله مقدم کیږی په فعل باندے. او په دے خبره باندے صاحب د مفتاح تصریح کړے ده **وهو مبتداء وما قبله خبره** او دا به مبتدا وی. او ما قبل به د دے نه خبر وی. **سوال** داد ے جمله کله خبر واقع شی نو په هغے کښې لا بدی دے د عائد نه. او دلته کښې خو ضمیر نشته. **جواب** ما دے چه الف لام د ... کښې قائم مقام د عائد دے. په دے عبارت سره مع اعراب د مخصوص ذکر کړی. **او خبر مبتداء محذوف** او یا خبر دے د پاره د مبتداء محذوف. **مثل نعم الرجل زید**. معنه په دے شان سره چه کله او وئیلے شی چه نعم الرجل. نو سائل گویا سوال او کړو چه من هو په جواب کښې او وئیلے شو چه زید. یعنی هو زید. نعم الرجل زید یو جمله ده او بنا په دے دویمه توجیه دا دوه جملے دی. **وشرطه مطابقة الفاعل** او شرط د مخصوص بالمدح او یا مخصوص بالذم مطابقت د فاعل سره په جنس یا په افراد د تثنیة جمع او په تذکیر د تانیث کښې لکه نعم الرجل زید یا نعم الرجلان الزیدان نعم الرجال الزیدون. نعمت المرءة هند او دا مطابقت ځکه ضروری دے چه دا عبارت دے د فاعل نه معنی. **وبئس مثل القوم الذین کذبوا و شبهه متأول** په دے عبارت سره مع دفع د اعتراض کوی. او منشأ د اعتراض دغه دا متکلمین کلید ده چه ده او وئیل و شرطه مطابقة الفاعل. د سوال توضیح دا ده. چه تا خو متکلمین او وئیل چه مطابقت شرط دے په مابین د مخصوص او د فاعل کښې. او دلته کښې ستا دا قاعده منقوضه شو. په دے ترکیب کښې چه بئس مثل القوم الذین کذبوا

په دے شان چه مخصوص الذین کذبوا جمع دے او فاعل مفرد دے چه مثل القوم دے. نو مصنف **جواب** او کړو چه دا ترکیب یا دے په شان نورو ترکیبونو دا متأول دے او تاویل ئې دے طریقه سره چه دلته کښې مضاف مقدر دے. چه بئس مثل القوم مثل الذین کذبوا، والذین نه مخکښې بل مثل مقدر کړے شو. او یا دا چه الذین صفت دپاره د مقوم دے او تقدیر د عبارت به داسې شي. بئس مثل القوم الکذبین مثلهم. **وقد یحذف المخصوص** او کله کله مخصوص په وخت د قرینے کښې حذف کیږی. په دے عبارة سره مصنف دفع د اعتراض کوی **سوال** دا دے چه نعم العبد یا فنعم الماهدون دلته کښې مخصوص نشته حالانکه په دا سې افعالو کښې مخصوص یکار او ضروری دے. نو مصنف **جواب** او کړو چه وقد یحذف المخصوص. چه په وخت د موجود د قرینے کښې حذف د مخصوص جائز دے. او دلته کښې هم قرینه موجود دے دی. نعم العبد ایوب او قرینه دلته کښې سیاق د آیة دے او په فنعم الماهدون کښې مخصوص نحن دے. او قرینه ورباندې صدر د آیت دے او هغه والارض فرشناها.

**وساء مثل بئس** او دا فعل ذم ساء دے. دا په ټولو احکامو او شرطونو کښې په شان د بئس دے. دلته کښې مصنف د ساء تشبیه د بئس سره ورکړه. او بئس سره ئې ذکر نه کړو. ځکه چه ساء غالب الاستعمال دے په اخبار کښې. **ومنها حبذا** او بعض د افعال مدح نه حبذا دے. **وفاعله ذا** او فاعل د دے فعل چه حب دے هغه ذا دے. **ولا یتغیر** او په دے کښې څه تغیر نه راځی. یعنی نه په تثنیه کیږی نه جمع کیږی او نه مونث کیږی. لکه حبذا الزیدان. حبذا الزیدون. حبذا هند. ځکه چه دا اسی جاری شوی دے په مجری د امثالو او په امثالو کښې تغیر نه کیږی بقدر الامکان. دلته په حبذا کښې فعل مدح هغه حب دے. **سوال** دا دے چه مصنف ولے حبذا مستقل ذکر کړو او حلائے ئې ولې رو د نعم او د بئس نه. **جواب** دا دے چه دے څه خپل خاص احکام دی. **وبعده المخصوص** او روستو به د دے ذا نه مخصوص بالمدح وی دپاره د بیان د فاعل او تفسیر. او جائز دے دا ترکیب چه حبذا الرجل زید. حب فعل ماضی ذا فاعل الرجل صفت دپاره د ذا او زید مخصوص بالمدح.

**واعرابه کاعراب مخصوص نعم** او اعراب د مخصوص بعد حبذا په شان د اعراب د مخصوص د نعم سره دے. چه څنګه دوه وجهین په اعراب د مخصوص د نعم کښې جائز دے دی. نو دغه رنګ په مخصوص د حبذا کښې هم جائز دی. او بعضو ترجیح ورکړې ده چه مخصوص بعد حبذا معطف بیان دے او بعض وئیلی دی. چه ذا زائده دے. **ویجوز ان یقع قبل المخصوص** او فاعل مخصوص بالمدح دے **او بعده تمیز او حال علی وفق مخصوصه**. او جائز دی دا خبره چه واقع شی مخکښې د مخصوص بالمدح او یا روستو د مخصوص بالمدح نه تمیز او یا حال چه هغه به وفق وی د مخصوص بالمدح

سوال حبذا زید رجلا یا حبذا رجلا زید لکه کښې تانیث یا او تذکیر په او جمعیت په تثنیه په افراد باء سره
ولې دا دے چه تا اوونیل چه یجوز او نه یجوز نو یجوز په حال بدی او یجب ونیلو دی. لکه په نعم کښې چه کله فاعل د ضمیر
وی **جواب** دا دے چه فاعل کله ملفوظ وی معنه تر منزنیتر حاصل دے په معنه باندې چه غیرملفوظ وی. مثاله
معنه چه حال واقع شی یوی ممکښې د ذکر د مخصوص نه چه موافق وی د معنه سره. لکه حبذا راکبا زید او چه روستو
راغلی وی. لکه حبذا زید راکبا او حال یا تمیز داخل معمول وی نو عامل د دوی د پاره حب دے په حبذا کښې
او ذوالحال په دے ترکیبونو کښې ذا دے. نو زید نه دے بلکه زید مخصوص بالمدح دے. او مخصوص بالمدح راځی پس
د اتمام د مدح نه لفظا یا تقدیرا. او ملته کښې مونږ فقیر بکار دے، په دوارو کښې حکه چه مصداق د دوارو یو دے
**سوال** دا دے چه دلته کښې معنیٰ وړلې وضع د مظهر په ځائې د مضمر او کړله بلکه ونیلی برے وو. چه علیٰ
وفقیر. **جواب** دا دے چه دلته کښې معنیٰ وضع د اسم ظاهر او کړله د پاره د مزید توضیح د پاره چه متوهم توهم
او نه کړی د رجوع د دے ضمیر غیر مخصوص ته.

<table>
<tr>
<td>زندگی در گردنم افتاد بیدل چاره نیست<br>شاید باید زیستن ناشاد باید زیستن<br>(بیدل)</td>
<td>نه حسنش غایتے دارد نه سعدی را سخن پایاں<br>بمیرد تشنه مستسقی و دریا همچناں باقی<br>(شیخ سعدیؒ)</td>
</tr>
<tr>
<td>اے فاختۂ پرواز کناں بر سر کوہے<br>درد دل مرغان گرفتار چه دانی</td>
<td>اتفاق بلبل و گل بارہا خواهد شدن<br>درمیان ما شما و سیر بوستاں یا نصیب</td>
</tr>
</table>

# الحرف

هرکله چه مصنفؒ فارغ شو د بیان د قسم ثانی د کلمے نه چه هغه فعل دے نو شروع ئے اوکړه په قسم ثالث کښې چه هغه حرف دے پس اوئے وئیل چه الحرف، حرف په لغت کښې طرف ته وائی او اصطلاحی تعریف ئے بخپله باندے مصؒ کړیدے چه

**الحرف مادل علی معنی فی غیره** | یعنی حرف دا هغه کلمه ده چه دلالت کوی په معنی باندے معنی چه حاصله وی یعنی متعقله او متصوره وی

په نسبت سره غیر ته او مستقله بالمفهومیة نه وی دلته کښې دا کلمه د ما عبارة دے د کلمے نه ځکه چه کلمه مقسم ده او په هر قسم کښې خپل مقسم ملحوظ وی. الی روستو چه فعل مذکر راوړے شوےدے داپه اعتبار د تعبیر سره دے سوال دادے چه حروف هرکله دلالت نه کوی پخپله معنی باندے نو څنګه به دلالت کوی علی معنی فی غیره او بله خبره دا ده چه هس کله حرف دال اوګرځید و په هغه معنی باندے چه هغه ثابته ده په غیر کښې نو دا خود ده معنی نه شره بلکه د غیر شوه. جواب دادے چه دلته کښې عبارة کښې تقدیر دے دلته کښې متعلق حذف دے او یا به دا فی په معنی د با اوګرځوو او یا به باء سببیه شی. نو معنی به دا شی چه علی معنی متعقله بسبب غیره. سوال واردیږی چه تعریف د حرف ستا مانع اونه ګرځیده د دخول د غیرنه او داخل شو پکښې اسماء متضائفه چه په هغے کښې تعقل د هر واحد موقوف دے په آخر باندے لکه ابوة او بنوة شو ځکه چه معنی د ابوة نه متصور کیږی مګر پس د تصور د بنوة نه سره دده نه دے تحرف نشی ویلے. جواب دادے چه مراد په تعقل سره عدم استقلال بالمفهومیة دے او اسماء متضائفه د استقلال بالمفهومیة دی بیا سوال واردیږی چه ستا دا تعریف د حرف مانع اونه ګرځید و دد خول د غیرنه او داخل شو پکښې فعل ځکه چه فعل په اعتبار د معنی مطابقی سره دلالت کوی په هغه معنی باندے چه ثابته وی په غیر کښې اګرکه دلالت کوی په اعتبار د معنی تضمنی سره په معنی خپله باندے. جواب دادے چه قید د فقط ملحوظ دے په معنی د حرف کښې او د دغه شان سوال نه واردیږی په هغه اسماء سره چه هغه متضمن وی معنی د شرط لره یا معنی د استفهام لره چه هغوئ دلالت کوی په اعتبار د معنی مطابقی

سره علی معنی فی غیره او په اعتبار د معنی تضمنی سره دلالت کوی علی معنی فی نفسه چه هر کلمو نو د قید د فقط او لګولو په معنی د معنی د حرف کښی نو دا اعتراض وارد نه شو ځکه چه فعل او د غه اسماء اګرکه دلالت کوی علی معنی فی غیرها د غه رنګه دلالت کوی علی معنی فی نفسها۔

**ومن ثم احتاج فی جزئیته للکلام الی اسم و فعل** او د وجے د دے خبرے نه چه حرف دلالت کوی علی معنی فی غیره په جزئیة د کلام کښی دے محتاج دے اسم ته او یا فعل ته برابره خبره ده چه رکن وی او که غیر رکن وی۔ چه رکن وی لکه زید فی الدار او چه غیر رکن وی لکه سرت من البصرة الی الکوفة **فائده**:- حروف په (۲۲) دوویشت قسمه دی ځکه چه دا حروف به خالی نه وی یا به عامل وی یا به غیر عامل وی که عامله وی بیا به خالی نه وی یا به عامله وی په فعل کښی یا په اسم کښی کچرته عامل وی په فعل کښی بیا به خالی نه وی یا به ناصب وی فعل لره یا به جازم وی کچرته ناصب وی نو دا په څلور قسمه دی لکه شاعر وائی أن ولن الخ او که جازم وی نو هغه پنځه دی لکه ان او لم لما او لام امر او لا د نهی۔

او که عامل وی په اسم کښی نو بیا به خالی نه وی یا به په یو اسم کښی عمل کوی او یا په اسمین کښی. که عامل وی په اسم کښی نو بیا به خالی نه وی یا به ناصب وی اسم لره او یا به جاره وی اسم لره که ناصب وی نو هغه شپږ دی. لکه په دے شعر د شاعر کښی، واو یا او همزه والا ایا وای هیا. ناصب اسم اند الخ او که جاره وی نو هغه اوولس حروف دی نوع اول هغه ده الخ په اشعارو کښی مخ ذکر شوی دی او هر چه دی هغه حروف چه هغه عامل وی اسمین لره، نو هغه به خالی نه وی یا به رافع وی اول لره او ناصب به وی ثانی لره او یا به عکس وی. اول ما او لا مشبهتین بلیس او دویم یا به په موجب کښی وی یا غیر موجب کښی که اول وو نو هغه حروف مشبهه بالفعل دی. لکه ان با ان کان الخ او دویم لا التی لنفی الجنس۔

او هر چه دی حروفِ غیرِ عامله نو هغه پنځلس دی او وجه د حصر ئے داده. چه دا حروف به یا د دواخلو د فعل نه وی فقط یا د د واخلو د اسم نه به وی فقط او یا به غیر مختص وی په چا پورے. که اول وی نو بیا به خالی نه وی یا به محل د ورود د دے اول د فعل وی یا آخر د فعل که اول د فعل وی نو بیا به خالی نه وی یا به د تحقیق د فعل د پاره وی یا به د تعلیق د پاره وی او یا به د تحضیض د پاره وی که اول وی هغه نه حرف توقع وائی لکه قد که دویم وی هغه ته حروفِ شرط وائی هغه اِن، لو او اما دی دریم حروفِ تحضیض لکه هلا، لولا، اَلا او لوما او کچرته محل د ورود د هغه آخر د فعل وی بیا به خالی نه وی یا به د پاره د تانیث وی او یا د

پاره د تاکید که اول وو نو هغه تاء تانیث او که ثانی وو نو هغه نون تاکید ثقیله یا خفیفه او کړے ته د داخل داسم نه وی فقط نو هغه تنوین دے سره د ټولو اقسامو نه سیوا د تنوین ترنم نه او کړے ته دے مختص نه وی په چا پورے نو بیا به خالی نه وی یا به په سقوط دده سره نقصان په معنی کښې نه راځی یا به راځی که نه راځی نو هغے ته حروف زیادة وائی لکه اِن اَن ما لا مِن باء لام او کړے ته د هغے په سقوط سره نقصان په معنی کښې راځی نو هغه به خالی نه وی یا دا حروف دال وی په اشتراک د ما بعد د ماقبل سره یا به نه وی که اول وو نو حروف عاطفه لکه شاعر وائی واو فاء ؤ ثم الخ که نه وی نو بیا به خالی نه وی یا به د پاره د الفاظ د مخاطب وی او یا به د پاره د زجر د مخاطب وی یا د پاره د شک د متکلم وی او یا د پاره د ایجاب د ماقبل وی. یا به د پاره د تعیین د مبهم وی او یا به د پاره د تاویل د مرکب وی په مفرد سره که اول وو نو حروف تنبیه چه هغه ها الا اواما دی. دویم حروف الردع چه کلا دے فقط دریم حرفین دا ستفهام چه هغه همزه او هل دی. څلورم حروف الایجاب چه هغه نعم، بلیٰ، اَی، اَجل، جیر او ان که پنځم وی نو حروف تفسیر لکه اَی او اَن. که شپږم وی نو حروف مصدر چه هغه ما او اَن دی.

## حروف الجرماوضع للافضاء بالفعل

هر کله چه مصنف فارغ شو د تعریف د حرف نه نو شروع ئے او کړه په اقسامو د هغه کښې. عامل داسم اته انواع دی. حروف جر، حروف مشبه بالفعل، ما او لا مشبهتین بلیس، لا لنفی الجنس او حروف النداء، الا استثنائیه او واو په معنی د مع سره. او دلته کښې مصنف ذکر نه کړو ما او لا چه مشبهتین دی په لیس پورے او نه لا لنفی الجنس او نه واو په معنی د مع سره او نه الا ځکه چه د دوی ذکر مخکښې تیر شویدے او عامل د فعل په دوه قسمه دے. یو جازمه دی او یو ناصبه دی. او مصنف د دوی ذکر هم دلته کښې اونه کړو ځکه چه د دوی بحث په فعل کښې تیر شویدے. او دلته کښې حروف جاره لے مقدم کړو په نورو حروفو باندې ځکه چه دا کثیر دی او العزة للتکاثر. او بل د دوی استعمال هم ډیر دے او بیا مصنف تعریف د بعض حروفو او کړو او د بعضو ئے او نکړو. لکه حروف جاره شو د دوی تعریف مصنف او کړو ځکه چه په دے ټولو حروفو جاره کښې یو مفهوم مشترک وو. دغه شان د تنوینونو ئے هم تعریف او کړو ځکه چه د دوی د پاره هم یو مفهوم مشترک وو د دے نه علاوه د بعضو حروفو د پاره اصلاً مفهوم نه وو. لکه حروف مشبه بالفعل او د بعضو د پاره مفهوم اصطلاحی نه وو

بلکه مفهوم د هغې معنی لغوی لکه حروف ردع یا حروف تحضیض.

دا حروفِ جاره ما هغه حروف دی چه وضع شویدی مرواحد د دےنه د پاره دایصال د معنی د فعل یاد معنی د فعل یاد شبه فعل.

**الی ما یلیه** | مدخول خپل ته سوال واردیږی چه هیڅ یو فرد دا فرادو د حروف جاره نه موضوع نه دے د پاره د وصول نو څنګه وائے چه للافضاء جواب دا دے چه انضاء په معنی د وصول دی خو چه هر کله تعدیه د دے راغله په با سره نو معنی د دے ایصال شوه. او مطلب دا ایصال د فعل اسم ته تعلق د معنی د فعل دے په اسم پورے لکه په مررت بزید کښی تعلق د مرور په زید پورے او علامه د ایصال تعدیه د فعل د ه اسم ته. بیا به مجرور مفعول د فعل اوګرځی نو دا به منصوب وی محلا او فائده به دے دا را وځی چه په جار او په مجرور باندِ عطف په نصب سره جائز دے لکه بیمار جلکم کښی او معنی د فعل نه مراد دا دے چه هر هغه شے چه هغهٔ نه فعل مستنبط دے. لکه اسم فاعل چه اووائے انا مارٌ بزید، یا اسم مفعول لکه او وئیلے شی انا ممرور بزید. یا صفت مشبه لکه زید شریف بالعلم یا مصدر لکه قرآن پاک کښی راغلی دی وانا علی ذَهَابٍ بِهٖ لَقَادِرُوْنَ. یا ظرف شو او یا جار مجرور لکه ته او وائے نو یذعندك لاکرامك یا زید فی دارك لاکرامك او د غه شان "یا" حرف ندا چه تا تمام د ه دا هم لکه یا لزید او ها چه د پاره د تنبیه د ه او اسم اشاره. - الی ما یلیه برابره خبره د ه چه دا مدخول د حروف جاره اسم صریح وی که تاویلی وی، د صریح مثالونه خو د مخه چه ذکر شو. او د تاویلی مثال لکه وضاقت علیهم الارض بما رحبت یعنی برحبها. ځکه چه دلته کښی "ما" مصدریه د ے د ے حرف دے ته چه څنګه حروف جاره والی نو دغه شان دیته حروف اضافه هم وئیلے شی لانها تضیف الفعل او معناه الی الاسم.

**وهی من الخ** | او هغه ما اتلسں حروف دی په ظاهر کښی دا اوګس دی ولے وآو یه د الله قسم د ے یو واو په معنی د رُب او بل په معنی د قسم سره او دا ټول حروف چه د ے شعر کښی شاعر او ناظم راجمع کړیدی.

باؤ تاؤ کاف ولام وواو منذ مذ خلا
رب حاشا من عدا فی عن علی حتی الی

دلته کښی ما تن خلا عدا حاشا ما مؤخر راوړی دی ځکه چه په دے کښی جهة د حرفیة

او فعلية دوا پوري.

دا حروف جاره په اعتبار د ذات سره په درې قسمه دي. يو هغه چه مختص بالحرفية وي هغه دا اولنی لس حروف دي. دويم مشترك دي په حرفية او په اسمية كښې. او هغه د لسونه وروستو دا پنځه دي. او دريم مشترك دي په مابين د حرفية او فعلية كښې هغه دا درې اخيرنی دي

**فمن للابتداء** | هر كله چه مصنف اجمالاً ټول حروف جاره ذكر كړل نو اوس ئې د هغې په تفصيل كښې شروع اوكړه او وې فرمائيل چه فمن للابتداء شروع ئې اوكړه د مِن نه ځكه چه دا راځي د پاره د ابتداء. نو ابتداء په دې سره اولې شوه. للابتداء كښې الف لام بدل د مضاف اليه نه را غلی دی. يعني لابتداء الغاية. دلته كښې سوال راځي چه اضافة د ابتداء غايه ته لانه صحيح كيږي. ځكه چه ابتداء عبارة دے د اول الشئ نه او غاية عبارة دے آخر الشئ نه او د دواړو په مابين كښې تضاد دے. جواب دا دے چه مراد په غاية سره مسافة دے يا مراد په غايه سره فعل دے او په فعل باندے اطلاق د غايې اوشو ځكه چه غايه غرض او مقصود ته وائي او فعل هم غرض د فاعل دے او علامه ئې دا ده چه د دے په مقابله كښې به الیٰ راځي چه هغه د پاره د انتهاء د غايې دے. يا به هغه شے راځي چه هغه فائده د الیٰ وركوي لكه اعوذ بالله من الشيطن الرجيم. دلته كښې اعوذ په معنی د افرّ او با په معنی د الیٰ. يعني افرّ من الشيطن الرجيم الی الله.

**والتبيين** | او مِن راځي د پاره د بيان يعني مدخول د دې به بيان وي د پاره د امر مبهم چه كوم ځكښې د مِن نه دے او علامه ئې دا ده چه كچرته كښې من حذف شي نو د هغه په ځائے باندې راوړل د الذي صحيح وي لكه په دے قول د باری تعالیٰ كښې چه فاجتنبوا الرجس من الاوثان اى الذي هو الوثن.

**والتبعيض** | او د هغه شان مِن راځي د پاره د تبعيض. يعني بعض مدخول د مِن هغه مفعول د فعل دے لكه اخذت من الدراهم او علامه ئې دا ده چه په ځائے د مِن باندې بعض راوړلے شي. وزائدة دلته كښې زائدة دا مرفوع دے او په ابتداء باندې عطف نه دے. د زيادة مطلب دا دے چه په سقوط د دے سره فرق او نقصان په معنی كښې نه راځي او دا زيادت د دې به په كلام غير موجب كښې وي.

په نز د بصریانو باندې کلام موجب دېته وائی چه په هغې کښې نفی، نهی او استفهام نه وی او غیرموجب دېته وائی چه په هغې کښې نفی نهی یا استفهام وی لکه ما جاءنی من احد، هل جاءنی من احد او لا تضرب من احد. دا ټول ترکیبونه کلام غیرموجب دی. او من پکښې زائده دے.

**خلافا للکوفیین والاخفش** خلاف ثابت دے د کوفیانو لره او اخفش لره چه مذهب ئې وائی چه من څنګه په کلام غیرموجب کښې زائده راځی نو په کلام موجب کښې هم راځی. **وقد کان من مطر وشبهه متاول** په دے عبارت سره مصنف جواب کوی د کوفیانو د استدلال نه چه هغوی وائی چه تاسو څنګه قول کوئ چه من زائده راځی په کلام غیرموجب کښې او په کلام موجب کښې نه راځی حالانکه دا ترکیب چه قد کان من مطر دا کلام موجب دے او من پکښې زائده دے یا دے پشان نور ترکیبونه چه کلام موجب وی او من پکښې زائده وی لکه په دے قول د باری تعالیٰ کښې... یغفر لکم من ذنوبکم. مصنف جواب اوکړو چه متاول یعنی دا ترکیبونه تاویل دی دا من یا تبعیضیه دے لکه په آیت کریمه کښې او یا د پاره د تبیین دے لکه په قد کان من مطر کښې. قد کان من مطر یعنی وجد شئ من مطر، یا من مطر کښې من تبعیضیه دے. او یا دا په موافقه د سوال د سائل کښې راغلے دے چه سائل اووئیل هل کان من مطر نو مجیب ورته په جواب کښې اووئیل چه قد کان من مطر.

**والی للانتهاء** او الی راځی د پاره د انتهاء د غائې د لته کښې هم الف لام بدل د مضاف الیه نه راغلے دے. یعنی الی لانتهاء الغایة. په دے باندے سوال راځی چه دلته کښې لازمیږی اضافة د شئ خپل نفس ته. جواب هم هغه حسب سابق دے او دا کوټوی مدخول خپل لره منتهی الیه مکان وی که زمان وی د پاره د فعل سابق دا اول مثال لکه سرت من البصرة الی الکوفة او د دویم مثال لکه ثم اتموا الصیام الی اللیل او علامه ئے دا ده چه د دے په مقابله کښې به من ابتدائیه ذکر کیږی. وبمعنی مع قلیلا او په معنی د مع هم راځی. ولے استعمال ئے قلیل دے یا په زمانه قلیله کښې لکه په دے قول د باری تعالیٰ کښې ولا تاکلوا اموالهم الی اموالکم یعنی مضموما مع اموالکم. یا لکه من انصاری الی الله یعنی من انصاری مع الله **وحتی کذلک** او حتی هم پشان د الی دے په کیدلو د دے کښې د پاره د انتهاء د غائې.

**وبمعنی مع کثیرا** اؤدلته کبنی لے اکتفا او نکړه په حرف تشبیه باندِ دپاره د فرق په مابین د دوئ دواړو کبنی یعنی حکم د ما بعد د ؤ په حکم د ما قبل کبنی دے لکه اکلت السمکة حتی رأسها یعنی مع رأسها۔

**وتختص بالظاهر** اؤخاص دے داحتی په اسم ظاهر پورے. په دے عبارة سره مع" د دوئ دواړو په مابین کبنی بل فرق بیانوی. دلته کبنی الظاهر دا صفت دے اؤ دا ئے موصوف دپاره لا بدی دے د موصوف نه نو دے دپاره موصوف الاسم دے. حتی خاص دے د دخول د دے نه په اسم باندے پورے وجه چه التباس رانه شی د ضمیر مجرور د منصوب سره ځکه چه د دے نه روستو ضمیر مجرور هم راتلے شی اؤ منصوب هم ځکه چه حتی مشترك دے په مابین د جاره کبنی اؤ عاطفه کبنی.

**خلافا للمبرد** خلاف ثابت دے مبرد له اؤ دغه دلیل دا شعر دے چه په دیکبنی حتی په ضمیر باندے داخل دے.

فلا والله لا یبقیٰ اناس ... فتیٰ حتاك یا ابن ابی زیاد۔

نو جواب دا دے چه دا شاذ دے اؤ شاذ قابل د استدلال نه دے.

**وفی للظرفیة** اؤ فی راځی دپاره د ظرفیة یعنی مدخول خپل ظرف کرځوی دپاره د ماقبل اؤ دا عام دے حقیقة وی که مجازًا د ظرف حقیقی مثال لکه الماء فی الکوز اؤ د مجازًا مثال لکه النجاة فی الصدق۔

**وبمعنی علیٰ قلیلا** اؤ فی په معنی د علیٰ باندِ راځی ولے قلیل الاستعمال دے لکه په دے قول د باری تعالیٰ کبنی ولا صلبنکم فی جذوع النخل ای علیٰ جذوع النخل۔

**والباء للالصاق** اؤ بل د حروف جاره نه باء دے دا راځی دپاره د الصاق د الصاق مطلب دا دے چه شی آخر کرځوی ملصق په مدخول د دے پورے یا په طریقه د مخالطت سره یعنی حقیقی الصاق وی لکه بهٖ داءٌ. اؤ یا په مجاورة سره یعنی مجازا لکه مررت بزید التصق مروری بمکانٍ یقرب منه زید۔ **والاستعانة** اؤ بل راځی دپاره د استعانة اؤ د دے مطلب دا دے چه مدخول د باء معاون وی دپاره د فاعل په صدور د فعل کبنی په دے وجه دا داخلیږی په آلاتو. لکه کتبت بالقلم۔ **والمصاحبة** دا راځی د پاره د مصاحبة یعنی مدخول د دے مصاحب وی د مفعول سره په وقوع د فعل کبنی لکه

اشتریت الفرس بسرجه. یعنی مع سرجه او یا په صدور د فعل کښې لکه خرج زید بعشیرته سوال وارد یږی چه ذکر د مصاحبة پس د الصاق نه مستدرك دے ځکه چه د دواړو معنی یو ده یعنی اتحاد ئے په معنی کښې دے جواب دادے چه دد وی په معنی کښې اتحاد نشته بلکه مصاحبة عام دے د الصاق نه. فان المصاحبة لا یستلزم الالصاق بخلاف العکس -

**والمقابلة** او بل راځی دا باء د یاره د مقابلے یعنی دا مدخول ئے کرځی عوض او ثمن د یاره د ما قبل لکه اخذت هذا الثوب بدرهم -**والتعدیة** او بل راځی دا باء د یاره د تعدیے. یعنی پیدا سره یو فعل لازم هغه متعدی کیږی. د لته کښې سوال راځی چه تعدیه خو صرف په باء پورے خاص نه ده بلکه په ټولو حروفو جاره سره تعدیه راځی ځکه چه هر یو حرف جر وضع دے دیاره د افضاء د فعل الی مایلیه ته. او دا معنی د تعدیه ده جواب دادے چه تعدیه په دوه قسمه ده یو تعدیه په معنی عامے سره او بله تعدیه په معنی خاصے سره. تعدیه عام افضاء الفعل و شبهه الی ما یلیه. تعدیه خاصه دا هغه ده چه ګرځوی فعل لازم لره متضمن د یاره د معنی د جعل او د تصییر. لکه ذهب الله بنورهم اصل کښې وو ذهب نورهم. خو چه هر کله باء پې نور داخله شوه او فاعل د ذهب هم ذکر شو چه الله دے. نو معنی ئے دا شوه چه صیر الله نورهم ذاهبا.

**وللظرفیة** او راځی دا باء د یاره د ظرفیة د غه وخت کښې باء په معنی د فی وی لکه اطلبوا العلم ولو بالصین. یعنی ولو فی الصین -

**وزائدة فی الخبر فی الإستفهام و النفی** او دا باء به زائده راځی په دے شان سره چه د دے په سقوط سره به خلل په معنی کښې نه راځی. دا زیادت د باء به ثابت وی په خبر د کلام استفهامیه کښې په کلمے د هل سره او یا په هغه کلام کښې چه منفی وی په ما سره او یا د لیس سره. قیاسا او دا قسم زیادت په دے مقام کښې په طریقے د قیاس سره وی. لکه هل زید بقائم دا مثال د استفهام دے په هل سره. یا لیس زید براکب یا ما زید براکب دا مثالونه د نفی دی په لیس او ما سره.

**وفی غیره** او په غیر د دغه موضع نه یعنی چه کلام استفهامی او کلام منفی نه وی نو هلته کښې به دا زیادت د باء سماعا وی. برابره خبره ده چه خبر اصلا نه وی که د ا بیا په دوه قسمه دے. یو مرفوع لکه بحسبك زید، وکفی بالله شهیدا او یا منصوب وی لکه القی بیده او یا خو وی خبر خو په کلام استفهامی یا منفی کښې نه وی لکه حسبك بزید-

**واللام للاختصاص** او بل د حروف جاره نه لام دے دا راځي د پاره د اختصاص يعني دا کرځوي ماقبل دلام نه مختص په مابعد پورے : برابره خبره ده چه دا اختصاص د ملکية وي او که د غير ملکية دي چه اختصاص د ملک دی لکه المال لزيد او چه اختصاص د غيرملک وي نو بيا به خالی نه وی يا به اختصاص د استحقاق وی لکه الجل للفرس يا به اختصاص دنسبت وی لکه فلان ابن له . **والتعليل** او دا لام جاره راځي د پاره د علت يعني مدخول د دے علة وی د پاره د شئ آخر برابره خبره ده چه سبب غائيه دی لکه ضربته للتاديب او يا سبب باعث وی لکه خرجت لمخافتك ځکه چه مخافة سبب غائية نه دے . **وبمعنی عن** او دا لام به په معنی د عن وی به حال د کون د دهٔ کښ چه مقارن وی . **مع القول** سره د قول نه ځکه چه لام کله واقع شي پس د قول نه نو پس وی به مدخول د دے مخاطب او مقول له د د غه قائل لکه اوواۓ چه قلت لزيد انه لم يفعل الشر يعنی قلت عنه . **وزائدة** او دا لام زائد هم راځي . يعنی د دے په سقوط سره په معنی کښ نقصان نه راځي . لکه قرآن پاک کښ راغلی دی، ردف لکم -

**وبمعنی الواو فی القسم للتعجب** او لام به په معنی د واو سره وی د پاره د قسم پروخت د تعجب کښ او دا به راځي په امورو عظامو کښ لکه لله لا يؤخر الاجل . دلته کښ جواب د قسم چه هغه عدم تاخير د اجل دے امر عظيم دے لوداے نه شی و بيلے کيدے لله لقد طار الزباب . ځکه چه دلته کښ جواب د قسم امر عظيم نه دے .

**ورب للتقليل** رب راځي د پاره د انشاء د تقليل د هغه افرادو چه په چا باندې رب داخل شوے وی وضع اصلی د دے په تقليل د افرادو کښ ده . وطے استعمال ئے په تکثير کښ دے . او استعمال ئے د پاره د تکثير د ومره مشهور شو چه گويا ، دا تکثير کښ حقيقت دے او تقليل کښ مجاز دے . **ولها صدر الكلام** او ثابت دے دے د پاره صدارت د کلام . ځکه چه دا حمل کړے شوے دے په کم خبری باندې ځکه چه هغه د رب د پاره ضد را غلے دے . کم خبری راځي د پاره د انشاء د تکثير او رب راځي د پاره د انشاء د تقليل او کم خبری صدارت غواړی . نو رب هم په هغې باندې حمل کړے شو . **مختصة بنکرة** او رب به مختص وی په نکرے پورے د پاره د تحقيق د معنی د تقليل چه هغه مدلول د رب دے . چونکه نکره مجهوله وی . او په

دے کښې احتمال د تقلیل اؤ د تکثیر دواړو دے . په خلاف معرفې نه ځکه چه په هغې کښې تعیین د تقلیل دے . اؤ یا تعیین د تکثیر دے .

**موصوفة** هسې نکره چه هغه موصوفه وی هم چه دے توصیف د نکرے دپاره د تحقق د معنی د تقلیل . ځکه چه موصوف اخص وی د غیر موصوف نه .

**علی الاصح** د رب مدخول به نکره موصوفه وی دا بناء دے په مذهب باندې چه هغه مذهب د ابوعلی نحوی مبرد اؤ د ابن السراج دے . اؤ د فراء اؤ د اخفش په نزباند د دے شرط اشتراط نشته دے .

**فائده** هر کله چه د رب وضع په تقلیل کښې اصل ده اؤ په تکثیر کښې غیر اصل ده لیکن په اعتبار د استعمال سره د رب استعمال په تکثیر کښې شائع او مشهور دے اؤ په تقلیل کښې غیر مشهور دے . نو په تکثیر کښې استعمال د دے مجاز متعارف دے اؤ په تقلیل کښې حقیقت مهجوره دے . په دے وجه په مجاز متعارف کښې قرینے ته ضرورت نشته اؤ په حقیقت مهجوره کښې قرینے ته ضرورت دے **و فعلها ماض** اؤ هغه فعل چه په هغې پورے تعلق د رب راځی هغه به ماضی وی لفظا وی اؤ که معنًی . ځکه چه دا راځی د پاره د تقلیل محقق اؤ دا نه موجودیږی مګر په ماضی کښې . د ماضی مثال لکه رب رجل کریم لقیته . اؤ چه ماضی معنوی وی لکه رب رجل کریم لم افارقه . **محذوف غالبا** هسې فعل ماضی چه هغه محذوفه وی په غالب اوقاتو کښې . یا د احذف به غالب وی ځکه چه هغه کلام چه په هغې کښې رب وی هغه راځی په جواب د کلام آخر کښې یا ظاهر اوی اؤ یا مقدر وی لکه تا ته څوک اووائی . چه القیت رجلا ته ورته اووائے چه رب رجل کریم اؤ لقیت حذف کړے . اؤ قرینه دلته کښې سوال د سائل دے ځکه چه وُلِيَ شئی المذکور فی السؤال کالمعاد فی الجواب .

**وقد تدخل علی مضمر مبهم** اؤ کله داخلیږی رب په ضمیر باندې هسے ضمیر چه هغه مبهم وی . یعنی د هغه ضمیر دپاره څه مرجع نه وی نودا په حکم د نکرے کښې اوګرځیدو . **ممیز** د ده تمیز به راځلے وی دپاره د دفع د دغه ابهام . **بنکرة** ځکه چه تمیز نکره وی **منصوبة** په دے وجه به منصوبه وی ځکه چه دا تمیز واقع شویده اؤ تمیز د منصوبا تو نه دے **والضمیر مفرد مذکر** اؤ ضمیر به مفرد وی اګر که ممیز مثنی یا جمع وی . اؤ مذکر به وی اګر که

ضمیر مؤنث وی لکه ربه رجلا. ربه رجلین ربه رجالا ربه امرأة ربه امرأتین ربه نساءً ، وجه دافراد داده ځکه چه اصل په مدخول د دے کښې دا خبره ده چه دا به مبهم وی او هغه ضمیر چه هغه مفرد مذکر وی او غیر مطابق وی د تمیز سره هغه اشد ابهاماً وی د غیر نه او ضمیر به راجع وی معهود فی الذهن ته او معهود فی الذهن مفرد مذکر دے. **خلافاً للكوفيين في مطابقتها التمييز** خلاف ثابت دے کوفیانو لره په مطابقت د تمیز کښې په افراد په تثنیه او جمع او په تذکیر او په تأنیث کښې ځکه چه تمیز پیشان د مرجع دے او مطابقت په مابین د راجع او د مرجع کښې شرط دے نو د هغوی په نزد به دا نه پیدا دے و ېلے شی چه ربه رجلا ربهما رجلین ربهم رجالاً ربها امرأة ربهن نسوة خو جواب دا دے چه تذکیر او تأنیث یا تثنیة او جمعیة د تمیز دا کافی دے او تثنیة د ضمیر یا جمعیة او د هغه شان تذکیر د ضمیر یا تأنیث د ضمیر ته ضرورت نشته.

**وتلحقها ما الكافة** او ملحق کیږی د رب سره ما کافه یعنی چه کله دا ما داخل شی په رب باند نو هغه منع کوی د عمل نه. **فتدخل على الجمل** نو بیا دا داخلیږی په جمله باند برابره خبره ده چه جمله اسمیه وی که فعلیه وی لکه ربما زید قائم یا لکه ربما قام زید ځکه چه هر کله عمل ددے ختم شو په سبب د لحوق د ما سره نو اُس ضرورة نشته دے خبرے ته چه دے د داخل شی په هغه شی باند چه هغه صالح وی د پاره د عمل دده چه هغه اسم دے او هر چه دے په رب ما ضربة کښې نو دلته کښې دا ما کافه نه دے بلکه دا زیده دے. **وواوها تدخل على نكرة موصوفة** او هغه واو چه په معنی د رب سره دے دا هغه واو دے چه راځی په اول د کلام کښې او په معنی د رب سره وی دا داخلیږی په نکرے باندے چه موصوفه وی بعضو تو وئیلی دی چه شمیرل د دغه واو د حروف جاره نه مجاز دے ځکه چه جاره هغه خو په حقیقة کښې رب دے چه مقدر دے او دا واو د پاره د عطف دے او دا واو په معنی د رب دے دے نو د دے ستو به جواب د دے راځی چه هغه یا ملفوظ وی یا محذوف لکه وبلدة یعنی رب بلدة ، لیس لها انیس.

**وواو القسم انما تكون عند حذف الفعل** او واو چه مستعملیږی په قسم کښې دا به راځی د پاره د قسم په وخت د حذف د فعل کښې ځکه چه واو اکثر استعمالیږی په قسم کښې نو په وخت د حذف د فعل کښې د هن سبقت کوی د دے ته خو دلته کښې سوال دا دے چه باء خو هم د پاره د قسم راځی نو پکار داده چه هغے سره د هم حذف د فعل لازم وی حالانکه دا سے نه ده باء د پاره د قسم راځی په وخت د حذف د فعل کښې او په وخت د ذکر د فعل کښې جواب دا دے چه اصل په قسم کښې باء ده. لیکن واو کثیر الاستعمال دے په قسم کښې په نسبت سره خپل اصل ته.

نو لازم شو داؤ سره حذف د فعل د پاره د دے خبرے چه اشاره راشی تفاوت ته په قلت او په کثرت کښې. او کېرته کښې جائز نه شی سره د واؤ نه ذکرد فعل او حذف د هغه نو لازم به شی مساوا ته په مابین د اصل او د فرع کښې په وخت د غیر د سوال کښې. د پاره د دے چه د درجه د فرع چه واؤ دے هغه که شی د اصل نه چه هغه تخصیص دده دے د غیر سوال پورے. **لغیر السؤال** یعنی واؤ راځی د پاره د قسم چه د غیر سوال د پاره وی. نو دا ئے نه شی وئیلے کیدے چه واللہ اجلس یا واللہ اخبرنی واللہ لا تخبرنی. **مختصة بالظاهر.** دا واؤ خاص دے په اسم ظاهر پورے د پاره د دے چه انحطاط راشی د فرع د اصل نه. **سوال** دا دے چه کوالے د فرع د اصل نه خو په دے طریقه سره هم راتلے. چه واله خاص کړے وے په ضمیر پورے. **جواب** دا دے چه دا مخلص کړو په اسم ظاهر پورے. ځکه چه ظاهر اصل دے بیا **سوال** وارد یږی چه با اصل ده او ظاهر هم اصل دے او واؤ فرع ده او ضمیر هم فرع ده. نو اصل له ئے اصل ورکړے دو. او فرع له فرع د رعایة التناسب **جواب** دا دے چه په دے صورت کښې تناسب دے. او په عکس کښې تعادل دے. او تعادل اولی دے د مناسبت نه. اس برابره خبره ده چه ما سم ظاهر اسم الله وی او که غیر وی دا اسم د الله ذکر و رب الکعبة.

**والتاء مثلها** او تا په مثل د واو ده چه راځی د پاره د قسم په حذف د فعل کښې په غیر سوال کښې **مختصة باسم الله تعالیٰ** او دا خاص ده په اسم د الله پورے یعنی تالله و ئیلے شی. د پاره د دے چه فرق راشی په اصل او په فرع کښې. ځکه چه دا دے د پاره اصل واو دے. او تخصیص د تا کښې په اسم د الله پورے راغلے دے. ځکه چه اسم الله اصل دے په باب د قسم کښې **والباء اعم منهما** او با عامه ده. د دواړو نه یعنی د واو او د تا نه **فی الجمیع** په دے ټولو مذکوره صورتونو کښې. یعنی په حذف د فعل کښې وکونها لغیر السؤال والدخول علی المظهر والدخول علی اسم الله تعالیٰ. مثلا بالله لافعلن په حذف د فعل سره اقسم بالله لافعلن په اظهار د فعل سره بالله لافعلن اسم ظاهر باندے دخول د باء را غلے دے چه هغه الله دے بك لافعلن په ضمیر باندے دخول د باء بالرحمن لافعلن د لفظ د الله نه علاوه په رحمن باندے دخول د باء راغلے دے.

**ویتلقی القسم باللام وان وحرف النفی** او جواب د قسم راځی په لام سره په ان سره او په حرف نفی سره. ځکه چه جواب د قسم به خالی نه وی. کېږے جمله اسمیه مثبته وی. نو لازم دے په جواب کښې ان. مثلا والله ان زیدا قائم او یا لام به راځی والله زید لقائم او کله کله د مزید تاکید د پاره دواړه راوړے شی. لکه والله ان زید لقائم او کېرته جمله منفیه وی. نو بیا به ما او لا راوړے شی لکه والله ما زید بقائم یا والله لا زید فی الدار ولا عمرو. او کېرته جواب د قسم جمله فعلیه وی. نو بیا به خالی نه وی یا به ماضیه وی یا به مضارعیه وی کېرته ماضیه وی نو بیا لام او قد به راوړلے شی لکه والله لقد قام زید. او کله تنها قد راوړے شی. لکه قد افلح من زکها. او که چرته جمله فعلیه

مضارعیه وي. نو بیا به لازم سره د نون تاکید نه راوړلے شي لکه والله لا فعلن. او که چرته جمله فعلیه منفیه وي. نو بیا به خالي نه وي یا به ماضیه وي یا به مضارعیه وي. که ماضیه وي نو ما او یا لا به راوړلے شي. لکه والله ما قام زید یاوالله لا قام زید. او که مضارعیه وي نو ما او یا لا به راوړلے شي سره د نون تاکید نه یا بغیر د نون تاکید نه. لکه والله لا افعلن، والله لا افعل. او حرف نفي کله حذف کیږي په مضارع کښې په وخت د وجود د قرینے کښې که عقلیه وي که نقلیه وي. لکه تا لله تفتؤا تذکر یوسف، یعني لا تفتؤ. **وقد یحذف جوابه** او کله کله حذف کیږي جواب د قسم **اذا اعترض** په هغه وخت کښې چه متوسط شي قسم په مابین داجزاؤ د جملے کښې لکه زید والله قائم یاضرب والله زید یاان ذهبت والله اذهب **او تقدمه ما یدل علیه** یا مقدم شي په قسم باندے هغه څیز چه دلالت کوي په جواب قسم باندے. لکه زید قائم والله. ځکه چه په دے دواړو صورتونو کښې قسم مستغني دے د جواب قسم نه. دلته کښې **سوال** وارد یږي چه تا اوویل ما یدل علیه نو دا جمله مثل زید قائم داخو دال په جواب قسم نه دے بلکه بنفسها جواب قسم دے **جواب** دادے چه دے ته دال بالجواب اوویل په دے معنی سره چه دے کښې علامات د جواب قسم نشته دے.

**وعن للمجاوزة** او بل د حروف جاره نه عن دے. دا راځي د پاره د مجاوزة لکه رمیت السهم عن القوس. **وعلی للاستعلاء** او بل د حروف جاره نه علی دے او دا راځي د پاره د استعلاء. او دا استعلاء د یو شي په بل شي باندے حقیقتاً وي او که حکماً د حقیقتاً مثال لکه زید علی السطح او د حکماً مثال لکه علیّ دین. **ویکونان اسمین** او کله کله دا دواړه یعني عن او علی په ځائے د اسم استعمالیږي. **بدخول من** چه کله په دوي من داخل شي. ځکه چه من حرف جار دے دے نه داخلیږي مګر په اسم باندے نو چه کله من په علی داخل شي معنی به ئے د فوق وي. لکه غدت من علیه یعني من فوقه. او چه کله من داخل شي په عن باندے نو په معنی د جانب به وي. لکه جلست من عن یمینه یعني من جانب یمینه **والکاف للتشبیه** او د حروف جاره نه کاف دے. دے راځي د پاره د تشبیه. او دے په مشبه به باندے داخلیږي. لکه زید کالاسد **وزائدة** او کاف زائد هم راځي. لکه لیس کمثله شئ. ځکه چه کچیرے دے مونږ زائد او نه منو. نو بیا په معنی کښې فساد راځي یعني دالله د مثل مثال نشته. دے نه خو معلومیږي چه نعوذ بالله د الله مثل شته ولے د مثل مثل ئے نشته او دلته کښې خو مدعی نفي د مثل د باری تعالی دے دلته کښې **سوال** وارد یږي چه تا حکم د زیادة په کاف اوکړو په مثل باندے ولے حکم د زیادة او نه کړو. **جواب** دادے چه دا حرف واحد دے او دے اولی دے په حکم کولو سره په زیادة او بله وجه دا ده چه مقصود نفي د مثل ده نه د مثل مثل. او بعض

خاة وانی. چه مثل زائد دے. ځکه چه کله په زیادة دکاف سره قبل الحاجة دے حاجة خوبلهٔ[علم] نا بتېرېږي په کله ذکر د مثل اوشي او بعض والي چه په دے کښې یو هم زائد نه دے. ځکه چه اعمال اولیٰ دے. داهمال نه او دلته کښې اګرکه نفي د مثل دمثل را غلے ده لیکن مقصد نفي دمثل ده په طریقے دکنایے سره. او کنایه ابلغ وي د صریح نه **وقد تکون اسما** او کله دے په ځائے داسم استعمالیږي. چه کله ورباندې حرف جار داخل شي. لکه یضحکن عن کا لبرد المنهم. دلته کښې عن په کاف باندې داخل دے.

**ویختص بالظاهر** او کاف داخاص دے په اسم پورے یعنی دے به په اسم ظاهر باندې داخلیږي اسم ظاهر عام دے حقیقةً وي که حکماً نه په ضمیر باندې نو "کهٗ" نشي ویلے کیدے. وجه دا ده چه لفظ دمثل په ضمیر داخلیږي. نو مستغني اوګرځیدو کاف د داخلیدو نه په ضمیر باندې ځکه چه مثل او کاف دواړو دپاره د تشبیه راځي. اَس کېږته دا کاف په ضمیر داخل شي. نو په صورت د ضمیر د مخاطب کښې به اجتماع د کافینو راشي لکه کک او په ضمیر دغائب او متکلم کښې اګر اجتماع دا نشته. لیکن هغه طرداً للباب حمل کړے شو په ضمیر د مخاطب باندې. سوال دادے چه ته خو وائے چه کاف په ضمیر نه داخلیږي ستا دا قاعده منقوضه ده په دے قول سره لکه مالنا کأنتَ. یا ما انت کأنا. دلته کښې په دے مثالونو کښې کاف په ضمیر داخل شویدے. **جواب** دادے چه دا ضمیر منفصل دے. او دے په حکم د اسم ظاهر کښې دے. **ومذ ومنذ للزمان للابتداء فی الماضی والظرفیة فی الحاضر** او مذ چه مبني دے په سکون باندې او منذ مبني دے په ضمه باندې داراځي دپاره د زمانے ماضي یا حاضر. سوال دادے چه هر کله دوی وضع شو دپاره د زمانے. نو داخو داسمائے ظروفو نه اوګرځیدل نو ته حکم کوے په حرفیة ددوی باندې بیا خو پکار دادے چه دوی د اسماء نه اوګرځي. **جواب** اوکړ و مصنف " للابتداء والظرفیة. نو دا قول ددهٔ بدل اشتمال دے د دے قول نه چه للزمان. او مقصد په په کلام کښې ابتداء .. ده چه هغه یو معنیٰ حرفي ده. خلاصه دا ده چه د دوی مدلول معنیٰ حرفي ده. په دے وجه ورباندے حکم د حرفیة او شو.

مدخول د دے به نه دوي مګر زمانه بیا دا زمانه به خالي نه وي یا به ماضي وي یا حال کېږته ماضي وي نو معنیٰ د دے ابتدائیه ده او دا زمانه ماضي به مبدأ د فعل سابق اوګرځي، مثبت وي که منفي وي. لکه سافرت من البلد مذ سنة یا ما رأیت فلاناً مذ سنة چه کله سنه ما ضیه وي نو بیا به معنیٰ داشي، چه مبدأ مسافرتي او عدم رؤیتي ابا ه کان هذه السنة الماضیة او امتداد د دے زمانے را غلے دے د زمانے د تکلم پورے. او کېږته معنیٰ د دے حال وي نو دا ګرځي زمانه حال سره چه هغه مدخول د دوی دے ظرف دپاره د فعل سابق مثبت وي لکه سافرت مذ شهرنا او یا منفي وي لکه.....

**ما رأيته مذ شهرنا ومذ يومنا** نو معنى به داشي چه جميع مدة مسافرتي او عدم روئيت اياه هذا الشهر الحاضر او اليوم الحاضر. دلته كښې **سوال** وارد يږي چه ما مطابق مثالونو د ظرف نشي صحيح كيدے. ځكه چه ظرفيت په حاضر كښې وي. او جميع اجزاء د شهر يا د يوم داخو حاضر نه دي په تر د متكلم بلكه بعض اجزاء دي چه هغه زمانه د تكلم ده. **جواب** دادے چه داحاضر بدل او حضور اعم دے حقيقةً وي كه حكماً او كما اعتباراً وي. نو دلته كښې اګركه جميع ديوم او يا د شهر حاضر نه دي حقيقةً ليكن داحاضر دي اعتباراً. اګركه بعضا جزاء د دے تيرشوي وي.

**وحاشا وعدا وخلا للاستثناء** او حاشا عدا خلا دا د پاره د استثناء راځي يعني په دے سره استثناء د ما بعد راځي د ما قبل نه کيږته د دے نه روستو منصوب وي بيا دا افعال دي او ضمير به پکښې مستتر شي هغه به ئے فاعل شي. عدا د عدا يعدو نه دے او خلا د خلا يخلو نه دے. دا د پاره د باب د نصر نه دي او حاشا به معنى د جانب دے. دلته كښې اصح مذهب دادے چه حاشا د حروف جاره نه دے او كيږته مجرور وي نو بيا حروف جاره دي.

# الحروف المشبهة بالفعل

بل قسم د حروفو نه هغه حروف مشبهه بالفعل دي. او دوئ ته حروف مشبهه بالفعل په دے وجه ويلے شي. چه د دوئ مشابهت د فعل سره راغلے دے لفظاً هم او معنىً هم. هرچه دے لفظاً. نو لكه چه ځنګه فعل ثلاثي رباعي او خماسي راځي. نو دغه شان دوئ هم راځي. چه ځنګه په فعل كښې ادغام كيږي په دوئ كښې هم ادغام كيږي. او چه ځنګه نون وقايه په فعل كښې راځي نو په دوئ كښې هم راځي. او هرچه دے معنىً هغه په دے طريقه سره چه معنى د دے حروفو ملزومات دي. د پاره د معاني د افعالو. لكه إنّ او أنّ د پاره د تحقيق جزئي راځي. او د دے تشبيه د فعل متعدي سره راغلے ده لكه چه ځنګه فعل متعدي فاعل او مفعول دواړه غواړي نو دوئ هم اسم او خبر غواړي. او فعل ماضي چه ځنګه مبني دے په فتح باندے نو دا هم مبني دي په فتح باندے دلته كښې **سوال** وارد يږي چه پكار داوه چه حروف جاره ئے مؤخر كړے وے د حروف مشبهه بالفعل نه ځكه چه مرفوع مقدم دے په منصوب او منصوب مقدم دے په مجرور باندے **جواب** دادے چه حروف جاره ئے مقدم كړل ځكه د هغوئ عمل اصالتاً دے او عمل د حروف مشبهه بالفعل فرعي دے.

یعنی نتیجه د مشابهت نه دے . سوآل دا دے چه تکار د دوه معنٰی لره چه د یلے وے الاحرف المشبهة بالفعل په صیغه د جمع قلت سره حکه چه دا خو شپږ حروف دی . او حروف صیغه د جمع کثرت ده . چه د جمع اطلاق په مشر ۲ او ما فوق د عشرة باندې کیږی . جوآب دا دے چه په دغه صورت کښې بیا تغیر د اسلوب د تلو ما قبل نه . په حروف جاره کښې او په حروف عاطفه کښې ئے حروف راوړے وے نو دلته کښې ئے هم د موافقت دا سلوب د پاره جمع کثرت راوړلو . او یا دا چه کله دے سره نور فروع او لغات یو ځائے کړے شی نو بیا جمع کثرت ته رسی . **وهی اِنَّ وَاَنَّ وَکَاَنَّ وَلٰکِنَّ وَلَیْتَ وَلَعَلَّ** . لکه شاعر وائی .

اِنَّ بَاَنَّ کَاَنَّ لَیْتَ لٰکِنَّ لَعَلَّ ـ ناصب اسمند و رافع در خبر ضد ما و لا .

لیت او لعل دائے مؤخر کړل د نورو څلورو نه . حکه چه دا د طلب د پاره دی دا انشاء او دغه نور د اخبار د پاره دی او اخبار اشرف دے د انشاء نه . **ولها صدر الکلام** او دغه حروفو د پاره صدارت د کلام ثابت دے . د پاره د دے چه دا اول وهله نه په پوهه شی چه دغه کلام باندې دلالت اوکړی . چه دا کلام یا مشتمل دے په تاکید یا په تشبیه یا په استدراک یا په تمنی یا په ترجی . **سوی اَنَّ** سوا د اَنَّ مفتوحه نه . **فهی بعکسها** . دا په عکس د دے نورو حروفو دے . یعنی اَنَّ لره صدارت د کلام نشته دے حکه چه دے سره د ما بعد نه معمول دے د پاره د عامل . مثلاً دے سره د خپل مدخول په تاویل د مفرد دے او حق د معمول دا دے چه دے به مؤخر وی د خپل عامل نه سوآل دا دے چه تعلق د ده په شیٔ آخر پورے تقاضا نه کوی معدم صدارت حکه چه جائز ده دا خبره چه دے د مقدم وی خپل متعلق باندې هم جوآب دا دے که دے مقدم شی په خپل متعلق باندې نو لازم میږی التباس دا اِنَّ مکسوره سره په کتابت کښې . فلا بدلها من التعلق بشیٔ آخر لتمام الکلام . دلته کښې سوآل وارد یږی چه بعکسها کښې د ها ضمیر راجع دے حروف مشبهه بالفعل ته . او د بعض د حروف مشبهه نه اَنَّ دے . نو لازم میږی تعکیس د شی د خپل نفس نه جوآب دا دے چه دلته کښې عبارة کښې حذف او تقدیر دے اصل عبارة به دا وه شی فهی بعکس باقیها دلته کښې د عکس پاره دوه طریقه دی . یو طریقه دا ده چه باقی حروف تقاضا د صدارت کوی . او اَنَّ تقاضا د صدارت نه کوی . او بل طریقه دا ده چه باقی تقاضا د صدارت د کلام کوی . او اَنَّ تقاضا د عدم د صدارت کوی . نو دلته کښې عکس په دویمه طریقه باندې وا خستے شو . حکه معنی اوله مستقلاً ده دا استثناء نه چه سوی دے . او س که چرته عکس هم مونږ پېږدے باندې حمل کړو نو لازم میږی حمل د عبارة چه په تاکید باندې . او تاسیس اولٰی دے د تاکید نه حکه چه تاسیس مشتمل دے په یو فائده

چه یئے بانډې . **وتلحقها ما الكافة فتلغي** او ملحق کیږی دے حروفو سره ماکافه نو بیا د دغه صورت کښې به دا ملغاة العمل اوګرځی ځکه چه په مابین د دوی کښې او د معمول کښې فاصل واقع شو . **على الافصح** على افصح اللغات چه افصح ئے او دلیل نو په دے سره احتراز راغے د غیر افصح نه . ځکه چه عرفی ولګه باوجود د دے نه عمل ورکوی لکه په بعضو اشعارو کښې راغلی دی . چه عمل ئے نه دی کړے سره د ماکافه نه لکه انما زید قائم . نو بیا وجه خود عدم عمل ذکر شوه چه هغه فصل دے او بله وجه دا ده چه په سبب د لحوق د ماکافه بعض وجوه د مشابهت نه دوی او د تل اوهم کله چه ما فاصل په دوی کښې راغے نو دوی خو ضعیف العمل دی په متصل کښې عمل کوی او په منفصل کښې نه کوی . او کمزوره دا ما په زائده بانډې حمل کړے شی نو بیا عمل کوی . **وتدخل حينئذ على الافعال** او چه کله په دوی بانډې ماکافه داخل شی . نو بیا دوی داخلیږی په افعالو بانډې ځکه ماکافه دوی خارج کړل د عمل نه او د لزوم د دخول نه په فعل بانډې لکه انما حرم عليكم الميتة . **فان المكسورة لا تغير معنى الجملة** په دے عبارة سره مصنف شروع اوکړه په بیان د احوالو د هر واحد کښې تفصیلا . او اشاره کوی بیا د فرق ته په ان او په ان کښې . پس دے دلیل چه ان مکسورة الهمزة دے تغیر نه راولی په معنی د جمله کښې چه مفهوم ئے وارهی بلکه په دے سره مزید تاکید د جملے راځی .

**وان مع جملتها** او ان مفتوحة الهمزة سره د خپل مدخول نه چه جمله ده . اس دے ته جمله په اعتبار د ماقبل د دخول د ان سره د ځلے شی **في حكم المفرد** په حکم د مفرد کښې دی . په اعتبار د اختلاف د عوامل سره مثلا ظننت انك قائم . ظننت قيامك .

**ومن ثم وجب الكسر في موضع الجمل** او د دے وجه د دے خبرے نه ان مکسورة الهمزة تغیر په معنی د جمله کښې نه راولی . او ان تغیر راولی . واجبه ده کسره د همزے په هغه موضع کښې چه هغه تقاضا د جملے کوی . یعنی هغه موضع چه هغه تقاضا د اسناد د تام کوی . **والفتح** یعنی وجب الفتح **في موضع** په هغه ځائے کښې چه هغه تقاضا د اسناد غیر تام کوی . **المفرد** چه هغه مفرد دی **فكسرت ابتداء** نو پس ان به مکسوره راوړلے شی برابره خبره ده چه په اول د کلام د متکلم کښې وی لکه ان زیدا قائم یا په وسط د کلام کښې وی خو هغه ابتداء د کلام آخروی او استیناف وی د کلام د پاره لکه اکرم زیدا انه فاضل دلته ان فاضل علة دے د پاره د ماقبل د کلام مستانف دے یا لکه په دے قول د باری تعالی ولا يحزنك قولهم ان العزة لله جميعا . نو په ابتداء د کلام کښې به مکسوره راوړلے شی . برابره خبره ده چه په اول د کلام د متکلم کښې وی . لکه ان زیدا قائم یا په وسط

دکلام کښې وي ځو هغه ابتداء دکلام آخر وي او استینا ف وي دکلام دپاره لکه اکرم زیداً انه فاضل دلته انه فاضل علت دے دپاره د ما قبل او کلام مستانف دے یا لکه په دے قول دباری تعالی لا یحزنك قولهم إنّ العزة لله جمیعًا. نو په ابتداء دکلام کښې به مکسوره راوړلے شي ځکه چه دا موضع دجملے دے. او تکلم په مفرد او تو بلنږ باطل دے که مفتوح اوویلے شي نو لازمیږي تکلم په مفرد باسنږ.

**وبعد القول** او مکسوره به ویلے شي پس د قول نه یعنی چه مشتق وي. د قول نه لکه قال یا یقول شو. لکه یقول زیدان عمرًا قایمٌ. ځکه چه مقوله د قول نه وي مګر جمله

**والموصول** یعنی د بعد الاسم الموصول ځکه چه صله د موصول نه وي مګر جمله لکه الذی انك ضربته فی الدار. **وفتحت فاعلة** او أنّ به مفتوحة الهمزه ویلے شي په حال دکون د دہ کښې چه دے سره د خپلے جملے نه فاعل واقع شویدی. ځکه چه فاعل نه وي مګر مفرد. لکه بلغنی ان زیدًا قائم **ومفعولة** او په حال دکون د أنّ کښې چه دے سره د جملے نه مفعول وي. ځکه چه مفعول مفرد وي لکه عرفت انك قائم. **ومبتدأ** یا مبتداء وي ځکه چه مبتداء مفرده وي لکه عندی انك فاضل. او د غه رنګے چه کله خبر وي. ځکه چه اصل په خبر کښې افراد دے.

**ومضافا الیها** او چه مضاف الیه واقع شوی وي. نو هم به مفتوح وي. ځکه چه مضاف الیه مفرد وي. لکه حصل علم انك قائم. دلته کښې سوال وارد یږي چه ترکیب وائے چه وفتحت فاعلة ومفعولة ومضافا الیها الخ دا نه صحیح کیږي. ځکه چه فاعل یا مفعول یا مضاف الیه هغه څو أنّ سره دمابعد نه دے تنها أنّ نه دے **جواب** دادے چه دا اطلاق مجازًا دے.

**وقالوا لولا انك لانه مبتداء** یعنی د لولا نه پس به انّ مفتوحة الهمزه راځي ځکه دا لولا به خالی نه وي یا به تحضیضیه وي یا به امتناعیه وي. کچرته لولا امتناعیه وي نو د هغے نه روسته مبتداء محذوف الخبر وي. او مبتداء خو نه وي مګر مفرده وي لکه لولا انك منطلق انطلقت او کچرته لولا تحضیضیه وي نو مابعد د هغے نه به یا فاعل وي یا مفعول. ځکه چه دے معمول دے دپاره دفعل چه صاحب واجب دے د خول د لولا تحضیضیه په هغه باندے نو دفعل نه روسته به یا فاعل وي یا مفعول او دا نه وي مګر مفرد. مثال داول لکه لولا انك فی بیتی صدر منك. دلته کښې انك ضربتنی په تاویل د مفرد سره چه ضربک ایای دے دا فاعل دے دپاره دفعل محذوف چه هغه مدخول د لولا دے. چه هغه صدر دے. او روسته صدر دا تفسیر دپاره د محذوف دے. مثال د ثانی لکه لولا انی معاد لك زعمت نو دلته کښې انی معادٍ لك دا په تاویل دمفرد سره چه معاداتی لك دے، یا معاداتی ایاك مفعول دے دپاره دفعل محذوف چه هغه مدخول دلولا دے. او زعمت تفسیر د هغه فعل دے.

**ولوانك** او د دغه شان پس د لَوْ نه به هم اَنّ مفتوحة الهمزه وی. ځکه چه پس د لو نه فاعل د فعل محذوفه دے. او فاعل خو نه وی مگر مفرد. لکه لو انك قائم. یعنی لو وقع قیامك.

**وان جاز التقدیران جاز الامران** کوم ځائے یو موضع وی چه هغه کښ دواړه تقدیره صحیح وی لکه تقدیر د مفرد یا تقدیر د جملے. جاز الامران یعنی فتح او کسره د اِنّ اَوْ اَنّ. فتحه به بنا بر تقدیر د مفرد وی او کسره بر بنا په تقدیر د جملے وی. یعنی چه اسم او فعل جمله او گرځی. **مثل من یکرمنی فانی اکرمه** مراد به دے سره هر هغه ترکیب دے چه ان په دے کښ سره د اسم او د خبر نه جمله واقع شوی وی جزا د پاره د شرط. نو په مثل د دے ترکیب کښ دواړه تقدیره جائز دی. او دا به په فرض د متکلم سره وی. کوم متکلم مابعد د فاء نه جزاء تام د پاره د شرط فرض کړی وی او احتیاج پکښ نه وی شی آخر ته. نو دا موضع د جملے دے او دلته کښ مکسورة الهمزه د ځلے شی. او کوم متکلم د فاء نه مابعد فرض مبتداء محذوف الخبر یا خبر محذوف المبتداء نو بیا به اَنّ مفتوحة الهمزه وی. لکه اکرامی ثابت له. دلته کښ مبتداء ملفوظه ده. په دے تاویل با ندی. او خبر مقدر د ده دیتله شی یا فجزاءه اکرامی. په دے تقدیر باندے خبر دے چه مبتداء ئے محذوفه ده.

**وع اذا انه عبد القفا واللهازم** دا بل مثال د جواز د تقدیرینو دے. دلته کښ په اذا انه کښ مفتوحة الهمزه هم ویلے شی. او مکسورة الهمزه هم مراد په دے ترکیب سره هغه دے چه انّ واقع شوے وی پس د اذا مفاجائیه نه. دا ذکر شوے مثال د فرزدق د شعر یوه مصرعه ده. او تول شعر دا دے. کنت اری زیدا کما قیل سید. اذا انه عبد القفا واللهازم. دلته هم کوم متکلم فرض کړے وی. چه ان سره د اسم او د خبر نه جمله تامة الاجزاء ده چه واقع ده پس د اذا مفاجائیه نه. نو دا موضع د جملے او گرځیده. ځکه چه بعد د اذا نه جمله وی. نو دا به مکسوره وی. او کوم متکلم فرض کړی وی. چه پس د انه نه اسم او خبر د ا به تاویل د مفرد سره مبتداء محذوف الخبر ده. نو بیا به مفتوح ویلے شی. چه کله جمله اسمیه وی پس د دے نه. نو تقدیر به دا شی. چه فاذا هو عبد القفا واللهازم. او چه په تاویل د مفرد وی. نو دا به مبتداء وی او خبر به ئے محذوف وی. تقدیر به دا شی اذا عبودیته للقفا واللهازم ثابت. په دے شعر کښ فرزدق د زید هجو بیانوی. چه زما خو گمان په زید باندے د یو سردار وو. لکه چه څنگه خلقو ویل. ولے هغه یو لیئم او خسیس بنکاره شو. و شبهه دا عطف دے په دا اذا انه باندے. او د دے پشان نور مثالونه. لکه اول ما اقول انی احمد الله. که چرته دلته کښ ما موصوله شی یا موصوفه شی.

نو معنی به داشی چه اول مقولاتی په د غه صورت کښې کسره متعین ده یعنی انّ به و ئیلے شی. ځکه چه مقوله د قول نه وی مګر جمله او کومه ته ما مصدر یه شی نو معنی به داشی چه اول اقوالی. نو په دغه صورت کښې فتحه متعین ده. یعنی اَنّ به و ئیلے شی. ځکه چه اول الاقوال معنی مصدری ده. چه هغه معنی دانّ مفتوحه ده.

**ولذالک جاز العطف علی اسم المکسورة لفظا او حکما بالرفع دون المفتوحة** او د وجه د دے خبرے نه چه اِنّ مکسورة الهمزة نه متغیر کوی معنی د جملے بلکه تاکید فائده کوی. جائز دے عطف په اسم دانّ مکسورة باندې لفظاوی که حکما. په رفع سره نه په مفتوحه. یعنی اَنّ مفتوحة الهمزة. ځکه چه انّ مکسوره تغیر نه راولی په جمله کښې نو دے کالعدم او ګرځیده. نو اسم د دے منصوب په محل د رفع کښې شو. لکه اِنّ زیدًا قائم وعمرو. چه عمرو مرفوع شی. د دے به عطف شی په محل د اسم د اِنّ. انّ مکسورة الهمزة لفظا خو ظاهر دے. او هرچه دے حکما نو هغه اَنّ دے چه واقع وی پس د علمونه. ځکه چه دا اګرکه ظاهر مفتوحة الهمزة دے. لیکن حکما مکسورة الهمزة دے. ځکه چه دا اګرکه ظاهر مفتوحة الهمزة دے لیکن حکما مکسورة الهمزة دے. ځکه چه دے قائم دے په مقام د جزئین باندې په دے شان سره چه دے قائم دے په مقام د مفعولین د علمت لکه علمت ان زیدًا قائم وعمرو. **ویشترط مضی الخبر لفظا او تقدیرًا.**

او په اسم د انّ مکسورة الهمزة باندې په رفع سره عطف کښې شرط دا دے چه ذکر د خبر به مخکښې د معطوف نه راغلے وی. لفظا وی لکه ان زیدًا قائم وعمرو. یا تقدیرًا لکه ان زیدًا وعمرو قائم. د لته کښې قائم مفرد راوړے شویدے. نو دے نه معلوم شوه. چه مخکښې د معطوف نه یل قائم معتبر دے. **سوال** داده چه تقدم د خبر ولے شرط کړے شو. **جواب** دا دے چه که چرته تقدم د خبر په معطوف لانشی. نو بیا به توارد د عاملینو مختلفین راشی. په معمول واحده باندې لکه ان زیدًا وعمرو ذاهبان. د ذاهبان نه چه صیغه د تثنیه ده دا خبره معلومه شوه چه د معطوف نه مخکښې خبر نشته دے. نو د دے حیثیت نه چه دا خبر د اول نه دے نو عامل د دے اِنّ دے. او د دے حیثیت نه چه دے خبر د ثانی دپاره دے نو عامل په کښې معنوی دے نو لازم شو توارد د عاملینو په معمول واحده باندې. او دا ناجائز دے.

**خلافا للکوفیین** خلاف ثابت دے اکثر و نحاتو د کوفے د لاره. هغوی د صحت د عطف دپاره تقدیم د خبر شرط نه دے ګرځولے. د هغوی دلیل دا دے چه ان عمل نه کوی په خبر کښې بلکه خبر د ان مرفوع دے په عامل معنوی سره مخکښې د را تللو د ان. نه نو رو ستو د را تللو د هغه نه. نو لازم نه شو توارد د عاملینو. لو انّ عامل ضعیف دے عمل په قریب کښې کوی او په بعید کښې نه کوی. خو د دے دلیل جواب ورته جمهور نحاتو ورکوی چه هر کله د دوئ مشابهت د فعل سره راغی. لفظا او معنا نو په دوئ کښې قوت پیدا شو پس دوئ عمل په قریب او بعید دواړو کښې کوی. نحاتو د کوفے په استدلال او استشهاد کښې دا شعر لوړے

دے. چه الا فاعلموا انا وانتم بغاة. ما بقينا في شقاق. خو سيبويه داحمل کوے دے چه تقدیر د خبر باندے. یا داحمل دے په ضرورة شعریه باندے.

**ولا اثر لکونه مبنیا خلافا للمبرد والکسائی** په دے عبارة سره مصنف ردکوی په کسائی او مبرد باندے. چه هغوی وائی چه اسم د ان مکسورة الهمزة چه کله هغه مبنی وی جائز دے عطف په محل د هغه باندے. بغیر د تقدیم د خبر نه لفظا یا حکما. لکه انك وزید ذاهبان ملته کښې اسم د ان هغه ضمیر دے. چه مبنی دے. نو مصنف په دوی باندے رد اوکړو اووے فرمائیل. ولا اثر او نشته دے څه اثر د دے خبرے هغه سره د ان مبنی وی. یعنی که اسم د ان مبنی وی او که معرب وی په دواړو صورتونو کښې تقدیم د خبر ضروری دے **فی مثل انك وزید ذاهبان** د هغوی دلیل دا دے چه هرکله محل د ان په اسم کښې ظاهر نه شو د وجے د بناء نه نو د صیغه عمل په خبر کښې هم نه کوی. ځکه چه اعتبار د عمل د دوه په خبر کښې هله دے چه د دے اسم کښې عمل اوکړی. نو په دے وجه باندے توارد د عاملینو لازم نه شی. د جمهورو نحاتو طرف نه ورته جواب دا دے چه عمل عام دے لفظا وی که محلا دلته اګر که لفظا نشته محل خو موجود شته. او یا دا چه کیږی موږ به دا او منو چه عمل مختص دے په لفظی پورے. نو عدم د ظهور د عمل کښې دلته کښې په اسم کښې د وجے د بناء نه دے. او په خبر کښې د عمل نه مانع نشته. او هرچه دے د هغوی دا دلیل چه انك وزید ذاهبان مروی د عربو استعمال لری. نو جواب دا دے چه اعتبار استعمال د فصحاء لره دے.

**ولکن کذالك** او لکن په جواز د عطف کښې په محل د اسم باندے په مثل د ان مکسورة الهمزة دے. دے په معنی د جملے کښې تغیر نه راولی. ځکه د دے راتلل دپاره د استدراك. او استدراك د جملے او ابتداء سره منافی نه دے. نو پوهه دے کال علم شو. اوس په محل د اسم د دوه باندے عطف جائز دے په رفع سره لفظا وی که حکما. لکه ما خرج زید لکن بکرا خارج وعمرو. او د دے نه علاوه نور حروف مشبهه بالفعل په هغوی کښې عطف په محل د اسم باندے جائز نه دے. ځکه چه په داخلیدو د هغوی سره په معنی کښې تغیر او تبدیل راځی دے. ځکه چه لیت او لعل دا جمله خبریه په انشائیه باندے بدلوی. او کأن معنی د جملے کښې تغیر راولی مثلا زید الاسد. چه کان په دے باندے داخل کړو ما سے به شی کان زیدا اسد. کیدل د زید عین د اسد دا منافی دے د کیدلو د زید د مثل د اسد سره **ولذالك** او د وجه د دے خبرے نه چه ان مکسورة الهمزة معنی کښې تغیر نه راولی او ان مفتوحة الهمزة تغیر راولی په تاویل د مفرد کښې.

**دخلت اللام مع المکسورة** داخلیږي لام تاکید سره إنَّ مکسورة الهمزة ته. چه ان هم دپاره د تاکید راځي **دونها** دون أنَّ مفتوحة الهمزة. چه دے په معنی دمفرد دے نو دے سره هغه ادوات نشي جمع کیدے چه هغه دپاره د تاکید د جملے راځي. **علی الخبر.** یعنی لام تاکید دانَّ په خبر داخلیږي. لکه ان زیدًا لقائم.

**او الاسم اذا فصل بینه وبینها** او یا داخلیږي لام په اسم دانَّ باندے چه کله فصل راشي په مابین داسم کښي او دانَّ کښي. لکه ان في الدار لزیدًا. یا لکه ان من شیعته لَاِبراهیم. **او علی ما بینهما** او یا داخلیږي دالام په هغه باندے چه هغه واقع وي په مابین داسم او د خبر کښي. لکه ان زیدًا لفي الدار قائم. زده کړه داخبره چه یا به فصل راغلے وي په مابین دان او اسم دهغے کښي یا به نه وي راغلے که نه وي راغلے نو بیا به لام داخلیږي په خبر باندے. او که چرته فصل واقع شوے وي نو بیا به خالی نه وي. یا به فصل خبر وي یا به معمول دخبر وي چه خبر وي لکه ان في الدار لزیدًا او معمول دخبر لکه ان في الدار لزید قائم. او که چرته فصل واقع شوے وي په مابین د اسم دان او د خبر دهغے کښي په معمول د خبر سره لکه ان زیدًا لطعامك آکل نو په دغه وخت کښي به لام په معمول مقدم داخلیږي. ددے نه علاوه که چرته فصل نه وي راغلے په مابین داسم دان او دانَّ کښي نو بیا که چرته لام داخل کړو نو لازمیږي توالی دحروف دتاکید. دلته کښي **سوال** راځي. چه تقدیم دانَّ ترولے ترجیح ورکړے شو په لام باندے **جواب** داد ے چه دلته کښي عامل ته ترجیح ورکړے شوه په غیر عامل باندے. **وفي لکن ضعیف** دخول ددغه لام سره دلکن نه په خبر باندے یا په اسم باندے چه کله فصل راغلے وي ددوي په مابین کښي یا فصل راغلے وي داسم او دخبر ددوي کښي. دا ضعیف دے. حکمه چه لکن اگرچه نه متغیر کوي معنی د جملے لیکن دے موافق نه دے دلام سره په معنی دتاکید کښي لکه چه حکمه ان دے. او بل وجه داده چه دخول دلام دلالت په انفصال باندے. او لکن دلالت کوي په اتصال باندے او د دواړو په مابین کښي منافات دے. په دے عبارت سره مصنف رد کوي په نحاتو د کوفے باندے چه هغوي دخول دلام جائز گرځولے دے سره دلکن نه. او دلیل یے داد ے چه ولکنني في حبها لعمید. خو ددے جواب دا دے چه دا شاذ دے.

**وتخفف ان المکسورة** چه کله ان مکسورة الهمزة ما ثقیل دے دوجے د تشدید نه او کثیر الاستعمال هم دے. چه دا تقاضا د تخفیف کوي. نو په دے وجه باندے د مخفف د مثقل نه راځي. **فیلزمها اللام** نو بیا لام ورسره لازم دے دپاره ددے چه فرق راشي، په مابین دان مخفف عن المثقل او دان نافیه کښي په صورت دالغاء کښي او هرچه ددے صورت داعمال نو دا حمل دے په صورت دالغاء باندے طردًا للباب.

ونفی والزوم د لام مشروط دے په څلورو شرطونو . اول دا چه کله خبر مثبت وی منفی به نه وی . ځکه چه لام وضع شویدے د پاره د تاکید د امر مثبت . دوئیم دا دے چه خبر ماضی نه وی چه مجرد وی د قد نه ځکه لام تاکید د هغه شی کوی چه هغه موجود فی الحال وی . او خبر چه ماضی وی هغه دا رنګے نه دے . دریم شرط دا دے چه خبر جمله شرطیه نه وی ځکه چه دا مترددالوجود دے او په لام سره تاکید د هغه شی راځی چه هغه محقق الوجود وی . څلورم دا دے چه خبر د جواب د قسم نه وی . چه هغه مصدر وی په لام سره د پاره د دے چه لوازم نه شی توالی د لامینو . البته کېږی فصل راغلے وی په ما بین د ان او د لام کښې په ما زائده سره لکه وان کلا لما لیوفینهم . **ویجوز الغاؤها** او جائز دے الغاء د خبره چه انّ بعد التخفیف ملغاة عن العمل او کړی . ځکه چه د دے مشابهت په دغه حین کښې ختم شو لفظاً د فعل سره . او جائز دے اعمال د دے په اعتبار د اصل سره .

**ویجوز دخولها علی فعل من افعال المبتداء** او جائز دے دخول د انّ مکسوره بعد التخفیف په هغه افعالو باندې چه هغه د دواخلو د مبتدا او د خبر نه وی . لکه باب د کان شو یا باب د علم شو ځکه چه اصل په دې کښې دا دے چه دے به داخلیږی په مبتدا او په خبر باندې . هر کله چه فوت شو دخول د دې په مبتدا او په خبر باندې . نو بیا لا بدی ده د دے نه چه دے به داخلیږی په هغه باندې چه هغه د دواخلو د مبتدا او د خبر نه وی د پاره د دے چه رعایت د اصل او شی بقدر الامکان . لکه وان کانت لکبیرة . یا ان نظنک لمن الکاذبین . **خلافاً للکوفیین فی التعمیم** خلاف ثابت دے کوفیانو لره په تعمیم او په عموم کښې . ځکه چه هغوی وائی چه دا په مطلق افعالو باندې داخلیږی برابره خبره ده چه د دواخلو د مبتدا او د خبر نه وی او که نه وی د هغوی دلیل دا شعر دے .

بالله ربك ان قتلت لمسلما ⁂ وجبت علیك عقوبة المتعمد .

جواب د جانبه د جمهورو نه دا دے . چه دا شاذ دے . او مخالف دے د قول د فصحاؤ نه .

**وتخفف المفتوحة** او انّ مفتوحة الهمزه په دے کښې هم تخفیف راځی . لکه چه ځنګه مکسورة الهمزه کښې تخفیف راځی . **فتعمل فی ضمیر شان مقدر** نو په دغه وخت کښې به دے عمل کوی په جمیلے د وجوب سره په ضمیر شان کښې چه مقدر وی . ځکه چه مشابهت د ان مفتوحه د اکثر او قوی دے د فعل سره د انّ مکسوره نه . او ان مکسوره بعد التخفیف خو عمل کوی . لکه وان کل لما جمیع لدینا محضرون . او وان کلا لما لیوفینهم . او اعمال د ان مفتوحة الهمزه بعد التخفیف واجب دے محدود ملفوظ کښې . نو لازم کړو مونږ توعمل د دے په ضمیر شان مقدر کښې د پاره د دے چه لازمه نه شی ترجیح د اضعف په اقوی باندې او مزیت د فرع په اصل باندې . لکه و آخر دعواهم ان الحمد لله رب العالمین . دلته کښې **سوال** راځی چه دلته کښې خو مزیت د فرع په اصل او ترجیح د اضعف په اقوی باندې راغلے ده

حکه چه إنّ مکسوره په ظاهرکښ دے او دمفتوحة الهمزه په مقدرکښ دے نو إنّ مکسوره ته ترجیح حاصله شوه او مونږ ته ئے داخلو **جواب** دا دے چه ان مفتوحه دے دائم العمل دے په مقدرکښ او ان مکسوره ئے په ظاهرکښ احیاناً عمل کوي او دوام دعمل په مقدرکښ ذاولیٰ دے دعمل نه په ظاهرکښ احیاناً.

**فتدخل علی الجمل مطلقا** نو دا به بیا داخلیږي په جملو باندې برابره خبره ده چه جمله اسمیه وي که فعلیه او فعل عام دے د داخلو د مبتدا او د خبر نه وي او کړنه وي. او دغه جمله به تفسیر شي دپاره د ضمیر شان. **سوال** دا دے چه تا خو دلته کښ جُمل مطلق ذکر کړل. او تعمیم دے پکښ اوکړو. حالانکه بعض د جملو نه جمله انشائیه ده. حالانکه هغه خو خبر دان نه شي راتلے. **جواب** دا دے چه په الجمل کښ الف لام عهدي دي. او معهود په دے سره جملے خبریه دي.

**وشذ اعمالها فی غیره** او شاذ دے اعمال ددے په غیر ضمیر شان کښ. ضمیر وي او که ظاهر وي. د شاذ مثال لکه فلو انك فی یوم الرخاء ساکتنی :. فراقك لم ابخل وانت صدیقی. **ویلزمها مع الفعل السین** او لازم دے دان مفتوحه مخففه سره په وخت د دخول ددے کښ په فعل باندې سین **وسوف وقد** او سوف او قد. د پاره ددے چه التباس ئے را نه شي د ان ناصبه مصدریه سره. د سین مثال لکه علم ان سیکونُ منکم مرضیٰ (په دے کښ طالبان ته مغالطه وکړي چه کلمه ان د حروف ناصبه نه دے یعنی چه کله په فعل مضارع داخل شي. نو هغه منصوب کړي. او په علم ان سیکون کښ أنْ داخل دے په مضارع باندې او بیا هم منصوب نه ده مضارع بلکه مرفوع ده. نو **جواب** دا دے چه دا انْ د حرف ناصبه والا نه دے. بلکه دا مخفف من المثقل دے) او د سوف مثال لکه په دے شعر ع واعلم فعلم المرء ینفعه. ان سوف یاتی کل ما قدرا. او د قد مثال لیعلم ان قد ابلغوا. سین او سوف دا نه شي جمع کیدے دان مصدریه سره حکه چه سین او سوف راځي دپاره د استقبال او ان هم راځي د پاره استقبال نو لازم مینږي استدراك د یو په دے کښ. او قد هم نه جمع کیږي دان مصدریه سره حکه چه قد دپاره د تحقیق او ان المصدریه راځي دپاره د طمع او ددوی په مابین کښ منافات دے. او د دغه معانی او دان مخففه په مابین کښ څه منافات نشته **اوحرف النفی** الا حرف نفی. لکه افلا یرون ان لا یرجع الیهم. دلته کښ **سوال** وارد یږي چه حرف نفي څنګه دان مخففه سره جمع کیږي. نو دغه شان دان مصدریه سره هم جمع کیږي. نو فرق به په مابین د دوی کښ به څنګه راځي **جواب** دا دے چه زیادت د حرف نفي دا د پاره د فرق نه دے. بلکه دا په منزله د عوض دے د نون مخففه نه. او فرق په مابین د مخففه او د مصدریه کښ یا د حیثیت د لفظ نه دے. یا د حیثیت معنیٰ نه دے. هرچه دے د حیثیت د لفظ نه فعل منفي به دے سره کله نه منصوب وي. نو دا مصدریه

او که نه وی نو مخففه دے۔ او هر چه دے د حیثیت د معنی نه نو هغه دا سے چه کوم ته په دے سره استقبال قصد کړے شوے وی۔ نو مصدر به دے لاکه نه وی قصد کړے شوے نو مخففه اعتراض وارد یږی چه ستا دا قاعده منقوضه شوه په دے ترکیب نو چه ان لیس للانسان الا ما سعٰی۔ وان عسٰی ان یکون قد اقترب اجلهم۔ ځکه چه اَنْ په دے دوا رو مثالونو کښې مخففه دے مقرون دے سره د فعل نه او په دے کښې یو هم دے امور مذکوره نه نه دے موجود جواب دا دے چه لزوم د زیادت دے امورو دا هغه فعل سره شرط دے۔ چه هغه فعل متصرف وی۔ او دلته کښې چه ان داخل دے په کوم افعالو هغه غیر متصرف دی۔ نو معلومه شوه چه مع الفعل کښې الف لام عهدی دی او معهود په دے سره فعل متصرف دے۔ **وکَاَنَّ للتشبیه** بل د حروف مشبه بالفعل نه کَاَنَّ دے۔ دا راځی د پاره د تشبیه د یو شی د بل شی سره لکه کَاَنَّ زیداً اسدٌ۔ دلته کښې **سوال** وارد یږی چه ستا دا خبره منقوضه شوه په دے ترکیب سره چه کَاَنَّ زیداً قائمٌ یعنی چه خبر پکښې مشتق وی۔ ځکه چه دلته کښې خبر مشبه به د اسم نه دے۔ وجه دا ده چه خبر محمول وی په اسم باندې او متحد بالذات وی د اسم سره او په مشبه او مشبه کښې مغائرت وی۔ بیا دلته کښې لازمیږی تشبیه د شی د خپل نفس سره۔ **جواب** دا دے چه دلته کښې مشبه به محذوف دے۔ او خبر مشتق د هغه د پاره صفت دے۔ نو تقدیر به داشی۔ چه کان زیداً رجل قائم۔ **وتخفف فتلغی علی الافصح** او دا کان کله مخففه کیږی په دغه وخت کښې بیا ملغاة العمل وی بنا په استعمال افصح باندې۔ ځکه چه بعض مشابهت د دے فوت شو۔ چه هغه فتحه ده په افصح سره احتراز دے د غیر افصح نه لکه په دے مصرعه کښې۔ کاَنْ ثدیاہ حُقّانِ۔

**ولکن للاستدراک** او بل د حروف مشبه بالفعل نه لکن دے۔ دا راځی د پاره د استدراک یعنی د پاره د دفع د توهم د سامع چه ناشی وی د کلام سابق نه مثلاً تا او ویل چه جاءنی زید نو متوهم دا وهم اوکړو چه عمرو به هم راغلے وی۔ ځکه چه د دوی په مابین کښې الفت او محبت دے نو ته د دفع د دغه توهم اوکړے او او وائے لکن عمراً لم یجئ۔ **تتوسط بین کلامین متغایرین معنی** چه متوسط کیږی په مابین د دوو کلامونو کښې چه هغه متغیر وی ایجابا او سلبا د حیثیت د معنی نه۔ او دا تغائر به یا لفظی وی یا معنوی۔ د لفظی مثال خو د غه مذکور دے او د معنوی مثال لکه زید غائب لکن عمرو حاضر یا لکه په دے قول د باری تعالیٰ ولو اراکهم کثیراً لفشلتم ولکن الله سلّم۔ یعنی لکن الله لم یراکم کثیراً۔ **وتخفف فتلغی** او لکن مخففه هم کیږی۔ د دے نورو حروفو په شان بیا د غه وخت کښې به دے ملغاة العمل هم کیږی۔ ځکه چه بعض وجوه د مشابهت په دغه کښې فوت شول چه هغه فتحه ده۔ نو دے مشابهه شو۔ د لکن عاطفه سره لفظاً

په صورت کښې او معنیً چه دواړه دپاره د استدراک نو دے جاری شو په مجری د لکن عاطفه بانده په عدم د عمل کښې **اعتراض** وارد یږی چه بیا خو یکار دادے. چه ان مکسوره چه کله مخفف شی نو دے د هم مشابهه شی د ان نافیه سره په عدم عمل کښې او دغه شان أن مفتوحه مخففه هم مشابهه شی د أن تفسیریه سره په عدم عمل کښې. **جواب** دادے چه د لکن مشابهه صرف لفظاً راغلے د ان نافیه او د أن تفسیریه سره او معنیً مشابهة نشته دے. نو په دے وجه د دی عمل اونه کړے شو.

**ویجوز معها الواو** او جائز دے سره د لکن نه مشدد دی که مخفف واو. دا واو به یا دپاره د عطف د جملے په جمله دپاره راغلے وی. لکه وما کفر سلیمان ولکن الشیاطین په قراءت د رفع سره. لیکن اکثر نحاة وائی چه واو عاطفه په لکن مخففه باندې نه داخلیږی ځکه چه په دے غوښتنه لازمیږی اجتماع د حرفینو د عطف. او یا دا واو اعتراضیه دے. لکه چه مختار مذهب د رضی دے ځکه چه مقصود فقط توهم دے. او هغه حاصلیږی په مابعد د واو سره **ولیت للتمنی** او لیت راځی د پاره د تمنی دا یو قسم دے د حروف مشبهه بالفعل نه. دا په ممکن او په ممتنع دواړو داخلیږی. لکه لیت زیداً قائم. او لیت الشباب یعود. په خلاف د ترجی نه چه هغه په ممکن کښې راځی.

**واجاز الفراء لیت زیداً قائماً** او فراء نحوی جائز کړے دے دا ترکیب چه لیت زیداً قائماً په نصب د جزئین سره. په تقدیر د فعل سره چه هغه اتمنی دے او اتمنی فعل متعدی دے دوه مفعولینو ته. ځکه چه دے په معنی د فعل قلب دے. او د هغه دلیل دادے چه. ع یالیت ایام الصبا رواجعا. خو جواب د دے دلیل نه دادے چه رواجعاً منصوب دے بنا بر حالیت. او دا حال واقع دے د هغه ضمیر نه چه مستتر دے په خبر مقدر کښې چه کائنة یعنی یالیت ایام الصبا کائنة حال کونها رواجعا. او په نزد کسائی باندې نصب د جزء ثانی په تقدیر د کان سره. نو د هغه په نزد باندې تقدیر دادے یالیت ایام الصبا کانت رواجعًا.

**ولعل للترجی** او بل د حروف مشبهه بالفعل نه لعل دے. دا راځی دپاره د ترجی دا توقع د وجود دامر ده. خو په شرط دے چه ممکن الوجود به وی. برابره خبره ده چه محبوب وی او که مکروه مثال د اول لکه لعلکم تفلحون. او د ثانی لکه لعل الساعة قریب. **وشذ الجر بها** او شاذ دے په دے سره جر ورکول د دے مدخول له. په دے عبارت سره مصنف دفع د اعتراض کوی **سوال** دادے چه شمیرل د لعل د حروف مشبهه بالفعل نه نه دی صحیح بلکه دا خو د حروف جاره نه دے لکه په دے قول د شاعر کښې ع لعل ابی المغوار منک قریب. نو دا **جواب** اوکړو چه وشذ الجر بها. او هر چه د دے دلیل په مصرع سره. نو یا خو جر په دے کښې په سبیلے د حکایت سره

مے . بل ځائے کښې د امجرورا ستعمال شویدے . نو دے ځائے کښې په طریقه د حکایت ذکرکړے شو اؤ یا داچه دارجل مشهور وو په ابي المغول سره. نو په احوالِ ثلثه کښې په یا سره ذکرکیږی . برابره خبره ده که حالتِ رفعی وی که نصبی وی اؤ که جری .

# الحروف العاطفة

بل قسم د حروفو نه حروف عاطفه دی . عاطفه ماخوذ دے د عطف نه . عطف په لغت کښې امالے ته وائی . اؤ دے حروفو ته حروفِ عاطفه په دے مناسبت سره وائی چه په دے حروفو سره میلان د معطوف معطوف علیه ته راځی . یا دوئ مائل کوی . عامل د معطوف علیه معطوف ته . خو په دے توجیه باندې **سوال** واردیږی . چه دا توجیه خو د عطف په مبتداء صورت کښې نه صحیح کیږی . ځکه چه مبتداء کښې عامل معنوی دے اؤ دلته کښې ظاهرًا د عامل نه مراد لفظی دے **جواب** دا دے چه په وجه د تسمیه کښې اطراد ضروری نه دے . بلکه منجمله مناسبت کافی دے . اؤ حروف عاطفه لس دی . **وهي الواو والفاء وثم وحتی واؤ واما وام وبل ولکن** دلته کښې واوئے مقدم کړو . ځکه چه دے اصل په باب د عطف کښې اؤ بل وجه دا ده چه دے راځی د پاره د مطلق جمع. دلته کښې په دے مقام کښې اختلاف دے په بل کښې بعض نحاة وائی کچرته مابعد د دے نه مفرد وی . نو صفه به بدل غلط وی . عطف به نه وی . اؤ بعض نحاتو اؤ مفسرو هم د حروفِ عاطفه نه شمیرلے دے خو په نزد اکثرو باندې مابعد د دے نه عطف بیان دے د پاره د ماقبل خپل . **فالاربعة الاول** پس دا اولنی څلور حروف **للجمع** د پاره د جمع راځی . برابره خبره ده . چه مطلق جمع وی که سره د ترتیب نه وی اؤ مراد په جمع سره دا دے . چه معطوف علیه او معطوف به په حکم کښې برابر وی . دا نه چه په معنی د مصاحبت به وی . **فالواو للجمع مطلقا** فاء د پاره د تفصیل ده . اؤ په دے سره فرق بیانوی په مابین د دوی . پس واو د پاره د جمع دے مطلقًا برابره خبره ده چه ترتیب پکښې وی که نه وی . اؤ دغه شان بغیر د قید د تراخی اؤ عدم تراخی نه بغیر د قید د تدرج اؤ د عدم تدرج نه . **لا ترتیب فیها** په دے عبارت سره معنی د اطلاق بیانوی . یعنی لا یفهم منه الترتیب لا وجودًا ولا عدمًا . اګر که په نفس الامر کښې پکښې ترتیب وی . **والفاء للترتیب** اؤ فاء راځی د پاره د ترتیب مع الوصل .

**وثم مثلها** او ثم په مثل د فا دے په ترتیب کښې **بمهلة** سره د مهلة نه **وحتی مثلها** او حتی په مثل د ثم دے فی الترتیب بمهلة . لیکن زمانه د مهلة د دے اقله ده د زمانے د مهلة د ثم نه . ځکه حتی ګویا مامتوسط دے په مابین د فا او ثم کښې . **ومعطوفها جزء من متبوعه** او معطوف د حتی په اعتبار د اصل وضع سره جزء به وی د معطوف علیه نه . ځکه چه دے موضوع دے د پاره د عطف د حکم په کل باندې او د غه خبر به یا قوی وی یا ضعیف . برابره خبره ده چه دا خبر حقیقة وی لکه اکلت السمکة حتی راسها . او یا غیر حقیقة وی لکه اعجبنی الجاریة حتی حدیثها . **لیفید قوة اوضعفا** د پاره د دے چه فائده ورکړی دا عطف قوة په معطوف کښې لکه قدم الجیش حتی الامیر او یا ضعفا لکه قدم الحاج حتی المشاة

**فائده** غرض د عطف نه په حتی سره شمول د فعل دے معطوف لره . چه هغه جزء قوی دے یا ضعیف دے . معطوف علیه نه خو د غه جزء په شمول د فعل کښې دے کل سره شریک دے او په اعاده د معطوف کښې حاصلیږی تکرار د شمول وله سبب د دے تکرار د دفع د توهم د عدم شمول د جزء قوی د معطوف علیه نه . لکه مات الناس حتی الانبیاء . ځکه موت چه دے دا لوا مر مکروه دے تناول نه کوی په اعتبار د فعل سره جزء قوی د مخلوق نه چه انبیاء دی . خلاصه دا ده چه متوهم به داوهم کوی . چه امر مکروه ( یعنی موت دے ) دا به رسیږی نه هغه جزء قوی ته چه انبیاء دی . نو د غه وهم ئې دفع کړو په ذکر د دوی سره صراحة او د غه شان په جزء ضعیف کښې هم دفع د توهم ده .

هر کله چه په عطف په حتی سره غرض د شمول وو . او شمول خو راځی په عطف او په تکرير سره او عطف تقاضا د تغایر کوی په مابین د معطوف علیه او معطوف کښې او جزء خو مغایر د کل نه نشی کیدے . نو ځکه تی پکښې اشتراط د قوة او د ضعف او کړو . د پاره د دے چه معطوف او معطوف علیه کښې امتیاز راشی . نو صلاحیة د غیریت به پکښې پیدا شی . د غه شان د عطف او د انتهاء د فعل صلاحیة هم نو دا حتی به شابه او کړځی . د حتی جاره سره په معنی د انتهاء کښې . پس حتی جاره دا اصل شو او حتی عاطفه ورله فرع شوه

**واو واما وام لاحد الامرین مبهما** دا درے واړه حروف عاطفه مشترك دی په دے خبره کښې چه دا دلالت کوی په یو د دوه امرونو باندې یا د امورو باندې چه غیر معین وی په نز د متکلم باندې . **سوال** وارد یږی چه ستا ما قاعده منقوضه شوه په دے قول د باری تعالی باندې ولا تطع منهم آثما او کفورا . ځکه چه دلته کښې کلمه د او دا حد الامرین د پاره نه صحیح کیږی . **جواب** دا دے چه او په خپله معنی باندې قائم دے او هر چه د عموم هغه مستفاد دے . د واقع کیدو د یو د مبهم نه چه سیاق د نفی کښې نه دو بجے د کلمے د او او یا ام نه .

**وام المتصلة لازمة لهمزة الاستفهام** نو د ده کره دا خبره چه ام په څلور قسمه باندې دے

په اَم متصله منے دا صفه دے چه مابعد د دے مربوط وی د ما قبل سره لکه سواء عليهم استغفرت لهم ام لم تستغفرلهم . دویم اَم منقطعه دے . دا صفه دے چه مابعد مربوط د ما قبل سره نه دی لکه ام هل تستوی الظلمات والنور هل يستوی الاعمی والبصير . دریم ام زائده لکه افلا تبصرون ام انا خير څلورم ام چه د تعريف دپاره راځی لکه د الف لام ځائے لیس من امبر امصيام فی امسفر . ام متصله لازم دے همزے د استفهام سره يعنی بغير د همزے داستفهام نه به دا نه راځی . او د دیته ام متصله په دے وجه وائی چه مابعد د دے مربوط او متصل دے د ما قبل سره او مابعد او ما قبل د دے کلامین مستقل نه دی . بلکه مجموعه جزء واحد دے د کلام نه . او په ام منقطعه کښی دغه ارتباط نشته دے په دے وجه ما بعد ما قبل او ما بعد مستقل کلام دی د دلته کښی **ملازمة** نه مراد لزوم لغوی دے نه منطقی لزوم . **يليها احد المستوين** چه ذکر کیږی به بعد د ام متصله نه یو د مستوینو نه چه صفه معطوف او معطوف عليه دی چه دوی مساوی دی په اعراب او په تعلق د حکم کښی . **والآخر** يعنی مستوی آخر **الهمزة** يلی الهمزة دپاره د دے چه ام سره د همزه نه په تاویل دای او کرځی او د ام او همزه نه چه دوستو کوم مفردین یا مسترسین راغلی دی دا به په تاویل د مفرد سره مضاف اليه او کرځی دپاره دای لو تاویل دا أزيدٌ عندك ام عمرو به داشی . ايهما عندك . **بعد ثبوت احدهما لطلب التعيين** پس د ثبوت د علم نه په حصول د یو دا مرینو په نز د متکلم احدهما نه مراد مستوین دی مثلاً زید او عمرو . دپاره د طلب د تعین د مخاطب لکه یو متکلم تپوس کوی چه ازيد فی الدار ام عمرو . نو دده ته علم شته په دے خبره چه په دار کښی یو کس په دے دواړو کښی موجود دے . خو طلب د تعين کوی د مخاطب نه . **ومن ثم** او د دے وجه د دے خبرے نه چه یو د مستوینو نه به روستو د اَم نه وی او بل به روستو د همزه نه وی .

**لم يجز** جائز نه دے دا ترکیب چه **ارأيت زيدا ام عمرو** ځکه چه یو د مستوینو نه راغلی چه یلی دے ام نه . لیکن یل صفه یلی نه دے همزه نه . فصیح او صحیح قول دا دے په دے ترکیب کښی چه ازیدا رأیت ام عمروا او دلته کښی جواز په معنی د لم یجب دے . په دے طریقه سره به د نسخینو تعارض ختم شی . **ومن ثم** او د دے وجه د دے خبرے نه چه دا راځی دپاره د تعين

**کان جوابها بالتعيين** جواب د ام به په تعين سره راځی . **دون نعم او لا** نعم یا لا دے به نه راځی . لو چه کله تپوس اوشی په دے سره چه ازید فی الدار ام عمرو . نو په جواب کښی به یا زید وائے او یا عمرو . لا یا نعم نه شی ویلے کیدے . ځکه چه دوئ تعین نه فائده کوی . او دلته کښی دا حصر اضافی دے په نسبت سره نعم او یا لا ته دے . دا او اما په جواب کښی نعم یا لا دا تلے شی **وام المنقطعة كبل** او ام منقطعه په شان د بل دے .

**والهمزة** او پشان د همزه دے. لکه چه څنګه بل د پاره د اضراب راځی. نو دغه شان ام منقطعه هم برابره خبره ده چه کلام خبری وی که انشائی وی. او پشان د همزه دے په شک کښ. **مثل انها لابل ام شاء** دا مثال د اول دے. لکه یو سړی یو شی اولیدو او یقین ئے پے راغلو چه دا خو ابل (اوبن) دے. او او ئے وئیل انها لابل. خو چه کله نزدے شو بیا ئے خیال راغے چه دا خو اوبن نه دے ام شاء او شی آخر یعنی په دے سره اعراض راغے د اولنی اخبار نه. او د دویم مثال لکه ا زید عندك ام عمرو. دلته کښ **سوال** وارد یږی چه انها لابل جمله خبریه ده او ام شاء دا جمله استفهامیه انشائیه ده. نو عطف د جملے انشائیه راغلے دے په خبریه باندے. او دا خو جائز نه دے. **جواب** دا دے چه دا استفهام استینافی دے نو عطف د انشاء په اخبار باندے رانغے. **واما قبل المعطوف علیه لازمة مع اما** او کوم معطوف چه مقید وی اما باندے نو په معطوف علیه کښ اول د دے اما لازم دی. د پاره د دے چه داول وهلے نه معلوم شی دا خبره چه کلام بنا دے په شک باندے **سوال** دا دے چه شمیرل شتا اماله د حروف عاطفه نه صحیح کیږی. ځکه چه حرف عطف خو داخلیږی په معطوف باندے او دا خو راځی په معطوف علیه باندے هم. او بله خبره دا ده چه په دے باندے واو هم داخلیږی. که داهم د پاره د عطف شی نو لازمیږی اجتماع د حرفین د عطف بیا په دے کښ یو لغو بکار دے. **جواب** دا دے چه کوم یو اما سابق دے په معطوف علیه باندے هغه د عطف د پاره نه دے. بلکه د پاره د تنبیه دے په شک باندے. او د دویم جواب دا دے چه دلته کښ د هر یو خپله خپله فائده ده. واو د پاره د عطف د ما بعد د واو راغلے دے په ما قبل باندے او اما د پاره د عطف د ما بعد د اما راغلے. پس د دوی په اجتماع کښ څه قباحت نشته لکه جاءنی اما زید واما عمرو **جائزة مع او** جائز دے سره د او نه. ځکه وضع د اما عاطفه د پاره د بنا د اول کلام ده په شک باندے. او هر چه دے او نو جائز ده دا خبره چه د پشان د اما او کړے او جائز ده دا خبره چه دے وال او کړے په عوض د شک باندے. ځکه چه لفظ د او کښ دا احتمال نشته دے. چه په وسط د کلام کښ متکلم ته شک پیدا شی. چه اول متکلم اول خبر جزماً ورکړو او بیا ئے شک پیدا شو. لکه اول ئے او وئیل علی سبیل الجزم جاءنی زید بیا ئے شک راغے او وے وئیل ام عمرو او یا داچه چه او مؤکد دے په شک کښ نو .. کدا آخر ته پکښ ضرورت نشته **ولا وبل ولکن لاحدهما معینا** او دا درے حروف چه لا دے بل لکن دے. او بل دا راځی د پاره د احد الامرین چه معین وی یعنی نسبت د حکم په معطوف علیه او یا معطوف ته معین وی لکه جاءنی زید لا عمرو کلمه د لا د نفی حکم د معطوف نه کوی. او هر چه دے بل نو دے په یا بعد د اثبات نه راغلے وی یا بعد د نفی نه که چرته بعد د اثبات نه راغلے وی نو حکم مثبت به او کړځوی د معطوف علیه نه معطوف ته او معطوف علیه په حکم د مسکوت عنه کښ وی. نو په دے صورت کښ

به دے عکس دلاشئ اوکه چرته پس د نفی نه وی نو بیا په دے کښې اختلاف دے. بعض وائی چه ما راتګ دپاره ذکر کولو د حکم منفی د معطوف علیه نه معطوف ته او معطوف علیه به بے حکم د مسکوت عنه کښې وی. او د بعضو په نزد راتګ دپاره د اثبات د حکم منفی د معطوف علیه نه د معطوف دپاره او معطوف علیه به حکم د مسکوت عنه کښې. بناء په دے اختلاف معنی د دے قول چه ماجاءنی زید بل عمرو به مذهب اول داده چه ماجاءنی عمرو. او دوئم مذهب باندے معنی داده چه ماجاءنی زید بل عمرو. بل جاءنی عمرو.

**ولکن لازمة للنفی** او لکن سره نفی لازمه ده. دا به یا راتګ دپاره د عطف د مفرد په مفرد او یا به راتګ دپاره د عطف په جملے. کچرته دپاره د عطف د مفرد وی نو دا نقیض د لا دے. او کچرته دپاره د عطف د جملے وی. نو دا نظیر د بل دے. پس د نفی او د اثبات دواړو نه. او بنا په دواړو تقدیرونو لازم دے ورسره نفی. ځکه چه دا معانی نه منصود کیږی مګر سره د حرف نفی نه. چه عطف د مفرد راغلے وی د مفرد په مفرد لکه ماقام زید لکن عمرو. او چه عطف د جملے په جملے راغلے وی. لکه ماجاءنی زید لکن عمرو قد جاء. زمخشری داخبره چه لکن سره نفی لازمه ده برابره خبره ده چه د نفی د لکن نه مخکښې وی که روستو وی.

## حروف التنبیه

یو قسم د حروفونه څخه حروف تنبیه دی. او دوئ ته حروف تنبیه په دے وجه ویلے شی. چه دا راتګ دپاره دالفاظ د مخاطب چه مخاطب غافل وی. د هغه ایقاظ راشی. په مضمون د هغه جملے باندے چه په کومه باندے دوئ داخل دی. **الا واما وها** دا حروف تنبیه درے دی. یو الا بل اما او دریم ها دے. الا او اما راتګ دپاره د تاکید د مضمون د جملے. دا دواړه داخلیږی په جمله باندے برابره خبره ده چه جمله خبریه وی که انشائیه وی. او په مفرد نه داخلیږی. او هر چه ده ها نو دا داخلیږی په مفرد او کثیر په اسم اشاره باندے. لکه هذا.

## حروف النداء

یو قسم د حروفونه څخه حروف نداء دی. چه هغه تول پنځه دی. یا. ایا. هیا ای او همزه. **یا اعمها** یا په ټولو حروف نداء کښې عامه ده یعنی د قریب او د بعید دواړو دپاره راځی. **وایا وهیا للبعید** او ایا هیا راځی دپاره د بعید. ځکه چه کثرت د حروفو دلالت کوی په کثرت د مسافت باندے. **وای والهمزة للقریب** او ای او همزه راځی دپاره د قریب او مراد به قریب

ماعدا دبعيد نه دے دپاره دذكر چه متوسط هم پكښې شامل شي. يا چه څنګه په ندا كښې استعماليږي دغه شان په ندبه او استغاثه كښې هم راځي.

**حروف الايجاب** بعضے د حروفو نه هغه حروف ايجاب دي. دلته كښې ايجاب مقابل د سلب نه دے چه هغه شپږ دي. **نعم وبلى واى واجل وجير**

**وان فنعم مقررة لما سبقها** پس نعم د حروف ايجاب كښې دے راځي دپاره د تحقيق د مضمون د جملے سابقے. ايجاب وي كه نفيا خبرا وي كه استفهاما وي. مثلاً تا په جواب د سوال د سائل كښې چه أقام زيد نعم او ويئيل معنى دا ده چه قام زيد. او چه سائل تپوس اوكړي ألم يقم زيد. تا په جواب كښې نعم او ويئيل معنى دا چه لم يقم زيد. او د الست بربكم په جواب كښې نعم نه شي راتلے بلكه د اكفر دے ملته كښې مصنف دا دے اوفرمائيل چه مقررة لما سبقها او دا ئے اونه وئيل چه لتصديق ما سبقها ځكه چه تصديق د پاره د خبر راځي او نعم خبر او استفهام دواړو لره شامل دے. په نعم كښې څلور لغات دي. فتحتين. فتح النون وكسر العين. كسرتين. فتح النون وقلب العين بالحاء.

**وبلى مختصة بايجاب النفى** او بلى خاص دے په ايجاب د نفي پورے. يعنى نفي سابقه باطلوي او دے سره ايجاب كوځوي. برابره خبره ده كه هغه خبر وي او كه استفهام وي. لكه الستُ بربكم قالوا بلى. يعني ليس كذالك بل انت ربنا.

**واى للاثبات بعد الاستفهام** اى راځي دپاره د اثبات پس د استفهام نه. او كله راځي دپاره د تصديق او په معنى د نعم هم ليكن دا استعمال ئے شاذ دے. په دے وجه مصنف تعرض او نه كړو.

**ويلزمها القسم** او دے سره قسم ذكر كول لازم دي لكه قل اى وربى انه لحق.

**واجل وجير وان لتصديق المخبر** اجل، جير، او ان راځي دپاره د تصديق د مخبر برابره خبره ده چه خبر موجب وي كه منفي وي. نو دا پس د استفهام او يا د هغه چه په هغے كښې معنى د طلب وي نه به راځي او كله راځي ان دپاره د تصديق دد عا لكه په مقوله د ابن الزبير كښې. ان وراكبها قصه د دے مقولے دا ده چه يو اعرابي عبدالله بن الزبيرؓ ته راغے. هغه نه ئے د څه سوال اوكړو. هغه ورته څه ورنه كړل نو هغه اوويئيل. لعن الله ناقة حملتني اليك نو عبدالله بن الزبيرؓ اوفرمائيل ان وراكبها. او كله پس د استفهام نه هم راځي لكه په دے شعر كښې.

ليت شعرى هل للمحب شفاء . من جوى حبهن ان اللقاء.

ليكن تصديق د دعا او پس د استفهام نه مصنف تعرض او نه كړو. ځكه چه دا شاذ دي.

**حروف الزیادة** بعض د حروفو نه هغه حروفِ زیادت دی ـ دیته حروفِ زیادة په دې وجه ویلې شي چه دوئ په کومه جمله کښې راځي نو ددوئ په اسقاط سره په معنی کښې خلل یا نقصان نه راځي او فائده ددې حروفو دا ده چه تاکید دکلام او تحسین د نظم پیدا کړي **سوال** وارد یږی چه ددې حروفو دپاره لفظی او معنوی فائده شته دې نو دیته حروفِ زیادة ویل نه دی بکار **جواب** دا دې چه باوجود ددې نه چه دوئ لره فائده شته دې ـ خو چونکه ددوئ په اسقاط سره اصل معنی کښې نقصان نه راځي ـ ځکه ورته حروفِ زیادة او ویلې شي کوم ته چه ددې دپاره نه معنوی فائده وي او نه لفظی نو داخو به بیا عبث وو ـ او په کلام د فصحاؤ کښې عبثیات راوړل جائز نه دی ـ ته حروف الصلة هم وائی لانها یتوصل بها الی زیادة الفصاحة. اوا قامة وزن سجع.

دا تول اووه حروف دی ـ لکه چه مصنفؒ وائی ـ **ان وان وما ولا ومن والباء واللام فان مع ما النافیة** پس ان په کسره د همزې سره زیاتولې کیږی سره د مآ نه چه دنفی دپاره راځي. لکه په دې قول د حضرت حسان بن ثابتؓ کښې ـ ما ان مدحت محمداً بمقالتی ـ لکن مدحت مقالتی بمحمدؐ.

**وقلّت مع ما المصدریة** او قلیل دې زیادة د اِنْ سره د مامصدریه نه نو دې نه معلومه شوه چه زیادة د اِنْ سره د مآ نافیه نه کثیر دې. لکه انتظر ما ان جلس القاضی یعنی انتظر مدة جلوس القاضی. **ولما** دا عطف دې په ما المصدریه باندې یعنی قلت زیادتها مع لما لکه لما ان قام زید قمت **وأنْ** او أنْ بفتح الهمزه **مع لما** زیاتولې کیږی سره د لما نه. لکه فلما أن جاء البشیر **وبین لو والقسم** او د غه شان ان زیاتولې کیږی په مابین دلوا و د قسم کښې. لکه واللّٰه ان لو قام زید قمت. **وقلت مع الکاف** او قلیل دې زیادة د ان سره د کاف تشبیهی نه لکه په دې مصرعه کښې چه کان ظبیة تعطوا الی ناضر السلم **وما مع اذا ومتی وای واین وان شرطاً** او حرفِ مآ زیاتیږی سره د اذا متی ای این او ان نه په حال د کښې د دوئ کښې چه دپاره د شرط راځي لکه اذا ما تخرج اخرج متی ما تذهب اذهب ایاما تدعو فله الاسماء الحسنٰی ـ اینما تجلس اجلس ـ اما ترین من البشر احداً ـ د لفظ شرطاً د احال واقع دې د دې پنځو نه. ځکه چه دا د شرط او غیر شرط دواړو دپاره راځي. او یا دا ظرف واقع دې. نو تقدیر به دا شي ـ چه ذوات الشرط یا ادوات الشرط یا فی وقت افادة الشرط او فی الشرط.

**وبعض حروف الجر** او ما زیاتیږی سره د بعض حروف جر نه ـ خو دا موقوف دی په سماع باندې ـ لکه فبما رحمة من اللّٰه لنت لهم. **وقلت** او قلیل دې زیادة د ما **مع المضاف** سره د مضاف نه لکه لا سیما زید.

**ولا مع الواو بعد النفی** او زیاتیږي لا سره د واو نه چه واقع وي پس د نفی نه برابره خبره ده چه لفظاوي که معنًی لکه ما جاءني زید ولا عمرو او غیر المغضوب علیهم ولا الضالین - دلته غیر په معنی د لا النافیه دے او د غیر شان پس د نهی نه لکه لا تضرب زیدًا ولا عمرًا **وان المصدریة** دا عطف دے په مع الواو باندے. یعنی تزاد لا بعد ان المصدریة. لکه دا قول د باری تعالی ما منعك ان لا تسجد إذ أمرتك. که څوک دا اووائی چه دا د عطف شی په بعد النفی حُکم چه دا قریب دے - جواب دا دے چه په د غیر ضرورت کښې په معنی کښې فساد د لازمیږي - ځکه چه عبارت به داسے شی په د غیر ضرورت کښې وتزاد لا مع الواو العاطفة بعد ان المصدریة - او دا عبارت لغو دے.

**وقلت** او قلیل دے زیادة د لا - **قبل اقسم** مخکښې دا قسم نه لکه لا اقسم بهذا البلد - او دا ذکر کولے کیږي د باره د ظهور د قصے. په دے شان سره چه مستغنی ده د قسم نه

**وشذت مع المضاف** او شاذ دے زیادة د لا سره د مضاف نه. لکه په دے مصرعه کښې - فی بیر لا حور سری وما شعر. **ومن والباء واللام تقدم ذکرها** د زیادة د من د باء او د لام بحث او ذکر مخکښې په حروف جاره کښې راغلے دے د هغے اعادے ته ضرورت نشته.

**حرفا التفسیر ای** دوه حرفه چه د پاره د تفسیر د مبهم راځي - ای د پاره د تفسیر د مبهم دے - برابره خبره ده چه دا مبهم مفرد وي که جمله - د مفرد مثال لکه جاءني رجل ای زید او د جملے مثال لکه قطع رزقه، ای مات. **وان** بل حرف تفسیر هغه ان دے

**فان مختصة بما فی معنی القول** اما د پاره د تفسیر ده او په دے سره فرق بیانوی په ما بین د ای او د ان کښې. پس ان دا مختص دے یعنی دے تفسیر کوی د هغه فعل د مفعول چه په معنی د قول وي. لکه وناديناه ان يا ابراهيم - ناديناه بلفظ او شئ هو قولنا يا ابراهيم په معنی د قول لکه امرتُه ندا او کتابت شو. د امر مثال لکه امرته ان اذهب، واوحینا الی ام موسٰی ان ارضعیه. د کتابت مثال لکه کتبت الیه ان قم. لیکن دا دومره استعمال غالب دے. کله په دے سره د مفعول ظاهر تفسیر هم راځي لکه ما قلت لهم الا ما امرتنی به ان اعبدوا الله. د دلته کښې بعضو نحو تو ویلی دی چه دا تفسیر د پاره د قول دے نو تا سو څنګه وایئ چه ان پس د قول نه نه راځي - جواب دا دے چه دا تفسیر د پاره د امر دے چه معنی د قول دے نه د پاره د قول.

**حروف المصدر ما وان وانّ** بعضے د حروفو نه حروف مصدر دی دلته کښې اضافة د حروف مصدریه دوجه دا دی ملابسه نه دے. یعنی حروف تجعل الجملة مصدرًا.

**فالاولان للفعلیة** پس اولنی دوه چه ما او ان دی دا خاص د پاره د مکمل د جملے فعلیے د تاویل

د مصدر. لکه وضاقت علیهم الارض بما رحبت ای برحبها. اعجبنی انک قائم ای قیامک.

**وانّ للاسمیة** او انّ راځي دپاره دکر ځولو د جملې اسمیې په تاویل د مفرد سره لکه اعجبني انك قائم. اعجبنی قیامك. او کوم چه جمله اسمیه ده سره دې چه ملتزکېږي مصدریت متعذر دي نو بیا به کون مقدر کولې شي. لکه اعجبني ان هذا زید یعنی کونه زیدًا.

**حروف التحضیض** بعضې د حروفو نه هغه حروف دي چه هغه استعمالیږي د پاره د ابر انګېښتګئ په فعل مستقبل باندې لکه هلا توب قبل الموت او چه کله دا حروف داخل شي په فعل ماضي باندې نو فائده کوي تندم او زجر او توبیخ په مافات باندې لکه هلا قرأت القرآن دا حروف تحضیض خلو دي. **هلا والا ولولا ولوما لها صدر الکلام** دوی له حاصل دی صدارت د کلام د پاره د دې چه د کلام د نوعیت او ل وهلته نه معلوم شي **ویلزمها الفعل لفظا او تقدیرًا** او دغه حروفو سره فعل لفظًا وي که تقدیرًا ځکه چه تحضیض او حث دا متعلق دي په فعل پورې د لفظا فعل مثال لکه هلا تضرب زیدًا او د تقدیرًا مثال لکه هلا زیدًا تضربه. او کله کله دې نه روستو جمله اسمیه هم راځي د وجې د ضرورت نه لکه په دې شعر کښې سه یقولون لیلی ارسلت بشفاعة. الیّ فهلا نفس لیلیٰ شفیعها.

**حرف التوقع قد** بل د حروفو نه حرف توقع دی چه هغه قد دی دا د پاره د تقریب، تقلیل او تحقیق راځي او کله د پاره د تکثیر هم راځي. د دې ته حرف توقع په دې وجه وئیلې شي لانه یخبر بهمن یتوقع. د دې کله په ماضي داخلیږي کله په مضارع. چه کله په ماضي داخل شي نو هغه د تحقیق او تقریب معنی ورکوي سره د توقع نه. لکه د امیر د رکوب امید څوک اولري نو هغه ته اووائي قد رکب الامیر والله. او کله بغیر د توقع نه وي. لکه قد رکب الامیر. --

**وهی فی المضارع للتقلیل** او دا قد چه کله داخل شي په فعل مضارع باندې نو دا تقلیل فائده کوي. لکه ان الکذوب قد یصدق او په موضع د مدح کښې د پاره د کثیر راځي. لکه قد یعلم الله دے ، حرف توقع ته حرف تقریب هم وائي. لانه انما دخل علی الماضی قربه الی الحال لکه قد قامت الصلوٰة او کله د تحقیق د پاره راځي چه مجرد وي د معنی د تقلیل نه لکه قد نری تقلب وجهک (الآیة).

**حرف الاستفهام** بعض د حروفو نه دوه حرفه د استفهام دي چه دا راځي د پاره د طلب د فهم او د علم. **الهمزة وهل** چه لومړی همزه ده او بل هل دے **لهما صدر الکلام** د دې دواړو د پاره صدارت د کلام حاصل دے. ځکه چه دا دلالت کوي په تخاص نوعه د کلام باندې.

چه معنه استفهام دے. نو په اول او صدر د کلام کښې به راوړې لے شي چه دلالت اوکړي د اول وهلته نه په دغه خاص نوعه باندې. دا په جمله اسميه او فعليه دواړو باندې داخليږي. چه په جمله اسميه داخل وي.

**تقول ازيد قائم** او چه په جمله فعليه داخل وي لکه **اقام زيد وكذالك هل** او پشان د همزه هل دے لکه هل زيد قائم. هل قام زيد. **والهمزة اعم تصرفا** او همزه عام دے په اعتبار د تصرف سره د هل نه. ځکه همزه اصل دے په استفهام کښې په نسبت سره هل ته او بل دا اخصر دے د هل نه. په دے عبارت سره مصنف فرق بيانوي په مابين د همزه او د هل کښې.

**فائده** زده کړه دا خبره چه همزه داخليږي په هغه جملے اسميه باندې برابره خبره ده چه خبر ئے فعل وي که اسم وي او هل داخليږي په هغه جملے فعليه باندې چه خبر د هغه اسم وي ځکه چه هل په معنی د قد دے لکه هل اتی علی الانسان الخ او قد چونکه دلوازم د فعل نه دے په دے وجه باندې چه کله فعل موجود وي. نو دے به په اسم نه داخليږي. تقول ازيدا ضربت. هل زيدا ضربت نشے ويلے. ځکه چه کوم وخت د وجود د فعل کښې هل به په فعل داخليږي او هل زيد قائم ترکيب صحيح دے ځکه چه دلته کښې فعل نشته

**واتضرب زيدا وهو اخوك** ځکه چه دا استفهام انکاري دے او دا استفهام انکاري د پاره همزه راځي هل نه راځي. **وازيد عندك ام عمرو** دا ترکيب روا دے او هل زيد عندك ام عمرو نه دے جائز. ځکه چه ام په مقابله د همزه کښې راځي نه د هل کښې **واثم اذا ما وقع** يعني په حروف عاطفه باندې به همزه مقدم وي. ځکه چه هل په استفهام کښې اصل نه دے په شان د همزه نو د همزه په شان صدارت د کلام نه غواړي په دے وجه هل به د حروف عاطفه نه مؤخر وي. دلته کښې اثم اذا ما وقع لعطف دے په مقدر باندې. تقدير د عبارت به داسے شي. اذا حان وقت العذاب ووقع اثم اذا ما وقع آمنتم به

**وافمن كان** دلته کښې فا حرف عاطفه باندې همزه داخل دے او داسے نه شي ويلے چه هل فمن. دا جمله هم معطوف ده په مقدر باندې يعني امن كان مؤمنا كمن هو كافر فمن كان الخ يا لکه **اَوَمَنْ كَانَ** دلته کښې همزه په واو داخليږي شي خو هل نشي داخليدے. دا جمله هم معطوف ده په مقدر باندې من امن كمن لم يؤمن اومن كان ميتا الخ وجه د عدم دخول د هل په دے مقامانو کښې ذکر شويده.

**حروف الشرط** بعض د هغه نه حروف شرط دي يعني هغه حروف چه دال دي په تعليق د يو شي په بل شي باندې. شرط په لغت کښې الزام الشئ بالشئ ته وائي. او په اصطلاح کښې تعليق حصول مضمون جملة بحصول مضمون جملة اخرى. **ان ولو واما** چه هغه په دے [illegible] **ولها صدر الكلام** دوی له صدارت د کلام ثابت دے. د پاره د دے چه دا اول معلومه شي د کلام د نوعيت پته اولګي. **فان للاستقبال وان دخلت على الماضي** دلته

کښې اُس معه" تفصیل شروع کړه فَا دپاره د تفصیل د اجمال ده. انّ راځي دپاره د استقبال اګرکه په ماضي داخل
شي. یعنې معنی به د مضارع ورکړي. **ولو عکسه** او لو عکس دانّ دے. یعنې دے به معنی د ماضي ورکړي
اګرکه په مضارع داخل وي. دا غالب استعمال دے. ددے نه علاوه لو په معنی دانّ باندې هم استعمالیږي
لکه ان اعجبتکم او کله په معنی دان ناصبه هم راځي. لکه یود لو یجرم لو یفتدي به سوال دا دے چه شمیل
ستا لو لرغ د حروفِ شرط نه جا نړ نه دی. ځکه چه شرط خو غوښتلې شي تعلیق الشئ بالشئ او لو راځي لانتفاء
الشئ الثاني لاجل انتفاء الاول لکه په دے قول کښې لو جئتني لاکرمتك د دلالت کوي په انتفاء د
اکرام باندې دوجه د انتفاء د مجیئت نه **جواب** دا چه دا خبره چه لو راځي دپاره د انتفاء د ثاني دوجه د انتفاء د
اول نه دا حقیقي معنی د لو نه ده. بلکه لازمي معنی ده اصل کښې لو وضع دے دپاره د تعلیق د حصول د یو امر
په ماضي په حصول د امرِ آخر سره په دے کښې. بیا **اعتراض** واردیږي چه لو خو استعمالیږي دپاره د
قصد د لزوم د ثاني دپاره د اول سره د انتفاء د لزوم نه لو په دے سره استدلال نیولے کیږي په انتفاء د لازم
باندې لکه په دے قول د باري تعالی کښې لوکان فیهما آلهة الا الله لفسدتا. دا دلالت کوي په لزوم د فسا د
باندې په وخت د تعدد د الهه کښې او فسا د خو منتفي دے. پس دلالت لے اوکړه په انتفاء د تعدد د لزوم کله
چه لو راځي دپاره د انتفاء د اول د وجې د انتفاء د ثاني. نو لو څنګه د حروفِ شرط نه اوګرځید و..
**جواب** دا دے چه دا معنی مجازي ده. دے معنی ته قصد کوے شي په وخت د استدلال کښې په انتفاء
د لازم معلوم سره په انتفاء د ملزوم مجهول باندې **سوال** دا دے چه لو کله راځي دپاره د بیان د استمرار
د شي لکه لو اهانني لاکرمته. نو دا څنګه دپاره د شرط بر لو شي **جواب** دا دے چه ملګرکښې هم لو دپاره
د تعلیق دے. ځکه چه تعلیق د اکرام اهانت پورے راغلے دے. او استمرار ورسره لازم دے ځکه
د هغه مصاحب اکرام اهانت سره لازم شو نو اکرام سره به په طریقه اولی لازم وي.. **ولزمها الفعل** آن او
لو لازم د فعل سره یعنې دوي به په فعل داخلیږي. **لفظا او تقدیرا** یا به دا فعل ملفوظ وي یا به مقدر وي
لفظا مثال لو نه ښه کړ شو لا هغوي. او د تقدیرا مثال لکه وان احد من المشرکین استجارك. یا ولو انتم تملکون
[illegible] یا انتم دا مرفوع وي. ځکه چه دا فاعلین وي د [illegible] د افعالو محذوفه. او دا وي نه د [illegible]
چه کوم افعال داخلیږي په هغه تفسیر کوي د مقدر. نو اصل عبارت به داسے شي وان استجارك [illegible] لو تملکون [illegible]
**سوال** دا دے چه و لو انتم تملکون کښې لا انتم د تاکید شو فاعل یو نه شي. الحا فاعل یو ضمیر د جمع
شي په تملکون کښې. **جواب** دا دے. چه انتم دا ضمیر دے په اصل کښې په فعل کښې چه کله فعل حذف
شو نو دا ضمیر [illegible] منفصل شو [illegible] د [illegible] د تاکید نه شي کیدے ځکه [illegible]
دفعل او د فاعل معا ابعد من حذف الفعل وحده.

**ومن ثم** اؤ د وجې د دے خبرے نه چه د دې سره فعل لازم دے **قيل لوانك بالفتح** ويلے شي لوانك بالفتح . يعني د لونه په وروستو أن مفتوحة الهمزة راځي ځکه چه ان خپل مدخول له ځپه هغه اسم اؤ خبر دی په تاويل د مفرد کرځوی . اؤ فاعل مفرد دوی . دا په دے وجه چه د لونه روستو فعل لځی . اؤ فعل فاعل غواړی . **لونه فاعل** ځکه چه دا فاعل دے د پاره د فعل محذوف چه هغه ثبت دے مثلا .

**والطلقت بالفعل** دا عطف دے په لوانك باندِ وقيل انطلقت بالفعل يعني انّ چه کلروا قع شي پس د لونه اؤ د هغه شرط محذوف وی . نو خبر د انّ به يا مشتق وی يا جامد وی . کچرته مشتق وی نو واجب ده دا خبره چه دا به فعل وی ځکه چه فعل مقدر له لابدی ده د مفسر نه اؤ انّ دے دال دے په معنی د تحقیق باندِ په دے وجه دے دلالت کوی په ثبت باندِ . نو لازم شوه دا خبره چه خبر د انّ به فعل ماضی وی اسم فاعل به نه وی . **موضع منطلق** يعني په ځائے د اسم فاعل په صيغه د ماضی راوړلے شي .

**ليكون كالعوض** ګويا دا به عوض اوګرځی د فعل مفسر نه لو په ځائے د لوانك منطلق به لوانك انطلقت وائی نو چه فعل سره نه په اسم سره . **سوال** دا دے چه کالعوض ئے ولے اووئيل بعينه عوض به ئے وئيلی وو . **جواب** دا دے چه مونږه ځکښ دا خبره اوکړه چه انّ دال دے په معنی د تحقيق اؤ ثبوت باندِ نو پس دے دلالت کوی په معنی د ثبت باندِ مقدر له نو دا عوض شو د انّ نه من حيث المعنی . اؤ هغه فعل چه واقع دے خبر د انّ نه هغه عوض دے من المحذوف فی اللفظ نو هر يو د دوئ نه کالعوض شو نه عين عوض . **فان كان جامداً** اؤ کچرته دا خبر د انّ اسم جامد وی . **جاز** نو جائز دے واقع کيدل د اسم په خبر کښ . **لتعذره** يعني لتعذر الفعل لکه لوانّ زيدا رجل يا لکه په دے قول د باری تعالی کښ ولوان ما فی الارض من شجرة اقلام . **سوال** دا دے چه ستا دا قاعده منتقض شوه په دے ترکيب سره . يود ولوانهم بادون سره چه خبر اسم جامد نه دے بيا هم په فعل نه دے بدل . **جواب** دا دے چه دلته کښ لو شرطيه دے بلکه دا په معنا د ان مصدريه سره دے . اؤ د بعضو نحاتو په نزد باندِ لو هله د فعل شرط نه دی . اګرکه خبر مشتق وی . لکه په دے مصرعه کښ اهلکتهم لوان ذالك نافع . اؤ بلکه په دے مصرعه کښ . موعوذها ولوان النصح مقبول . نو جواب د دے نه دا دے چه دلته کښ خبر مشتق نه دے بلکه دا صفت دے . د پاره د خبر جامد . اهلکتهم لوان ذالك امر نافع دلته کښ امر مقدره دے . اؤ د غه شان په دے بله مصرعه کښ موعودها ولوان النصح امر مقبول . دلته کښ هم امر مقدر دے .

**فائده** په دے مقام کښ راوړل د خبر فعل چه کله خبر اسم مشتق وی . دا اکثر استعمال دے . اؤ بيا راوړل د ماضی اغلب دی .

**واذا تقدم القسم اول الكلام على الشرط** په هغه وخت چه تقديم د قسم راشي په شرط باندې په اول د كلام كښې ملتزم نه وي هغه احكام بيانوي چه تقديم د قسم راغلے دي يا په وسط كښې راغلے وي يا په آخر كښې وي. دلته كښې اول الكلام ظ منصوب دے بنا بر ظرفية يعني في اول زمان التكلم. **لزمه الماضي لفظا او معنى** دا جزاء ده دپاره د اذا لازم دي قسم سره چه هغه فعل شرط چه ده نه روستو واقع دے هغه به ماضي وي. دپاره د دے چه ادوات د شرط به دے كښې عمل اونه كړي. معنى ماضي ديته وائي چه په مضارع باندې لم داخل شي. د لفظا ماضي مثال لكه والله ان اتيتني اتيتك او د معنى مثال لكه والله ان لم تاتني لم اتيك

**فيطابق** يعنى فيطابق الشرط الجواب نو مطابق وي شرط جواب سره په عدم عمل كښې لفظا په دواړو كښې

**وكان الجواب للقسم لفظا** او په لفظ كښې به دا جواب د قسم وي دپاره د دے چه فعل واحد مجزوم او غير مجزوم واقع نشي او معنى دا جواب د قسم هم كيدے شي ځكه چه يمين په ده باندې واقع دے. او د شرط دپاره هم كيدے شي. ځكه چه دے مشروط بالشرط دے.

**مثل والله ان اتيتني** دا مثال د ماضي دے لفظا او دلته كښې قسم مقدم دے په شرط باندې. **او لم تاتني** دا مثال د ماضي دے معنى. **لا كرمتك** دا جزاء ده **وان توسط القسم** دا بل صورت دے. كه چرته دا قسم متوسط وي. په دے شان سره. **بتقديم الشرط او غيره** يا شرط ورباندې مقدم وي او يا غير د شرط نه په ده باندې مقدم وي. **جاز ان يعتبر** جائز ده چه قسم او شرط دواړه معتبر كړے شي. **وان يلغى** يا ملغى اوكړے شي يعني قسم او اعتبار د شرط اوكړے شي يا شرط ملغى شي او د قسم اعتبار اوكړے شي. دا دواړه وجهين په دے وجه باندې جائز دي. ځكه چه قسم دا قسم به خالى نه وي يا به په اول كښې وي يا به نه وي كه په اول كښې وي نو دے واجب الرعايه دے او كه چرته په اول كښې نه وي نو بيا شرط او قسم برابر دي. **كقولك انا والله ان تاتني اتك**. دا مثال د تقديم د غير الشرط دے په قسم باندې. كه چرته دلته كښې اولنئ معنى ته اوكورو. نو نشر غير مرتب دے. او كه معنى ثانى ته اوكورو. نو په تقديم كښې نشر غير مرتب دے. او په جواز كښې مرتب دے **وان اتيتني والله لا تينك** بناء په معنى اولے باندې دا مثال د تقديم د شرط دے. او جواز د اعتبار د قسم دے. دلته كښې نشر مرتب دے په نظر سره معنى اولے ته په اعتبار د تقديم او د جواز سره او په نظر سره معنى ثانى ته په اعتبار د تقديم سره نشر مرتب دے. او په اعتبار د جواز د الغاء د شرط سره نشر غير مرتب دے. چونكه په معنى اوله كښې لف نشر مرتب دے په اعتبار د ين سره على سبيل الاجتماع او په معنى ثانى كښې على وجه التفريق په دے وجه باندې معنى اول له ترجيح ده په ثانى باندې.

بنا په دے باندِ یکار ده دا خبره چه مثال ثانی ئے مقدم کړے وو په اول باندے. لیکن دلته کښې ئے مؤخر کړو. چه اتصال د مثال راشی د ممثل سره بقدر الامکان. **وتقدیر القسم کاللفظ** یعنی قسم مقدر په حکم کښې پشان د قسم ملفوظه دے. یعنی په اعتبار او عدم اعتبار کښې. لکه **لئن اخرجوا لا یخرجون** دلته کښې په لئن کښې لام موطئه للقسم دے او دالام داخل دے په شرط باندِ او په دے باندِ قسم لفظاً مقدم دے. شرط ماضی ده او جواب د قسم لا یخرجون غیر مجزوم دے. کمېته جزاء د شرط وو نو بیا به مجزوم وو. وتقدیر القسم باندِ. **سوال** وارد یږی چه دلته کښې لازمیږی تشبیه د وصف سره د ذات مع الوصف نه. **جواب** دادے چه لفظ په دے مقام کښې محمول دے په معنی مصدری باندِ نو عبارة به داسے شی وتقدیر القسم کالتلفظ به. **وان اطعتموهم انکم لمشرکون** دلته کښې شرط ماضی ده او انکم لمشرکون جواب د قسم دے کمېته د اجزاء د شرط وو نو بیا فاء راوړل ضروری وو. ځکه چه دا جمله اسمیه ده او جمله اسمیه چه کله جزاء واقع شی. نو فاء راوړل پکښې واجب دی.

**واما للتفصیل** او بل د حروفِ شرط نه اما دے دے راځی د پاره د تفصیل دا جمال چه متکلم ئے خبره بجمله کړی وی د یعنی د تفصیل د پاره راځی. چه هغه اجمال یا به ذکر کښې وی یا به ذهن کښې وی د ذکر مثال لکه جاء اخوتک اما زید فاکرمته واما عمرو فاهنته، واما بکر فاعرضت عنه. مثال د اجمال ذهنی هغه چه معلوم وی مخاطب ته په واسطه سره یا په قرائنو سره. او کله د محبه د استیناف د پاره راځی بغیر د سبق اجمال نه. لکه اما چه ذکر کیږی په اوائلو د خطبو کښې. او چه اما د پاره د تفصیل راځی بیا پکښې تکرار لازم دے. ځکه چه مفصل مکرر دی. او کله کله اکتفا صرف په یو قسم باندِ کیږی هغه وخت کښې مذکور ضد د غیر مذکور وی. ځکه چه یو ضد دلالت کوی په بل باندِ. لکه فاما الذین فی قلوبهم زیغ نو د دے ضد اما الذین لیس فی قلوبهم زیغ دے. او دلیل په شرطیة د دے باندِ هغه دخول د فاء دے په جواب کښې او سببیت د اول دے د پاره د ثانی.

**والتزم حذف فعلها** او التزام کړے شویدے د حذف د فعل د دے چه هغه شرط دے د وجے د کثرتِ استعمال نه. **وعوّض بینها وبین فائها** او عوض به راوړلے شی په ما بین د اما کښې او په ما بین د فاء د اما کښې. **جزء مما فی حیزها** یعنی جزء مما فی حیز جوابها د پاره د دے چه توالی رانشی په ما بین د شرط او د جزاء کښې. او س د هغه خبر به یا مبتداء وی لکه اما زید فمنطلق. او یا به معمول وی د پاره د هغه چه واقع وی بعد الفاء لکه اما یوم الجمعة فزید منطلق. دلته کښې یوم الجمعة معمول د منطلق د پاره دے. **مطلقاً** ما صفت د پاره د زمانا یعنی زمانا مطلقا یعنی برابره خبره ده چه مابعد د اما نه هغه شے وی چه منع وی تقدم د هغه ترفاء باندِ او یا منع نه وی لکه اما زید فمنطلق.

**وقيل هو معمول الشرط المحذوف مطلقا** | قائل د دے مبرد نحوی دے . قول يعني هغه چه واقع مے په مابين د امّا او د فاء کښې . يعني هغه چه مابعد د امّا نه دے . هغه به معمول د شرط محذوف وی . نه جزء د پاره د جزاء . مطلقًا يعني زمانا مطلقًا غير مقيد دے په حال د منع د تقديم او عدم منع تقديم .

**مثل اما يوم الجمعة فزيد منطلق** . بناء په مذهب اول تقديرِ د عبارت به دا سے شی مهما يكن شئ من الاشياء فزيد منطلق يوم الجمعة . پس دلته کښې فعل شرط حذف کړے شو . او امّا په ځائے د مهما باندې راوړے شو . او متوسط کړے شو يوم الجمعة په مابين د امّا او مابين د فاء کښې . د پاره د دے چه تړلے راشي په مابين د ادوات د شرط او د جزاء کښې . او بنا په مذهب ثاني تقدير د عبارت دا دے چه مهما يكن من شئ يوم الجمعة فزيد منطلق . نو په دے ترکيب کښې يوم الجمعة معمول دے د پاره د فعل شرط محذوف .

**وقيل ان كان جائز التقديم فمن الاول والا فمن الثاني** | او بعض نحاة توجيه مازني دے و ئيلی دی . چه کله چه مابعد د امّا نه جائز التقديم وی . نو هغه به د قسم اول نه وی . په دے شان سره چه غير د فاء نه بل مانع نه وی . لکه مبتدا شوے په اما زيد فمنطلق . او يا معمول د پاره د هغه چه په خبر د جواب د دے کښې وی . لکه اما يوم الجمعة فزيد منطلق . ځکه چه جائز دے دا خبره چه يوم الجمعة دے اوګرځو معمول د پاره د منطلق او يوم الجمعة مقدم دے په فاء باندې .

**والا فمن الثاني** | يعني ان لم يكن جائز التقديم چه د فاء نه علاوه بل مانع وی . نو هغه به د قسم ثاني وی . يعني هغه به معمول د پاره د شرط محذوف وی . ځکه چه ممتنع ده دا خبره چه دے جزء د جزاء شی . ځکه دلته کښې تقديم ممتنع دے . لکه اما زيد فاني ضارب . ځکه انّ دے خپل مابعد لره منع کوی د عمل نه په ماقبل کښې . دلته کښې مصنفؒ امثله د جزء منصوب ذکر کړل او د جزء مرفوع ئے ذکر نه کړل ځکه د جزء مرفوع مثالونه کثير او ظاهر دی .

**حرف الردع** | بعض د حروفو نه حرف ردع دے . ردع په معنی د زجر او د منع راځی . دا کلمه د پاره د زجر د مخبر لګولے شی چا ته او وائی فلان يبغضك نو ته ورته او وائے کلا ، يعني ليس الامر كذالك . او يا د پاره د ردع د طالب . لکه رب ارجعون لعلي اعمل صالحا فيما تركت كلا .

**وقد جاء بمعنى حقا** | او کلا راځی په معنی د حقا لکه كلا ان الانسان ليطغى او کلا په دوا رو معنيو راځی . لکه ثم يطمع ان ازيد كلا . غرض د دے نه تحقيق د مضمون د جملے دے . چه کلا په معنی د حقا وی . او د دغه شان دا به اسم مبني وی . د وجے د مشابهت د ده نه د کلا حرفی سره لفظا .

**سوال** دا دے چه کله کلا اسم دے نو ولے په اسماء کښې ئے ذکر کړو . **جواب** دا دے چه دے اسم قوم دوباندې نحاة حکم د حرفيت کوی . ځکه مقصود د ده نه تحقيق د مضمون د جملے دے . نو د حرفيت نه نزدے او ځی پشان دا .

**تاء التانیث الساکنة** بعض د هروفونه هغه تاء د تانیث ده چه هغه ساکنه ده. دلته کښې الساکنة د تاء د پاره صفت راغلے دے. د تاء اضافت هغه التانیث ته راغلے چه هغه معرف باللام دے. او ذ مضاف الی معرف باللام هغه له حکم د لام دے. په الساکنة سره احتراز راغلے د متحرکے نه. ځکه چه تاء متحرکه دا خو اصولو اسم نه ده. **تلحق الفعل الماضی** دا به ملحق وی په فعل ماضی پورے. چه دا دلالت اوکړی په دے خبره چه روستو چه کوم مسند الیه ذکر کیږی هغه به مؤنث وی. **لتانیث المسند الیه** دلته کښې لام د پاره د تعلیل دے. د غرض د پاره نه دے. او مسند الیه عام دے فاعل وی که مفعول مالم یسم فاعله وی. دلته کښې **سوال** وارد یږی چه څه وجه ده. تمام تو تاء ساکنه خاص کړه په فعل پورے او متحرکه ئے خاص کړه په اسم پورے. **جواب** دا دے چه اصل په اسم کښې اعراب دے. او اصل په فعل کښې بناء ده. نو تحرک د تاء د علامه د اعراب د اسم شوه. او سکون د تاء د علامه د بناء د فعل شو.

**فان کان ظاهرًا غیر حقیقی** که چرته د مسند الیه اسم ظاهر وی. او مؤنث غیر حقیقی وی. چه په مقابله کښې د هغه ذکر من الحیوان نه وی. **فمخیر** بیا تا ته اختیار دے. **سوال** دا دے چه دا خو جزاء ده او جزاء نه وی مګر جمله او دا خو مفرد دے. **جواب** دا دے چه دلته کښې مبتدا محذوف ده. یعنی فانت مخیر. دلته کښې دا صیغه د اسم فاعل هم صحیح کیږی. په دغه وخت کښې به دا خبر د پاره دانت شی. او که چرته دا صیغه د مفعول شی. دا به خبر شی د پاره د هو او دا ضمیر به الحاق ته راجع شی. او دا به د قبیلے د حذف والایصال نه او ګرځی. او دلته کښې به فیه مقدر شی یعنی هو فیه مخیر.

**واما الحاق علامة التثنیة والجمعین فضعیف** په دے عبارت سره غرض د مصنف دفع د اعتراض ده. **سوال** دا دے چه په فعل پورے الحاق د تاء ساکنے کیږی چه دا علامه او ګرځی په تانیث د مسند الیه. نو د غه شان ورسره الحاق د علامے د تثنیے او د جمع هم پکار دے چه دا علامه وی په تثنیت او یا جمعیت د مسند الیه. نو مصنف جواب اوکړو واما یعنی هر چه دے الحاق د علامے د تانیث او د جمعینو یعنی جمع مذکر او جمع مؤنث چه کله فاعل اسم ظاهر وی نو دا ضعیف دے. ځکه چه په دغه وخت کښې لازمیږی تعدد د فاعل. یو به ضمیر شی او بل به اسم ظاهر شی. او د هغه علاماتو ته احتیاج نشته. دا سے احتیاج لکه چه څنګه علامے د تانیث ته دے. لکه قاما الزیدان، قاموا الزیدون، قمن النساء. **سوال** وارد یږی چه مصنف ځائے د ضعیف پکار دا ده چه ممتنع و ئیلے وے. ځکه چه ضعف خو دلالت کوی په جواز د الحاق باندی او حال دا چه دا خو ممنوع دے. ځکه چه په دغه وخت کښې لازمیږی اضمار قبل الذکر بلا فائده او یا تعدد د فاعل. **جواب** دا دے چه په فعل پورے کوم علامه د تثنیه او جمعیة ملحق ده. دا ضمائر نه دی. بلکه دا حروف دی چه دلالت کوی په احوالو

د فاعل بانډ - او شيخ رضي وائي . چه حکم د ضعف په دے لحوق باندې صحيح نه دے . ځکه چه جائز دي دا خبر چه دا اسم ظاهر دے بدل را غلے وي . د هغه ضمير نه چه کوم په فعل کښې دے - او فائده د دے بدل هغه مبالغه ده في الاسنا د - لکه اکلوني البراغيث . خو د جامي د مصنف نه شيخ رضي ته جواب وا دے چه دلته کښې بظاهر توهم د تعدد د فاعل راځي . اګر که په واقع کښې نه وي

## التنوين

بل قسم د حروفو نه هغه تنوين دے لغتۀ دا مصدر د نونتۀ دے . په معنی دادخلت عليه النون . بيا نفس تنوين په دے سره مسمّیٰ کړے شو . چه دا علامه او ګرځي په حلقه او په عروض ده . اصطلاحي تعريف ئے مصنف کوي . **نون ساکنة** په ساکنه سره احتراز راغلے د متحرک نه . ځکه چه هغه نه تنوين نشي وئيلے او د غه شان مراد په سکون سره سکون اصلي دے نه عارضي لکه نون ساکن چه هغه متحرک کړے شي ځکه چه د غه حرکت عارضي دے . **تتبع حرکة الآخر** چه دے تابع وي د حرکت د آخر د کلمے الآخر کښې الف لام عوض د مضاف اليه نه وي يعني آخر الکلمة په هر ليو تعريف کښې لا بدي ده دجنس او د فصل نه . نون ساکنة دا جنس دے تمام نون ساکن پکښې داخل شو . لکه نون د من او من دلدن . تتبع حرکة الآخر دا فصل دے په دے سره تر نه د غه قسم نونات خارج شو ځکه چه دا مين آخر د کلمے وي . او دلته کښې مصنف دا سے او نه وئيل چه تتبع الآخر . ځکه چه تابع د آخر هغه ته وائي چه ملحق په آخر پورے بلا فصل او دلته کښې حرکة فاصله دے په مابين د تنوين او د آخر کښې . **سوال** وارد يږي چه دلته کښې ذکر د حرکت مستدرک دے ځکه چه آخر د کلمه خو حرکة وي . **جواب** دا دے چه متبادر د آخر نه حرف آخر دے . بيا **سوال** وارد يږي چه آخر الاسم نه د وئيلے وو . **جواب** دا دے چه آخر الاسم ئے او نه وئيل د پاره د دے چه شامل شي تعريف صفه تنوين ترنم له . **سوال** وارد يږي چه ستا دا تعريف جامع نه شو ځکه چه دا افراد د له او خارج شو تنه تنوين چه کوم په يد يا دم ، اب ، الاخ کښې دے . ځکه چه دا تابع د آخر د کلمے نه دے بلکه د وسط د کلمے دے . **جواب** دا دے چه دا داخل دے په تنوين کښې . ځکه چه حرف آخر هغه محذوف نسيًا منسيا دے . نو دا وسط په منزله د آخر د کلمے شو . **لا لتاکيد الفعل** دا فصل دے او خارج شو تر نه نون تاکيد خفيفه چه هغه راځي د پاره د تاکيد د فعل . **سوال** دا وارد يږي چه ستا تعريف مانع نه شو د دخول د غير نه او داخل شو پکښې نون د يا رجل النطلق . ځکه چه دا خو هم نون دے چه تابع د حرکة د ما قبل دے . **جواب** دا دے چه مراد په تبعيت سره دا سے تابع دے چه د هغه وجود موقوف وي په وجود د متبوع باندې لکه د عارض او د معروض . چه معروض د ي خو عارض به وي . او دلته نشي دا سے نه دے . ځکه چه نون د انطلق تابع د حرکة د لام د رجل نه دے . کله ته کښې دا لام معدوم شي

**وهو للتمکن** په دے سره مصنف اشاره کوی اقسامو د تنوین ته۔ چه بن نوَن به بیا هم موجود وی او هغه پنځه قسمونه دی۔ یو تنوین تمکن دے۔ دے داخلیږی په اسم باندے۔ او دے دلالت کوی په دے خبره باندے چه دا اسم معرب منصرف دے۔ لکه زیدٌ۔ تمکن ورته ځکه وائی چه دے دلالت کوی په امکنیت د اسم باند۔ **والتنکیر** بل تنوین تنکیر دے۔ چه دا اسم په نکره والی دلالت کوی۔ یعنی دے فارق دے په مابین د معرفے او د نکرے کښی لکه چه څنګه تمکن فارق دے په مابین د منصرف او غیر منصرف کښی۔ لکه صهٍ و مهٍ یعنی مدخول د دے به غیر معین وی

**فائده** تنوین تنکیر او تنوین تمکن دا دواړه قسمین دی د یو مقسم واحد۔ او په مابین د قسمینو د مقسم واحد کښی تبائن وی۔ **والعوض** بل تنوین عوضی دے دا هغه دے چه عوض د مضاف الیه نه راغلے وی او یا د یاء نه لکه په جوارٍ۔ چه عوض د مضاف الیه نه وی لکه یومئذٍ، حینئذٍ۔ دا په اصل کښی وو یوم اذ کان کذا، حین اذ کان کذا۔ راځی د یاء د جیرے د نقصان چه حاصل شویدے په حذف سره۔

**والمقابلة** او بل تنوین د مقابلے دے چه دا راځی په جمع مؤنث کښی په مقابله د نون د جمع مذکر کښی لکه مسلمات۔ په مسلمات کښی دا تنوین مقابله دے۔ او تنوین تمکن یا تنوین تنکیر یا تنوین عوضی او تنوین ترنم نه دے۔ هر چه دے عدم تنوین تمکن نو دا په دے وجه کړته دا تنوین تمکن وے بیا پکار دا وه چه کله دا علم او ګرځی۔ (مسلمات) د یاره د یو سړی نو دا به زائل شی۔ ځکه چه په دغه وخت کښی به دا غیر منصرف او ګرځی۔ او دا د تنکیر د پاره هم نه دے۔ ځکه چه د موجودیږی په علم کښی چه معرفات دے۔ او تنوین عوض هم نه دے ځکه چه دا مضاف نه دے یو شی ته۔ او تنوین ترنم هم نه دے۔ ځکه چه دے موجودیږی په نثر دا واخر د ابیا تو کښی۔ پس متعین شوه دا خبره چه دا د پاره د مقابلے دے۔

**والترنم** بل تنوین ترنم دے چه دے راځی د پاره د تحسین د صوت او د تحسین د انشاد۔

**فائده** تنوین ترنم په دوه قسمه دے۔ یو هغه دے چه ملحق کیږی قافیے مطلقے پورے۔ او قافیه مطلقه هغه ده چه حرف روی په هغے کښی متحرک وی۔ او مشبع وی په اشباع د حرکت د حروف اطلاق (حروف علة) سره دے ته حروف اطلاق وائی۔ لاطلاق الصوت بامتدادها۔ او د غه حروف په آخر د ابیاتو د مصرعو کښی بد لیږی په تنوین سره۔ لکه په دے قول د شاعر کښی۔ اقلی اللوم عاذل والعتابن وقولی ان اصبت لقد اصابن۔ دویم قسم هغه دے چه ملحق وی قافیے مقیدے سره او دا هغه ده چه حرف روی پکښی ساکن وی مقیده ورته په دے وجه وائی لتقیید الصوت بها۔ ځکه د لته کښی دا حرکت نشته چه د هغے په اشباع سره حروف اطلاق پیدا شی لکه وقاتم الاعماق خاوی المخترقن۔ د لته کښی روی د قافیے هغه قاف ساکن دے۔ او مد د صوت په هغے کښی ممکن نه دے۔ نو په هغه د تغنی کښی دے

ورپا فتح ورکړې شوه . یا کسره بیا وروپورې نون ملحق کړې شو . **سوال** دا دې چه شمیل د تنوین مقابل او د تنوین ترنم د اقسامو د کلمې نه نه دی صحیح ځکه چه په کلمه کښې وضع د پاره د معنی معتبره ده . او په دې کښې نه وضع د معنی نشته . لکه څنګه وضع د حروف تهجی د پاره د غرض د ترکیب ده **جواب** دا دې عدد د دې کلمې نه په اعتبار د باقی اقسامو سره . په معنوی کښې وضع معتبره ده . نو تغلیبا په دې کښې هم وضع معتبره کړې شوه . **و یحذف من العلم موصوفا بابن مضافا الی علم آخر** د هغه علم نه چه په لفظ د ابن سره موصوف وي . تنوین به وجوبا حذف کیږي ځکه چه ابن کثیر الاستعمال دې په مابین د علمین کښې او کثرت تقاضا د خفت کوي . نو ځکه تو په دې کښې تخفیف اوکړو په حذف د تنوین سره د علم نه او په حذف سره د ابن نه . په علم سره د غیر علم نه احتراز دې . لکه جاءني رجل ابن عمرو او په مضافا الی علم آخر سره احتراز دې د هغه نه چه اضافت ئې غیر علم ته وي لکه جاءني زید ابن الکاتب د وجه د قلت استعمال نه . **سوال** دا دې چه ستا دا قاعده مانع او نه ګرځیده د دخول د غیر نه او داخل شو په کښې فلان . ځکه چه دا علم نه دې او بیا هم ده دا حکم مذکور دې . **جواب** دا دې چه فلان حمل کړې شویدې په علم باندې ځکه چه دا کنایه ده د علم نه . او په ابن باندې ابنة حمل کړې شویده . لکه هذه هند ابنة عاصم . خو دا صرف په تنوین کښې نه په حذف د همزه کښې . د لته کښې **سوال** وارد یږي چه پکار دا ده چه د جاریة من قیس ابن ثعلبة نه تنوین حذف شوې وې ځکه چه جاریة دا موصوف دې په ابن سره چه مضاف دې علم آخر ته . **جواب** دا دې چه د لته کښې عدم حذف د تنوین د وجه د ضرورة نه دې .

**نون التاکید خفیفة ساکنة ومشددة مفتوحة** | بعض د حروفو نه هغه نون تاکید دې

یو نون تاکید خفیفه ساکنه دې . او بل نون ثقیله مفتوحه دې . د لته **سوال** وارد یږي چه تا نون تاکید خفیفه ولې مقدم کړو په ثقیله باندې . سره د دې نه چه دا فرع دې د نون تاکید ثقیله . **جواب** دا دې چه دا ولې مقدم کړو د وجه د خفت نه . مراد په نون تاکید سره هغه نون دې . چه هغه راوړلې شي د پاره د تاکید . نون تاکید خفیفه دا ساکن دې ځکه چه دې مبنی دې . او اصل په بناء کښې سکون دې . او نون تاکید ثقیله مفتوح دې . او حرکت ورله ورکړې شوید ې . د وجه د التقاء د ساکنین نه . بیا په حرکت کښې فتحه ورکړې شوه ځکه چه نون ثقیل دې او فتح اخف الحرکات دې . لیکن مفتوح به نه وي . **مع غیر الالف** سوا د الف د تثنیه نه لکه اضربان شو یا الف د جمع چه فاصل دې په مابین د نون د جمع مؤنث کښې او د نون مشدد ده کښې لکه اضربنان . په دې صیغو کښې به نون مکسوره وي . ځکه چه دې مشابه دې د نون د تثنیه سره او نون د اعراب سره د پاره د تعادل په مابین د ثقل د کسرې کښې . او خفت د الف کښې .

**تختص بالفعل المستقبل** دا خاص دی په فعل مضارع پورې نه په ماضي یا حال پورې **فی الامر** ما صفت دے د پاره د فعل مستقبل یعنی الکائن فی الامر. لکه اضربن مخففه او مثقلة دلته کښې تختص الخ دا جمله مستانفه ده. یعنی یختص کل واحد من نونی التاکید. **والنهی** لکه لاتضربن **والاستفهام** لکه هل تضربن **والتمنی** لکه لیتک تضربن **والعرض** لکه الا تنزلن بنا فتصیب خیرا. **والقسم** والله لافعلن کذا **سوال** دا دے چه دا نون ولے خاص دے په دے مذکوره امورو پورې **جواب** دا دے چه دے مذکوره امورو پورې دا نون خاص دے ځکه چه دا امور دال دی په طلب باندې او د طلب تعلق په مستقبل پورې وی چه امر وی یا نهی وی یا استفهام یا تمنی او یا عرض وی. او مطلوب ماضی یا حال یا استقبال چه خبر وی هغه نه شی کیدے **بیا سوال** واردیږی چه په کار ده چه په جواب قسم کښې دې دا نون را نه شی. ځکه چه په هغې کښې معنی د طلب نشته **جواب** دا دے چه په جواب قسم کښې دا نون راځی د وجې د تشبیه ورکولو نه د مطلوب سره په اهتمام د شان کښې. **وقلت فی النفی** او قلیل دے دخول د نون په نفی باندې ځکه چه په دے کښې معنی د طلب نشته او قلیله ور باندې نون داخلیږی د وجې د تشبیه نه په نهی پورې. **ولزمت فی مثبت القسم** او لازم دے داوړل د نون تاکید په جواب د قسم کښې چه مثبت وی ځکه چه قسم محل د تاکید دے. نو پس نما تو دا خبره خوښه نه کړه چه دوی مؤکد کړی فعل په دا سے امر سره چه منفصل دے د فعل نه چه هغه قسم دے. بغیر د تاکید نه په دا سے امر سره چه هغه متصل وی په ده پورې چه نون د تاکید دے. او چه لزمت لے او وئیل په دے کښې اشاره ده دے خبرې ته چه د جواب د قسم مثبت نه علاوه لحوق د نون لازم نه دے. البته جائز دے.

**وکثرت فی مثل اما تفعلن** یعنی په یو فعل چه حرف شرط ان داخل شوی وی او د هغې تاکید په ما سره راغلے وی نو په دغه صورت کښې د فعل تاکید به په نون سره راځی. ځکه چه هر کله غیر مقصود چه هغه حرف دے د هغې تاکید راغلے دے. نو فعل چه مقصود دے د هغې تاکید خو به په طریق اولیٰ سره راځی. د پاره د دے چه لازم نه شی. انقصیت د مقصود د غیر مقصود نه، لکه په دے قول د باری تعالیٰ کښې فاما ترین من البشر احدا.

**وماقبلها مع ضمیر المذکرین مضموم** او ما قبل د نون تاکید ثقیله یا خفیفه سره د ضمیر د مذکر نه مضموم بیدی. او هغه ضمیر د مذکر واو دے. د پاره د دے چه دلالت اوکړی په واو محذوفه باندې **ومع المخاطبة مکسور** او سره د مؤنثې نه به مکسور وی د پاره د دے چه دلالت اوکړی په یا محذوفه باندې. دا په دے وجه چه دلته کښې لازمیږی التقا د ساکنین علی حده او ئیلو وجه

د ثقل د واؤ او د یا نه پس د ضمې او د کسرې نه **وما عدا ذالك مفتوح** او د دې مذکورو نه علاوه به مفتوح وی د پاره د خفت. او ما عدا د مذکورو نه صیغه واحد مذکر د حاضر غائب وی که حاضر او مؤنثه د غائبې د ځکه مخاطبه او متکلم واحد وی که جمع وی. **سوال** ما د دې چه ماعدا المذکور خو تثنیه او جمع هم دی سره د دې نه ما قبل د نون نه مفتوح نه وی بلکه الف دی. **جواب** دا دی چه تثنیه او جمع ما عدا کښې نه دی مراد ځکه چه د هغې ذکر مصنف په دې قول سره کوی. **تقول فی التثنية والجمع المؤنث اضربان واضربنان** په اثبات د الف سره په تثنیه کښې د پاره د دې چه التباس به نه راشی د واحد سره. او په زیادت د الف سره په جمع کښې پس د نون د جمع نه د پاره د دې چه لازم نه شی توالی د نونونو. او دغه الف فاصل وائی. **ولا تدخلهما الخفيفة** په تثنیه او په جمع مؤنث باندې نون خفیفه نه داخلیږی نو د دې نه شی ویلی کیدې چه اضربانْ او یا اضربنانْ. ځکه چه دلته کښې که نون له حرکت ورکوو نو دا خو د دې د وضع خلاف دی ځکه چه دا خو نون ساکن دی. او یا لازمیږی التقاء د ساکنینو علی غیر حده. ځکه چه ساکن ثانی په دې کښې مدغم نه دی. او چه ساکن ثانی کله مدغم وی. نو بیا جائز دی. ځکه چه دې کالمتحرک دی.

**خلافاً لیونس** خلاف ثابت دی یونس نحوی له. د هغه په نز باندې جائز ده التقاء الساکنین علی غیر حده نکه په صورت د وقف کښې د هغه په نز باندې امتداد د صوت په وقف کښې په منزله د حرکت دی. نو ګویا التقاء د ساکنین را نغله. **وهما فی غيرهما** او نون تاکید ثقیله یا خفیفه په غیر د تثنیې او جمع مؤنث کښې ځکه چه د تثنیې او د جمع مؤنث حکم ئې مخکښې بیان کړو. برابر خبره ده چه فعل په هغه کښې صحیح وی. او که معتل. اُس دلته کښې هغه بیانوی چه فعل یکښې معتل الاواخر وی. چه پس د لحوق د نون تاکید نه هغې ته حکم دی. **مع الضمير البارز** په حال د کون د دې غیر کښې چه مقارن وی سره د ضمیر بارز نه. چه هغه واؤ د جمع مذکر او یا د مخاطب ده. **كالمنفصل** یعنی کالکلمة المنفصلة دا پشان د کلمې منفصلې دی. نو بیا به ضمیر حذف کیږی. لکه اغزُن خو یا اِرمن شو دلته کښې دا وحذف شو یدے دلته کښې المنفصل صفت د پاره د لفظ دے لیکن مراد ترې نه کالکلمة المنفصلة دے **فان لم يكن** که چرته کښې نه وی په دې کښې ضمیر بارز ضمیر مستتر وی. **فكالمتصل** نو بیا نو پشان د کلمې متصلې دی. په رد د لام د کلمې کښې. او په فتح د هغې باندې. لکه اغزون ارمین اخشین. **ومن ثم** او د وجه د دې خبرې نه چه لحوق د نون سره د غیر ضمیر بارز نه کالمتصل او سره د ضمیر بارز نه پشان د منفصل. **قيل هل ترين** د ښځې شی هل ترین. دا مثال د الحاق د نون تاکید ثقیله دے. به غیر ضمیر بارز بودے. چه لام کلمه یکښې واپس کرے شوے ده. او مفتوحه ده

